بسم الله الرحمن الرحیم

| رکوعاتها (۲۰) | (۳) سورة آل عمران مدنية (۸۹) | آیاتها (۲۰۰) |
|---|---|---|

سورة آل عمران مدني دے، پدے کښې دوه سوه آیتونه او شل رکوع دي.

## تفسیر سورة آل عمران

ددے سورت په ابتداء کې یو څو بحثونه دي چه هغه د سورت د فهم دپاره ضروري دي:
(۱) نومونه. (۲) فضائل. (۳) مناسبت، (٤) شان نزول (٥) موضوع (٦) حاصل د آیتونو. (۷) تفسیر او وضاحت د کلماتو او فوائد او حکمتونه.

۱ – ددے سورت **نوم** ((آل عمران)) پدے وجه کیخودے شو چه پدے کې د عمران علیه السلام د کورنئ غوره اشخاص (عیسیٰ، یحییٰ، مریم او د هغې د مور علیهم السلام) په ډیر تفصیل سره ذکر شویدي.

○ ددے نوم ((زهراء)) هم دے، ځکه چه دا د عیسیٰ علیه السلام په باره کې د اهل کتابو د شبهاتو ازاله کوي او په آخرت کې نُور (رڼا) پیدا کوي او مشتمل دے په اسم اعظم د الله تعالیٰ باندے. (قرطبي) ○ ددے نوم ((امان)) هم دے. ځکه چه څوك پدے سورت پوهه شي نو د عیسیٰ علیه السلام په مرتبه کې د غلطۍ کولو نه بچ کیږي. دارنګه د پیریانو او شیطانانو او مارانو نه محفوظ کیږي. (کما قال القرطبيؒ) لکه روستو فضائلو کې راځي.

○ دے ته ((کنز القرآن)) هم وائي ځکه چه دا د عیسوي اسرارو (رازونو) خزانه ده. دارنګه نور خزائن هم پکې دي او د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه امام دارميؒ نقل کړیدي:

[نِعْمَ كَنْزُ الصُّعْلُوكِ سُوْرَةُ آلِ عِمْرَانَ يَقُوْمُ بِهَا فِيْ آخِرِ اللَّيْلِ]

[الدارمي: ۳۳۹۸] واسناده صحیح موقوف – حسین سلیم اسد).

د فقیر دپاره ښه خزانه سورت آل عمران دے چه د شپے په آخر کې پدے سره قیام کوي.

○ دے ته ((مجادله)) هم وائي ځکه چه ددے اتیا (۸۰) آیتونه د نجران د نصاراؤ سره په مناظره کې نازل شویدي. ○ دے ته ((سورة الاستغفار)) هم وائي کوم چه د

آيت ﴿وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ بِالْاَسْحَارِ﴾ نه اخستے شويدے. ○ دے ته ((طيبه)) هم وائی ځکه چه پدے کی د طيبين يعنی ښو (پاکو) خلقو ذکر راغلے دے. يعنی آيتِ کريمه ﴿الصَّابِرِيْنَ وَالصَّادِقِيْنَ وَالْقَانِتِيْنَ وَالْمُنْفِقِيْنَ وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ بِالْاَسْحَارِ﴾ طرف ته اشاره ده. او قرطبیؒ ونيلی دی چه نقاشؒ نقل کړيدی چه دا نوم ورته په تورات کی ورکړے شوے وو.

۲- قرطبیؒ ليکلی دی چه دا سورة د مفسرينو په اجماع سره مدنی دے. او ددے دليل ابتدائی درے اتيا (۸۳) آيتونه دی کوم چه د نجران د عيسايانو د وفد په حقله نازل شوی وو، او دا وفد په مدينه منوره کی رسول الله ﷺ ته په سنه (۹ هـ) کيراغلے وو.

## د سورت آل عمران فضائل

ددے سورت په فضيلت کی ډير حديثونه راغلي دی، امام احمد د بريده ﷺ نه يو حديث روايت کړيدے چه په هغے کی راغلي دی چه [تَعَلَّمُوْا سُوْرَةَ الْبَقَرَةِ وَآلَ عِمْرَانَ فَإِنَّهُمَا الزَّهْرَاوَانِ يُظِلَّانِ صَاحِبَهُمَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُمَا غَمَامَتَانِ اَوْ غَيَايَتَانِ اَوْ فِرْقَانِ مِنْ طَيْرٍ صَوَافَّ]

سورة البقره او سورة آل عمران زده کړئ، دا دوه ښائسته رڼا کونکی سورتونه دی چه د قيامت په ورځ به په خپلو لوستونکو باندے د وريځے يا د مارغانو وزرو خورونکو په شان سورے کوی. (احمد: ۲۳۰۰۰) وسنده حسن- شعيب)

نواس بن سمعان ﷺ فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل [يُؤْتٰى بِالْقُرْآنِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَأَهْلُهُ الَّذِيْنَ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ بِهٖ تَقْدُمُهُ سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ وَآلُ عِمْرَانَ - كَأَنَّهُمَا غَمَامَتَانِ اَوْ ظُلَّتَانِ سَوْدَاوَانِ بَيْنَهُمَا شَرْقٌ اَوْ كَأَنَّهُمَا حِزْقَانِ مِنْ طَيْرٍ صَوَافَّ تُحَاجَّانِ عَنْ صَاحِبِهِمَا] چه د قيامت په ورځ به قرآن او قرآن والا راوستلے شی چا چه په دنيا کی په هغے باندے عمل کولو، سورة البقره او سورة آل عمران به د هغوی نه مخکی وی. بيا رسول الله ﷺ ددے دواړو سورتونو مثال بيان کړو چه ګويا که دا به دوه وريځے وی يا به ګڼ سوری، يا د صف تړونکی مارغانو دوه ډلے، چه د خپلو لوستونکو د طرف نه به دفاع کوی. (مسلم، ترمذی، احمد). او دا روايات په اول د سورة البقره کی اُوګوره.

۳- مسند دارمی کی دی: يو سړی په يوه صحراء کی په يوه وادی (کنده) کی شپه شوه چه هغه وادی الحيات (د مارانو علاقه وه) او د هغے په غاړه دوه راهبان وسيدل نو هغوی وويل: دا سړے به هلاك شی نو ده سورة آل عمران شروع کړو نو هغوی وويل: [اِنَّهٗ قَرَأَ سُوْرَةً طَيِّبَةً لَعَلَّهٗ سَيَنْجُوْ فَأَصْبَحَ سَلِيْمًا] ده داسے مزيدار سورت شروع کړو چه کيدے شی

ددے په وجه به خلاص شی نو هغه روغ موټ صبا کړو۔ (الدارمی: ۳۳۹۹ وسنده ضعیف عبد السلام متأخر السماع من ابی اسحاق وهو موقوف علی ابی السلیل)

٤- او حدیث کی دی چه چا ته سبع طوال (یعنی اولنی اوه) سورتونه یاد وی نو دا حبر (کامل عالم) دے۔

## مناسبتونه او ارتباطونه

(۱) دلته ددے مناسبتونه زیات دی خو د دواړو سورتونو مضامین یو بل سره مشابه دی چه دلته اوله حصه کی د یهودو اصلاح ده او په دویمه حصه کی ددے امت تربیت دے۔ او دغه طریقه سورتِ بقره کی هم ده۔ نو دا تقریر د مخکنی تقریر په شان دے۔

ددے نه داسے تعبیر هم کیږی: سورة بقره کی په یهودیانو زیات ردونه وو دلته په نصاراؤ زیات ردونه دی۔ یا داسے: هلته د یهودو اصلاح مقصد وه او دلته د نصاراؤ اصلاح ده۔

(۲) بقره کی په یهودو مشرکانو رد وو چه غوا ئے د الله سره شریکه جوړه کړے وه، د هغے عبادت ئے کړے وو۔ دلته په نصاراؤ او د هغوی په شرك رد دے چه عیسیٰ علیه السلام ئے د الله سره شریك کړے وو او د هغه بندګی ئے شروع کړے وه۔ هلته د بقرے عجز وو او دلته د آل عمران عجز بیانیږی چه دواړه د الوهیت او بندګئ لائق نهٔ دی۔ (دا ئے د توحید انداز دے)

(۳) بقره کی هم تصفیه او تربیت وو چه د بدو صفاتو نه ځان بچ کړئ او بیا په ښائسته صفاتو ځان ښائسته کړئ۔ او دلته هم اول تصفیه او بیا تربیت ذکر کیږی۔

(٤) (موضوعاتی مناسبت) مناسبت د تضاد دے چه هلته د ایمان او د هغے فائدے وے او دلته په کفر باندے رد دے او وائی چه څوك د الله تعالیٰ کتابونه او آیتونه نهٔ منی هغوی الله تعالیٰ څنګه هلاك کړل نو دلته د کفر نقصانونه او بد آثار بیانیږی، دلته به د کفر الفاظ زیات راځی او د اُور تذکره به زیاته کیږی ځکه چه دا اثر د کفر دے۔ نو پدے کی ښه دعوت دے چه ایمان راوړئ او د هر قسم کفرونو نه ځان بچ کړئ ځکه چه ددے عاقبتونه ډیر سخت دی۔

(۵) هلته هم په آخر د سورت کی د مؤمنانو التجاء الی الله وه او دلته به هم راځی۔

(٦) په بقره کی ئے اُوفرمایل: فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِيْنَ دلته هغه کافر ذکر دی چه یهود او نصاریٰ دی چه ددے کلمے (الله لا اله الا هو الحی القیوم) نه منکر دی۔

(۷) دعوتی مناسبت: مخکی یهودو ته د اسلام دعوت وو او غالباً د هغوی سره بحث وو

اُوس نصاراؤ ته خصوصي او بیا یهودیانو ته هم د اسلام طرفته دعوت دے. او په سورة نساء کی به مؤمنانو ته دعوت وی او په مائده کی به تولو ته په یو خای دعوت وی او په سورة الانعام او اعراف کی به مشرکانو ته دعوت وی او په اعراف کی به خصوصی اتباع د ما انزل ته دعوت ورکوی. او انفال او توبه کی به جهاد وی چه په دعوت کار ونشی نو بیا به ورسره جهاد کولے شی. ډیر ناشنا ترتیب اختیار کړے شویدے.

(۸) اسمی مناسبت: فَاتِحَةُ أَمَرَنَا إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَلَا نَعْبُدُ الْبَقَرَةَ كَمَا عَبَدَتْهَا الْيَهُوْدُ وَلَا نَعْبُدُ آلَ عِمْرَانَ كَمَا عَبَدَتْهُمُ النَّصَارىٰ. په فاتحه کی مونږ وایو چه اے الله! خاص ستا بندګی به کوو او د بقرے عبادت به نهٔ کوو لکه څنګه ئے چه یهودو کړیدے او د آل عمران عبادت نهٔ کوو لکه چه نصاراؤ کړیدے.

## شان نزول

د عربو په جزیره کی یهودیان زیات وو، خاصکر په مدینه او ددے په ماحول کی او په نجران کی (چه یمن ته نزدے علاقه ده اُوس هم په جزیرة العرب کی داخل دے) نصاریٰ اُوسیدل، دوی د رسول الله ﷺ د رسالت نه خبر شو نو هغه سره د خبرو اترو کولو او د هغه د رسالت معلومولو دپاره دوی مدینے ته راغلل).

مفسرینو لیکلی دی چه دا آیتونه د نجران د نصاراؤ په باره کی نازل شوی دی چه دوی د رسول الله ﷺ خوا ته مدینے ته راغلل شپیته کسان وو چه د دوی په نیز شریفان یکی (۱٤) وو او بیا د دوی مشران درے وو (۱) عاقب. چه دا ددے قوم امیر او صاحب رائے او صاحبِ مشوره وو. ددهٔ نوم عبد المسیح وو. (۲) دویم سید. چه دائے د اجتماعاتو او مجلسونو او سفری مشر وو او ددهٔ نوم اَیْهَم وو. (۳) دریم: ابو حارثه بن علقمه چه د بکر بن وائل قبیلے نه وو، دا د دوی عالِم او دینی مشر وو. دوی رسول الله ﷺ ته د مازیګر مانځه نه روستو وخت کی راغلل، چه د مزیدارو ښائسته کپړو نه ئے کوټونه او چوغے او څادرونه اغوستلی وو. صحابه فرمائی: مونږ دومره ښائسته او دبدبی والا وفد هیڅ کله نهٔ وو لیدلے. دوی مسجد نبوی ته راننوتل، نو د دوی د مانځه وخت شو، نو په مسجد نبوی کی مشرق طرف ته اُودریدل. رسول الله ﷺ اُوفرمایل: پریدئ (چه کوم طرفته غواړی مونځ دے اُوکړی). رسول الله ﷺ سید او عاقب ته د اسلام دعوت ورکړو، (نو بحث شروع شو) هغوی اُووئیل: مونږ ستا نه مخکی اسلام راوړیدے.

رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[كَذَبْتُمَا يَمْنَعُكُمَا مِنَ الْإِسْلَامِ إِدِّعَاؤُكُمَا لِلّٰهِ وَلَدًا وَعِبَادَتُكُمَا الصَّلِيْبَ وَأَكْلُكُمَا الْخِنْزِيْرَ]

(تاسو دروغژن یئ ځکه چه ستاسو د اسلام نه مانع دا خبره ده چه تاسو الله دپاره اولاد ګنړئ، او د صلیب عبادت کوئ او خنزیر خورئ)۔ هغوی اُووئیل : که عیسیٰ علیه السلام د الله ولد (او نائب) نۀ وی نو بیا د هغه پلار څوك شو؟ نو ټولو د نبی ﷺ سره د عیسیٰ علیه السلام په باره کی جګړه شروع کړه۔ (بعض علماء وائی چه دوی د انجیل نه استدلال اُوکړو چه په هغې کی عیسیٰ علیه السلام ته ابن (ځوی) لفظ استعمال شویدے۔ او الله ته آسمانی پلار)۔نو نبی ﷺ (شائسته دلیلونه پیش کړل) ورته ئے اُوفرمایل : آیا تاسو ته معلومه نۀ ده چه هر بچے د پلار مشابه وی؟ هغوی اُووئیل همداسے ده۔ نبی ﷺ اُوفرمایل : آیا تاسو ته معلومه نۀ ده چه زمونږ رب د هر شی تدبیر کونکے، د هغه حفاظت کوی او رزق ورکوی؟۔ هغوی اُووئیل همداسے ده۔نبی ﷺ اُوفرمایل : آیا تاسو ته نۀ ده معلومه چه الله تعالیٰ باندے د زمکے او د آسمان نه هیڅ شے پټ نۀ دے؟۔هغوی اُووئیل : همداسے ده۔...... آیا زمونږ رب عیسیٰ علیه السلام له د مور په رحِم کی شکل او صورت نۀ دے ورکړے او حال دا چه الله نۀ خوراك کوی نۀ څکاك؟...... آیا عیسیٰ علیه السلام خپلے مور په خیټه کی نۀ وو پورته کړے او بیا ئے نۀ وو زیږولے لکه څنګه چه یوه زنانه خپل بچے پورته کوی او بیا ئے زیږوی، بیا هغه خوراك، څکاك او قضاء حاجت کولو، آیا پدے صفتونو کی کوم یو صفت هم په عیسیٰ علیه السلام کی موندلے شی ؟ هغوی غلی شول نو الله تعالیٰ ددے سورت څه دپاسه اتیا آیتونه نازل کړل۔سیرة ابن اسحاق ٢/٤٥/٤٦) وتفسیر البغوی)۔دا واقعه په مختلفو طریقو نقل ده لکه تفسیر فتح القدیر للشوکانیؒ اُوګوره (١/٤٧٥)۔

دوی اُووئیل چه ته د عیسیٰ په باره کی وائے چه دا د الله بنده دے نو دا خو ته د هغه بے عزتی کوے هغه خو ابن الله دے۔ نو الله دا سورت راولیږلو چه نه، د الله ځامن نشته، عیسیٰ علیه السلام د الله بنده دے، اله او معبود نۀ دے او د الله په کتاب کی که ورته ابن وئیلے شوے دے نو دا د متشابهاتو نه دے، او د متشابهاتو نه استدلال کول دا اهل زیغو طریقه ده، د هغے معنیٰ دا ده چه هغه د الله دوست او محبوب دے او حقیقی ځوی والے په هغه کی نشی راتلے بلکه په انجیل کی دا د شفقت کلمه وه، لکه یو شخص یو پردی هلك ته وائی اے ځویه ! اے بچیه ! داسے کار اوکړه، ددے خو دا معنیٰ نۀ شوه چه هغه ددۀ نه پیدا دے۔

نو پدے آیتونو کی الله تعالیٰ نبی ﷺ ته د دوی سره د بحث او مناظرے طریقه اُوخودله

چه دوی ته داسې جوابونه ورکړه او د عیسی ﷺ عبدیت ئې بیان کړو. دارنګه د شبهاتو جوابونه به کوي، بیا آخره کې به مباهله ذکر کړي چه راځئ چه ښیرې اُوکړو چه څوك په حقه وي الله به ئې بچ کړي، او څوك چه په باطله وي، الله به ئې هلاك کړي. نو دوی ته د مباهلې دعوت ورکړې شو نو دې کسانو یوه ورځ مهلت اُوغوختو، صبا له نبی ﷺ خان سره علی، فاطمه، حسن او حسین (رضی الله عنهم) راوستل او دوی پسې ئې جواب اُولیږلو نو دوی خپل مینځ کې مشوره اُوکړه چه دا د الله حق نبی دې که مُلاعنه ورسره اُوکړو تباه به شو نو آخر جزیه ورکولو ته تسلیم شو. په روایت د بخاري کې دی: نبی ﷺ ته ئې اُووئیل چه مونږ سره یو امین سړې اُولیږه نبی ﷺ ورته اُوفرمایل: زهٔ به تاسو سره لائق امانتدار شخص لیږم. آخر ئې ابو عبیده بن الجراح ﷺ د هغوی سره د جزیه راوړلو دپاره اُولیږلو. او هغوی باندې ئې جزیه مقرر کړه چه دوه سوه کپړې او دومره کجورې او دومره پیسې به په کال کې ورکوئ. رسول الله ﷺ اُوفرمایل: که دوی دا ملاعنه (یعنی مباهله) کړې وې [لَأَمْطَرَ الْوَادِي عَلَيْهِمَا نَاراً]. دا کنده به په دوی باندې د اُور نه ډکه بهیدلې وې.

او په روایت د احمد کې دی: [لَوْ خَرَجَ الَّذِيْنَ يُبَاهِلُوْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ لَرَجَعُوْا لَا يَجِدُوْنَ مَالًا وَلَا أَهْلًا] (مسند احمد: ۲۲۲۵ وسنده صحیح - شعیب)

که دغه کسان د رسول الله ﷺ مباهلې ته راوتلې وې نو دوی به پداسې حالت کې واپس شوي وې چه نهٔ به ئې مال موندلې او نهٔ اهل. یعنی ټول به هلاك شوي وې.

پدې سورت کې ابتدائي آیتونه روستو نازل شویدي او روستني آیتونو کې ئې د بدر او د اُحد غزاګانې ذکر دي چه هغه مخکې نازل شوي دي.

بیا د نجران وفد دوه ځل راغلې دې یو ځل مخکې د فتح د مکې نه او بیا روستو د فتح د مکې نه لکه د جزیه آیت د فتح د مکې نه روستو نازل شویدې لکه تفسیر ابن کثیر (۵۸۵/۱) کې ذکر دي.

## د سورت موضوع او مقصد:

د سورت د موضوع او مقصد په تعیین کې یو څو اقوال دي:

۱- زمونږ مشائخ کرام وائي: په دې سورت کې هم د سورت بقرې په شان څلور حصې دې او په هر یو کې څلور غټې خبرې بیانیږي:

(۱) اثبات د توحید په رد د شبهاتو سره چه د توحید په باره کی راغلی دی خاصکر رد د شرك په باره د عیسیٰ علیه السلام کی نو پدے سره د نصاراؤ د مشرکانه عقائدو رد هم شویدے. او زیات زور په شرك اعتقادی باندے ورکړے شویدے. اول نه به دا خبره بیانوی تر (٦٣) آیت پورے. (قُلْ یَا اَهْلَ الْکِتَابِ تَعَالَوْا).

(۲) اثبات رسالت د رسول الله ﷺ او په هغه باندے د اعتراضاتو او شبهاتو جوابونه. چه یهود او نصاریٰ خپل دین غوره ګنړی او د رسول الله ﷺ په باره کی د خلکو په ذهنونو کی شبهے اچوی، کله د ابراهیم علیه السلام په باره کی او کله به حیلے جوړوی او کله به وائی چه مونږ سره ددے نبی په باره کی لوظ نه دے شوے او کتمان د حق به کوی او کله به وائی چه زمونږ قبله غوره ده، او دا حصه به د (٦٣) نه تر (۱۰۱) آیت پورے وی.

(۳) بیا د (۱۰۱) آیت نه تر (۱۲۹) آیت پورے بله حصه ده چه پدے کی خلافت قائمول او د کافرانو سره دوستی پریخودل، او د تَاسِیْسُ الْجَمَاعَةِ الْمُسْلِمَه (یعنی خلافت) قوانین او اصول ذکر کوی.

(٤) بیا د (۱۳۰) نه تر آخر د سورت پورے پدے کی قوانین د جهاد فی سبیل الله او ددے متعلقات بیانوی لکه غزوه د بدر او د اُحد او ورسره د نصرت الٰهی د حاصلولو او د هزیمت (شکست) د دفع کولو (۳۱) قوانین ذکر کیږی چه دے ته قوانین د تربیت ایمانی وائی یا په بل عبارت: احکام د تربیت ددے امت بیانیږی چه هغه (۳۱) احکام دی، چه څه د اموالو او څه د اخلاقو او څه د اعتقادیانو او نظریاتو او د امراؤ د طاعت سره تعلق لری.

او په آخر د سورت کی به په یهود او نصاراؤ رد ذکر کوی ځکه چه دوی په دے قوانینو کی ورانے پیدا کولو. او آخرنئ رکوع کی به د ایمان والو ښکلے صفات د ترغیب دپاره راوړی چه دا هم د تربیت یوه طریقه ده چه اے کفارو! کفر پریدئ او د دغه مؤمنانو په شان صفات اختیار کړئ.

ګویا که اول کی وائی چه توحید برابر کړئ، بیا وائی دے رسول (ﷺ) چه کومے خبرے راوړیدی هغه د الله تعالیٰ د طرف نه دی دا اُومنئ او په دهٔ اعتراضونه مهٔ کوئ. بیا وائی چه هرکله مو دا رسول (ﷺ) اُومنلو نو اُوس به ددهٔ په ملګرتیا کی جماعت جوړ کړئ او د کافرانو سره د الله په لاره کی جهاد کوئ او د جهاد دپاره به مال خرچ کوئ او تربیت به زده کړئ.

(۲) دویم قول:

بعض علماء داسے فرمائی: چه دے سورت کی درے قسمه موضوعات او مقاصد

بیانیږی (۱) اول پدے سورت کی د دین او د اسلام معنیٰ او حقیقت او د اسلام حاکمیة بیانیږی او دا ئے په ډیرش مقاماتو کی بیان کړیده. اول نه واتی دین دا دے چه عقیده به ډیے د توحید وی. د الله په کتابونو باندے ایمان راوړل دین دے. ﴿شَهِدَ اللهُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾، ﴿فَقُلْ اَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلّٰهِ﴾، ﴿فَاِنْ اَسْلَمُوْا فَقَدِ اهْتَدَوْا﴾.

نو د اسلام، د ایمان او د دین صحیح معنیٰ بیانوی ﴿قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللهَ﴾ کی هم دا دی چه د نبی ﷺ تابعداری صحیح اسلام او دین دے، هسے دعویٰ باندے کار نهٔ کیږی. ﴿وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللهِ جَمِيْعًا﴾ قرآن باندے منګولے لګول دین دے. نو د صحیح دین او د دعوے والا دین په مینځ کی فرق بیانوی.

(۲) دویمه خبره: مُقَابَلَةُ الْمُؤْمِنِيْنَ بِهٰذَا الدِّيْنِ بِالْقَبُوْلِ وَالتَّسْلِيْمِ. د هغه مؤمنانو صفات راوړی کوم چه دا دین قبول کړے او منلے دے. او د هغوی احوال راوړی دا په ﴿قُلْ اَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا﴾. متقیان د الله د دین تابع دی. صابرین صادقین دی، د پیغمبر تابع دی، د حق منونکی دی، او په آخر د سورت کی ئے هم د مؤمنانو انقیاد بیان کړیدے ﴿وَاِنَّ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَمَنْ يُّؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَمَا اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ خٰشِعِيْنَ لِلّٰهِ﴾ ﴿وَالرّٰسِخُوْنَ فِي الْعِلْمِ يَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِهٖ﴾ کی هم دا بیانوی، نو د اهل اسلام حال بیانوی.

(۳) دریم مقصد: موالات المؤمنین بیانیږی، چه صحیح ایمان والا د کافرانو سره دشمنی لری، او د ایمان والو نه سویٰ کافرانو سره دوستی نهٔ کوی. او د کافرانو د دوستیٔ ضررونه بیانوی. دا موضوعات د «فی ظلال القرآن» د عباراتو نه معلومیږی.

زمونږ نظر

(۳) دریم قول دا دے چه موضوع ددے سورت دوه خبرے دی (۱) اول: معرفة الله عز وجل بالتوحید) چه الله اُوپیژنئ چه یواځے ذات دے او هیڅ قسمه شریکان نهٔ لری دا مسئله به تر (۱۰۱) آیت پورے بیانیږی. دارنګه والتوبیخ بالکفر بآیات الله وآثار الکفر السیئة. ځوك چه د الله تعالیٰ د آیتونو نه انکار کوی هغوی ته زورنه او رټنه ورکوی. (په بل تعبیر سره: د کفر قبیح آثار او بدی به بیانیږی) پدے وجه د آیات الله او د کفر لفظ به ددے سورت په ابتداء کی ډیر راځی. او دا دواړه خبرے ئے د ابتداء نه شروع کړیدی. لکه ﴿اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ﴾ کی دی چه الله حقدار د بندګیٔ دے همیشه ژوندے دے، تدبیر د عالَم کوی، نو ددے صفاتو والا د الله نه سویٰ بل هیڅوك نشی کیدے. تر شپږم آیت پورے ان الله لا یخفی). او دویمه مسئله د ان الذین کفروا) نه شروع کړیده. بیا واتی (ان الذین کفروا لن تغنی عنهم

اموالهم)، بيا وائي (قل للذين كفروا ستغلبون) بيا فرمائي : (واخرى كافرة) بيا فرمائي: (ومن يكفر بآيات الله ۱۹ آيت) بيا په (۲۱) ان الذين يكفرون وائي. بيا په (۲۸) لا يتخذ المؤمنون) بيا په (۳۲) کې (فان تولوا فان الله لا يحب الكافرين) بيا په واقعه د مريم عليها السلام کې دي. (فلما احس عيسى منهم الكفر) او بيا وائي (ومطهرك من الذين كفروا) (وجاعل الذين اتبعوك فوق الذين كفروا) (فاما الذين كفروا فاعذبهم عذابا شديدا في الدنيا والآخرة) بيا روستو فرمائي : (ان لا نعبد الا الله ولا نشرك به شيئا) بيا روستو وائي (يا ايها الكتاب لم تكفرون ۷۰ آيت) (ايأمركم بالكفر بعد اذ انتم مسلمون) (كيف يهدي الله قوما كفروا بعد ايمانهم) بيا د سپارے په آخر کې وائي : (ان الذين كفروا وماتوا وهم كفار) بيا وائي ( ومن كفر فان الله غني عن العالمين) بيا فرمائي : (لم تكفرون بآيات الله) بيا وائي (يردوكم بعد ايمانكم كافرين) ﴿ وكيف تكفرون﴾ نو ددے آيتونو نه سوچ کونکے شخص اوږده موضوع راويستلے شي چه د کفر قباحت، د کفر بد آثار، د کافرانو سره موالات نهٔ کول، د کفر په دنيا او آخرت کې سزاګانے او د هغے نتائج او انسان کې د هغے په وجه بد صفات پيدا کيدل.

د کفر قبيح آثار دا دي چه بنده د الله په عذاب اخته کيږي، د انسان نه اهل زيغ جوړيږي، په انسان کې مغلوبيت راځي، د جهنم اُور به ئے ځای وی، صدقے به ئے نهٔ قبليږي. لکه روستو مثال کې به راشي (مثل ما ينفقون في هذه الحيوة الدنيا) او د کفر په وجه به په بنده کې حيلے او قسماقسم بد صفات پيدا کړي او آخري نتيجه به دا شي چه الله به ترے هيڅ قسمه عمل نهٔ قبلوي. (فلن يقبل من احدهم ملء الارض ذهبا) پدے وجه پدے سورت کې به د کفر نه منع زياته ذکر کيږي (وكيف تكفرون وانتم تتلى عليكم آيات الله)، بلکه دا به هم ووائي چه کفر دومره قبيح شے دے چه د ايمان والو دپاره د کافرانو دوستي او موالات هم جائز نه دے. (لا يتخذ المؤمنون الكافرين اولياء) دا موضوع به تر (۱۰۱) آيت پورے چليږي.

(۲) دويمه خبره : تَرْبِيَةُ الْأُمَّةِ الْمُسْلِمَةِ بِالْقَوَانِيْنِ الشَّرْعِيَّةِ (په شرعي قوانينو سره د مسلمانانو تربيت کول). چه دا به د (۱۰۱) آيت نه شروع کيږي تر آخر د سورت پورے. چه دا څه د خلافت سره متعلق دي او څه د دعوت سره او څه د جهاد او د مالونو د لګولو سره متعلق دي. بيا د کفر او د تربيت په مينځ کې مناسبت تضاد دے چه کفر مهٔ کوه او د ځان تربيت وکړه.

او په اول د سورت کی الله تعالیٰ د امت مسلمه د دشمنانو مقابله کړیده او دا ئے فرمایلی دی چه څوك د الله آیتونه نۀ منی د هغوی دپاره اُور دے او په دنیا کی ئے عذاب مغلوبیت دے، او دوی ته په توحید نۀ منلو او د عیسیٰ علیه السلام په باره کی په شرك کولو باندے زورنه ورکوی او د هغوی شبهات رد کوی په طریقه د سوال وجواب سره۔

## د آیتونو حاصل:

اول کی د الله تعالیٰ د توحید او د پیژندنے بیان، بیا د کتب الهیه ؤ ذکر دے چه قرآن، تورات انجیل، زبور او ټول کتابونه منزله دی۔ بیا توبیخ دے هغه چا ته چه د الله آیتونه نۀ منی چه الله به سخت عذاب ورکوی۔ بیا ئے دلیلونه راوړیدی ددے خبرے چه الله تعالیٰ په هر شی باندے پوهه دے، هیڅ شے په هغه نۀ پټیږی، پدے کی به تعریض وی په نصاراؤ چه عیسیٰ علیه السلام کی خو دا صفتونه نشته نو هغه څنګه معبود کیدے شی؟۔ بیا په (۷) آیت کی د کتاب الله تقسیم ئے کړے دے چه دے کی محکمات او متشابهات دواړه دی، نو تاسو د الله د کتاب نه په متشابهاتو ولے غلط دلیل نیسئ؟۔ او په همدے آیت کی توبیخ هم دے هغه کسانو ته چه د الله د کتاب نه انکار کوی او مدح او بشارت دے د الله د کتاب منونکو ته چه دوی راسخین فی العلم دی۔ او اهل زیغ خلق د الله د کتاب نه غلطه فائده اخلی هغوی ته زورنه ده۔ او ضمنًا پکی رد دے په نصاراؤ چه دوی د الله د کتاب نه شرك ثابتولو۔ او د ایمان والو صفت چه د هغوی دوه دعاګانے ئے ذکر کړیدی، بیا توبیخ دے کافرانو ته په دنیوی او اخروی عذاب سره، بیا ئے د دنیا زهد او بی رغبتی بیان کړیده چه د کافرانو د کفر سبب د دنیا محبت دے۔ او دا بی رغبتی ئے په ډیرو طریقو بیان کړیده چه (۱) ډیروالے د مالونو او اولادو په آخرت کی فائده نۀ ورکوی، کله چه انسان کی کفر وی لکه فرعونیانو ته اُوکوریٔ۔ (۲) قل للذین کفروا: بَیَانُ مَغْلُوْبِیَّةِ الْکَافِرِیْنَ مَعَ کَثْرَةِ الْاَمْوَال۔ که د کافرانو هرڅومره مالونه زیات شی بیا به هم د کفر په وجه مغلوبه کیږی۔ (۳) طریقه: مقابله د دنیا او د آخرت بیانوی چه دنیا کی شپږ څیزونه دی دا ټول فناء والا دی او آخرت باقی دے۔ (٤) طریقه: بَیَانُ عَظَمَةِ الآخِرَةِ وَخَیْرِیَّتُهَا ۔ د آخرت لوی والے او غوره والے بیانوی۔ (قل اؤنبئکم) کی چه پدے کی زیرے ورکوی متقیانو مؤمنانو ته، بیا د (۱۵) آیت نه روستو سوال پیدا شو یهود او نصاریٰ وائی چه جنت او جهنم او آخرت خو مونږ هم منو نو مونږ ته به هم راکولے شی۔ نو الله د اهل جنت صفات بیانوی دپاره د رد پدے

نصاراؤ چه تاسو کې دغه صفات نشته، ځکه چه ایمان والا خو د الله نه یره کوی او د خپلو گناهونو او د آخرت غم ورسره دے او تاسو باندے گناهونه پنډ دی او هیڅ پرواه مو نشته ـ تر (۱۷) آیت پورے۔ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْم

الٓمٓ ﴿۱﴾ اَللّٰهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ

ددے حروفو په معنیٰ الله خبر دے، الله هغه ذات دے چه نشته لائق د بندگئ سوا د هغه نه،

الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ﴿۲﴾ نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ

همیشه ژوندے دے، تدبیر کونکے د ټول عالم دے، نازل کړے ئے دے په تا باندے کتاب دپاره د ښکاره کولو د حق

مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَأَنْزَلَ التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيْلَ ﴿۳﴾

تصدیق کونکے دے د هغه کتابونو چه ددے نه مخکې دی، او نازل کړے ئے دے تورات او انجیل،

مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَأَنْزَلَ الْفُرْقَانَ

مخکې (د قرآن نه)، هدایت دپاره د خلکو او نازل کړے ئے دے جدائی د حق او د باطل (یعنی نور کتابونه)

إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِآيَاتِ اللهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ وَاللهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿۴﴾

یقیناً هغه کسان چه کفر ئے کړے په آیتونو د الله، دوی لره عذاب سخت دے، او الله غالبه، بدله اخستونکے دے۔

**تفسیر:** (الٓمٓ) ددے حروفو متعلق بحث په ابتداء د بقره کې اُوکوره۔ د قرآن کریم عظمت او رشتینوالي ته پکې اشاره ده۔

اَللّٰهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ : دا دعوه د توحید ده او د الله تعالیٰ تعارف دے۔ د الحی القیوم تشریح په آیة الکرسی کې کې ذکر شویده۔ او پدے کې اشاره ده چه عیسیٰ علیه السلام او نور مخلوق کې دا صفات نشته نو هغه معبود نشي کیدے، بندگي صرف د الله تعالیٰ پکار ده۔

حدیث کې دی : د الله اسم اعظم په آیة الکرسی او اول د آلعمران او سورة طه کې دے۔ (کما فی الصحیحة)

﴿نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ﴾

پدے کې د ابتداء نه د قرآن عظمت بیانوی چه دا کتاب خو ددے دپاره راغلے دے چه بندگانو ته حق ښکاره کړي چه هغه د الله یواځے بندگي کول او قانون د هغه منل دي۔ او رشتینی او حق کتاب دے نو ددے نه انکار نۀ دے پکار بلکه سمدست پرے ایمان لرل پکار

دي. دلتـه د (كتاب) نه مراد قرآن كريم دے چه په هغے كې هيڅ شك او شبهه نشته. قرآن كـريـم د مـخـكـنـو كتـابـونـو تـصـديق كوي نو ددے نه انكار كول داسے دي لكه د تورات او انجيل نه انكار كول.

﴿مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَأَنْزَلَ التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ 3))﴾

پـه مـصـدقـاً كي اشاره ده چه ددے كتاب نه د انكار هيڅ وجه نشته ځكه چه دا د مخكنو كتـابـونـو مـخالف نۀ دے چه څوك دا د انكار دليل اُوګرځوي. او د قرآن تصديق اجمالي او تـفـصيـلي تشريح مخكي ذكر شويده. مختصر دا چه (۱) قرآن د پخوانو كتابونو په باره كي وائي چه دا آسماني كتابونه دي. (۲) د هغوي په شان دے په مضمون كښې.

(۳) هـغـه كتابونو ويلي وو چه روسته كتاب راځي نو قرآن راغے د هغه كتابونو د بشارت مـصـداق وګـرزيدلو نو دا مصدق شو پدے معنىٰ باندے نو د قرآن نه انكار د ټولو كتابونو نه انكار دے.

((تـورات)) عـبـراني لـفـظ دے چه ددے معنى د (شريعت) ده او ((انجيـل)) يوناني لفظ دے چه ددے مـعـنـىٰ بشـارت (خوشـخبري او زيرے) دے. دا دواړه كتابونه د موسىٰ او عيسىٰ عـلـيـهـمـا الـسـلام د قومونو د هدايت دپاره نازل شوي وو. د قرآن كريم د نازليدو نه روستو هغه منسوخ شو. (انظر القاسمي والمنار)

عيسىٰ ؑ تـه الله تـعـالىٰ دواړه كتابونه وركړي وو، تورات كي احكام، مسائل او فضائل وو، قـانـونـي كتـاب وو، او انـجيل كي فضائل وو، غالباً احكام پكي كم وو، د زړه نرمونكے خبرے پكي زياتے وے.

﴿مِنْ قَبْلُ﴾ يعني مخكي د قرآن كريم نه.

د ((فـرقـان)) نه مراد ۱ - يا خو باقي آسماني كتابونه دي، چه هغه زبور او صحف ابراهيم او صـحـف مـوسىٰ وصـحـيـفـے د باقي انبياؤ عليهم السلام دي ځكه چه دا ټول د حق او د باطل ترمينځ جدائي راوستونكي وو، ۲ - يا صرف قرآن مراد دے چه هغه د حق او د باطل ترمينځ په عمومي توګه سره جدائي راولي، يا په هغه حق او باطل كي جدائي كوي چه په هغے كي يهود او نصارىٰ اخـتـلاف كوي. او دا ئے ددے دپاره ذكر كړل چه د قرآن كريم هيبت او قبـولـيـت پـه زړونو د خلقو كي كينوي او چه څوك ددے نه انكار كوي نو د هغوي د كفر زيات قباحت ښكاره كړي.

كـه د فـرقـان نـه مـراد قـرآن شـي نـو دوبـاره ئـے ځـكـه ذكر كړو چه اشاره شي چه مخكني

کتابونه منسوخ دي او اُوس د حق او د باطل ترمینځ میزان او فرق کونکے صرف قرآن دے۔ بعض وائي د فرقان نه مراد میزان (تله) ده کوم چه په سورة الحدید (۲۵) کي ذکر ده۔او د میزان نه مراد په ټولو کارونو کي انصاف او عدل کول دي۔ (قاسمي) او دا تله د الله کتابونه دي چه د قرآن او سنت په شکل کي نن موجود دي۔ نو بیرته رجع وشوه دویم تفسیر ته۔

۳- ابن جریرؒ دا غوره کړیدي چه د فرقان نه مراد (کُلُّ مَا یُفَرِّقُ بِهٖ بَیْنَ الْحَقِّ وَالْبَاطِلِ فِیْ کُلِّ اَمْرٍ کَالدَّلَائِلِ وَالْبَرَاهِیْنِ) (المنار) هر هغه شے چه په هغے سره د حق او د باطل ترمینځ په هر کار کي جدا کیږي لکه دلائل او براهین شو۔

راجح دا ده چه دلته د فرقان نه مراد ټول منزل کتابونه دي نو په هغے کي قرآن کریم په اوله درجه کي داخل دے ځکه لفظ عام دے او بله دا چه د الله تعالیٰ ټول کتابونه د حق او د باطل ترمینځ فرق راوستونکي دي۔۔

**فائده** : فرقان ته فرقان ځکه وائي چه دا د حق او د باطل، د گمراهۍ او د هدایت، د خالق او د مخلوق، د حق معبود او د باطل معبود او د اهل الایمان او د اهل الکفر د لارے ترمینځ جدائي راولي او دغه شان پلار د بچي نه او ملگرے د ملگري نه د هغه د کفر په وجه جدا کوي نو دا یوه لویه تله شوه۔

﴿اِنَّ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا﴾ : اُوس د ایمان راوړو ترغیب او د کفر او انکار کولو په صورت کي د الله د عذاب نه یره ورکوي۔ او اشاره ده چه دے کافرانو سره به الله تعالیٰ کوري چه هغه داسے مزیدار کتابونه ئے نازل کړیدي او دا مجرمان ئے نۀ مني، د الله د کتاب نه په انکار او اعتراض باندے الله تعالیٰ سخت ناراضه کیږي لکه انسانانو کي د یو لیکونکي په کتاب باندے اعتراض کولو سره هغه ډیر خفه کیږي۔

شدید : سخت عذاب ورته ځکه ورکوي چه د الله په آیتونو کي رڼا وه او د کفر په وجه دوی هغه رڼا ختمه کړه او په خرافاتو او معاصي او مفاسدو کي اخته شو چه نفسونه ئے خیرن خچن شو نو د سخت عذاب لائق شو۔

انتقام : د نَقِمَۃٌ نه دے، دا په اصل کي سَطْوَۃ او سُلْطَة (حملے او غلبے او تسلط) ته وائي او ددے زمانے خلك انتقام ددے دپاره استعمالوي چه یو تن په سزا ورکولو سره زړه یخ کړي لیکن دا معنیٰ د الله په باره کي محاله ده۔ (المنار)

Scanned by CamScanner

| |
|---|
| إِنَّ اللّٰهَ لَا يَخْفٰى عَلَيْهِ شَىْءٌ فِى الْأَرْضِ وَلَا فِى السَّمَآءِ ﴿٥﴾ |
| یقیناً الله تعالیٰ نهٔ پټیږي په هغه باندے هیڅ شے په زمکه کې او نهٔ په آسمان کې، |
| هُوَ الَّذِىْ يُصَوِّرُكُمْ فِى الْأَرْحَامِ |
| الله هغه ذات دے چه شکلونه درکوي تاسو ته په رحمونو د میندو کې |
| كَيْفَ يَشَآءُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٦﴾ |
| څنګه چه غواړي، نشته لائق د بندګۍ سوا د هغه نه، زورور دے، حکمتونو والا دے۔ |

**تفسیر** : پدے دوه آیتونو کې د الله تعالیٰ د علم بیا د هغه د تعارف بیان دے۔او پدے کې رد دے په نصاراؤ چه عیسیٰ علیه السلام نه د زمکے او د آسمان ډیر څیزونه پټ وو نو هغه څنګه معبود جوړ کړے شي ؟!۔

(لَا يَخْفٰى) یعنی الله تعالیٰ د خلقو د ایمان او کفر نه خبر دے او هر یو ته به د هغه د ایمان یا د کفر بدله ضرور ورکوي۔نو پدے کې ضمناً تخویف او ویره پرته ده۔ او ترغیب هم شته، د قرآن قاعده دا ده چه په ترغیب او ترهیب کې همیشه د الله تعالیٰ علم محیط ذکر کوي۔

﴿هُوَ الَّذِىْ يُصَوِّرُكُمْ فِى الْأَرْحَامِ كَيْفَ يَشَآءُ﴾۔

الله تعالیٰ ښځه او سړے، ښائسته او بد رنګ، نیك بخت او بد بخت څنګه چه غواړي په رَحِم کې پیدا کوي۔ اشاره ده چه عیسیٰ ابن مریم علیه السلام د نورو انسانانو په شان د الله یو مخلوق بنده وو، الله تعالیٰ هغه هم د مریم په رَحِم کې چه څنګه غوختلو جوړ کړو، نو هغه به څنګه (الله) جوړ شي، لکه چه د نصاراؤ دا باطله عقیده ده۔

شرك چه پیدا کیږي پدے وجه چه یو تن یو بنده په هر شي پوهه اُوګڼړي او د اولیاء الله په باره کې دا عقیده ساتل چه هغوي چینجي او چیچنه پیژني، ددے نه شرك پیدا کیږي څکه دوي اولیاؤ ته غائبانه آوازونه کوي څان پرے مشرکان کړي۔ یا د انسان په باره کې دا عقیده جوړه شي چه دا واکدار متصرف دے، قوت ورسره دے نو د الله سره ئے شریکان کوي۔ نو الله تعالیٰ پدے آیتونو کې فرمائي چه انسانان ټول مُصوَّر دي، په رَحِمونو کې ئے شکل پیدا کیږي او الله د هغے شکل ورکونکے دے، نو هغوي محتاج دي او د اُلوهیت مستحق نهٔ دي۔

| هُوَ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ عَلَیْكَ الْكِتٰبَ مِنْهُ اٰیٰتٌ مُّحْكَمٰتٌ |
|---|
| الله هغه ذات دے چه راوے لیږلو په تا باندے قرآن، بعض ددینه آیتونه دی مُحکم (مضبوط) |
| هُنَّ اُمُّ الْكِتٰبِ وَاُخَرُ مُتَشٰبِهٰتٌ ؕ فَاَمَّا الَّذِیْنَ فِیْ قُلُوْبِهِمْ |
| هغه آیتونه اصل د کتاب دی او نور آیتونه متشابهات دی پس هغه کسان چه په زړونو د هغوی کی |
| زَیْغٌ فَیَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ |
| کوږوالے دے، نو روانیږی دوی د هغه (آیتونو) پسے چه پټے معنی والا دی ددے (کتاب) نه، |
| ابْتِغَآءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَآءَ تَاْوِیْلِهٖ ۚ وَمَا یَعْلَمُ تَاْوِیْلَهٗٓ |
| دپاره د طلب د فتنے او د طلب د حقیقت د هغے، او نهٔ پو هیږی په صحیح معنیٰ د هغے باندے |
| اِلَّا اللّٰهُ ۘ وَالرّٰسِخُوْنَ فِی الْعِلْمِ یَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِهٖ ۙ |
| مګر الله، او مضبوط خلك په علم کی، وائی دوی مونږ ایمان راوړے پدے باندے، |
| كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ رَبِّنَا ۚ وَمَا یَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿۷﴾ |
| (دا) ټول د طرفه د رب زمونږ نه دی او نصیحت نهٔ اخلی مګر صفا عقلونو والا۔ |

**تفسیر**: (۱) پدے آیت کریمه کی توبیخ او زورنه ده د کتاب الله نهٔ منونکی ته او زیرے دے منونکو ددے کتاب ته او د هغوی بناستسه صفات ئے راوړیدی۔

(۲) او پدے آیتِ کریمه کی الله تعالیٰ د خپل عظمت او کمالِ قیومیت خبر ورکړیدے چه هغه ذات قرآن کریم نازل کړیدے چه د هغه نظیر او مثل د قیامته پورے نشی موندے کیدے۔ ددے کتاب یوه حصه په ښکاره او واضح احکامو باندے مشتمل ده، لکه حلال او حرام، حدود، عبادات او د عبرتونو او نصیحتونو والا آیتونه۔ او یوه حصه په داسے آیتونو مشتمل ده چه د هغے علم او د هغے حقیقت د الله نه سوئ هیچا ته معلوم نهٔ دی، یا هغه چه په هغے کی د یو نه د زیاتو معانیو برداشت وی لکه د سورتونو په ابتداء کی حروف مقطعات، غیبی کارونه، او د عیسیٰ علیه السلام په باره کی د الله تعالیٰ دا قول: ﴿وَكَلِمَتُهٗ ۚ اَلْقٰهَآ اِلٰی مَرْیَمَ وَرُوْحٌ مِّنْهُ﴾ چه هغه د الله کلمه ده چه هغه ئے مریم ته ګوزار کړیده او د هغه د طرف نه یو روح دے۔ (النساء: ۱۷۱)۔

لیکن د چا په زړونو کی چه کفر او نفاق وی نو هغوی د متشابه آیتونو پسے روان وی،

دے دپاره چه خلق په شبهاتو کی اخته کړی، او خپلو باطلو عقیدو او نظریاتو باندے د فاسدو تاویلاتو په ذریعه د هغے نه دلیل اُونیسی او په اسلام کی بدعتونو ته رواج ورکړی. او د چا چه ایمان او راسخ (مضبوط) علم وی نو هغوی د متشابهاتو په باره کی دا عقیده لری چه دا هم د الله تعالیٰ آیتونه دی، ددے چه کومه معنیٰ او مطلب د نورو قرآنی آیتونو او د نبوی احادیثو او د عربی ژبے مطابق چه د دوی ذهن ته راځی نو هغه خلقو ته بیانوی، لیکن ددے د حقیقت او کنهیاتو په تلاش کی نهٔ پریوزی، ځکه چه د عقلمندو او پوهه خلقو دپاره محکم آیتونه کافی او پوره وی، او بیمار عقل والا همیشه د متشابهاتو آیتونو په تلاش کی وی، دے دپاره چه د خپلو باطلو فکرونو په مضبوطیا کی کوم دلیل راوړی او په مسلمانانو کی شر او فتنه خوره کړی.

(۳) او پدے آیت کریمه کی د نصاراؤ د یو بے شبهے جواب ذکر دے، چه دوی وئیلی وو: عیسیٰ ﷺ ته بنده وئیل د هغه بے ادبی ده ځکه چه په آسمانی کتابونو کی هغه ته روح الله، کلمة الله، او ابن الله (د الله ځوی) وئیلے شویدے. معلومیږی چه هغه ته د بندګیٔ نه زیاته مرتبه ورکول پکار دی. **جواب** دا دے چه د الله تعالیٰ په کتاب کی دوه قسمه آیتونه وی، محکمات او متشابهات. نو د نیکانو خلقو طریقه دا ده چه دوی متشابهات محکماتو ته راواپس ګرځوی. او څوك چه فساد والا وی نو هغوی متشابه آیتونه راخلی او پدے سره د محکم آیتونو ترمینځ تعارض او تکراؤ پیدا کوی او محکم آیتونه شاته ارتوی او متشابه باندے عمل کوی نو پدے وجه خطاء شی. او په فتنه کی پریوزی.

(٤) عنوان: پدے آیت کی الله تعالیٰ د کتاب الله دوه قسمونه بیانوی، محکم او متشابه او ددے تقسیم فائده ذکر کوی چه راسخین فی العلم د محکماتو پسے روانیږی او اهل زیغ د متشابهاتو پسے نو د راسخین فی العلم صفت او د زائغینو بدی به بیان کړی.

## د محکم او متشابه تعریفونه او وضاحتونه

د تفسیر علماؤ د محکم او متشابه ډیر تعریفونه کړیدی. امام شوکانیؒ هغه ذکر کړیدی او وئیلی ئے دی چه دا تعریفونه جزوی او ناقص دی، او د هغے تفصیل ئے بیان کړیدے، بیا ئے وئیلی دی چه د ((محکم)) د ټولو نه غوره تعریف دا دے:

(۱) چه ((د هغے معنیٰ ښکاره او د هغے دلالت ظاهر وی)). او متشابه دا دے ((چه د هغے معنیٰ ښکاره نهٔ وی، یا چه د هغے دلالت ظاهر نهٔ وی)).

(۲) [اَلْمُحْكَمُ مَا لَايَحْتَمِلُ اِلَّا وَجْهًا وَاحِدًا مِنَ التَّأْوِيْلِ اَمَّا الْمُتَشَابِهُ فَهُوَ مَا احْتَمَلَ اَوْجُهًا فَتُرَدُّ اِلَى الْوَجْهِ الْوَاحِدِ] ۔

(عبد الله بن عباسؓ ته منسوب دی چه مُحکم هغه ته وائی چه صرف یو احتمال لری (یعنی ډیرے معانی پکی نشی راتلے لکه ان الله علی کل شیء قدیر او نزل علیك الکتاب، او دغسے نور) او متشابه هغه ته وائی چه په هغے کی ډیر احتمالات او معانی راتلے شی) یوه معنیٰ پکی د الله مراده وی او بله معنیٰ ئے مراده نهٔ وی خو خلق ترے هغه معنیٰ راوباسی نو دغه ډیرے معنے به یوے صحیح معنے او صحیح مطلب ته راواپس کړے شی۔ دا د ټولو نه غوره تعریف دے۔

## نو د غلطے معنے او صحیح معنے فرق به څنګه کولے شی ؟

که د یو آیت یوه معنیٰ واخستے شی او هغه د قرآن او د حدیث او د دین د نورو اصولو سره برابره وه نو دا به صحیح وی او که د هغے سره ئے ټکراؤ راتلو نو دا به غلطه وی۔

(۳) محکم مَا كَانَ قَائِمًا بِنَفْسِهٖ لَا يَحْتَاجُ اِلَى اَنْ يُّرْجَعَ فِيْهِ اِلَى غَيْرِهٖ] ۔ محکم هغه دے چه خپله معنیٰ ورکولو کی مستقل وی، محتاج نهٔ وی چه په هغے کی غیر ته رجوع اُوکړے شی (یعنی بیان ته ئے ضرورت نهٔ وی خپله واضح وی)۔ او متشابه هغه دے چه محکماتو ته د واپس کیدو حاجت لری، دا تفسیر نحاسؒ کړیدے۔

(٤) تعریف : محکم : اَلْوَاضِحُ الْمُرَادِ۔ وَالْمُتَشَابِهُ غَيْرُ ظَاهِرِ الْمُرَادِ).

محکم هغه دے چه معنیٰ مراده ئے ښکاره او واضحه وی۔ او متشابه هغه دے چه معنیٰ مراده ئے ښکاره نهٔ وی۔ (معنیٰ د دواړو شته لیکن په اول کی ئے مراد او مطلب ښکاره وی او په دویم کی ئے مطلب ښکاره نهٔ وی)۔

(۵) بعض اهل علمؒ فرمائی :

[اَلْمُحْكَمُ: اَلْوَاضِحُ الدَّلَالَةِ الظَّاهِرُ الَّذِىْ لَا يَحْتَمِلُ النَّسْخَ وَالْمُتَشَابِهُ هُوَ الْخَفِىُّ الَّذِىْ لَايُدْرَكُ مَعْنَاهُ عَقْلًا وَّلَانَقْلًا وَهُوَ مَا اسْتَأْثَرَ اللهُ تَعَالٰى بِعِلْمِهٖ كَقِيَامِ السَّاعَةِ وَالْحُرُوْفِ الْمُقَطَّعَةِ فِىْ اَوَائِلِ السُّوَرِ]۔

(محکم هغه دے چه دلالت ئے په معنیٰ مراده د الله تعالیٰ باندے واضح او ظاهر وی، احتمال د منسوخ کیدو نهٔ لری، او متشابه هغه دے چه معنی مراده ئے داسے پټه وی چه عقلًا او نقلًا نهٔ معلومیږی، او الله تعالیٰ ځان پورے د هغے علم خاص کړے وی لکه د

قیامت راتلل یا لکه حروف مقطعات شو په ابتداء د سورتونو کې)، علامه آلوسيّ فرمائي : دا رايه د احنافو علماؤ ده۔ ليکن دا هم جزوي تعريف دے او جامع تعريف دويم دے لکه مثالونه ئے روستو رازي ان شاء الله تعالیٰ۔

(۵) امام رازيّ فرمائي : [اَلْمُحْكَمُ مَا كَانَتْ دَلَالَتُهُ رَاجِحَةً وَهُوَ النَّصُّ وَالظَّاهِرُ، وَالْمُتَشَابِهُ مَا كَانَتْ دَلَالَتُهُ غَيْرَ رَاجِحَةٍ وَهُوَ الْمُجْمَلُ وَالْمُؤَوَّلُ وَالْمُشْكِلُ]۔ (محکم هغه دے چه دلالت ئے په معنیٰ مراده باندے راجح وي نو دا شامل دے نص ته هم او ظاهر ته هم۔ او متشابه هغه دے چه دلالت ئے په معنیٰ مراده باندے راجح نهٔ وي او دا مجمل، مؤول او مشکل ټولو ته شامل دے)۔ دا تعریف د متأخرینو په اصطلاحاتو بناء دے پدے وجه کمزورے دے۔

**فائده** : محکم کله په مقابله د متشابه کې راځي لکه دلته، کله محکم په مقابله د منسوخ کې راځي یعنی غیر منسوخ لکه دا په سورة الحج (۵۲) آیت کې استعمال دے ﴿ثُمَّ يُحْكِمُ اللهُ آيٰتِهٖ﴾، کله په مقابله د وسوسه کې راځي، لکه دغه آیت د سورة الحج کې۔

**سوال** : کله ټول قرآن ته مُحکم وئیلے شي لکه سورة هود (۱) آیت کې دي : ﴿كِتٰبٌ اُحْكِمَتْ اٰيٰتُهٗ﴾ او په سورة الزمر (۲۳) آیت کې ئے ټول کتاب ته متشابه وئیلے دے لکه : ﴿كِتٰبًا مُّتَشَابِهًا﴾ او دلته وائي بعض محکم دي او بعض متشابه دي؟

**جواب** دا دے چه هر ځای کې خپله خپله معنیٰ مراد ده، په سورة هود کې معنیٰ دا ده چه آیتونو کې ئے حکمتونه دي نو په محکم کې هم حکمتونه شته او په متشابه کې هم۔ دارنګه (احکمت) معنیٰ ده مضبوط دي آیتونه د هغے او محکمات او متشابهات دواړه مضبوط آیتونه دي، د فصاحت او بلاغت او کمال نه ډك دي، په لړو خبرو کې ډیرو اوږدو خبرو ته اشاره کوي دا د (احکمت) مطلب دے لکه د هغه سورت تدبر پرے ګواه دے، او کوم ځای چه متشابهاً وئیلے دے نو معنیٰ دا ده چه دا کتاب یو بل سره مشابه دے په فصاحت، بلاغت، په رشتینوالی او کامل بیان کې۔ او دلته تقسیم شویدے دا هم حقیقت او بلاغت دے۔

﴿هُنَّ اُمُّ الْكِتٰبِ﴾ یعنی د کتاب اصل او مرکزي حصه او د احکامو محور صرف دا محکمات دي او احکام هم ددے نه ثابتیږي نهٔ د متشابهاتو نه بلکه د متشابهاتو مفهوم به د محکماتو په رڼا کې متعین کولے شي۔ (روح المعاني ۲ / ۸۰) او محکمات په قرآن کې زیات هم دي پدے وجه ئے په کلمه د (مِنْهُ) سره ذکر کړل۔

**فائده : د متشابهاتو مصداقات څه دی ؟**

درے څلور مصداقات دی، بعض هغه متشابهات دی چه الله رب العٰلمین او رسول الله ﷺ او نور بندګان پرے پو هیږی، بعض هغه دی چه صرف د الله پورے خاص دی او بندګان د هغے په معنیٰ او حقیقت نهٔ پو هیږی. (۱) یو د متشابهاتو نه د الله سبحانه ذات او د هغه صفات دی. د الله د ذات حقیقت صرف الله تعالیٰ ته معلوم دے. او د هغه د صفاتو معنیٰ به کولے شی لیکن د هغے کیفیت او حقیقت صرف الله تعالیٰ ته معلوم دے لکه ید، استواء علی العرش، ساق، قدم وغیره.

(۲) دویم قسم : [اَلْقَدَرُ فِي الشُّرُوْرِ] الله په تقدیر کی بعض شرونه لیکلی دی چه په فلانی به دا تکلیف راځی، زمکه کی به دا دا فسادونه پیدا کیږی. نو ددے په حقیقت او مکمل کیفیت هم الله تعالیٰ پو هیږی. لکه [﴿يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَاءُ وَيَرْحَمُ مَنْ يَّشَاءُ﴾، ﴿يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ﴾ وغیره]. ددے راز الله تعالیٰ ته معلوم دے کله نا کله جزئی طریقے سره بندګان هم پو هه شی.

(۳) دریم : حروفِ مقطعات د قرآن دی چه ددے حقیقی معانی الله تعالیٰ ته معلوم دی اګر که لږ لږ حکمتونه به بندګانو ته هم معلو میږی.

(٤) بعض اعداد (شمارونه) او احوال د راتلونکے زمانے د قبر او د حشر. لکه الله تعالیٰ په جهنم باندے نولس ملائك مقرر کړیدی. (علیها تسعة عشر) او عرش څلور ملائك بار کوی. او قبر کی کولاؤ والے او تنګ والے راځی. او په جهنم کی اُور دے او بنده به پکی ختمیږی نهٔ، نو ددے په رازونو او حقیقتونو الله تعالیٰ پو هه دے. .

دلته پدے آیت کی دا ذکر شوی متشابهات نهٔ دی مراد، ځکه چه ددے باره کی خو علماؤ او مفسرینو هم خبرے کړیدی. د الله د اسماء او صفاتو متعلق او دغه شان د حروف مقطعاتو نکتے بیانول او د شمارونو حکمتونه ذکر کول، نو هغوی خو اهل زیغ نهٔ دی.

(۵) دلته ئے مصداق دا دے چه یو آیت دے چه د دوه یا درے معنو احتمال پکی وی یوه معنیٰ ئے صحیح ده او یوه غلطه. صحیح معنیٰ د الله مراد ده او غلطه معنیٰ ئے مراده نهٔ ده. نو اهل زیغ رالګی غلطه معنیٰ اخلی او صحیح معنیٰ پریدی. نو ددے معلومات به پدے طریقه کولے شی چه دغه غلطه معنیٰ به د نورو نصوصو سره ټکراؤ وی. او ددے ډیر زیات مثالونه دی. نو بناء پدے باندے پداسے متشابهاتو راسخین فی العلم پو هیږی چه

هغوی غلطه معنیٰ صحیح معنیٰ ته واپس کوی، هر کله چه د متشابهاتو دا تقسیم تا وپیژندو نو په آیت کی به په دوه تفسیرونو ښه پوهه شے چه هغه روستو رازی ان شاء الله۔

## د متشابهاتو مثالونه

شیخ الاسلام ابن القیمؒ په "اعلام الموقعین" کی (۸۰) مثالونه راوړیدی۔

(۱) نصاراؤ د قرآن نه دلیل نیولو چه عیسیٰ علیه السلام د الله ځوی او جزء دے د ﴿ بِكَلِمَةٍ مِنْهُ﴾ او ﴿ وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَىٰ مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِنْهُ﴾ آیتونو نه ئے دلیل نیولو، ددے غلطه معنیٰ دا ده چه عیسیٰ د الله جزء دے۔ (العیاذ بالله) او صحیح معنیٰ ئے دا ده چه د الله د طرفنه په کلمه د کُن سره پیدا دے۔ که د جزئیت معنیٰ واخستے شی نو د نورو آیتونو سره ټکراؤ راځی۔ لکه ﴿ مَا اتَّخَذَ اللهُ مِنْ وَلَدٍ﴾ (المؤمنون: ۱۰۰) د الله اولاد نشته۔ او قرآن کریم کی ورته ابن مریم وئیلے شویدے نو د مریم نه جزء دے۔ او د هغے ځوی دے۔ ﴿وَقَالُوا اتَّخَذَ اللهُ وَلَدًا سُبْحَانَهُ﴾ (البقرة: ۱۱٦) دارنګه سورة الجاثیه (۱۳) آیت کی دی: ﴿ جَمِيعًا مِنْهُ﴾ آسمانونه او زمکے ټول د الله د طرفنه دی) نو دے سره به څه کوے آیا دا هم د الله نه اجزاء دی؟!۔

(۲) حلولیه وائی: الله هر ځای کی دے۔ دلیل نیسی د ﴿ وَهُوَ مَعَكُمْ﴾ نه یعنی الله تاسو سره دے۔ ددے غلطه معنیٰ دا ده چه الله د بندګانو سره په اعتبار د ذات حاضر دے۔ او صحیح معنیٰ دا ده چه الله په عرش باندے برابر دے لیکن په اعتبار د علم او قدرت سره د بندګانو سره دے۔ لکه دا د مخکی روستو الفاظو نه معلومیږی چه ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللهَ يَعْلَمُ﴾. ﴿وَاللهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾

اُوس که مونږ د معیت نه مراد معیت ذاتی واخلو نو بیا ټکراؤ راځی د ډیرو نصوصو سره چه هغه د فوقیت او علو والا دلائل دی، تقریباً د زرونه زیات دی۔

(۳) مرزایان وائی عیسیٰ علیه السلام مړ دے ځکه چه قرآن کی ﴿إِنِّي مُتَوَفِّيكَ﴾ راغلے دے، ددے غلطه معنیٰ د وفات ده او صحیح معنیٰ ئے دا ده چه زهٔ تا پوره اخلم او آسمان ته دِے پورته کوم۔ که اوله معنیٰ واخلو نو بیا د نورو آیتونو سره ئے ټکراؤ راځی۔ لکه فرمائی: ﴿ بَلْ رَفَعَهُ اللهُ إِلَيْهِ﴾ الله ځان ته پورته کړیدے۔ او پنځوس احادیث موجود دی چه عیسیٰ علیه السلام به قیامت ته نږدے راکوزیږی۔

(٤) مشرکان او مبتدعین وائی: د غیر الله نه دعا غوختل جائز دی، ﴿ ثُمَّ ادْعُهُنَّ ﴾ راغلے دے، نو ددے غلطه معنیٰ دا ده چه دے مارغانو ته آواز کوه او مدد ترے غواړه۔ نو بس

اولیاؤ تـه هـم آواز جائز شو۔ او صحیح معنیٰ دا ده چه دوی ته آواز اُوکړه۔ او دغه معنیٰ د نـورو آیتـونو سره ټکراؤ ده ځکه چه ﴿وَلَا تَدْعُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ﴾ (یونس: ۱۰۶) کی د غیر الله نه مدد غوختل حرام شویدی۔

(۵) دغـه شان مشرکان وائی، د غیر الله نه مدد غوختل جائز دی۔ ﴿فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِيْ﴾ راغلی دے۔ (القصص:۱۵) جواب دا دے چه دا غلطه معنیٰ ده، صحیح دا ده چه دا ژوندی ته آواز دے نو ددے نه د مړو نه د مدد غوختلو دلیل نیول غلط دی، د نورو نصوصو خلاف دی۔

(۶) شیـعـه ګان وائی (العیاذ بالله) علی ﷜ په هر څـه پـوهه وو، ځکه چه قرآن کی دی: ﴿وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنٰهُ فِيْ إِمَامٍ مُّبِيْنٍ﴾۔ (یس: ۱۲) جواب: د امام نه مراد کتاب دے چه هغه لوح محفوظ دے۔ او علیؓ ترے مراد کول غلط دی، ځکه بل آیت کی دی: ﴿بَلْ هُوَ قُرْآنٌ مَّجِيْدٌ فِيْ لَوْحٍ مَّحْفُوْظٍ﴾۔ (البروج آخری آیت)

(۷) شیعه وائی (العیاذ بالله)۔ الله تعالیٰ او علی ﷜ یو شے دے، ځکه چه آیة الکرسی کی دی: ﴿وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ﴾ الله تـعـالیٰ بعینـه عـلیؓ دے۔ نو جواب دا دے چـه د (العلی العظیم) نه مراد الله تعالیٰ دے ځکه چه (الله لا اله الا هو) (اول سر د آیت) پرے دلیل دے۔

(۸) بریلیـان وائـی: پیـغـمبر نور دے او بشر نهٔ وو۔ قرآن کی دی: ﴿قَدْ جَاءَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ نُوْرٌ وَّكِتَابٌ مُّبِيْنٌ﴾ ۔(المـائـده: ۱۵) نـو نـور نـه مـراد پیـغمبر دے۔ جواب: د نور نه مراد بعینه کتاب دے او روستـو کتاب ئے عطف تفسیر دے، ځکه که رسول الله ﷺ مراد شی نو بیا د نورو آیتونو سره چه ﴿إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ﴾ (الکهف: ۱۱۰) راغلی دے، ټکراؤ راځی۔ یا رسـول الله ﷺ نـور دے په اعتبار د صفت سره او په اعتبار د ذات سره بشر وو۔ ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا﴾۔ (یوسف: ۱۰۹) (النحل: ۴۳)

(۹) بـریـلیـان او مشـرکان وائـی چه پیغمبر عالم الغیب دے۔ ﴿إِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ﴾ (الجن: ۲۷) چـه بـعـض بـنـدګان غـوره کـوی چه هغه رسولان دی د غیبو دپاره۔ صحیح معـنـیٰ دا ده چـه رسولانو ته بعض غیب خبرونه ورکوی او په هر غیب باندے نهٔ پوهیږی ځـکـه چه د آیتـونو او حدیثـونو خلاف راځی۔ ﴿قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللّٰهُ﴾ (النمل: ۶۵)۔

(۱۰) دغه شان بعض وائی د ښځے نکاح په غیر د ولی نه جائز ده ځکه چه په ﴿حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ (البـقـره: ۲۳۰) کی نسبت د نـکـاح زنـانـه ته کړیدے۔ جواب دا دے چه که دا معنیٰ واخلو نو د بل آیت ﴿فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ أَنْ يَّنْكِحْنَ﴾ (البقر: ۲۳۲) سره ئے تعارض راځی چه

هلته ئے نسبت سرو ته کړيدے. دارنګه پدے سره ډير احاديث لکه [لَا نِكَاحَ اِلَّا بِوَلِيٍّ] (ابوداود، ترمذي) رد کيږي. او ښځے ته ئے نسبت ځکه کړيدے چه د هغے رضا شرط ده مګر په خپله نکاح نشي کولے.

(۱۱) په فاتحه خلف الامام کي صريح (۱۱) احاديث راغلي دي او مقلدين دا رد کوي په ﴿وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهُ وَاَنْصِتُوْا﴾ (اعراف: ۲۰٤) سره. نو د احاديثو او د قرآن ټکراؤ راولي. دغه شان د بل آيت ﴿فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ (المزمل: ۲۰) سره ټکراؤ راولي ځکه چه دلته ئے نسبت د قرائت هر چا ته کړيدے. نو صحيح معنیٰ دا ده چه انصات د قراءت منافي نۀ دے لکه پدے باندے حديث د بخاري (اسكاتك ما بين التكبير والقراءة ما تقول) الفاظ دليل دے.

(۱۲) کله په ﴿اُدْعُوْا رَبَّكُمْ﴾ (اعراف: ۵۵) سره آمين بالجهر رد کوي، حال دا چه د هغے مطلب خو دا دے چه په عامو حالتونو کي دعا په پټه غواړئ. او آمين بالجهر خو د نبي کريم ﷺ نه متواتر نقل دے.

(۱۳) يو رکعت وتر په صحيح احاديثو کي ثابت دے او دوی ئے په يو ضعيف روايت باندے نفي کوي چه د بتيراء مانځه نه منع راغلے ده. دا روايت ضعيف جدًا دے، په سند کي ئے حنش ابوعلي الرحبي راوي ضعيف دے. حال دا چه عبد الله بن عمرؓ د دے تفسير داسے کړيدے چه بتيراء هغه مونځ دے چه رکوع او سجده ئے برابره اُونکړے شي.

(۱٤) شيعه ګان وائي: العياذ بالله صحابه کرامؓ مرتد شوي وو ځکه چه د بخاري په حديث کي دي چه نبي ﷺ فرمائي: [اِنَّهُمْ مَا زَالُوْا مُرْتَدِّيْنَ عَلٰى اَعْقَابِهِمْ] چه قيامت کي به رسول الله ﷺ ته ملائك اُوفرمائي: دوی هميشه وو چه د دين نه به اوړيدل. نو پدے غلط مطلب اخستو سره د قرآن او حديث اکثره حصه رد کيږي، چه الله فرمائي: ﴿رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ﴾ (سورة البينة). او بيا فضائل د صحابه کرامؓ څه شو؟. ﴿وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ﴾ (التوبة: ۱۰۰) حديث د بخاري کي دي: [آيَةُ الْاِيْمَانِ حُبُّ الْاَنْصَارِ وَآيَةُ النِّفَاقِ بُغْضُ الْاَنْصَارِ]. او د دغه حديث مطلب دا دے چه نبي ﷺ د مخکي نه پيشن ګوئي وکړه چه زما په امت کي به بعض خلق د تقليدي ايمان په وجه د دين نه اوړي لکه د ابوبکر صديق ؓ په زمانه کي بعض خلق دغه شان شو.

(۱۵) رسول الله ﷺ په صحيح حديث کي فرمائي: چه [وَقْتُ صَلَاةِ الظُّهْرِ اِلٰى اَنْ يَّصِيْرَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَهُ]. (ترمذي، احمد) صحابيؓ تپوس اُوکړو چه د ماسپښين وخت کوم دے

نو جواب ورکړے شو چه د ماسپښین وخت دا دے چه د هر شی سورے یو چند ته اُورسیږی۔ ددے نه اخوا مازیګر شروع کیږی۔ او د امام ابوحنیفهؒ د خلورو اقوالو نه یو قول دا دے چه د ماسپښین وخت د مثلین پورے دے۔ حال دا چه دا په هیڅ صحیح صریح حدیث کی ثابت نهٔ دے لیکن بعض کارهٔ زړونو والا ددے دپاره بعید استدلال کوی چه رسول الله ﷺ په سفر کی وو، بلال اذان کولو نبی ﷺ ورته اُوفرمایل : اَبْرِدْ (لږ تاخیر اُوکړه) بیائے اذان کولو ورته ئے اُوفرمایل (تاخیر اُوکړه)۔ ابوذرؓ وائی [حَتّٰی رَأَيْنَا فَيْءَ التُّلُوْلِ] تردے چه مونږ د ډیرکو سورے اُولیدو۔ (بخاری) نو معلومه شوه چه د ډیرکو سورے خو ناوخته راخی نو دا مونځ به ئے تر مثلین پورے اُوږد کړے وی۔ جواب دا دے چه دا روایت مجمل دے د مانځهٔ د اوقاتو د بیان دپاره نهٔ دے چلولے شوے او مخکی روایت صریح دے۔ پدے روایت کی دا خبره نشته چه دا مونځ په مثلین کی شویدے ځکه چه د ډیرکو سورے کله وختی راپیدا کیږی او کله ناوخته ځکه بعض ډیرکئ لوړے وی او بعض وړوکے۔ نو پداسے مجمل روایاتو باندے نص رد کول صحیح طریقه نهٔ ده۔

(۱۶) جمع بین الصلاتین په (۳٦) احادیثو کی ثابته ده، مګر بعض خلق دا آیت ﴿اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا﴾ (البقره:۱۰۴) پیش کوی چه مونځ په خپل خپل وخت فرض شویدے۔ لهذا جمع بین الصلاتین نشته۔ دا په متشابه آیت سره صریح صحیح احادیث رد کول دی۔ بلکه د آیت مطلب دا دے چه خپل وخت کی مونځ کول پکار دی او جمع بین الصلاتین کی هم مونځ په خپل وخت کی دے، قضاء نهٔ دے۔

(۱۷) حدیث کی دی : چه په تکبیر تحریمه کی به صرف الله اکبر وائی۔ (وَتَحْرِيْمُهَا التَّكْبِيْرُ) (ابوداود والترمذی) ثُمَّ يَقُوْلُ اللّٰهُ أَكْبَرُ (المعجم الکبیر)۔ رسول الله ﷺ هیڅ کله بغیر د الله اکبر نه بل لفظ سره شروع نهٔ ده کړے۔ او دوی دا رد کوی په متشابه آیت سره ﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى﴾ چه په آیت کی صرف د الله نوم یادول ذکر شویدی۔ دا مجمل آیت دے او دوی پرے صریح احادیث رد کړیدی۔ بلکه د (ذکر اسم ربه) نه مراد لفظ د الله اکبر دے، ځکه حدیث بیان د قرآن دے۔

(۱۸) احادیثو کی د مانځه نه د وتلو دپاره صرف سلام لفظ وئیل خودلے شویدی۔ [وَتَحْلِيْلُهَا التَّسْلِيْمُ]. (المصدر المذکور) [اِنَّمَا يَكْفِىْ أَحَدَكُمْ اَنْ يَّضَعَ يَدَهٗ عَلٰى فَخِذِهٖ ثُمَّ يُسَلِّمُ عَلٰى أَخِيْهِ مَنْ عَلٰى يَمِيْنِهٖ وَشِمَالِهٖ] (مسلم:۹۹۸)۔ دا دوی رد کړیدے په قول د ابن مسعود ﷺ چه هغه یو اعرابی ته اُووئیل : [فَاِذَا قُلْتَ هٰذَا فَقَدْ قَضَيْتَ صَلَاتَكَ اِنْ شِئْتَ اَنْ تَقُوْمَ فَقُمْ وَاِنْ

شِئْتَ أَنْ تَقْعُدَ فَاقْعُدْ] ۔ (ابوداود:۹۷۲) نو دلته ئې ورته سلام اُونۀ خودلو۔ نو دا صريح حديث په يو مجمل موقوف روايت باندې رد کول دي۔ د ابن مسعودؓ مطلب دادې چه د درود وئيلو او د سلام اړولو نه روستو د امام سره کيناستل لازم نۀ دي۔

(۱۹) بعض مقلدينو د رسول الله ﷺ د اتباع او اطاعت صريح نصوص رد کړيدي په بعض متشابه اقوالو سره۔ لکه [اِقْتَدُوْا بِالَّذَيْنِ مِنْ بَعْدِيْ أَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ]– يا [رَضِيْتُ لَكُمْ مَا رَضِيَ لَكُمْ اِبْنُ أُمِّ عَبْدٍ (مستدرك)

(۲۰) مرجئه د هغه احاديثو نه چه په هغې کې صرف د کلمې په وئيلو نجات خودلې شويدې دليل نيسي چه گناه په ايمان کې هيڅ ضرر نۀ رسوي او عمل ته هيڅ ضرورت نشته۔ نو دوی نور صريح آيات او احاديث رد کوي۔

(۲۱) اهل تقليد وائي: قرآن کريم کې راغلي دي چه تقليد واجب دې ځکه چه ﴿ فَاسْئَلُوْا أَهْلَ الذِّكْرِ﴾ (النحل:۴۳) کې امر راغلې دې چه تاسو د اهل ذکر نه تپوس وکړئ او تپوس خو تقليد دې نو الله په تقليد امر وکړو؟ جواب دا دې چه تقليد د چا رايه اخستل وی او تپوس کې غرض د الله حکم په دليل سره معلومول وی نو دواړه جدا جدا څيزونه دي۔ دويم دا چه سوال خو د ژوندو نه کيږي نو د امام صاحبؒ نه به څنګه تپوس وشي؟! نو د آيت مطلب دا شو چه د ژوندو علماؤ نه تپوس وکړئ که دليل ورسره وو نو د دليل پسې روان شئ او که دليل ورسره نۀ وو نو تابعداري ئې نشته، ځکه چه قرآن کې ﴿ اِتَّبِعُوْا مَا أُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ﴾ (اعراف:۲) باندې امر راغلې دې چه صرف د مَا أُنْزِل (وحی) تابعداري به کولې شي۔

دا قسم نور مثالونه شته چه اهل بدع د متشابهاتو نه استدلال کوی لکه:

(۲۲) دعاء بعد السنة ثابتوی او د ﴿ فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ﴾ نه (۲۳) يا غلط خيراتونه ثابتوی د ﴿هُوَ الَّذِيْ خَلَقَ لَكُمْ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيْعًا﴾ (البقره:۲۹) نه، (۲۴) يا اباحيه دهريه هم ددې آيت نه استدلال کوی په اباحت د ټولو شيانو۔ (۲۵) دارنګه معتزله وائي: ﴿لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ﴾ (انعام:۱۰۳) دليل دې چه الله تعالىٰ په آخرت کې نۀ ليدلې کيږي۔

(۲۶) دارنګه خوارج د (وَقِتَالُهُ كُفْرٌ) يا د ﴿ وَمَنْ عَادَ فَأُولَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خَالِدُوْنَ﴾ (البقره:۲۷۵) استدلال کوی په تکفير د مرتکب د کبيره باندې۔

(۲۷) دارنګه بريليان وائي: ﴿وَفِيْكُمْ رَسُوْلُهُ﴾ (آلعمران:۱۰۱) نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ حاضر ناظر دې، (۲۸) دارنګه تقارب اديان والا وائي: ﴿ إِنَّ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا

﴿وَالنَّصَارىٰ﴾ کې د تولو دینونو تائید شویدے۔ دارنګه تول باطل پرست د قرآن د متشابهاتو نه استدلال کوی او محکماتو سره ئے ټکراؤ راولی چه د هغے جواب راسخ فی العلم ته آسان دے، رزقنا الله تعالیٰ الرسوخ فی العلم۔ او په علم کې د رسوخ پیدا کولو اسباب به روستو ذکر کړو ان شاء الله تعالیٰ۔

﴿فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ﴾ د زیغ نه د زړهٔ کوږوالے، د حق نه مخ اړول او د نفس خواهشاتو طرف ته میلان مراد دے۔ (ابوالسعود ۲/۱۰۶)

﴿فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ﴾ اتباع نه مراد همیشه روانیدل، او بحث او ګرځیدل دی په متشابه پسے۔ پدے کې اشاره ده چه اهل زیغ خلق په قرآن کې صرف خپل مطلب لټوی او متشابهاتو پسے ګرځی او محکم صریح آیتونه ئے د مخے نه تیرېږی او هیڅ سوچ ورته نهٔ کوی ځکه چه د هغے نه ئے مقصد نهٔ پوره کیږی، په سترګو باندے ئے د باطل پټئ لګیدلی وی۔ او دا طریقه د عامو باطل پرستو ده چه په یوه مسئله کې صریح دلائل موجود وی او دوی پکې بعید عقلی وجوهات او د نص خلاف او ضعیف دلائل ګوری۔

﴿ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ﴾ یعنی دوی چه متشابهاتو پسے لګی نو دوه مقصده ئے وی (۱) یو دا چه فتنه لټوی، د فتنے نه مراد جګړے، فساد، قتل وقتال پیدا کول دی ځکه چه ددے په وجه دین کې اختلاف پیدا شی او هغه سبب د فساد وی۔ (قاله الاصمؒ)۔ بعض وائی: د فتنے نه مراد په زړونو کې د بدعت او ګمراهئ پخول او مضبوطول دی۔ (اللباب لابن عادل)

راجح دا ده چه د فتنے نه مراد بدعت او ګمراهی او هر هغه شے دے چه د صحیح عقیدے خلاف وی۔

او دویم مقصد ئے دا دے چه دوی د خپل خواهش موافق د متشابهاتو تحریف اُوکړی۔ (ابن کثیرؒ)

﴿وَابْتِغَاءَ تَأْوِيلِهِ﴾ د تاویل دوه معنے دی (۱) اَلَّذِیْ لَا یَصِلُ اِلَیْهِ مَخْلُوْقٌ ۔ چه مخلوق ته د هغے علم نهٔ وی لکه د قیامت احوال او اعداد او شمارونه او حروف مقطعات وغیره لکه چه مخکې تیر شو۔

(۲) اَیْ عَلٰی مَا تَقْتَضِیْ مَذَاهِبُهُمْ۔ یعنی داسے معنیٰ کوی چه د هغوی د رائے او د مذهب برابره وی۔ تفسیر تسهیل لیکی: [دَخَلَ فِیْهِ کُلُّ کَافِرٍ وَمُبْتَدِعٍ وَجَاهِلٍ] پدے کې هر کافر او بدعتی او جاهل داخلیږی، چه دوی داسے کار کوی۔

ابو حیانؒ لیکی: اهل زیغو کې نصاریٰ، یهود، خوارج، منافقان، مشرکان، زنادقه،

باطنیه او ټول مبتدعین داخل دي ځکه چه هره ډله د حق نه اوړیدلې ده او د نیغې لارې نه کږه شویده. او دا لفظ دې ټولو ته شامل دے۔ (البحر المحیط).

## د تاویل معانی

﴿ وَمَا يَعۡلَمُ تَأۡوِيلَهُۥٓ إِلَّا ٱللَّهُ ﴾ د تاویل ډیرې معنې وې (۱) په معنیٰ د یو شي حقیقت او د هغې انجام او نتیجې سره۔ (۲) تاویل کله په معنیٰ د تفسیر او وضاحت سره راځي۔ (۳) د تاویل کله دا معنیٰ وي چه یو لفظ د خپل ظاهر نه د یوې شبهې د وجې نه اړول او دا باطل تاویل دے۔ (٤) صَرۡفُ اللَّفۡظِ عَنۡ ظَاهِرِهٖ لِدَلِيۡلٍ عَرَضَ لَهٗ : یو لفظ د خپل ظاهر نه د دلیل په وجه اړول، او دا صحیح تاویل دے۔

که اوله معنیٰ واخلو نو بیا به په ﴿ إِلَّا ٱللَّهُ ﴾ باندې وقف کوو. او معنیٰ به دا وي چه دا کړو زړونو والا خلق د متشابهاتو د اصل معنیٰ او حقیقت معلومولو کوشش کوي حال دا چه دا ممکن نۀ ده ځکه چه د متشابهاتو صحیح علم خو صرف الله ته دے، په هغې بل هیڅوك نۀ پوهیږي ځکه چه د هغې علم الله پاك خپل ځان پورې خاص کړیدے. او روستو ﴿وَٱلرَّٰسِخُونَ﴾ به مبتداء وي او روستو ﴿ يَقُولُونَ﴾ به ئې خبر وي نو دا به جدا جمله وي.

او که د تاویل نه مراد تفسیر او بیان واخستے شي، دارنګه څلورمه معنیٰ واخستے شي نو بیا به ((وَٱلرَّٰسِخُونَ فِي ٱلۡعِلۡمِ)) په ((الله)) باندې معطوف وي، ځکه چه علماؤ ته په هغه آیتونو ضرور پوهیدل پکار دي چه د هغې مسلمانان مخاطب دي. نو معنیٰ به دا وي چه نۀ پوهیږي په صحیح معنیٰ د متشابهاتو مګر الله تعالیٰ او هغه علماء چه مضبوط علم لري هغوي هم پوهیږي او بیا داسې وائي چه مونږ پدې باندې ایمان راوړیدے۔الخ. او دا معنیٰ ځکه صحیح ده چه عامو مفسرینو د قرآن د هر آیت تفسیر کړیدے تردې چه د ((الم)) او د نورو حروفِ مقطعاتو احتمالي تفسیر ئې هم کړیدے۔نو دا به کوم آیتونه وي چه علماء پرې نۀ پوهیږي، دا قسم آیتونه قرآن کریم کې نشته، آؤ، د متشابهاتو چه کوم تفصیل وشو هغې سره آیت حل کیږي.

او علامه شوکانيؒ وئیلي دي چه داسې تشریح کول ډیر اعتدال دے ځکه چه اکثر علماء وائي چه په متشابهاتو د الله نه سویٰ هیڅوك نۀ پوهیږي او امام مجاهدؒ وائي چه علماء پرې هم پوهیږي۔ (او قرطبيؒ وئیلي دي چه دا قول د ابن عباسؓ نه هم منقول دے چه راسخین د متشابهاتو علم محکماتو ته واپس کوي) نو که د تاویل جدا جدا معنې واخلې

نو دواړه اقوال صحيح کيږي- [فتح القدير ۱/۴۷۳]

## د راسخين في العلم تعريف

○ راسخ في العلم: (اَلْعَامِلُ بِعِلْمِهٖ) - هغه شخص ته وائي چه په خپل علم باندې عمل کوي- ○ بعض وائي: راسخ في العلم هغه چا ته وائي چه په هغه کې څلور صفات وي (۱) تَقْوٰى فِيْمَا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ اللّٰهِ - دده او د الله په مينځ کې تقوىٰ وائي- (۲) [تَوَاضُعٌ فِيْمَا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ النَّاسِ] - (دده او د خلقو ترمينځ عاجزي وي)- (۳) اَلزُّهْدُ فِيْمَا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ الدُّنْيَا - دده او د دنيا ترمينځ بې رغبتي وي- (٤) [اَلْمُجَاهَدَةُ فِيْمَا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ النَّفْسِ] (د خپل نفس سره مجاهده کوي)- (معالم التنزيل، السراج المنير، خازن)

○ راسخ في العلم هغه خلق دي کوم چه د دين په علم کې پاخهٔ دي او د فهمِ سليم او د طبع مستقيم مالکان دي، هغوی د متشابهاتو پسې نهٔ لګي بلکه هغوی وائي چه زمونږ په دې باندې ايمان دې چه دا متشابهات د الله د طرفنه دي او ددې نه د الله تعالىٰ مراد حق دې- راسخ في العلم زيات نه زيات دا کوي چه متشابهات د محکماتو په ذريعه معلوموي چه که چرې د محکماتو په رڼا کې ددې څه مفهوم په پوهه کې راشي نو د محکماتو په شان به په هغې باندې هم عمل کوي ليکن که چرې څه مفهوم ئې په پوهه کې رانشي نو بيا خاموشي اختياروي او صرف په ايمان بالمتشابهات باندې اکتفاء کوي او په ظن او تخمين سره د هغې د مفهوم متعين کولو کوشش نهٔ کوي-

﴿يَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِهٖ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ رَبِّنَا﴾ (به) ضمير کتاب ته هم راجع دې او متشابهاتو ته هم- د راسخين في العلم صفت دا دې چه دوی وائي مونږ پدې کتاب او پدې متشابهاتو ايمان راوړيدې دا ټول زمونږ د رب د طرف نه دي او (ربنا) لفظ ئې اُووئيلو پدې کې اشاره ده چه پدې متشابهاتو سره الله تعالىٰ زمونږ تربيت کوي او زمونږ امتحان اخلي چه څوک پدې پسې لګيا کيږي او څوک نهٔ- دوی دا وينا خپلو کشرانو او عامو مسلمانانو ته کوي چه متشابهات ددې دپاره نازل شويدي چه مونږ به پرې ايمان راوړو ځکه چه دا ټول زمونږ د رب د طرفنه دي- ﴿كُلٌّ﴾ يعنی هر يو د متشابهاتو او محکماتو نه دا ټول زمونږ د رب د طرف نه دي- دا ورسره ځکه وائي چه هرکله د بعض متشابهاتو پوره علم الله تعالىٰ سره وو نو ګمان کيدې شو چه دا به د الله تعالىٰ د طرف نه نهٔ وي نو جواب اُوشو چه دا ټول د الله د طرف نه دي-

بل پدې کې اشاره ده چه کوم شے د الله د طرفنه وی په هغے کې خپل مینځ کې هیڅ تعارض نهٔ وی۔ یعنی راسخین فی العلم د متشابهاتو په معنیٰ او مطلب پوهه شی او هغه محکماتو ته راجع کړی او بیا وائی چه دا ټول حق دی چه هیڅ تعارض پکې نشته ځکه چه دا دواړه کلامونه د الله تعالیٰ دی۔ او جاهل همیشه په اضطراب کې وی۔(المنار)

﴿وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ 7)) ﴾

عقلمند ځکه نصیحت اخلی چه هغه سوچ کوی چه د متشابهاتو په رالیږلو کې ډیرے فائدے دی۔

**فائده** : والراسخون فی العلم ئے وویل : (والراسخون فی الدین) ئے ونهٔ ویل پدے کې اشاره ده چه د متشابهاتو په وجه د علماؤ علم ژوندے کیږی، ځکه که ټول قرآن محکم وے نو انتهائی آسان به وے، بیا به د انسان عقل په هغے کې گرځیدل نهٔ کولے نو عقل به ئے مړ شوے وے نو علم به ئے نهٔ تازه کیدلے، نو دا د الله رحم دے چه دین ئے په داسے طریقه سره وگرځولو چه د عقل د تالاش او گرځیدو دپاره پکې گنجائش پیدا شو نو عقل چه متشابه د غیر نه راجدا کوی نو پدے سره به د ډیرو دلائل کونیه او براهین عقلیه و او د طرق الخطاب او د وجوه الدلالة تالاش کوی دے دپاره چه د هغے فهم او حقیقت ته ورسیږی او دا یوه فائده د متشابهاتو ده۔ (المنار)

## د متشابهاتو فائدے

دلته سوال پیدا کیږی چه قرآن کې ولے متشابهات آیتونه نازل شویدی که ټول محکم او ښکاره مراد والا وے نو پدے کې به بنده خپل دینی غرض زر حاصلولے؟ او متشابه خو کله په عقائدو کې التباس او گډوډوالے راولی او دا کله د هدایت دپاره مانع واقع کیږی او د تاویل والو دپاره د فتنے دروازه کولاویږی؟ (المنار)

نو ددے جواب دا دے چه الله تعالیٰ حکیم او علیم دے هغه چه متشابهات نازل کړیدی پدے کې بیشماره فوائد دی چه بعض د هغے نه لاندے ذکر کیږی :

(۱) لکه یوه فائده ئے ابتلاء او امتحان دے، چه باطل پرست د باطل د ثابتولو دپاره ددے نه دلیل نیسی او په حق پرستو امتحان دا دے چه د باطل پرستو په مقابله کې به جوابونه کوی او د حق د ثابتولو او ښکاره کولو دپاره به په قرآن کریم کې فکرونه کوی۔

(۲) تدبر او سوچ کول : چه حق پرست علماء به په متشابه آیتونو کې سوچ او فکر

اُوکړي او محکماتو ته به ئې راواپس کړي نو اجر به ئې اُوشي. او اهل بدعت او فساد والا به ترے غلط مطلب واخلي نو هلاك به شي. ځکه چه قرآن کریم ذو وجوه دے، هر باطل پرست ددے نه دلیل نیولے شي لیکن هغه د محکم آیتونو خلاف وي. عامه دنیا کې چه څومره باطل پرست دي دوی ټول د قرآن نه دلیل نیسي او قرآن په غلطه طریقه استعمالوي.

(۳) که قرآن ټول محکم وے نو بیا به پکې ټول انسانان یو شان وے حال دا چه چا ته الله تعالیٰ د قرآن پوهه زیاته ورکوي او چا ته کمه. ځکه چه د بعض کسانو تدبر او سوچ زیات وي او د بعضو کم. د هر چا د خوارئ او محنت مطابق جزا ورکولے شي. امام رازیؒ وائي په قرآن کریم کې هرکله چه محکم او متشابه دواړه شته نو انسان به محتاج وي تحقیق او استدلال ته او عقل نه به کار واخلي او د تقلید د تیارو نه به خلاص شي.

(٤) فائده: هرکله چه قرآن کې محکم او متشابه دواړه شته نو عالم به د متشابه د صحیح تاویل دپاره محکماتو ته رجوع کوي او د لغت او د عربیت علومو او اصولي علمونو ته به ضرورت راپیښیږي نو ډیر علمونه به حاصلوي.

(۵) هرکله چه بعض متشابهاتو ته د انسان علم نهٔ رسیږي نو دے به پدے سره د تکبر د صفت نه خلاص شي او پوهه به شي چه واقعي ټول علم الله تعالیٰ سره دے. او یقین به وکړي چه ((وَفَوْقَ كُلِّ ذِیْ عِلْمٍ عَلِیْمٌ)) خبره حقه ده، او هیڅوك به د کلي علم دعویٰ نه کوي.

(٦) که قرآن ټول محکم وے نو صرف د یو مذهب مطابق به وے او د قرآن تصریح به ددے نه ماسوئ ټول مذاهب باطل کړي وے نو پدے سره به د نورو مذاهبو د خاوندانو نفرت پیدا کیدلے او ددے د قبلولو او پدے کې د کتلو نه به ئې نفرت کولے نو هرکله چه متشابهات او محکمات دواړه پکې نازل شو نو هر مذهب والا به د خپل مذهب د تقویت دپاره پدے کې نظر کوي نو پدے طریقه به ټولو مذاهبو والا نظر کوي او په سوچ کولو کې به کوشش کوي نو هرکله چه دوی ژور سوچ وکړي نو محکماتو سره به دوی ته متشابهات ښکاره شي او پدے طریقے سره به باطل پرست د باطل نه خلاص شي او حق ته به ورسیږي، صاحب المنار وائي دا وجه امام رازیؒ ذکر کړیده او د ټولو نه ضعیفه وجه ده ځکه چه د قرآن د نزول په وخت کې دغه مذاهب چرته وو، او چا پدے طریقه هدایت قبول کړیدے؟ (المنار ۳/۱٤۰)

او دا جمله د راسخین د مدح دپاره اُووئیلے شوه چه د دوی عقلونه د وهمونو او وسوسو نه صفا دی، پدے وجه هغوی دا وائی چه ډیر کرت مونږ به د یو آیت په مطلب نهٔ پو هیږو او د الله تعالیٰ مراد به د هغے نه حق وی، نو منل ئے پکار دی۔

| |
|---|
| رَبَّنَا لَاتُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا |
| اے ربه زمونږ! مهٔ کړه زړونه زمونږ پس د هغے نه چه تا نیغه لار وخوده مونږ ته او اُوبخه مونږ ته |
| مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ ﴿٨﴾ رَبَّنَا إِنَّكَ |
| د خپل طرف نه مهربانی، یقیناً ته ورکونکے ئے بغیر د غوختلو نه۔ اے ربه زمونږ! یقیناً ته |
| جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيهِ إِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ ﴿٩﴾ |
| راجمع کونکے ئے خلقو لره هغه ورځے ته چه شك نشته په هغے کی، یقیناً الله خلاف نه کوی د وعدے خپلے نه۔ |

**تفسیر** : پدے دوه آیتونو کی د راسخین فی العلم دعا ذکر کوی چه دوی کله اهل زیغ اُوینی چه د متشابهاتو نه غلط دلیلونه نیسی او د هدایت نه اَوړیدلی وی نو د الله نه دعا کوی چه اے الله! زمونږ زړونه د هدایت نه روستو مهٔ کړوه چه د متشابهاتو پسے روان شو، او د خپل طرف نه رحمت راکړه۔

د رحمت لفظ عام دے شامل دے اَلثَّبَاتُ عَلَى الدِّيْنِ ته (یعنی په دین باندے مضبوطوالی ته) او یقین او ایمان او هدایت او اتباع د قرآن او حدیث ته۔

ترمذیؒ د عائشے رضی الله عنها نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ به اکثر او زیاته دا دعا کوله: [يَا مُقَلِّبَ الْقُلُوْبِ ثَبِّتْ قَلْبِيْ عَلٰى دِيْنِكَ] اے د زړونو اړونکیه! زما زړهٔ ته په خپل دین باندے مضبوط اُوساته۔ ما اُووئیل: اے د الله رسوله! ته دا دعا ډیره زیاته غواړے۔ نو نبی ﷺ اُوفرمایل چه د هر انسان زړهٔ د رحمان د دوه گوتو په مینځ کی دے، که غواړی نو هغه په حق باندے قائم ساتی او که غواړی نو هغه ئے گمراه کوی۔ (ترمذی: ۲۱۴۰ وسنده صحیح)

وَهَبْ لَنَا : هبه هغه عطیی ته وائی چه بغیر د غوختلو او بغیر د عوض نه وی۔ نو اشاره ده چه مونږ مستحق د رحمت نهٔ یو صرف ستا نه هبه غواړو پدے کی مقصد الله ته تواضع کول دی۔

**نکته** : بعض مبتدعین دا دعا کوی حال دا چه دوی زیغ والا وی، هدایت ورته نهٔ وی

شوے او دا دعا کوی، هغوی له ﴿اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ﴾ دعا پکار ده۔
ربنا انك جامع الناس : دا په ظاهره کې جمله خبریه ده لیکن په حقیقت کې دعا ده۔ چه اے الله! ته به خلق د قیامت ورځے ته راجمع کوے نو [فَلَا تُخْزِنَا فِيهِ] مونږ په دغه ورځ کې د شرم نه اُوساته۔ او د اهل زیغو سره مو مهٔ ملګری کوه۔ او پدے دعا کې اشاره ده چه کله اهل زیغ خلق دا سوچ اُوکړی چه مونږ به آخرت ته راجمع کیږو او الله به راسره حساب کتاب کوی نو بیا به د خپل کړلیچ او فساد نه واوړی لیکن دوی چه دا فسادونه کوی پدے وجه چه د آخرت د ورځے استحضار او دهان ئے نشته۔ د چا چه ایمان خوښ وی او د آخرت یره ئے په زړه کې وی او دا یقین ئے وی چه الله پاك کومه وعده کړیده هغه به ضرور کیږی۔ هغوی هیڅ کله اهل زیغ نهٔ وی، روغ زړونو والا وی۔

| إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُمْ |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه کفرئے کړے دفعه به نه کړی د دوی نه مال د دوی او نهٔ اولاد د دوی |
| مِنَ اللَّهِ شَيْئًا وَأُولَـٰئِكَ هُمْ وَقُودُ النَّارِ ﴿١٠﴾ |
| د الله (د عذاب) نه هیڅ شے او همدغه کسان خشاك د اُور دی۔ |

**تفسیر** : پدے کې ظاهراً کافرانو ته د دنیا او د آخرت تخویف ذکر دے۔ او ضمناً پکی تزهید فی الدنیا دے (د دنیا نه رغبتی ده) په دوه طریقو (۱) چه ډیر مالونه او اولاد د کفر سره فائده نهٔ ورکوی لکه څنګه ئے چه فرعونیانو ته فائده ورنکړه۔
(۲) دویم : په ښکاره الفاظو سره د د دنیا نه رغبتی ذکر کوی په (زين للناس) سره۔
د قیامت د ذکر کولو نه روستو اُوس پدے آیت کې دا بیانیږی چه هغه تمام خلق چه د الله نه ئے انکار کړیدے او د رسولانو تکذیب ئے کړیدے، او د متشابهاتو پسے روان دی دوی به جهنم ته ضرور داخلیږی۔ او د دوی مالونه او د دوی اولاد به دوی د الله د عذاب نه نشی بچ کولے۔ او په دنیا کې به هم د دوی حشر د فرعون او د هغه خلقو په شان وی چا چه د الله د آیتونو تکذیب کړیدے، چه الله هغوی له د ګناهونو په سبب راونیول او د آخرت د عذاب نه مخکې ئے په دنیاوی مصیبتونو او سزاګانو کې اخته کړل۔
**مناسبت** : د دنیا دے رغبتی ذکر کولو مناسبت دا دے چه کافران څکه کفر کوی او د الله د توحید نه انکار کوی او حق نهٔ منی چه دوی ته دنیا لوئی شے ښکاره شویدے، او د مالونو

او اولاد ډیروالے د خپل حقانیت نښه ګنړی او دا وائی چه دا به مونږ ته په آخرت کی هم فائده راکړی. ﴿اَفَرَاَیۡتَ الَّذِیۡ کَفَرَ بِاٰیٰتِنَا وَقَالَ لَاُوۡتَیَنَّ مَالًا وَّوَلَدًا﴾ (مریم : ۷۷) ﴿وَلَئِنۡ رُّدِدۡتُّ اِلٰی رَبِّیۡ لَاَجِدَنَّ خَیۡرًا مِّنۡهَا مُنۡقَلَبًا﴾ (الکهف : ۳۶)

۲- دویم مناسبت دا دے چه پدے آیت کی دفع د وهم ده چه کفار بآیات الله د الله تعالیٰ څنګه دشمنان سره ددے نه چه د دوی خو مال او اولاد ډیر دے ؟ نو جواب وشو چه د کفر سره دا فائده نهٔ ورکوی.

لَنۡ تُغۡنِیَ : اغناء په معنیٰ د فائده ورکولو او دفع کولو سره دے. لیکن صاحب المنارؒ وائی چه دلته د دفع کولو معنیٰ ښکاره نهٔ ده بلکه د فائدے ورکولو معنیٰ ئے ده لکه د ﴿اِنَّ الظَّنَّ لَا یُغۡنِیۡ مِنَ الۡحَقِّ شَیۡئًا﴾ (یونس:۳۶) کی چه دغه معنیٰ مراد ده. او (مِنۡ) دلته په معنیٰ د بدل سره دے او مطلب دا دے چه د دوی مالونه او اولاد به هیڅکله د دوی دپاره د الله نه بدل ونهٔ ګرځی چه د الله نه ئے مستغنی کړی ځکه که دوی په خپل باطل باندے همیشه پاتے شی نو دوی به په دنیا کی مغلوبه شی او په آخرت کی به عذاب ورکړے شی.

مِنَ اللهِ : د الله په دربار کی په قیامت کی دوی ته هیڅ فائده نشی ورکولے. (ابوعبیدؒ).

یا د الله د عذاب نه. او پدے معنیٰ کی عموم دے، چه هرکله الله اراده اُوکړه نو دوی تړے ځان نشی بچ کولے.

وَقُوۡدُ النَّارِ : اَیۡ حَطَبُهَا. یعنی دوی به خشاك د اُور وی او اُور به په دوی باندے بلولے شی.

۲- یا مطلب دا دے : (اِنَّهُمۡ سَبَبُ وُجُوۡدِ نَارِ الۡاٰخِرَةِ) د آخرت اُور د دوی په وجه موجود شویدے، چه دوی پکی وسوزولے شی. (المنار نقله عن الاستاذ)

| كَدَاۡبِ اٰلِ فِرۡعَوۡنَ وَالَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ كَذَّبُوۡا |
| --- |
| (حال د دوی) په شان د حال د فرعونیانو دے او هغه کسان چه دوی نه مخکی وو، دروغژن ئے ګنړلی وو |
| بِاٰیٰتِنَا فَاَخَذَهُمُ اللهُ بِذُنُوۡبِهِمۡ وَاللهُ شَدِیۡدُ الۡعِقَابِ﴿۱۱﴾ |
| آیتونه زمونږ، نو راونیول دوی لره الله په سبب د ګناهونو د دوی او الله سخت عذاب والا دے. |

**تفسیر** : پدے آیت کی په مخکنو قومونو باندے د دنیا د عذاب یوه نمونه بیانوی دپاره دیره ورکولو دے امت ته، او خصوصاً دغه مذکوره کفارو ته.

دأب : اَلۡحَالَةُ الۡمُسۡتَمِرَّةُ (هغه حال ته وئیلے شی چه انسان پرے همیشه روان وی) لکه

﴿دَآئِبَیۡنِ﴾ (سورة ابراهیم:۳۳) او﴿ دَاَبًا﴾ (یوسف :٤٧) کی همدا معنیٰ ده۔
دأب : مثال او عادت ته هم وائی۔
﴿کَدَاۡبِ﴾ ددے نه مخکی مبتداء حذف ده ای دَأۡبُهُمۡ کَدَاۡبِ آلِ فِرۡعَوۡنَ. ای حَالُ هٰؤُلَاءِ فِی الۡکُفۡرِ (وَتَکۡذِیۡبِ الۡحَقِّ) وَاسۡتِحۡقَاقِ الۡعَذَابِ کَحَالِ آلِ فِرۡعَوۡنَ (روح المعانی۳/۹۳)۔
یعنی په تکذیب او انکار کی ددے موجوده کافرانو حال او رویّه بالکل همغه شان ده څنګه چه د فرعونیانو او د هغوی نه د مخکی کافرانو وه، دغه شان به عذاب کی به هم د دوی حال هغه وی کوم چه د هغوی وو۔
کَذَّبُوۡا بِاٰیٰتِنَا﴾ دا د هغوی د دأب او حال تفسیر دے چه هغوی د الله آیتونه دروغژن اُوګڼړل نو الله هغوی لره د هغوی د ګناهونو په وجه سره په عذاب کی اخته کړل۔
﴿بِاٰیٰتِنَا﴾ د آیتونو نه مراد د الله د کتابونو آیتونه دی۔ یا مراد د الله تعالیٰ د توحید او د انبیاء علیهم السلام د رشتینوالی دلائل دی۔ (قرطبی٤/٢٣)
**فائده:** په دے سورت کی د (النار) لفظ ډیر مکرر شویدے څکه کفر بآیات الله، الله تعالیٰ سخت بد ګڼړی نو د اُور تذکره بار بار کوی۔ اخیر کی فرمائی چه مؤمنان د اُور نه ډیر یریږی او دا کفار یهود نهٔ یریږی۔

| قُلۡ لِّلَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا سَتُغۡلَبُوۡنَ |
|---|
| اووایه هغه کسانو ته چه کفرئے کړیدے، زر دے چه تاسو به مغلوبه کړے شئ |
| وَتُحۡشَرُوۡنَ اِلٰی جَهَنَّمَ وَبِئۡسَ الۡمِهَادُ ﴿١٢﴾ |
| او راجمع به کړے شئ جهنم ته او بس فرش دے (دا جهنم)۔ |

**تفسیر:** پدے آیت کی د کفارو د مغلوبیت بیان دے په دنیا کی او بیا د آخرت یره ده چه دوی به اُور ته جمع کړے شی۔

دا خطاب چا ته دے؟

(١) یو قول دا دے چه ددے نه مراد د مدینے یهودیان دی۔ ددے د شانِ نزول په باره کی د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت شویدے چه رسول الله ﷺ کله د بدر د غزا نه مدینے منورے ته واپس راغلو نو د بنو قَیۡنُقَاعو په بازار کی ئے ټول یهودیان راجمع کړل او وے وئیل چه اے د یهودیانو ډلے !تاسو اسلام راوړئ مخکی ددے نه چه ستاسو هغه انجام شی کوم

چه د قریشو شو. نو هغوی اُوونیل چه ای محمده! ته پدې خبره دهوکه کی رانشې چه معمولی شان د جنګ نه ناخبره قریش دې قتل کړل او راغلې، که ستا زمونږ سره جنګ شو نو ته به پو هه شې چه مونږ کوم خلق یو، زمونږ په شان خلقو سره لا تر اُوسه ستاسو مقابله نهٔ ده راغلې، نو دا آیت نازل شو چه بدر ستاسو دپاره نخه او نمونه ده دغه شان به ذلیله شئ نو لږې ورځې پس هغوی وعده ماته کړه، رسول الله ﷺ ورپسې ورغلو او محاصره ئې کړل او د عبد الله بن ابی ابن سلول منافق په سوال او زارئ سره ئې پریخودل او د مدینې نه ئې اُوشړل نو الله ورسره دا وعده پوره کړه او دغه شان بنو قریظه قتل کړے شو او بنو نضیر جلا وطن کړے شو او خیبر فتح شو او باقی خلقو باندې جزیه کیخودے شوه۔

(۲) یا دا خطاب د مکې مشرکانو کافرانو ته دے، چه لکه څنګه چه تاسو په بدر کی مغلوبه او ذلیله شوئ نو آینده کی به هم دغه شان مغلوبه کیږئ، د الله د عذاب نه نشئ خلاصیدے۔

(۳) دریم قول دا دے چه په آیت کی عموم دے، هر قسم کفارو، یهودیانو، نصاراؤ او مشرکانو ته خطاب دے چه دا ټول د الله تعالیٰ دشمنان دی او همیشه به مغلوبه وی لیکن کله چه د کافرانو غلبه راشی نو دا د مؤمنانو نقصان وی چه دوی دین او صحیح عقیده او نیک اعمال پریخوستی وی او فسادونه ئې شروع کړی وی۔ که مؤمنان الله تعالیٰ ته صحیح توبه گارشی نو په اوله ورځ به فتح وی او هیڅ تاخیر به پکی نهٔ وی، لکه د صحابه کرامؓ تاریخ اُوګوره۔نو دا آیت په هره زمانه کی استعمالولے شی۔

**فائده:** قرآن کریم کی همیشه د کفارو سره د مغلوبیت وعده ده ﴿ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ﴾ (الانفال: ٣٦) ﴿فَالَّذِينَ كَفَرُوا هُمُ الْمَكِيدُونَ﴾ (الطور: ٤٢) خو پدې شرط چه ایمان والا به دعوت او جهاد جاری ساتی۔

﴿وَبِئْسَ الْمِهَادُ﴾ (۱) د مهاد یو معنیٰ ده فرش او ځای د آرام کولو۔(۲) دویمه معنیٰ دا ده: بِئْسَ مَا مَهَّدُوا لِأَنْفُسِهِمْ] ډیر بد دی هغه عملونه چه دوی ځان له تیار کړیدی۔

| قَدْ كَانَ لَكُمْ آيَةٌ فِي فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا فِئَةٌ تُقَاتِلُ |
|---|
| یقیناً شته ستاسو دپاره نخه په دوه ډلو کی چه مخامخ شوې، یوه ډله وه چه جنګ ئې کولو |
| فِي سَبِيلِ اللهِ وَأُخْرَىٰ كَافِرَةٌ يَرَوْنَهُمْ مِثْلَيْهِمْ رَأْيَ الْعَيْنِ وَاللهُ |
| په لاره د الله کی، او بله ډله کافره وه، لیدل دوی هغوی لره دوچنده په لیدلو د سترګو سره، اوالله |

يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ إِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّأُولِي الْأَبْصَارِ ﴿۱۳﴾

مضبوطوي په مدد خپل سره چا له چه وغواړي. یقیناً پدے کي عبرت دے دپاره د خاوندانو د عقلونو۔

**تفسیر**: پدے خطاب کي هم اختلاف دے (۱) دا خطاب یا ایمان والو ته دے چه اُوګورئ تاسو الله تعالیٰ په بدر کي سره د کموالي د وسلو او د شمار نه غالبه کړئ۔

(۲) یا خطاب دے د مدینے یهودیانو ته چه د بدر په غزا کي هر څه چه اُوشو ددے نه عبرت اخستل پکار وو او پدے پو هیدل پکار وو چه الله به خپل دین ضرور غالب کوي او د خپل رسول به ضرور مدد کوي۔ ظاهر دا ده چه دا خطاب کافرانو ته دے او د ایمان والو دپاره پدے کي عبرت پروت دے۔

قَدْ كَانَ : دا د مخکني آیت تتمه ده او د (قُلْ) نه لاندے داخله ده۔ او جواب د سؤال دے چه دا کافران خو ډیر قوي دے او د وسلو او د شمار نه پوره دي؟ نو الله تعالیٰ ددے نمونه او مثال راوړي چه په جنګِ بدر کي د مسلمانانو تعداد د کافرانو په مقابله کي ډیر کم وو لیکن د مسلمانانو رُعب او هیبت د هغوي په زړونو کي الله تعالیٰ اچولے وو، چه کافرانو ته مسلمانان خپل دوچنده په نظر راتلل۔

د ((فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ)) نه مراد د الله رسول ﷺ او صحابه کرامؓ دي، چه شمار ئے درے سوه دیارلس وو۔ او ددے نه د صحابه کرامؓ ډیر لوئي فضیلت ثابتیږي۔ چه دا یو داسے جماعت وو چه خالص د الله د دین د خاطره ئے جنګ کولو، د الله د طرف نه دا د هغوي د اخلاص او د کامل ایمان مضبوط شهادت دے۔ او د ((فئة اخرى)) نه مراد د قریشو مشرکان دي، چه د هغوي شمار یو زرو ته نزدے وو۔

د في سبيل الله لفظ د رسول الله ﷺ د سنت عام کولو، او قتال تولو ته شامل دے۔

﴿يَرَوْنَهُمْ مِّثْلَيْهِمْ رَأْيَ الْعَيْنِ﴾ پدے دواړو ضمیرونو کي دوه مطلبونه صحیح کیږي (۱) (يَرَوْنَ) کي ضمیر د جمع کافرانو ته او (هُمْ) ضمیر د مفعول مسلمانانو ته راجع دے یعني لیدل کافرانو مسلمانانو لره خپل دوچنده په ظاهري نظر کي او دا په ابتداء کي نهٔ وو بلکه په هغه وخت کي وو کله چه جنګ اُونختلو، مسلمانان ئے ډیر ښکاره کړل دے دپاره چه په کافرانو رعب راشي لکه داسے همیشه الله تعالیٰ کوي چه د کافرانو په زړونو کي الله تعالیٰ د مؤمنانو رعب اچوي۔ دے نه سوئ الله تعالیٰ د مسلمانانو مدد د ملائکو په ذریعه هم اُوکړو۔ او الله چه د کوم کار فیصله کړے وه همغه شان اُوشوه، یعني د کافرانو ډیره خون

خرابه اُوشوه اویا کسان پکی قتل شول۔
او سورة الانفال (٤٤) آیت کی دی ﴿وَيُقَلِّلُكُمْ فِىٓ أَعْيُنِهِمْ﴾ او تاسو ئے د هغوی په نظرونو کی کم ښکاره کړئ) نو دا په اوله کی الله تعالیٰ دواړه ډلے یو بل ته کم ښکاره کړیدی، دیے دپاره چه جنګ اُوشی ځکه که دواړه ئے یو بل ته ډیر ښکاره کړی وے نو بیا به جنګ نۀ وے شوے۔ ((رَأْىَ الْعَيْنِ)) ځکه وائی چه په حقیقت کی مسلمانان کم وو چه دریے سوه دیارلس وو او کافران زرو ته نزدیے وو خو په ظاهره کی کافرانو ته مسلمانان زیات ښکاره کیدل، دا د الله تعالیٰ مدد دیے، لکه روستو وائی (والله یؤید بنصره)۔
(۲) د (يَرَوْنَ) ضمیر مسلمانانو او (هُمْ) ضمیر کافرانو ته راجع دیے۔ یعنی لیدل مسلمانانو کافرانو لره دوچنده خپل په ظاهری نظر کی او ظاهر نظر ځکه وائی چه کافران په رشتیا په ظاهر کی ډیر وو لیکن د الله مدد ورسره نۀ وو نو غلبه ئے نشوه کولے پدیے وجه په ظاهره کی زیات وو په حقیقت کی کم وو او په حقیقت کی زیات هغه خلق وی چه غلبه اُوکړی۔ اوله معنیٰ ډیره ښکاره ده۔ ځکه په هغے کی ضمیر اقرب مذکور ته راجع کیږی۔
﴿وَاللَّهُ يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهِ مَنْ يَشَآءُ﴾ پدیے کی الله فرمائی چه دا قانون د الله تعالیٰ په یو ځای او یوه موقعه پوریے خاص نۀ دیے بلکه الله چه چا ته اُوغواړی د ظاهری اسبابو نه بغیر مدد کولے شی، لکه څنګه ئے چه په بدر کی د مسلمانانو مدد اُوکړو، پدیے واقعه کی د عقل او بصیرت والا خلقو دپاره پوره عبرت پروت دیے پدیے وجه اے کافرانو ! ددیے واقعے نه عبرت واخلئ اُوس هم موقعه شته د تکذیب او د انکار نه منع شئ او اسلام قبول کړئ ورنه الله تعالیٰ به مسلمانان په تاسو همدغسے غالبه کوی۔
دا تائید (مضبوطوالے) په یو څو طریقو سره وی (۱) اول د ملائکو په رالیږلو سره (۲) دویم : د کافرانو په زړونو کی رعب اچولو سره (۳) دریم : د مؤمنانو په زړونو کی په بهادریٔ پیدا کولو سره۔ (٤) او تفسیر مواهب کی دی چه عامه معنیٰ هم مراده ده چه الله تعالیٰ بعض خلقو لره مضبوطوی په اتباع د سنت او د بدعت نه په ډډۀ کیدو سره۔ (۵) د دین په بیانولو کی الله تعالیٰ بعض خلقو سره مدد کوی چه استعدادونه ورله راښکاره کړی او د دین لوئی لوئی کارونه تریے واخلی۔ او حق د هغه په خوله او مجاهده باندیے غالبه کړی۔ اشاره ده دیے ته چه د الله په مدد یقین کول او د هغه نه مدد غوختل پکار دی۔
یؤید : ای من غیر توسیط الاسباب العادیة۔ (ابو السعود) یعنی الله مضبوطول کوی په

غیر د واسطے د عادی اسبابو نه۔ یعنی غیبی مددونه رالیږی۔
لَعِبْرَةً : دا د فِعْلَة وزن دے د عبور نه دے، تیریدو ته وائی او مراد پدے سره اتعاظ (نصیحت اخستل) دی ځکه چه دا هم یو قسم دے د عبور نه۔ (ابو السعودؒ)
الْأَبْصَارِ : جمع د بَصَر هم ده۔ ظاهری سترګو ته وائی۔ او جمع د بصیرت هم ده، چه د زړه سترګو ته وئیلے شی یعنی عقلمندی۔ او دلته همدا مراد دے۔
لاولی الابصار : اَیْ لِذَوِی الْعُقُوْلِ وَالْبَصَائِرِ۔ (د عقلونو او بصیرت والو دپاره)۔
۲ – وَقِیْلَ لِمَنْ اَبْصَرَهُمْ۔ (ابو السعود) یعنی د هغه چا دپاره عبرت دے چه دغه مخکنو خلکو ته وګوری۔

| زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِيْنَ وَالْقَنَاطِيْرِ |
|---|
| ښائسته کړے شوے دے خلقو ته محبت د خواهشاتو د زنانو نه او د ځامنو نه او د خزانو |
| الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ، ذٰلِكَ |
| جمع کړے شوو د سرو او د سپینو او د اسونو نښاندارو نه او د چارپیانو نه او د فصل نه، دا |
| مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ ﴿۱۴﴾ |
| فائدے د ژوند دنیوی دی او د الله تعالیٰ سره ښائسته ځای د واپسئ دے۔ |

**تفسیر** : مناسبت دا دے : مخکی بیان شو چه د کافرانو به ټول دنیاوی قوت او اسباب په کار نهٔ راځی۔ اُوس ددے دنیا او ددے د خوندونو د سپك ښکاره کولو دپاره خلقو ته د الله د جنت د حاصلولو ترغیب ورکولے شی، ځکه چه انسانان چه د الله په آیتونو کفر کوی پدے وجه چه دنیا لوئی څیز ګنړی۔

## زهد څه ته وائی؟

نو پدے آیت کی تزهید فی الدنیا۔ (د دنیا بے رغبتی) ده۔ تزهید د زهد نه دے۔ دا لفظ به مونږ د آیتونو په عنوانانو کی زیات استعمالوو ددے بعض تشریح داسے ده چه زهد معنیٰ ده بے رغبتی، بے محبتی۔ ددے مقابل کی ورع لفظ استعمالیږی۔ ورع دیته وائی تَرْكُ مَا يَضُرُّ فِى الْآخِرَةِ۔ (هغه څیز پریخودل چه هغه په آخرت کی ضرر ورکوی) یعنی حرام او شبهات پریخودل۔ او زهد وائی : تَرْكُ مَا لَا يَنْفَعُ فِى الْآخِرَةِ۔ (هغه څیز پریخودل چه په آخرت کی فائده نهٔ ورکوی) یعنی مباح څیزونه پریخودل۔

○ بعض وائي : زهد کې زاء هاء، دال کې اشاره ده ددې معنې ته. زاء کې اشاره ده زينت ته، او هاء کې هوئ (خواهش) ته او په دال کې دنيا ته. يعني زهد دا دې چه انسان بې ځايه دولونه پريدي او خواهشات قربان کړي او دنيا پريدي، يعني د آخرت په مقابله کې ئې دنيا پريخوستې وي، او دنيا په آخرت باندې نهٔ غوره کوي، د دين کارونه د دنيا د سامان او فائدو د وجه نه نهٔ پريدي، د الله حکم نهٔ ماتوي. ورنه دنيا خو هرچا ته خوښه ده.

زهد بيا ډير قسمه دې : بعض اوقاتو کې زهد د استحباب درجه کې وي او بعض اوقاتو کې لازم وي. پدې وجه انسان کامل زاهد په هغه وخت جوړيږي چه د زهد شپږ مقامات دې او هغه ټول اختيار کړي، کله انسان په يو شي کې زاهد وي او په بل کې نهٔ وي چه هغه مقامات د زهد دا دي :

(۱) زهد کله متعلق کيږي د مال سره. په مال کې بې رغبتي دا ده چه د حلال ځاى نه کتهل او د حرام کسب نه ځان ساتل، دروغ نهٔ ونيل، دين پرې نهٔ خرابول. (۲) زهد في الصور. د مخلوقاتو شکلونو کې بې رغبتي کول لکه د زنانه، د مشرانو، د دنيا د ځايونو، تصويرونو کې مينه نهٔ کول. يعني د مخلوق شکل پريخودل د الله د محبت د وجه نه. ډير خلق د ښځې او د دوستانو د شکلونو په محبت کې ننوځي نو د الله حکم پرې ماتوي.

(۳) زهد في الرياسة : د مشرئ سره مينه نهٔ کول. لکه بادشاهي، ناظمي، مديريت، ګورنري، د علاقې کونسلري. ځان هر ځاى کې نيغ نيغ نکول. علماء فرمائي : کله چه مشران علماء موجود وي نو د هغوي په مخکې ځان نيغ نيغ کول او منبرونو ته ختل دا هم پدې کې داخليږي، کله چه دهٔ ته دومره ضرورت نهٔ وي.

(٤) زهد في النفس : د خپل نفس سره مينه نهٔ کول. يعني خپل راحت، عزت او خدمت د الله دپاره قربانول. او بهادري کول د الله په لاره کښې.

(۵) زهد في الناس : خلقو کې بې رغبتي دا ده چه د هغوي سره دومره ګډون او ناسته پاسته نکوي چه د الله بندګي ترې پاتې شي، او يواځې تنکيږي هميشه ئې ژوند په ګپ شپ د خلقو کې تيريږي. (٦) زهد في کل ما دون الله. هر شې چه د الله نه سوئ دي په هغې کې بې رغبته کيدل.

چا کې دا ټول زهدونه وي او چا کې بعض وي او بعض نهٔ وي.

بيا د بهادرانو زهد په نفس کې وي چه د الله دپاره ځان قربان کړي. او د علماؤ او حکامو زهد په ثناء او صفت کولو کې دې چه د دين کار کوي نو د خلقو نه صفتونه نهٔ غواړي.

بیا دا زده کړه چه زهد دیته نهٔ وائی چه یو انسان مال او پیسے نهٔ ګټی او حلال څیزونه نهٔ استعمالوی، حلالونه حرام جوړ کړی، غوښے، او ښو جامو او خوراکونو نه ځان ساتی۔ دا زهد نهٔ دے۔ بلکه ښه تعریف د زهد دا دے (چه دا د ترمذی (۲۳٤۰) په روایت کی ذکر دے او د ابو ادریس الخولانیؒ نه منقول دے او مرفوع حدیث نهٔ دے) : [أَنْ تَكُوْنَ بِمَا فِيْ يَدِ اللّٰهِ أَوْثَقَ مِنْكَ بِمَا فِيْ يَدِكَ وَأَنْ تَكُوْنَ فِيْ ثَوَابِ الْمُصِيْبَةِ إِذَا أُصِبْتَ بِهَا أَرْغَبُ مِنْكَ فِيْهَا لَوْ أَنَّهَا بَقِيَتْ لَكَ] (د الله په خزانو ډیر اعتماد کول په نسبت د هغے چه ستا په لاس کی دے، او د مصیبت په ثواب کی ډیره مینه لرے ددے نه چه دا مصیبت تا ته باقی پاتے شی) یعنی انسان ته مصیبت اُورسیږی او په هغے کی اجر دے نو دا خوښوی چه دا مصیبت دِے په ما باندے باقی وی خو چه زما ګناهونه پرے اُورژیږی۔ (دا تعریف حافظ ابن القیمؒ په طریق الهجرتین ص (۳۸۲) او مدارج السالکین (۱٤/۲) کی ذکر کړیدے)۔

زُيِّنَ : صیغه د مجهول ده، فاعل ئے الله تعالیٰ دے ځکه چه الله تعالیٰ دا څیزونه پیدا کړیدی او ددے خواهشاتو په پیدائش کی همیشه امتحان دے چه څوك دا څیزونه غوره کوی او څوك روستنی آیت کی ذکر شوی صفات ؟۔

دا شپږ څیزونه حلال دی لیکن ددے په ذکر کولو کی حکمت دا دے چه زهد په هغه څیزونو کی کیږی چه حلال وی او هرچه حرام دی نو د هغے نه خو ځان ساتل فرض او لازم دی۔ نو دلته الله تعالیٰ دا بیانوی چه بندګان ددے څیزونو پسے روان شویدی او حقیقی شے د دوی نه پاتے شویدے او دا په دوی باندے امتحان دے او عام خلق پدے کی پیل شویدی۔ لکه بل آیت کی دی : ﴿إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْأَرْضِ زِيْنَةً لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا﴾ [الکهف:۸] ما په زمکه باندے څیزونه د ډول دپاره پدے وجه پیدا کړیدی چه په بندګانو امتحان اُوکړم چه څوك د دوی نه ډیر ښائسته عمل کونکے دے)۔ نو آیت کی دعوت دے چه تاسو دا څیزونه د ضرورت مطابق استعمال کړئ او په آخرت باندے ئے مهٔ غوره کوئ۔ که یو انسان پدے څیزونو کی د اعتدال او د شریعت د دائرے نه بهر نشی نو ددے استعمال منع نهٔ دے، نبی ﷺ فرمائی : (حُبِّبَ إِلَيَّ مِنَ الدُّنْيَا النِّسَاءُ وَالطِّيْبُ) (مسند احمد :۱۲۳۱۵ والنسائی : ۳۹۳۹ وسنده صحیح– البانی)۔ ما ته په دنیا کی ښځے او خوشبوئی خوښه ده۔ دغه شان نبی ﷺ نیکه ښځه د دنیا د ټولو نه غوره متاع (د فائدے څیز) ګرځولے دے۔ [اَلدُّنْيَا مَتَاعٌ وَخَيْرُ مَتَاعِ الدُّنْيَا الْمَرْأَةُ الصَّالِحَةُ] (صحیح مسلم : ۳۷۱٦)

نو د ښځے محبت د شریعت په دائره کی دننه غوره ژوند هم دے او د آخرت توښه هم ده،

ورنه ښځه د انسان دپاره لويه فتنه هم ده.

○ يا دا ښانست شيطان كړيدے چه هغه بنده ته وسوسه اچوی چه ښځے ورته مخے ته كوی او د خامنو مينه اوپه هغے باندے فخر كول اوپه خزانو او سورلو او چارپيانو او فصلونو سره ځان لونی گنړل، او د هغے سره محبت كول او عبادات پريخودل.

الشَّهَوَاتِ : جمع د شَهْوَةٌ ده، په معنیٰ د مشتهياتو سره دا هر هغه شے دے چه طبيعت هغے ته مائله كيږی، او بنده ئے خوښوی او شوق ئے ورته كيږی. مشتهياتو ته ئے تعبير په شهواتو سره وكړو دپاره د مبالغے پدے كی اشاره ده چه نفس ددے څيزونو دومره سخته تقاضا كوی گويا كی دا عين شهوات گرځيدلی دی. (المنار)

شهوات ئے جمع راوړه ځكه چه پدے څيزونو كی ډير شهوات دی. د زنانو سره په خبرو، كتلو، ملاويدو، په وادهٔ او ناسته پاسته كی شهوات دی. په خامنو كی هم ډير شهوات دی چه د خامنو غوختل، د خامنو مينه، هغه په غيرو كی اخستل راخستل، په هغے باندے د لويو مرتبو او الله نه غافله كيدل، او د بچو په وجه د الله حكمونه ماتول.

((حب الشهوات)) كی دے ته اشاره ده چه انسان د خپلو شهوتونو سره ړوند محبت كوی، حال دا چه دا شهوتونه چه كله د اعتدال د حد نه زياتيږی نو د حكمت او د پوهے والو په نيز د سپكوالی قابل كيږی او ددے غلام چارپيانو ته نږدے كيږی. امام بخاریؒ روايت نقل كوی چه رسول الله ﷺ اوفرمايل (مَا تَرَكْتُ بَعْدِیْ فِتْنَةً أَضَرَّ عَلَى الرِّجَالِ مِنَ النِّسَاءِ) چه ما د خپل ځان نه روستو د سړو دپاره د ښځو نه زيات نقصان وركونكے بله فتنه نهٔ ده پريخودے. (بخاری: ٥٠٩٦)

او الله په قرآن كريم كی فرمايلی دی: ﴿ إِنَّ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ وَأَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَاحْذَرُوهُمْ ﴾ يعنی ستاسو بعض بيبيانے او اولاد ستاسو دشمنان دی، تاسو د دوی نه بچ شئ). (التغابن : ١٤) او فرمايلی ئے دی: ﴿ كَلَّا إِنَّ الْإِنسَانَ لَيَطْغَىٰ أَن رَّآهُ اسْتَغْنَىٰ ﴾ يعنی انسان سركشی كوی كله چه دا په خپلو دولتونو كی ځان راگير وينی. (العلق :٦/٧).

الْقَنَاطِيرِ : جمع د قنطار ده، چه د قَنْطَرَةٌ نه اخستے شويدے، قنطره پُل ته وائی چه سړے پرے د سيند د يو بے غاړے نه بلے غاړے ته تيريږی نو قنطار ډير مال او خزانے ته وائی چه په هغے باندے ښه فراخه ژوند تيريږی. (مفردات الراغب ص ٤٢٢) بعض ئے اندازه دولس زره درهمه، او ځينی اويا زره او څوك اتيا زره درهمه بيانوی. ټول اقوال پكی يوولسو ته رسيږی چه هغه تفسير زاد المسير (٣٠٧/١) كی ابن الجوزیؒ ذكر كړيدی مگر صحيح

خبره دا ده چه قنطار ډیر مال ته وائی او څه تحدید له په کی اعتبار نشته۔

اَلْمُقَنْطَرَةِ : یعنی جمع کړے شوی۔ مال ګټل منع نهٔ دی لیکن د مال په وجه انسان د الله او د هغه د بندګئ نه اوړی، ټول اوقات د انسان د مال په ګټلو ضائع کیږی لکه نن صبا زمانه کی سوچ اُوکړه۔ ذهب او فضه ئے خاص کړل ځکه چه دے کی فائدے ډیرے دی او بل دا اصول الاموال دی، نور مالونه دے ته راجع کیږی۔ دا چه کوم نفس سره وی د هغه خلق اکرام کوی، کوم مجلس ته چه راشی اکرام ئے کیږی۔

د مال او دولت د ګټلو نه مقصد ژوند تیریدل، صله رحمی، صدقه او خیرات او د خیر په ځایونو کی خرچ کول او پدے سره د سوال نه بچ کیدل دی نو پدے سره به د الله رضا حاصلیږی که داسے مقصد پکی نهٔ وی نو بیا به بربادی وی۔ د انسانانو عام ژوند د مال په ګټلو او حسابونو کی تیر شو۔

وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ : هغه اسونه چه نشاندار وی، نخے پرے لګولے شوی وی۔ برګ بروګ، دا هم پکی داخلیږی چه نکریزے پرے لګولے شوی وی۔

او امام بخاریؒ ئے معنیٰ کوی : اَلْمُطَهَّمَةُ الْحِسَانُ۔ مزیدار ډکو اندامونو والا اُوږده ښائسته اسونه۔ یا مسومه د سَوْم نه دے، مراد څریدونکی۔ په دے زمانه کی مزیدار ګاړی پکی داخل دی۔ د اسونو نه اصلی مقصد د جهاد تیاری ده۔

وَالْاَنْعَامِ : د چارپیانو اخستل، د هغے څرول، د هغے نه فائدے اخستل انسان غافله کوی، ددے ډیروالے هم نقصان دے۔ که د حیواناتو نه د کروندے او بار وړلو فائده واخستل شی نو دا جائز کار دے، البته د غفلت سبب به ئے نهٔ جوړه وی۔

وَالْحَرْثِ : د زمکو تجارت، د زمکے کرل او سنبالول چه دا انسان ډیر غافله کوی۔ نبی ﷺ یو څل ایوه او جغ اُولیدل نو وے فرمایل چه دا څیزونه کوم کورته داخل شی نو هغے ته ذلت داخلیږی۔ (بخاری : ۲۳۲۱ کتاب المزارعة) یعنی غالباً پدے کار سره بنده د دین د کارونو نه مشغوله کیږی۔ د زمکے نه پیداوار حاصلول صحیح دی لیکن که ددے څیزونو نه مقصد صرف دنیا ګټل او بیا په هغے باندے فخر او غرور کول او د الله د یاد نه غفلت سره عیش او عشرت سره ژوند تیرول وی نو دا ټول د انسان دپاره وبال جوړیږی۔

**فائده** : دا ترتیب فطری دے ځکه چه انسان چه کله ځوانئ ته اُورسی نو د ښځو سره ئے مینه وی، ټول فکر ئے پدے کی مصروف وی بیا چه کله وادهٔ اُوکړی نو د بچو طلبګار وی بیا د بچو د پرورش دپاره د مال (سرهٔ او سپینو) په راجمع کولو کی لګیا شی، بیا وائی چه د

دوی دپاره د اسونو، ګاډو موټرو ته هم ضرورت دے، بیا وائی چه چارپیان پیدا کول پکار دی دے دپاره چه پئ وغیره خوراکونه کور کی ملاوېږی او بیا ددے څیزونو دپاره د فصلونو او د زمکو په اخستو کی لګیا شی، آخر دا چه عمرئے پدے کی ختم شی۔

مَتَاع : دے ته متاع ځکه وائی چه ددے ټولو څیزونو نه لږه زمانه فائده اخستے کیږی او بیرته ختمیږی۔

حُسْنُ الْمَآبِ : مآب مرجع (ځای د رجوع) ته وائی مراد ترینه جنت دے۔ د الله جنت پدے وجه ښائسته مرجع دے چه د هغے په خواهشاتو کی نقصان او تکلیف نشته او د دنیا په خواهشاتو حاصلولو کی ټول مشقتونه دی۔ دارنګه هغه نهٔ فنا کیږی او نهٔ کمیږی۔

او بله دا چه په هغه خواهشاتو کی د الله تعالیٰ رضا ورسره ملګرے ده، په خلاف د دنیاوی شهواتو لکه روستو آیت کی راځی۔ نو مطلب د آیت دا شو چه د حسن المآب طلب وکړئ او په متاع باندے ځان مهٔ مشغوله کوئ بلکه صرف دومره قدر فائده ترے واخلئ چه تاسو پرے آخرت ته ورسیږئ او د جنت د ګټلو ذریعه مو شی۔

**فائده** : په دنیا کی زهد ددے دپاره وی چه انسان بندګئ ته وزګار شی، چه کله بندګی نهٔ وی، بیا زهد ته هیڅ حاجت نشته، که یو شخص د مال او د زنانو سره محبت نهٔ لری لیکن د الله د بندګئ نه غافل دے دا زاهد نهٔ دے بلکه عاطل (بیکاره) دے۔

| قُلْ أَؤُنَبِّئُكُم بِخَيْرٍ مِّن ذَٰلِكُمْ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا |
|---|
| اووایه !آیا خبر درکړم تاسو ته په غوره ددے څیزونو نه دپاره د هغه کسانو چه تقویٰ ئے کړیده |
| عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا |
| په نیز د رب د دوی جنتونه دی چه بهیږی به لاندے د هغے نه نهرونه همیشه به وی په هغے کی |
| وَأَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ﴿١٥﴾ |
| او بیبیانی پاکی ساتلے شوے او رضامنتیا د طرفه د الله نه او الله لیدونکے دے بندګانو لره۔ |

**تفسیر** : **مناسبت** : ۱– د دنیا او د آخرت تقابل بیانوی۔

۲– مخکی ئے د دنیا حقارت (سپکاوے) بیان کړو نو اُوس د آخرت د نعمتونو عظمت بیانوی دے دپاره چه ترغیب او تزهید کامل شی۔

عنوان د آیت : پدے آیت کی مؤمنانو ته د جنت زیرے ورکوی چه د آخرت نعمتونه د دنیا

د نعمتونو نه په ډیرو چندونو غوره دی د هغې دپاره تیارے کول پکار دی په تقویٰ او روستو صفاتو سره۔

لِلَّذِيْنَ : دا متعلق دے په (خیر) پورے۔ او (جنات) استیناف دے، د (خیر) دپاره بیان واقع شویدے۔ یعنی هغه خیر جنتونه دی۔ یا دا چه (للذین) خبر مقدم دے او (جنات) ئے مبتداء مؤخره ده۔ یعنی آیا تاسو ته ددے نه په غوره څیز خبر نهٔ درکوم هغه دا ده چه "دپاره د متقیانو جنتونه دی" الخ۔

اتَّقَوْا : یعنی ځان ئے د شرك او كفر او گناهونو نه ساتلے دے۔

عِنْدَ رَبِّهِمْ: دا حال مقدم دے د جنات نه۔ یعنی جنتونه به پداسے حال کی وی چه د دوی د رب سره به نزدے وی۔ یعنی د الله قرب به ورته نصیب وی۔ یا متعلق دے د (خیر) پورے یعنی دا جنتونه غوره دی په نیز د رب د دوی۔ چه عظیم ذات ورته غوره وائی نو ولے به غوره نهٔ وی ؟۔

بیا ددے زیرے تاکید په اوو (۷) طریقو سره شویدے۔ اول : خَيْرٌ، دویم عِنْدَ رَبِّهِمْ، دریم جَنَّاتٍ، څلورم تَجْرِيْ، پنځم خَالِدِيْنَ فِيْهَا ۔ شپږم وَأَزْوَاجٌ مُطَهَّرَة ۔ چه ددے تشریح په سورتِ بقره آیت (۲۵) کی تیره شویده)۔ اووم : وَرِضْوَانٌ مِنَ اللهِ چه د الله رضا به دوی ته حاصله وی۔

وَرِضْوَانٌ مِنَ اللهِ : دا ئے جدا ذکر کړو دا مبتدا ده خبر ئے پټ دے یعنی (لهم رضوان)۔ رضوان ئے نکره ذکر کړه پدے کی عظمت ته اشاره ده۔ دا د مخکنو ټولو نعمتونو نه لوئی نعمت دے چه مالكِ حقیقی د بندگانو نه د خپلے رضا اعلان اُوکړی لکه په حدیث د بخاری او مسلم کی دی چه کله جنتیان جنت ته داخل شی نو الله تعالیٰ به ورته اُوفرمائی: (أَلَا أُعْطِيْكُمْ أَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ؟ فَيَقُوْلُوْنَ :يَا رَبِّ وَأَيُّ شَيْءٍ أَفْضَلُ مِنْ ذٰلِكَ) آیا تاسو ته د ټولو نعمتونو نه غوره نعمت نهٔ درکوم؟ نو دوی به اُووائی اے ربه ! ددے نه لا غوره نعمت کوم دے؟ نو الله تعالیٰ به اُوفرمائی : (أُحِلُّ عَلَيْكُمْ رِضْوَانِيْ فَلَا أَسْخَطُ عَلَيْكُمْ بَعْدَهُ أَبَدًا) چه زهٔ به نن ورځ په تاسو خپله رضا نازله کړم او هیڅکله به په تاسو نهٔ غصه کیږم۔ (بخاری۷۵۱۸)

دغسے زیرے په سورة التوبه (۲۱) او (۷۲) او سورة حدید (۲۰) آیت کی راغلی دے۔

وَاللهُ بَصِيْرٌ بِالْعِبَادِ: یعنی بصیر د بندگانو عملونه وینی چه څوك لائق دے او څوك نهٔ دے۔

| الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا إِنَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا |
| --- |
| (دا) هغه کسان دی چه وائی اے ربه زمونږه! یقیناً مونږ ایمان راوړیدے، نو اُوبخه مونږ ته گناهونه زمونږ |

وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿١٦﴾ اَلصّٰبِرِيْنَ وَالصّٰدِقِيْنَ وَالْقٰنِتِيْنَ

او وساته مونږ د عذاب د اُور نه. چه صبر کونکی دی، او رښتینی دی او تابعداری کونکی

وَالْمُنْفِقِيْنَ وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ بِالْاَسْحَارِ ﴿١٧﴾

او خرچ کونکی دی او بخنه غوښتونکی دی په وخت د پیشمنی کی.

**تفسير** : دا بدل دے د (اَلْعِبَادِ) نه او پدے کی د تقویٰ والو صفتونه ذکر کیږی. یا خبر دے د مبتداء (ای هُم الذین). (دوی هغه کسان دی) پدے کی ایمان وسیله جوړوی دپاره د بخنے د گناهونو. او دا آیت دلیل دے چه ایمان غوره وسیله ده چه انسان ئے په خپله دعا کی پیش کوی او د گناهونو بخنه د ټولو نه اهم شے دے پدے وجه ئے دا طلب کړه او د جهنم نه پناهی غوښتل هم ډیر ضروری دی.

**فائده** : دا ترتیب ډیر مفید دے، چه اول ئے ایمان، بیا غفران الذنوب او بیا د اُور نه خان ساتل ذکر کړل او پدے کی تعریض دے په یهود او نصاراو چه په هغوی کی دا صفات نشته، صرف دعوے والا دی.

اَلصّٰبِرِيْنَ : منصوب دے په فعل (اَیْ اَمْدَحُ الصّٰبِرِيْنَ). زۀ صفت کوم د هغه کسانو چه صبر کونکی دی. یا بدل دے (الذین) نه. یعنی دا هغه خلق دی چه صبر د دوی لازمی صفت دے، په هر څه کی صبر کوی، که عبادت وی، که تکلیف او مصیبت وی او که جنګ او قتال وی.

وَالصّٰدِقِيْنَ : یعنی د دوی په وینا او عمل کی همیشه رښتیا وی. او په ظاهر او باطن کی رښتونی، په خبرو کی هم او د زړۀ په ارادو کی هم. نو صدق د قول او عمل او نیت او عقیدے صفت دے نو دوی پدے ټولو شیانو کی رښتینی دی.

وَالْقٰنِتِيْنَ : قنوت: دَوَامُ الطَّاعَةِ مَعَ مُصَاحَبَةِ الْخُشُوْعِ وَالْخُضُوْعِ ته وائی، (تیسیر الکریم الرحمن). یعنی چه انسان د الله په طاعت، عبادت او بندګئ باندے همیشه اُوسیدونکے وی او خضوع او خشوع ورسره ملګرے وی. په هر حالت کی دوی د الله بندګی او طاعت کوی په عاجزئ سره. او پدے کی د شپے عبادت هم داخل دے لکه په حدیث کی دی چه څوک د شپے سل آیتونه اُولولی نو هغه به د قانتینو نه حساب شی. (ابوداود: ١٤٠٠)

وَالْمُنْفِقِيْنَ : یعنی مالونه د الله په لاره کی او د هغه د دین د خاطره لګوی.

وَالْمُسْتَغْفِرِیْنَ بِالْاَسْحَارِ : اسحار جمع د سحر ده. د پیشمنی وخت ته وائی چه لا صبا نۀ وی راختلے۔ ددے یو مطلب دا دے چه دوی د شپے په آخری حصه کی د الله بندگی کوی او بیا د الله نه د گناهونو بخنه غواړی۔

**فائده** : استغفار ولے غواړی؟ ځکه چه دوی د الله تعالیٰ قدر پیژنی، بلکه دا چه په خپلو عباداتو کی ورته کوتاهی ښکار ځکه چه د الله تعالیٰ د شان موافق عبادت کول گران وی، دا وجه ده چه شریعت کی غالباً د هر عبادت نه روسته استغفار خودل شویدے۔

او سحر وخت ئے خاص کړو پدے کی اشاره ده چه دا مهم وخت دے او دوی پکی غفلت نۀ کوی بلکه د الله نه دعاگانے غواړی ځکه چه د دعاگانو د قبلیدو وخت دے۔ علامه قاسمیؒ وائی : د مُسْتَغْفِرِیْنَ بِالْاَسْحَارِ نه مراد دا دے :(اَلْمُصَلِّیْنَ صَلَاةَ الصُّبْحِ) چه دوی د سحر مونځ کوی۔

| شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَاُولُوا الْعِلْمِ |
|---|
| گواهی کړیده الله چه نشته حقدار د بندگئ سوا د هغه نه او ملائکو هم، او خاوندانو د علم هم، |
| قَآئِمًا بِالْقِسْطِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ ﴿۱۸﴾ |
| په داسے حال کی چه (الله) ولاړ دے په انصاف، نشته حقدار د بندگئ سوا د هغه نه غالبه، حکمتونو والا دے۔ |

**تفسیر : – مضمون** : په راتلونکو آیتونو کی بیان د توحید د الله تعالیٰ دے په دلائلو سره۔ بیا ترغیب دے اسلام ته چه په اسلام باندے تلل دا صحیح دین دے، نو دے له غاړهٔ ورکړئ۔ او د اهل کتابو یے اسلامی بیانوی چه دوی اسلام والا نۀ دی۔ بیا دعوت دے اسلام طرف ته، بعض وائی پدے کی مناظره ده په باب د اسلام کی۔ بیا (ان الذین یکفرون) کی هغه کسانو ته تخویف او یره ورکوی چه د الله په آیتونو کفر کوی او ددے سره ئے نور مرضونه د دوی ذکر کړیدی چه هغه قتل د انبیاؤ او د حق داعیانو دے۔ بیا په (۲۳) آیت کی اهل کتابو ته توبیخ ورکوی چه دوی د الله کتاب حاکم نۀ گرځوی، په هغے باندے فیصلے نۀ کوی۔ (نو دوی اعراض ځکه کوی چه ایمان پرے نۀ لری کفر ئے کړیدے۔) او ددے وجه بیانوی چه د الله کتاب له ځکه نۀ راځی چه دوی عقیده غلطه جوړه کړیده چه د ځان دپاره د جنت دعویدار دی نو د الله کتاب ته خپل ضرورت نۀ گنړی۔ بیا تخویف د آخرت ذکر کوی۔ بیا (قل اللهم) کی د الله تعالیٰ تعارف بیانوی چه دا خلق په الله کفر کوی نو

تاسو الله اُوپیژنئ. بیا منع ده د دوستانې د کافرانو نه په (۲۸ او ۲۹) آیت کې، بیا د آخرت تخویف بیانوي چه نیك او بد عمل تول به قیامت کې حاضریږي. بیا په (۳۱) کې د اتباع الرسول او د رسول د رشتینوالی بیان دے، چه الله رب العالمین ته انسان نشي رسیدلے ترڅو چه ددے نبي اتباع ئے نهٔ وي کړي.

په (شَهِدَ اللہ) کې د الله د توحید بیان دے په دلیلونو سره چه په توحید باندے الله او ملائك او علماء ګواه دي نو دا مسئله ډیره لویه ده.

(شَهِدَ اللہ) دیته اَعْظَمُ شَهَادَةٍ فِيْ كِتَابِ اللهِ ونیلے شي. یعنی د الله په کتاب کې ډیره لویه ګواهي دا ده، ددے نه لویه ګواهي بله نشته. نو الله ته توحید ډیر قیمتي دے. څه یهودیانو د رسول الله ﷺ نه د لوئی ګواهئ تپوس اُوکړو نو رسول الله ﷺ دا جواب ورکړو نو هغوی ایمان راوړو. نو لویه ګواهي دا ده چه د الله نه سوئ بل هیڅوك لائق د بندګئ اُونهٔ ګنړلے شي. (معالم التنزیل والبحر المحیط) (والحدیث من روایة الکلبی وهو متهم بالکذب)

د شهادت معنیٰ د فیصلے، د بیان، د پوهے او د ګواهئ ده. او تولے معاني دلته صحیح دي.

یعنی الله دا فیصله کړیده په آسمانونو او زمکه کښې. او الله دا بیان کړیدے او هغه ګواهي ورکړیده او هغه پدے خبره پوهه دے چه نشته حقدار د بندګئ سوئ د الله نه.

یعنی الله تعالیٰ چه څه پیدا کړي او څه ئے بیان کړي د هغے په ذریعه سره الله تعالیٰ خپل وحدانیت طرف ته رهنمائي کړیده. (فتح القدیر)

او پدے کې ضمناً رد دے په نصاراؤ باندے چه هغوی عیسیٰ علیه السلام او د هغه مور د الله سره شریکان کړي وو، چه دوي د الله او د ملائکو او د علماؤ د ګواهئ خلاف ګواهي ورکړیده.

هر مشرك د الله تعالیٰ او د ملائکو او د حق پرستو علماؤ دشمن دے، د هغوی نه خلاف کوي. څوك چه وائي د فلاني ولي او بزرګ نه او پیغمبر نه کیږي نو دا د الله د توحید منکر دے.

**مناسبت**: ۱- د موضوع د سورت سره ئے تعلق دادے چه الله پاك پدے کې په کفر کولو تهدید (دهمکي) ورکوي نو د کفر انواع بیانوي نو یو نوع د کفر د الله د توحید نه انکار دے نو پدے آیت کې په دغه نوع د کفر باندے رد دے. ۲- دویم: د (اننا آمنا) سره ئے تعلق دے. یعنی دغه ایمان دا دے چه ته د توحید ګواهي وکړے.

۳– دارنګه د (الصادقین) سره هم تعلق لري چه د توحید شهادت کول بعینه صدق (رشتیا) ده نو څوك چه دا ګواهي نهٔ ورکوي هغه دروغژن دے۔

**فوائد الآیة** : (۱) الله خپل ځان مخکې ذکر کړو (اشارةٌ الیٰ غناهٗ مِنْ تَوْحِیْدِ الْعِبَادِ) اشاره ده چه الله د بندګانو د توحید نه بے حاجته دے که څوك ګواهي ورکوي او که نهٔ خو الله تعالیٰ ئے د خپل ځان دپاره ورکوي. دویم نمبر ئے د ملائکو ګواهي ذکر کړه ځکه چه د دوی ایمان او توحید په دلیلونو سره نهٔ دے حاصل بلکه د هغوی توحید فطري دے، تجلی الٰهي ورته شویده نو توحید ئے قبول کړیدے۔ او دریم نمبر ئے بندګان ذکر کړل ځکه چه د دوی توحید په دلیلونو کې د کتلو په ذریعه سره حاصل دے۔ (۲) او بله وجه دا ده چه ملائك په دغه توحید کې د الله تعالیٰ او د بندګانو ترمینځ واسطه ده۔

(۳) او پدے کې فضیلت او عظمت د علم دے په بلیغه طریقه سره چه الله تعالیٰ د خپل ځان سره په ګواهئ کې علماء شریك کړ۔ (٤) او الله تعالیٰ د علماؤ ګواهي د مشرکانو په خلاف باندے حجت او دلیل اُوګرځولو ځکه چه علماء په خلقو حجت وي۔

دلته د علماؤ نه مراد هغه خلق دي چه په الله تعالیٰ باندے عالمان وي، د الله تعالیٰ نه او د هغه د بندګئ نه خبر وي، په کتاب او سنت باندے علم لري۔ (فتح القدیر)۔ لنډه دا چه د الله رب العالمین معرفت لري۔

قَآئِمًا ۢ بِالْقِسْطِ : دا حال دے د لفظ د (الله) نه۔ او د قیام نه مراد مضبوط کیدل دي یعنی پدے خبره کلك ولاړ دے۔ د قسط نه مراد د انصاف خبره ده چه هغه توحید دے۔ بالقسط لفظ ئے ځکه ذکر کړو چه کله یو انسان په یوه خبره کلك ولاړ وي خو په ظلم باندے وي نو الله فرمائي چه زهٔ پدے اُودریدو کې په عدل او انصاف یم، ځکه چه دا ټول مخلوق د الله تعالیٰ محتاج بندګان دي نو هغه څنګه حقدار د بندګئ جوړ شي؟!۔

لَآ اِلٰـهَ اِلَّا هُوَ : دا ئے دوباره ذکر کړو (۱) پدے کې اشاره ده عظمت ددے کلمے ته۔ (۲) ترغیب دے چه ددے کلمے ذکر ډیر پکار دے۔ (۳) مخکې په طریقه د تنزیه (پاکئ) سره ذکر دے او روستو په صفاتو د تمجید او شرافت سره ځکه ئے ورسره العزیز الحکیم ذکر کړل۔ (٤) اول کې په طریقه د دعوے سره وو او روستو په طریقه د نتیجے سره ذکر دے۔

(الْعَزِیْزُ) کې اشاره ده صفاتو د قدرت او تصرف ته او په (الحکیم) کې اشاره ده صفاتو د علم ته۔ (ابو حیان)۔

**فائده** : پدے آیت کې د توحید د علماؤ ډیر فضیلت دے، او علماء د الله تعالیٰ د طرفنه

حجت دے په بندګانو باندے په هره زمانه کې نو معلومه شوه چه هره زمانه کې مجتهد علماء او حق پرست موجود دي والحمد لله.

| إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ وَمَا اخْتَلَفَ |
|---|
| یقیناً هغه دین چه (قبول کړے شویدے) په نیز د الله هغه اسلام دے او اختلاف نۀ دے کړے |
| الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ |
| هغه کسانو چه ورکړے شویدے ورته کتاب مګر پس د هغے نه چه راغله هغوی ته پوهه، |
| بَغْيًا بَيْنَهُمْ وَمَن يَكْفُرْ بِآيَاتِ اللَّهِ فَإِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿۱۹﴾ |
| د وجه د حسد نه په مینځ خپل کې او چا چه کفر وکړو په آیتونو د الله نو یقیناً الله زر حساب کونکے دے. |

**تفسیر**: عنوان د آیت: پدے آیت کې دعوت دے تولو خلقو ته صحیح اسلام طرف ته او وعید دے مخالفت کونکو د اسلام ته.

الدین نه مراد (اَلدِّيْنُ الْمَرْضِي). یعنی الله ته خوښ دین صرف اسلام دے.

اسلام وئیلے شي (اَلْاِنْقِيَادُ لِمَا جَاءَ بِهِ الرَّسُوْلُ ظَاهِرًا وَّبَاطِنًا). رسول الله ﷺ چه څه راوړي وي په ظاهر او باطن کې هغے ته ځان تابع کول دي.

اسلام هغه دین دے چه هر نبي په خپل خپل دور کې ددے دعوت او تعلیم ورکړیدے تر دے چه نبي کریم ﷺ تشریف راوړو او مخکنی ټول دینونه منسوخ شو اُوس ددے کامل ترین شکل هغه دے چه نبي آخر زمان محمد صلی الله علیه وسلم دنیا ته پیش کړو چه په هغے کې توحید او رسالت او په آخرت باندے داسے یقین او ایمان لرل دي لکه څنګه چه نبي کریم ﷺ خودلی دی. صرف دا عقیده ساتل چه الله یو دے یا بعض څه عملونه کول، دا اسلام نۀ دے، پدے سره په آخرت کې نجات نۀ ملاویږي. اسلام هغه دین دے چه الله یو اُومنلے شي او صرف د هغه عبادت اُوکړے شي، په محمد رسول الله ﷺ او په تمامو انبیاؤ علیهم السلام باندے ایمان راوړے شي او دا اُومنلے شي چه نبي ﷺ آخري نبي او رسول دے او د ایمانیاتو سره سره هغه عملونه اختیار کړے شي کوم چه په قرآن کریم یا د رسول الله ﷺ په احادیثو کې بیان شویدي. نو ددے دین اسلام نه سوی هیڅ دین د الله تعالیٰ په نیز قبول نۀ دے.

که څوک د بل دین په اتباع کولو سره د دنیا نه رخصتیږي نو هغه به په کفر مري. رسول

الله ﷺ فرمایلي دي: قسم په هغه ذات چه د هغه په لاس کې زما روح دی، ددې امت هر سړی چه زما په باره کې واوري، برابره ده چه یهودي وي یا نصراني او په دین اسلام باندې ایمان رانهٔ وړي نو هغه به جهنمي وي. (مسلم: ۴۰۳). نبي کریم ﷺ دا هم فرمایلي دي : زهٔ سور او تور تولو خلقو ته رالیږلی شوی یم. (مسند احمد: ۲۷۴۲).

او هغه دا هم فرمایلي دي: هر نبي به یو خاص قوم ته لیږلی شو او زهٔ تمامو خلقو دپاره رالیږلی شوی یم. (بخاري: ۳۳۵).

وَمَا اخْتَلَفَ : اُوس پدې کې د یهودیانو او نصاراو عناد بیانوي چه دوی د اسلام نه او بیا د قرآن کریم نه انکار د ناخبرئ په وجه سره نهٔ وو کړې بلکه د حسد او دشمنئ او د دنیا پرستئ په وجه سره ئې کړې وو. او پدې کې اشاره ده چه څوك اسلام نهٔ مني هغه به لوئي ضدي او حسدي وي.

بَغْيًا : بغي اصل کې طلب العلو ته وئیلی شي یعني خپل خان ئې اُوچت ګنړلو نو ددې سره حسد او دشمني لازمه ده. دارنګه بغي ظلم ته هم وئیلی شي.

او ددې خپل مینځي اختلاف نه مراد هغه اختلاف دې چه د یو دین منونکو خپل مینځ کې راپیدا کړې وو لکه د یهودیانو خپل مینځي اختلافات او ډلې جوړول، دغه شان د عیسایانو خپل مینځي اختلافات او ډلې جوړول. بیا هغه اختلاف هم مراد دې چه د اهل کتابو خپل مینځ کې وو چه یهودو به نصاری په هیڅ دین نهٔ ګڼړل او نصاراو به یهودیان په هیڅ دین نهٔ ګڼړل. دغه شان پدې کې د رسول الله ﷺ د نبوت او د عیسیٰ ﷺ د نبوت په باره کې اختلاف هم داخلیږي. او دا ټول اختلافات د دوی ددلائلو په بنیاد نهٔ وو بلکه صرف حسد، ظلم او بغض وو. حق ورته بنهٔ معلوم وو لیکن د دنیاوي مفادو په چکر کې په خپله غلطه خبره باندې ولاړ وو او هغه ئې دین ګڼړلو.

**فائده وحکمة** : اختلاف حق بیانولو ته نهٔ واني بلکه د حق نه چه څوك واوړیدو هغه اختلاف والا دې لکه پدې قول د الله تعالیٰ کې راغلی دي: ﴿وَلَا يَزَالُونَ مُخْتَلِفِينَ إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَ﴾ (هود)

يَكْفُرْ بِآيَاتِ اللّٰهِ : دلته ددې آیتونو نه مراد هغه آیتونه دي چه د اسلام په دین الهی کیدو باندې دلالت کوي.

سَرِيعُ الْحِسَابِ : پدې کې په سخت حساب باندې دوی ته د همکې ورکړې شویده. د سرعة الحساب معنیٰ یو د حساب په جلتئ سره راتلل دي. دویم: دا چه الله تعالیٰ به د

بندګانو د حساب نه زر فارغه شي او په لږ وخت کې به ورسره حساب وکړي ځکه چه هغه ته د بندګانو هرڅه معلوم او هغه د ملائکو په ذریعه لیکلی دی.

فَإِنْ حَآجُّوكَ فَقُلْ أَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلَّهِ وَمَنِ

نو که چرته جګړه کوي دوی تا سره نو ووایه چه ما تابع کړیدے مخ خپل الله ته او هغه چا

اتَّبَعَنِ وَقُلْ لِلَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْأُمِّيِّينَ

چه زما تابعداري ئے کړیده، او ووایه هغه کسانو ته چه ورکړے شویدے کتاب او امیانو ته

أَأَسْلَمْتُمْ فَإِنْ أَسْلَمُوا فَقَدِ اهْتَدَوْا

آیا تاسو تابع کیږئ؟ نو که چرته دوی تابع شو نو یقیناً دوی هدایت اوموندو

وَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ﴿٢٠﴾

او که چرته واوړیدل نو یقیناً په تا باندے تبلیغ دے، او الله لیدونکے د بندګانو دے.

**تفسیر** : ددے آیت عنوان دے : [اَلْمُنَاظَرَةُ مَعَ الْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى وَالدَّعْوَةُ إِلَى الْإِسْلَامِ الصَّحِيْحِ] . (د یهود او نصارا او سره مناظره، او د دوی صحیح اسلام ته دعوت کول دی).

اول مناظره وی بیا مباهله، نو روستو مباهله راروانه ده.

**مناسبت** : د آیت واضح دے چه دوی صحیح اسلام پریخے وو نو دے آیت کی دوی ته د صحیح اسلام دعوت ورکړے کیږی.

فَإِنْ حَآجُّوكَ: د محاجه یوه معنیٰ جګړه او بله معنیٰ د مناظرے او دلیلونه پیش کولو ده.

فَقُلْ : ددے دوه مطلبه دی (١) یو اعراض عن المُحاجه. یعنی که دا اهل کتاب تا سره جګړے کوی پس د هغے نه چه دوی ته د اسلام حقانیت ښکاره شو نو ته ورته اُووایه چه زما کار خو دا دے چه ما خو ځان د الله د حکم تابع کړیدے او زما ملګری هم د الله تعالیٰ د حکم تابعدار دی، نو که تاسو د الله تابع کیږئ راشئ؛ او که نهٔ وی نو جګړے ته هیڅ حاجت نشته. (٢) دویم پدے کی اظهار د دلیل دے. یعنی زهٔ خو د الله تابع یم، الله چه کوم حکم رالیږی زهٔ د هغے پسے روان یم نو پدے کی څه نقصان دے چه یو انسان د الله د حکم تابع شی؟، جګړه او مناظرهٔ خو د هغه چا سره پکار ده چه د الله د حکم نه اَوړیدلے وی او په غلطه لار روان وی. نو پدے کی هغوی ته دعوت دے چه تاسو هم داسے د الله تابعدار شئ.

اوله توجیه غوره ده.

(وَجْهِيَ) ذکر د وجه دے مراد ترینه ذات دے. یا د وجه نه مراد عمل دے (فراء بغوی).

وَمَنِ اتَّبَعَنِ : دا عطف دے په تاء د متکلم چه په (اسلمت) کی راغلے ده. یعنی زما تابعدار هم د الله تعالیٰ تابع دی.

والامیین: ددے امیانو نه مراد د عربو مشرکان دی چه دوی د اهل کتابو په مقابله کی آن پړهـ (ناخوانده) وو. او د هغوی سره آسمانی کتاب نهٔ وو. پدے زمانه کی ددے نه مراد هغه کافران دی چه آسمانی کتاب ته ئے نسبت نهٔ وی لکه هندوان، سکهان، بدھ مت، اکثر روسیان، او چینیان شو.

أَأَسْلَمْتُمْ : پدے کی ترغیب او دعوت دے چه راشئ؛ د الله د حکمونو تابعدار شئ. نو که دوی حق ته راغلل بس په هدایت به شی او که واوړیدل نو الله به سزا ورکړی، ستا په ذمه د هغوی هدایت ته راوستل نهٔ دی بلکه ته صرف تبلیغ کوه، الله د هغوی هر حال وینی.

وَإِنْ تَوَلَّوْا : ددے جواب پټ دے یعنی فَيُعَذِّبُهُمُ اللهُ (الله به سزا ورکړی) یا (فَلَا تَحْزَنْ) مهٔ خفه کیږه).

وَاللهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ : پدے کی ترغیب دے اهل الایمان ته او ترهیب دے هغه مخالفینو ته چه ددے مضبوط دین نه اوړی.

| إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه کفر کوی په آیتونو د الله او وژنی پیغمبران په ناحقه، او وژنی هغه کسان |
| يَأْمُرُونَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢١﴾ أُولَـٰئِكَ الَّذِينَ |
| چه امر کوی خلقو ته په انصاف سره، نو زیرے ورکړه دوی لره په عذاب دردناك. دا هغه کسان دی |
| حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٢٢﴾ |
| چه برباد دی عملونه د دوی په دنیا او په آخرت کی او نهٔ به وی دوی له مدد گاران. |

**تفسیر** : پدے آیتونو کی یره د آخرت ورکوی هغه کسانو ته چه د الله په آیتونو کفر کوی. او پدے کی بشارت دے په دردناك عذاب او د عملونو په بربادولو سره هغه چا ته چه درے قبیح صفات پکی راشی یو د الله په آیتونو کفر کول دویم د معجزاتو والا انبیاء علیهم السلام وژل او دریم د امر بالمعروف او نهی عن المنکر والا داعیان وژل.

او ددې کسانو نه هم مراد يهودي قومونه دي، ځکه هغوی دا کار کړے وو او اراده ئې وه.
او پدې کې هر هغه ځوك داخل دے چه دغه صفات پکې راشي لکه خوارج او شيعه گان وغيره.
يَكْفُرُوْنَ ئې مضارع راوړه اشاره ده چه دوی به مخکې هم کفر کولو او اُوس هم کفر کوی او آينده کې هم اراده لري، دغه شان (يَقْتُلُوْن) کې هم د دوی اراده د قتل د انبياؤ شته.
**مناسبت** : ۱ – پدې آيت کې د (وان تولوا) تفصيل دے، چه ځوك اسلام پريدی نو هغه به په کفر او قتل الانبياء والداعين وغيره کې واقع کيږی.
۲ – دويم مناسبت دا دے چه د يهوديانو قبيح صفات شروع دي، نو دا هم د هغې نه دي.
بِـآيَاتِ اللهِ : د آيتونو نه مراد تورات، انجيل او قرآن دے چه دوی د توحيد او د آخری رسول د رسالت نه انکار کړے وو کوم چه په دغه کتابونو کې موجود وو.
بِالْقِسْطِ : نه مراد توحيد دے ځکه چه هغه د عدل خبرے دي. د قرآن او حديث خبرے، د الله شريعت ته دعوت ورکول او تول دين ته قسط وائي، هرے مسئلے ته شامليږی يعنی دا هغه سرکش قوم دے چه صرف نبيان ئې په ناحقه نهٔ دی وژلی بلکه هغه خلق ئې هم وژلی دی چه د عدل او انصاف خبره به ئې کوله يعنی هغه مخلص مؤمنان او د حق داعيان چه امر بالمعروف او نهي عن المنکر به ئې کولو. لکه رواياتو کې دی چه دوی اويا پيغمبران قتل کړل نو څه نيکان خلق راپاڅيدل چه دا خو تاسو ظلم اُوکړو، د الله عذاب به راشی نو دوی هغوی لره هم قتل کړل.
فَبَشِّرْهُمْ : دا ئې د استهزاء په طور وئيلے دے يعنی د دوی دپاره بله د زيری خبره نشته مگر که زيرے وی نو هغه به د الله عذاب وی.
بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ : دا ضرری کافران وو پدے وجه ئې د دوی دپاره دردناك عذاب اُووئيلو لکه د منافقانو پشان.

**حکمة** : د اعمالو د بربادئ وضاحت

حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِيْ الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ : په دنيا کې هم د نيك اعمالو جزاء شته، نو بربادی ئې دا ده چه ښائسته بدله به ورته نهٔ ملاويږی او دنيا کې به ورته قاتل، ظالم، ډاکو وئيلے شي او الله به ئې قتل کړی او جيلونو ته به ئې واچوی او پريشانيانے به پرے راولی. وينه او مالونه به ئې محفوظ نهٔ وی او مدح او صفت به ئې نشي کيدے او په آخرت کې به د نيك اعمالو جزاء نهٔ ورکوی، عذاب به ترے دفع نکړی او نهٔ به پدے سره ثواب حاصل کړی (روح

المعانی ۱۰۹/۳) ۔

او د عمل بربادیدل لویه تباهی ده پدے وجه ئے دا په سزا کی ذکر کړه۔

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِنَ الْكِتَابِ يُدْعَوْنَ إِلَى كِتَابِ |
| آیا تهٔ نهٔ گورے هغه کسانو ته چه ورکړے شویده څه برخه د کتاب (تورات) نه، رابللے شی کتاب |
| اللَّهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ يَتَوَلَّى فَرِيقٌ مِنْهُمْ وَهُمْ مُعْرِضُونَ ﴿۲۳﴾ |
| د الله ته، دے دپاره چه فیصله اُوکړی په مینځ د دوی کی بیا اوړی یوه ډله د دوی نه او دوی مخ کرځونکی دی۔ |

**تفسیر** : اُوس توبیخ ورکوی هغه چا ته چه د الله کتاب حاکم او فیصله کونکے نهٔ ګرځوی او ددے نه مخ اړوی او دعوه د الله د کتاب کوی چه مونږ خو د الله کتاب منو او ځان هدایت والا ګنړی لکه نن صبا زمانه کی هم ډیر حُکام ځان ته مسلمانان وائی لیکن صرف په نوم، خو کله چه د الله احکام مخے ته راشی بیا د هغے پرواه نهٔ کوی او فیصله د الله حکم ته نهٔ وړاندے کوی۔ او دا خوئی اصل کی د یهودیانو وو چه کله دوی ته اُوئیلے شی چه راځئ په تورات فیصله اُوکړو که په تورات کی د نبی ﷺ صفات وو نو وے منئ او که نهٔ وی نو مه منئ مګر هغوی دے ته نهٔ تیاریدل۔

نو اول ورله صفت د معرضینو ورکوی او بیا ددے دوه وجے ذکر کوی چه غلطه عقیده ئے جوړه شویده او دهوکه شویدی او بیا تخویف د آخرت بیانوی۔

نو پدے کی سبق مونږ ته راکوی چه کله تا ته دعوت درکړے شی قرآن او حدیث ته چه راځئ په دے فیصله کوو په اختلافی مسئلو کی نو په تا منل واجب دی، داسے به نه وائے چه زه نرخ، انګریزی قانون، مذهب ته وړاندے کیږم۔ او د فقهاؤ په چوکاټ کی دا مسئله کوم۔ دا تولو د کفارو خبرے دی۔

**ربط** : ۱ – مخکی د دوی د لویو علماؤ حال ذکر شو چه هغوی د حسد د وجه نه اختلاف کړے وو او هغوی مشران وو، اُوس د دوی د نیمګړو علماؤ حال بیانوی چه د کتاب په بعض حصه علم لری او دا د مخکنو مقلدین دی۔ ۲ – دا رنګه مخکی آیت کی د دوی بغی او عناد ذکر شو نو اُوس د دوی د عناد غایه او دلیل ذکر کوی۔

نَصِيبًا مِنَ الْكِتَابِ : دا لفظ د نیمګړی ملیانو دپاره استعمالیږی۔

يُدْعَوْنَ إِلَى كِتَابِ : مفسرین وائی : مَنْ دُعِيَ إِلَى كِتَابِ اللَّهِ وَإِلَى مَا فِيهِ مِنْ شَرْعٍ وَحَبَ

عَلَیْهِ الْاِجَابَةُ)۔ (محاسن التاویل للقاسمیؒ)

څوك چه د الله کتاب طرف ته را اُوبللے شو چه راځه پدے فیصله کوو نو په دهٔ لازم ده چه دے ته به تیاریږی که نهٔ وی، ددے آیت په زورنه کی به داخلیږی۔

کتاب الله : (۱) ددے نه مراد تورات هم دے (۲) او قرآن کریم هم۔ ځکه دا کتاب د تورات نه په عقائدو کی خلاف نهٔ دے، نو دوی دواړو ته نهٔ تیاریږی۔

لِیَحْکُمَ بَیْنَهُمْ : یعنی د دوی په جګړو، په عقیدو او کارونو او اخباراتو کی فیصله اُوکړی۔

## شان نزول

۱ – بعض مفسرینو د (کتاب الله) نه هم مراد تورات اخستے دے، او وئیلی ئے دی چه په آیت کی اشاره یوے خاص واقعے طرف ته ده، چه د هغے خلاصه دا ده چه د مدینے یهودیانو خپل دوه زنا کار (سړے او ښځه) رسول الله ﷺ ته راوستل نو نبی ﷺ د رَجم حکم اُوکړو لیکن دوی انکار اُوکړو او وے وئیل چه زمونږ کتاب (یعنی تورات) کی خو صرف مخ تورول دی۔ بیا تورات راوغوختے شو نو په هغے کی د رجم ذکر راغلے وو نو دواړه رجم کړے شول، پدے باندے یهودیان خفه شو، نو دا آیت نازل شو۔ (بغوی۲/۲۲، والقاسمی)

۲ – ابن ابی حاتمؒ او ابن المنذرؒ د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدی چه نبی کریم ﷺ د یهودیانو بیت المدراس ته ننوتو نو هغوی ته ئے د دین اسلام دعوت ورکړو نو هغوی تپوس اُوکړو چه ستاسو دین کوم یو دے؟ نو نبی ﷺ اُوفرمایل چه زهٔ د ابراهیم ﷺ په دین باندے یم چه د شرك او باطل نه بیزار او د توحید داعی او مُحب وو، په دے باندے هغوی اُووئیل چه هغه خو یهودی وو نو نبی ﷺ اُوفرمایل چه تورات راوړئ او په هغے فیصله اُوکړئ لیکن هغوی دے ته تیار نهٔ شول، په دے آیت کی هغے طرفته اشاره ده۔ (قرطبی۲/۵۰) والمنار۳/۲۱۸)۔

**فائده** : دا آیت دلیل دے چه د رجم دپاره احصان شرط دے نهٔ اسلام پدے وجه خو رسول الله ﷺ یهودیانٔ هم رجم کړل۔ (القاسمی)

ثُمَّ یَتَوَلّٰی فَرِیْقٌ : ثم د استبعاد دپاره ده یعنی د دوی دا اوړیدل د دوی د دعوے د ایمان نه ډیر بعید دی۔ ۲ – دارنګه کله چه دوی د کتاب الله حکم ته راوبللے شی نو یوه ډله د دوی نه پس د ښه شکونو نه په قبلولو او نهٔ قبلولو کی د هغے نه اوړی او د ایمان تقاضا خو دا وه چه مؤمن به د کتاب الله په حکم کی تردد او شك نهٔ کوی۔ بیا دوی صرف په تولی

(اوریدو) اکتفاء نۀ ده کړے او نۀ دا څه عارضي اوریدل دي بلکه دا د دوی وصف لازم دے چه هغه اعراض دے د الله د کتاب نه، ځکه ئے (وهم معرضون) په جمله اسمیه سره ذکر کړو. (المنار).

| ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَعْدُودَاتٍ |
|---|
| دا پدے وجه چه دوی ویلی وو هیچرے به نۀ رارسی مونږ ته اُور مګر یو څو ورځے شمار کړے شوے |
| وَغَرَّهُمْ فِي دِينِهِمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢٤﴾ |
| او دهوکه کړیدی دوی لره په دین د دوی کی هغه خبرو چه دوی به د ځان نه جوړولے. |
| فَكَيْفَ إِذَا جَمَعْنَاهُمْ لِيَوْمٍ لَا رَيْبَ فِيهِ |
| نو څرنګ به وی حال د دوی کله چه راجمع کړو مونږ دوی لره هغه ورځے ته چه نشته شك په هغے کی |
| وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٢٥﴾ |
| او پوره به ورکړے شی هر نفس ته بدله د هغه عمل چه دۀ کړیدے او دوی باندے به ظلم نشی کیدے. |

**تفسیر** : پدے آیت کی د اعراض او مخ اړولو دوه علتونه او وجے ذکر کوی.

**ذٰلِكَ** : دا اشاره ده تولی (اوریدو) او اعراض ته. اَیْ ذٰلِكَ التَّوَلِّیْ بِسَبَبِ التَّسْهِيلِ عَلٰى أَنْفُسِهِمْ أَمْرَ الْعِقَابِ.

دا اوریدل د دوی پدے وجه دی چه دوی په ځان باندے د عذاب خبره آسانه کړیده. ځکه چه دوی دا غلطه عقیده جوړه کړیده چه مونږ ته به د جهنم اُور صرف یو څو ورځے رارسیږی. نو هرکله چه یو انسان ځان جنتی ګنړی نو هغه بیا چرته د الله کتاب ته راځی، د الله کتاب ته هغه څوك رامنډه وهی چه هغه غواړی چه ځان د اُور نه بچ کړی. نو طریقه دا ده چه همیشه هدایت ته هغه څوك راځی چه هغه په ځان یریږی چه ما سره به هدایت نۀ وی، زۀ چرته ګمراه خو نۀ یم، په غلطه لاره روان نشم. او که یو انسان ځان په حقه ګنړی نو هغه بیا هدایت قبلولو ته تیار نۀ وی، دا وجه ده چه په تنظیمونو او پارټیانو کی بعض خلق ځان پوره هدایت والا او الله تعالیٰ ته رسیدلی ګنړی نو پدے وجه د هیچا حق نۀ قبلوی نو هغوی ته هر څومره دعوت کول په هغوی هیڅ اثر نۀ کوی، عام تنظیمونه په دغه طرز دی.

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ : صاحب د تسهیل وائی : باء سببیه ده، معنیٰ دا ده چه د دوی کفر په سبب د اعتراض او دروغو د دوی سره دے۔ (التسهیل ۱/۱۶۷)

أَيَّامًا مَّعْدُوْدَاتٍ: بقره (۸۰) کی (ایاماً معدودة) ذکر وو ځکه چه هغه د ملیانو عقیده وه او دلته د امیانو عقیده ذکر ده او امیان ځان ډیر ګناهګار ګنړی ځکه ئے دلته جمع راوړه۔ راجح دا ده چه دا تنوع فی العبارة او تفنن فی العبارة دے دپاره د بلاغت۔ دارنګه د جمع مکسر صفت کله واحد مؤنث راځی او کله جمع هم راځی۔

او ددے عقیدے جوړولو یو څو اسباب وو چه په سورة بقره کی تیر شویدی۔ او هغه دا دی چه (۱) زمونږ مشرانو څلویښت ورځے د سخی عبادت کړے نو په دغه مقدار به زمونږ عذاب وی۔ (۲) یا دنیا اوه زره کاله ده او په هر زرو کالو کی به یوه ورځ عذاب وی۔ (۳) دریم دا چه زمونږ عقیدے صحیح دی خو صغائر رانه شویدی، د هغے لره شان سزا به وی نور نشته۔

صاحب المنار وائی : ددے آیت مقصد دا دے چه د یهودو دا عقیده وه چه اسرائیلی ته که عذاب ورکولے شی نو هغه به ډیر کم وی لکه چه دا عقیده زمونږ د ډیرو مسلمانانو جوړه شویده، وائی چه مسلمان که لوی ګناهونه یا فواحش کوی نو یا به په شفاعت سره خلاص شی یا به په کفاراتو سره یا به د الله په فضل او احسان سره په عفو او مغفرت سره خلاص شی او که ددے تهولو نه پاتے شو نو بیا به د ګناه په اندازه په اُور کی عذاب ورکړے شی آخر به راوځی او جنت ته به داخلیږی۔ حال دا چه قرآن کریم نجات په ایمان او نیک اعمالو او غوره اخلاقو وتیلے دے او هغه په یهودو کی نشته نو څوك چه دین یو جاګیر ګنړی او هغه ته تش په نسبت کولو سره ځان دپاره نجات ګنړی یا د مشرانو په خبرو تکیه نکولو سره د نجات امید لری نو دا په وهم او ګمان کی خطاء شویدے بلکه دروغژن دے۔ لکه روستو وائی وغرهم فی دینهم الخ۔ (المنار)

وَغَرَّهُمْ : دا دویمه وجه او علت دے چه دوی د الله کتاب ته ځکه نهٔ راځی او ایمان نهٔ راوړی چه دوی د مخکنو لویو ملیانو په دروغو خبرو دهوکه شویدی۔

وغرهم : غرور دهوکے ته وئیلے شی او ددے فاعل (ما) دے او مفعول ئے هم ضمیر دے چه مراد ترے وارهٔ ملیان دی او (کانوا یفترون) کی د فاعل ضمیر لویو ملیانو ته راجع دے۔ مطلب دا دے چه ورو ملیانو او امیانو لره دهوکه کی اچولی وو هغه خبرو چه لویو ملیانو کوم دروغ خبرے جوړے کړے وے چه د شرك او د بدعت او د باطلو طریقو جواز ئے ورته بیان

کړے وو او وړو ملیانو ته هغه پاتی شوی وے نو دوی د هغوی تقلید شروع کړے وو او دا به ئے وئیل چه پدے طریقه زمونږ مشران تلی وو، آیا دا کُنی غلطے خبرے دی څه۔ او دا به ئے وئیل چه مونږ د الله محبوبان او د ځامنو پشان یو۔

یا د (مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ) ضمیر وړو ملیانو ته راجع دے چه هغوی (لن تمسنا النار) خبره کړے وه یعنی دے وړو ملیانو چه د جنت دعوه کوله نو دے خبرے په دهوکه کی اچولی وو او حقیقت داسے نهٔ وو۔ باطل پرست همیشه دپاره په بے حقیقته خبرو دهوکه شوے وی نو پدے کی مونږ ته دا سبق پروت دے چه پداسے خبرو عمل پکار دے چه هغه واقعی او حقیقی وی، هسے نه چه انسان به په یوه طریقه عمل کوی او دین به ئے گنړی او په مینځ کی به هغه بے دینی وی۔

فِیْ دِیْنِهِمْ : لفظ ځکه وائی چه دوی د دنیا په باره کی ډیر وینښ دی، دنیاوی کاروبارونو او دوکانداریانو کی ئے څوك نشی دهوکه کولے لیکن د دین په باره کی دهوکه وی وائی چه مونږ دا مسئلے نهٔ پیژنو مونږ د چا اُومنو۔

**فائده:** مفسرین کرام وائی پدے کی دا هم داخلیږی چه څوك د ځان نه حدیثونه جوړوی او وائی چه څوك دا فلانے عمل اُوکړی نو دومره اجر به ورته ورکړے شی او هغه الله تعالیٰ او رسول الله ﷺ نهٔ وی ویلی نو دے شخص هم ځان په دهوکه کی واچولو۔ دارنگه د ځان نه فتوے ورکوی او مسئلے بیانوی او د ځان نه ثوابونه بیانوی۔ دارنگه یو انسان یو عقیده جوړه کړی او وائی چه پدے عقیده انسان جنت ته داخلیږی او هغه عقیده الله تعالیٰ او رسول الله ﷺ نهٔ وی خودلی نو دا هم ځان دهوکه کوی، لکه بعض خلق وائی چه د پیر تابعداری کوو نو جنت ته به ځے، پیر ورله ذکر ورکړی چه دا ذکر کوه نور عذاب او گناه ئے زما په غاړه۔

فَكَيْفَ : پدے کی د آخرت یره بیانوی چه د قیامت په ورځ به د دوی دا دعوے او غلطے عقیدے هیڅ په کار نهٔ راځی او الله تعالیٰ به په خپل انصاف سره هر نفس ته د هغے د کړو پوره پوره بدله ورکوی، په هیچا به هیڅ قسم ظلم نشی کیدے۔

د کیف مدخول پټ دے (اَیْ فَكَيْفَ حَالُهُمْ)۔ نو د دوی حال به څه وی۔ او دا استفهام د تعجیب (تعجب کی غورزولو) دپاره دے او دا جواب نهٔ غواړی، مطلب دا دے چه دغه حال به څومره عجیبه او هیبتناك وی، سوچ وکړه۔

لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيْهِ : یعنی ددے ورځے په واقع کیدو کی په حقیقت کی هیڅ شك نشته

اګرکه ډیر خلق به پکې شك کوي۔

وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ : د مَا كَسَبَتْ نه مخکې جزاء لفظ پټ دے۔ یعنې هر نفس ته به د هغه د کړو بدله ورکړے شي۔

مَا كَسَبَتْ : ئې ذکر کړو اشاره ده چه د عمل نه به ئې بلا جوړه شي او بعینه عذاب به شي۔

| |
|---|
| قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ |
| اُووایه ! اے الله ! ته مالك د بادشاهئ ئې، ورکوے بادشاهي چا له چه اُوغواړے او راکاږے بادشاهي |
| مِمَّنْ تَشَآءُ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ |
| د چا نه چه وغواړے او ته عزت ورکوے چا ته چه وغواړے او ذلت ورکوے چا ته چه وغواړے، |
| بِيَدِكَ الْخَيْرُ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲۶﴾ تُوْلِجُ |
| خاص ستا په لاس کې تول خیرونه دي، یقیناً ته په هر شي باندے قدرت والا ئې۔ ننباسے ته |
| الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَتُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ |
| شپه په ورځ کې او ننباسے ورځ په شپه کې او ته راوباسے ژوندے د مړي نه |
| وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۲۷﴾ |
| او راوباسے مړے د ژوندي نه او ته رزق ورکوے چا ته چه وغواړے بغیر د حساب نه۔ |

**تفسیر** : عنوان د آیت : تعلیم د دعاء او بیان د معرفت د الله تعالیٰ دے۔

او مقصود د آیت دا دے چه : (اَلرَّدُّ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ وَالْيَهُوْدِ وَالنَّصَارىٰ وَالْمُنَافِقِيْنَ فِيْ اِنْكَارِهِمْ نُبُوَّةَ مُحَمَّدٍ ﷺ) په مشرکانو، یهودو، نصاراؤ او منافقانو رد دے چه دوی د محمد ﷺ نبوت نه انکار کوي۔

مناسبت د آیت : دوی وئیلي وو چه زمونږ دین حق دے او دا سبب د جنت دے او نبوت د بني اسرائیلو نه بل چا ته نۀ نقل کیږي لکه دا په حدیث د ابوداود کې د صفوان بن عسال راوي نه نقل شویدي نو الله تعالیٰ په دوی باندے پدے آیت کې رد وکړو چه ملك (بادشاهي) او عزت د الله په لاس کې دي، د هغه خوښه ده چه چا ته ئې ورکوي، نو ستاسو نه ئې دے آخري امت ته نقل کړل۔

بیا پدے دوه آیتونو کې د الله تعارف ذکر دے، د الله صفات او د هغه د عظمت صفتونه ئې

ذکر کړیدی په صیغه د جمله دعائیه سره. او په صیغه د (قل) سره ئې راوړه څکه مقصد دا دے چه په رد د مشرکانو او نصاراؤ او یهودو کې داسے وایه. د مشرکانو په رد کې خبره داسے وه چه نبی کریم ﷺ خپلو ملګرو سره وعده اُوکړه چه تاسو ته به الله تعالیٰ د روم او فارس بادشاهي درکوی (چه هغه به فتح شی او خزانے به ئې د مسلمانانو لاس ته راشی) نو منافقانو او مشرکانو اُووئیل چه دا څومره کمزوری دی چه د خپل ځان حفاظت نشی کولے نو د روم او فارس بادشاهی دۀ ته ملاویدل ډیره بعیده خبره ده. (البغوی) نو الله پدے آیت کې خپل طاقت بیانوی چه دا ټولے بادشاهیانے خو د الله سره دی، ورکوی ئے چا ته چه وغواړی. او په نصاراؤ او یهودو رد پدے طریقه دے چه هغوی د دروغو دا خبره جوړه کړے وه چه داؤد علیه السلام سره الله تعالیٰ دا وعده کړے وه چه د هغه په اولادو کې به نبوت او بادشاهی راولی لهذا دا بادشاهی او نبوت به زمونږ نه نۀ نقل کیږی نو الله تعالیٰ دلته جواب کوی چه الله هغه ذات دے چه عزت او ذلت او بادشاهی او نبوت د هغه په اختیار کې دی چا له چه غواړی ورکوی ئے، نو مؤمنان همیشه دا عقیده لری.

نو (قُلُ) یعنی داسے وایه په عامو حالتونو کې د خپل یقین زیاتولو او د مشرکانو او د نصاراؤ او یهودو په رد کې داسے وایه. په احادیثو کې ددے سره اضافه هم راغلے ده او د قرض د خلاصیدو دپاره بهترینه دعاء ده.

په بعض روایاتو کې دی چه معاذ بن جبل رضی الله عنه نبی کریم ﷺ ته د خپل قرض شکایت اُوکړو نو هغه اُوفرمایل : چه تۀ آیت : قل اللهم مالك الملك او ددے سره روستو آیت تولج اللیل فی النهار الخ اُووایه او بیا ورسره دا دعا اُوکړه :

[رَحْمٰنَ الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ وَرَحِيمَهُمَا، تُعْطِى مَنْ تَشَاءُ مِنْهُمَا وَتَمْنَعُ مَنْ تَشَاءُ، اِرْحَمْنِى رَحْمَةً تُغْنِيْنِى بِهَا عَنْ رَحْمَةِ مَنْ سِوَاكَ، اَللّٰهُمَّ اَغْنِنِى مِنَ الْفَقْرِ وَاقْضِ عَنِّى الدَّيْنَ]

په یو بل روایت کې دی چه ((دا یوه داسے دعا ده چه که په تا باندے د اُحد غر هومره قرض هم وی نو الله تعالیٰ به هغه ستا نه ادا کوی. (صحیح الترغیب والترهیب رقم : ۱۸۲۱) باسناد حسن والطبرانی فی الصغیر ومجمع الزوائد ۱۰/۲۹۸ کتاب الادعیة ورجاله ثقات]

پدے دعا سره د مؤمن سړی په الله باندے توکل پیدا کیږی.

**ربط** : ۱- هرکله چه په عقلی او نقلی دلائلو سره ثابته شوه چه د الله تعالیٰ نه سیویٰ څوك اِلٰه (معبود) نشته نو اُوس ئے د هغے ثمره بیان کړه چه په غائبانه حاجتونو کې به صرف الله تعالیٰ ته آواز کوئ. ○ ۲-دویم : هرکله چه د بنی اسرائیلو نه نبوت او بادشاهی

نقل شوه او عربو اُمیینو ته ورکړے شوه ځکه چه دوی د قرآن نه اعراض کړے وو، دارنګه د تـورات نـه هـم۔ نو پدے آیتونو کی دا بیانوی چه دا تصرف او اختیار د الله تعالیٰ دے نو په هغه باندے اعتراض نشی کیدے۔

○ ۳– تیـر شـوی ټـولـو آیتـونـو کی رد وو په نصاراؤ د نجران باندے په رد د بعضے شبهاتو دهغوی سره اُوس رد کوی د هغوی په باطله عقیده باندے په باره د عیسیٰ ؑ کی چه په هغه کی خو دا قسم صفات د اُلوهیت نشته نو څرنګه تاسو هغه له اُلوهیت ثابتوی؟!۔

اَللّٰهُمَّ : پـه اصـل کـی یـا الله دے، خلیل او سیبویة وائی چه یا حذف شوه نو د هغے په بدل کـی پـه آخـر کـی میـم مشـدد راوړے شـو۔ د بعض علماؤ په نیز دا اسم اعظم دے۔ نضر بن شُمیـل رحمه الله فرمائی : چا چه په (اللهم) سره دعا اُوکړه نو داسے شوه لکه په ټولو اسماءِ حسنیٰ ؤسره ئے دعا اُوغوختله۔ (القرطبی ٤/٥٤)

مَالِكَ الْمُلْكِ : دا منصوب دے صفت دے دپاره د (اللهم)۔

مُـلك په ضمه د میم سره مراد ترے کامل قدرت او اختیار او مکمل غلبه او اقتدار دے نو د مـالك الـملك مـطـلـب دا شو چه الله پاك حقیقی متصرف او د هر قسم اختیار او اقتدار یـواځے مالك دے ټول تصرفات او اختیارات د هغه په قبضه کی دی او په دے کی هغه سره هیڅوك شریك نشتـه۔

تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ : هـر کـلـه چـه الله تـعـالیٰ مطلقاً مالك الملك دے نو پدے سره ئے خینی تصرفات ذکر کړل کوم چه د الله تعالیٰ سره مخصوص دی۔

وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ : نَزْع راخـکـلـو تـه وئیلے شی او د نزع لفظ ئے ځکه ذکر کړو، اشاره ده چه صَاحِبُ الْجَاهِ لَایَتْرُکُهُ) چـه یو انسان یوے مرتبے ته اُورسیږی نو بیا هغه نهٔ پریدی ترڅو چه تـرے الله تـعـالیٰ په زوره نهٔ وی راخکلی، لکه یهود او نصاراؤ او مشرکانو بادشاهی او عزت نهٔ پریخودو نو الله تعالیٰ ترے راخکله، نو دا د الله تعالیٰ په اختیار کی دی نو هغه ته التجاء پکار ده۔

وَتُـعِزُّ مَـنْ تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ : عزت او ذلت دا دواړه صـفـات مُزدوجه دی، دواړه به شریك ذکر کولے شی لکه د اَلْخَافِضُ الرَّافِعُ پشان۔

## د عزت او ذلت مصداقات

۱– : تُعِزُّ مَنْ تَشَاءُ بِالطَّاعَةِ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاءُ بِالْمَعْصِيَةِ۔

ته عزت ورکوي چا ته چه غواړي په طاعت سره او ذلت ورکوي چا ته چه اوغواړي په گناه سره. لکه دا خبره په سورة الفجر کې راغلې ده.

(۲) تُعِزُّ مَنْ تَشَاءُ بِالنَّصْرِ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاءُ بِالْقَهْرِ.

چا ته په مدد کولو عزت ورکوي او چا ته په قهر او غلبې سره ذلت ورکوي.

(۳) تُعِزُّ مَنْ تَشَاءُ بِالْقَنَاعَةِ وَالرِّضَا وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاءُ بِالْحِرْصِ وَالطَّمَعِ. ته په قناعت او رضا سره چا ته عزت ورکوي او ذلت ورکوي چا ته په حرص او طمعې سره.

(٤) وَتُعِزُّ مَنْ تَشَاءُ بِالْإِيمَانِ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاءُ بِالْكُفْرِ. ته چا ته عزت په ایمان ورکوي او ذلت په کفر سره ورکوي.

(٥) تُعِزُّ بِالْمَالِ وَتُذِلُّ بِالْفَقْرِ. ته بعض خلق په مال سره عزتمند کوي او څوك د خلقو په نظر کې سپکوي په فقر سره دا اګرکه د الله په نیز ذلت نه دے مګر خلق ئے ذلت ګنړي.

(٦) دارنګه چا ته په دنیا کې عزت په هیبت او رعب او دبدبه او په دشمنانو باندې غلبه ورکوي او د مسلمانانو دین عام کوي او ذلت ددې مقابل وي.

دا د آخرت سره هم لګي چه چا ته لوړې لوړې درجې او مرتبې ورکوي او جنت ته ئې داخلوي او څوك ذلیله کوي په جهنم کې، او په میدان محشر کې ئې شرمنده کوي او د هغه دپاره د سفارش اجازه نه ورکوي. (معالم التنزيل للبغوي ٢/٢٤)

صاحب المنار وائي: عزت او ذلت معلوم دي مګر د اول د آثارو نه دا ده چه د حقیقت حفاظت او حمایت او د کلمې نافذ والے او ملګري ډیریدل او د زړونو مالك کیدل په جاه او په هغه علم سره چه خلکو ته فائده ورکوي او په فراخئ د رزق او د نیك اعمالو په توفیق سره.

بِيَدِكَ الْخَيْرُ: دلته ئے خبر مقدم کړو په مبتداء باندې پدې کې د تخصیص معنیٰ ده یعنی خاص ستا په لاس کې ټول خیرونه دي (الخیر) کې الف لام استغراقي دی. چونکه عام تصرفات په لاس سره کیږي پدې وجه ئې لاس ذکر کړو او دا د الله تعالیٰ حقیقي صفت دے، د ید همدا ظاهري معنیٰ مراد ده، بغیرد تمثیل، تشبیه، تاویل او تحریف نه به منلې شي.

شر هم د الله تعالیٰ په لاس کې دے لیکن پداسې مقام کې الله تعالیٰ ته د شر نسبت کول بے ادبي ده، حدیث کې دي: وَالشَّرُّ لَيْسَ إِلَيْكَ. (د شر نسبت تا ته نه کیږي) (مسلم: ١٨٤٨)

الله تعالیٰ د شر پیدا کونکے هم دے لیکن د شر نسبت الله ته نه اسماً، نه فعلاً او نه وصفاً کیږي. د الله په نوم کې شر نشته، د الله په صفاتو کې شر نشته، او نه د هغه په کارونو کې شر شته، بلکه شر د هغه په قضاء او قدر او مفعولاتو کې راځي. ددې وجه نه د شر نسبت

الله ته په صیغه د مجهول ذکر کړے شی۔ لکه ﴿أَشَرٌّ أُرِيدَ﴾ ، ﴿مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ﴾ ۔ [مِنْ شَرِّ مَا قَضَيْتَ]۔ الله تعالیٰ د یوے خبرے فیصله اُوکړی نو د هغے نه شر راپیدا شی۔

**حکمة** : الله رب العالمین صرف خیر دے او شیطان صرف شر دے او عام انسان کی خیر او شر دواړه شته۔

**حکمة** : ددے قسم آیتونو تدبر او فکر په الله تعالیٰ باندے حُسن ظن (ښه گمان) پیدا کوی چه هغه اساس د ټولو عباداتو او نیکیانو دے۔

تولج : ددے نه مراد د یو بل پسے تعاقب دے یعنی شپه تیره شی ورځ راشی بیا ورځ تیره شی شپه راشی۔

پدے کی سیدنا ابن عباسؓ، مجاهدؒ، قتادهؒ او حسنؒ وغیرهم نه نقل دی چه شپه په ورځ کی او ورځ په شپه کی داخلولو نه مراد د ورځے او شپے وړوکوالے او لوئی والے دے مثلاً که چرے د شپے څه حصه په ورځ کی داخله شی څنګه چه د ګرمئ په موسم کی کیږی نو ورځ لویه شی او که چرے د ورځے څه حصه په شپه کی شامله شی نو شپه لویه شی لکه د ژمی په موسم کی۔

پدے کی اشاره ده چه ته به یهودیت او نصرانیت مغلوبه کړے او ورځ چه دین اسلام دے هغه به پرے دپاسه راشی او کله کله مسلمانان مغلوبه شی، پدے کی د الله تعالیٰ امتحان دے۔

وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ : دے کی ظاهری او باطنی دواړه مصداقات کیدے شی۔ (۱) ژوندے د مړی نه راوباسی، خاوره مړه ده انسان ترے پیدا شویدے، چینجی ترے پیدا شی۔ دارنګه نطفه مړه ده ژوندے حیوان ترے پیدا شی۔ دغه شان نطفه د ژوندی حیوان نه پیدا شی۔ او اګئ مړه ده روغ حیوان ترے پیدا شی، دغه شان برعکس واخله۔ او اُوچ تخم او ادوکی د شنو بوټو او میوو نه او بوټی د اُوچے زمکے یا د اُوچ تخم نه پیدا کیږی۔

حسن بصریؒ فرمائی : د ژوندی نه مراد مؤمن او د مړ نه مراد کافر دے مطلب دا چه الله تعالیٰ د مؤمن کافر او د کافر نه مؤمن پیدا کوی لکه ابراهیم عليه السلام ئے د آزر نه او د نوح عليه السلام نه ئے کنعان پیدا کړو۔ (قرطبی ٥٦/٤) کبیر (٦٤٣/٢)۔

دارنګه د ژوندی نه مراد عالِم او نبی دے او د مړ نه مراد جاهل او غیر نبی دے۔ پداسے اضدادو باندے الله تعالیٰ قادر دے۔

## حکمتونه

او په دے کی ناشنا حکمتونه دی۔ (۱) د الله تعالیٰ قدرت او علم بندګانو ته ښکاره کول۔

(۲) طبیعت تصرفات نهٔ کوی بلکه تصرف کوونکے ذات صرف الله تعالیٰ دے۔
(۳) دے دپاره چه داعی نا امیده نشی ځکه چه الله تعالیٰ د کافر نه مؤمن راوباسی۔
(٤) او دے دپاره چه مؤمن الله تعالیٰ ته په خپله اصلاح او د بچو په اصلاح کی التجاء وکړی ځکه ددے قدرت صرف د الله تعالیٰ سره دے۔
بِغَيْرِ حِسَابٍ : یعنی فراخه رزق ورکوے چه بے حسابه وی۔

| لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ |
|---|
| نه دِے نیسی مؤمنان کافرانولره دوستان سوئی د مؤمنانو نه، او ځا چه وکړو دا کار نو نه دے |
| مِنَ اللّٰهِ فِيْ شَيْءٍ إِلَّآ أَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقَاةً وَّيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ |
| د الله د دین نه په هیڅ کی مگر که تاسو یریږئ د هغوی نه په یره او یروی تاسو الله تعالیٰ |
| نَفْسَهٗ وَإِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ﴿۲۸﴾ |
| د خپل ځان نه او خاص الله ته ورگرځیدل دی۔ |

**تفسیر** : عنوان د آیت : پدے آیت کی د کافرانو د موالات (دوستانے) نه منع ذکر ده یعنی د کافرانو سره د تعلقاتو او دوستانو د ختمولو حکم ورکړے شویدے۔
**مناسبت** : ۱ – مخکی ئے ووئیل چه عزت او ذلت د الله په لاس کی دے نو دلته وائی چه د کافرانو سره پدے وجه دوستی مهٔ کوئ چه تاسو به هغوی سره عزت حاصلوئ۔ بلکه توکل صرف په الله وکړئ او د کافرانو هیڅ پرواه مهٔ ساتئ۔ او دا د توحید د متمماتو نه دے چه د الله سره به دوستی کولے شی دغه شان اهل التوحید سره به ایمانی محبت ساتلے شی او د هغه د دشمنانو سره به دشمنی کولے شی اگرکه هغه پلار او هر څومره نزدے خپلوان دی۔
۲ – یهود او نصاریٰ د ضد او عناد د وجے نه توحید نهٔ منی او اسلام نهٔ قبلوی لکه ځنګه چه د نجران وفد سره ددے نه چه بے دلیله شو او په مناظره کی پرهٔ شول لیکن بیا هم په خپل شرك او کفر باندے قائم پاتے شو او یهودیان د الله تعالیٰ د کتاب (تورات) فیصلے ته را اُوبللے شو لیکن خالص د ضد په وجه ئے د تورات د فیصلے نه انکار اُوکړو پدے وجه مسلمانانو ته حکم کوی چه د دوی سره هر قسمه دوستانه او قلبی تعلقات پریږدئ۔

**د آیت مطلب** : الله تعالیٰ مؤمنان ددې خبرې نه منع کړیدی چه دوی د مؤمنانو په ځای کافران خپل دوستان جوړ کړي، ځکه چه د مؤمنانو ولي او دوست الله تعالیٰ دے۔ او مؤمنان خپل مینځ کې اولیاء او دوستان دي۔ په قرآن کریم کې ددے مضمون ډیر آیتونه راغلي دي۔ د الله تعالیٰ دپاره محبت او د الله تعالیٰ دپاره بغض او دشمني د ایمان د اصولو نه یو اصل دے، پدے وجه الله تعالیٰ اُوفرمایل چه څوك کافران خپل دوستان جوړ کړي، الله تعالیٰ د هغوی نه بَری دے، او ددهٔ د الله تعالیٰ سره هیڅ تعلق نشته۔ آؤ، که د کافرانو نه چا ته خطره وي، نو د مسلمانانو دپاره دا جائز ده چه په وقتي توګه سره د دوستۍ اظهار اُوکړي۔ امام بخاري د ابو الدرداء ﷺ قول نقل کړیدے چه (اِنَّا لَنَكْشِرُ فِيْ وُجُوْهِ اَقْوَامٍ وَاِنَّ قُلُوْبَنَا لَتَلْعَنُهُمْ) ((مونږ به د بعض قومونو په مخکې مصنوعي خندا ښکاره کوله، حال دا چه زمونږ زړونو به په هغوی باندے لعنت وئیلو)) او بیائے پدے باره کې مرفوع روایت د (بئس اخو العشیرة) راوړیدے۔ (بخاري: ٦١٧١) نو د خطرے په صورت کې په ظاهره کې د هغوی سره تعلق کولے شي خو پدے شرط چه زړهٔ به ئے د هغوی په دشمنۍ باندے مطمئن وي، په زړهٔ کې به هغوی ته هیڅ قسم میلان نهٔ وي۔

دے نه روستو الله تعالیٰ اُوفرمایل چه الله تعالیٰ تاسو د خپل مقدس ذات نه یروي، ګورئ! د هغه د احکامو مخالفت او د هغه د دشمنانو سره د دوستي کولو په وجه هغه ناراضه نهٔ کړئ پدے کې انتهائي درجه دهمکي ده۔

**فوائد الآية** :١– امام حاکم رحمه الله فرمائي : فِي الآيَةِ دَلَالَةٌ عَلٰى جَوَازِ اِظْهَارِ تَعْظِيْمِ الظَّلَمَةِ، اِتِّقَاءً لِشَرِّهِمْ قَالَ : وَاِنَّمَا يَحْسُنُ بِالْمَعَارِيْضِ الَّتِيْ لَيْسَتْ بِكَذِبٍ ۔ دا آیت دلیل دے چه د ظالمانو خلقو تعظیم ښکاره کول جائز دي کله چه د هغوی د شر نه یریږي۔ ...... البته که دا کار د دروغو وئیلو نه سویٔ د تعریضاتو په صورت کې وي نو دا به ښه وي، آه۔ (قاسمی٢/٥١)

٢– **فائده** : د کافرانو سره دوستي او تعلقاتو کې دا خبره ضرور راځي چه بیا به د کافرانو طرز او طریقه ورته ښه ښکاره کیږي نو لازمي طور سره د مسلمانانو طرز او طریقه به ورته سپکه ښکاري او دا سبب د هلاکت دے۔٣– دارنګه کوم زړهٔ کې چه د الله تعالیٰ د دشمنانو سره دشمني نهٔ وي نو د هغه په عبادتونو کې هیڅ مزهٔ نهٔ وي اګرکه دا ډیره بزرګي کوي، پدے وجه په اسلام کې د ولاء او براء ډیر لوئي اهمیت دے۔

## ٤- فائده : د موالات الکفار اقسام او طریقے :

کافران او د هغوی سره دوستي کول په یو څو طریقو دي :

(١) یو کافر حربي دے چه د مسلمانانو سره جنګ کوي نو ددهٔ سره هر قسم تعلق ساتل صحیح نهٔ دي، د هغوی سره راشه درشه کول، هغوی لره تحفے تحائف ورکول، ګپ شپ او خبرے اترے کول تیول حرام دي. مګر د دعوت په نیت جائز دي لکه عمر فاروق ﷺ جُبّهٔ سُنْدس (د وریښمو چوغه) خپل مشرك وروړ ته هدیه کړے وه چه هغه په مکه کي وو. (بخاري :٢٦١٥)

(٢) غیر حربي کافر ستا ګاونډي دے، د هغه سره اخلاق چلول او هدیه ورکول او احسان کول جائز دي. سورة الممتحنه آیت (٨) کي دي ﴿لَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ﴾.

(٣) هر چه مسلمان مبتدع او فاسق دے نو د هغه سره به سختي کولے شي دے دپاره چه سمے لارے ته راشي لیکن پدے کي به هم اخلاص ته ضرورت وي، د دنیاوي مفادو په وجه به تعلق نهٔ پریدي.

علامه قاسمیؒ فرماني : موالات په یو څو قسمه دے :

(١) یوه داسے دوستي کول چه کافرانو سره پټه دوستانه او مشورے کوي او هغوی ته د مسلمانانو رازونه ښکاره کوي او په زړهٔ کي د کافرانو کفر ښه ګڼړي او په زړهٔ کي ایمان والا سپك ګڼړي نو دا خو ښکاره کفر دے.

(٢) دویم دا چه د کافرانو تعظیم کوي او د هغوی سره ښائسته دوستي او رشتیني محبت ساتي او هغوی ته د مسلمانانو رازونه ښکاره کوي نو دا کار هم حرام دے او هیڅ استثناء پکي نشته.

(٣) دریم هغه موالات او دوستي ده چه د کافرانو تعظیم کوي او هغوی سره ښائسته دوستي کوي او په هغه کارونو کي ورسره مشورے کوي چه په هغے کي مسلمانانو ته ضرر نهٔ وي نو دا کار هم جائز نهٔ دے مګر که د تقیه په صورت کي وي نو جائز به وي. یعني کافرانو ته خطره محسوس کوي او د خپل ځان د بچاؤ دپاره دا کار کوي.

(٤) بل هغه موالات دے چه کافرانو سره ئے دا وعده کړي وي چه د یو بل مدد به کوو نو که دا په یو مباح یا واجب کار باندے وي نو ددے په کولو کي هیڅ حرج نشته بلکه واجب

دے لکه مؤمنان د اهل الذمه د طرف نه دفاع اُوکړی کله چه په هغوی باندے څوك ظلم کوی۔ او که په حرام کار کی د هغوی مدد کوی لکه هغوی د مسلمانانو مالونه اخلی او په هغے باندے غلبه کوی او دا مسلمان ورسره ملګرتیا او مدد اُوکړی نو دا بیشکه ګناه ده۔
(۵) دغه شان که موالات داسے وی چه هغوی ته د مسلمانانو رازونه ښکاره کړی او دا خوښوی چه کافران بچ پاتے شی نهٔ پدے وجه چه د هغوی کفر ښه ګڼړی بلکه د خپلولیٔ د وجے نه یا کافرانو ورسره یو احسان کړے وی د هغے د بدلے خلاصولو دپاره نو دا کار هم بیشکه چه حرام دے او ګناه ده لیکن انسان د کفر حد ته نهٔ رسوی څکه چه دا ندی نقل چه رسول الله ﷺ د حاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه په کفر باندے فیصله کړی وی۔ (محاسن التاویل للقاسمی (۵۲/۲).
او دا مسئله د موالات الله تعالیٰ په مختلفو آیتونو کی ذکر کړیده لکه په سورة الانفال (۱۲۵) او سورة الممتحنه (۱/۱۲) کی او سورة المجادله (۱۲) آیت کی۔
بیا د کافرانو سره موالات ډیر اقسام دی: (۱) اِتِّبَاعُهُمْ فِیْ اَفْعَالِ الْكُفْرِ۔ (د کفر په کارونو کی د هغوی تابعداری کول لکه صلیب اچول، د هغوی سره عبادت کول)۔
(۲) تَعَاوُنُهُمْ۔ (د مسلمانانو او د دین په خلاف د کافرانو مدد کول)۔
(۳) اَلتَّجَسُّسُ لَهُمْ۔ (د کافرانو دپاره جاسوسی کول او د مسلمانانو رازونه هغوی ته ښکاره کول)۔ (٤) تَوْقِیْرُهُمْ وَاِعْزَازُهُمْ۔ (د کافرانو عزت کول او هغوی ته په مجلسونو کی پاځیدل او ځای ورکول)۔ (۵) حُرِّیَّةُ التَّنَقُّلِ فِی الْبِلَادِ الْاِسْلَامِیَّةِ۔
(د مسلمانانو په ملك کی هغوی ته د چکرو وهلو آزادی ورکول)۔ او پدے کی تفصیل شته۔
(٦) حُرِّیَّةُ الدَّعْوَةِ۔ (د هغوی دعوت ته آزادی ورکول)۔ دا ټول د کافرانو سره موالات او دوستی ده او دا ټول صورتونه حرام دی لیکن د هر یو صورت جدا جدا حکم دے۔ لکه ددے تفصیل په "الموالاة والمعاداة" للمحماس الجلعود۔ دارنګه الولاء والبراء لسعید بن وهف القحطانیؒ کی اُوګوره۔
(۷) او پدے کی دا هم داخلیږی چه خپل اولاد ته د کافرانو نومونه کیږدی یا د هغوی سره په لباس کی تشبه (مشابهت) وکړی۔ (فتاوی الدین الخالص (٦) تفصیلا)
مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِیْنَ : اَیْ مُتَجَاوِزِیْنَ الْمُؤْمِنِیْنَ اِلَیْهِمْ اِسْتِقْلَالًا اَوْ اِشْتِرَاكًا] یعنی د مؤمنانو د دوستانے نه ورتیریږی د کافرانو دوستانے ته یعنی صرف د کافرانو سره دوستی کوی یا

دواړو سره دوستانه کوی) او پدے کی اشاره ده چه هرکله چه ایمان والا موجود دی نو د کافرانو دوستانے ته هیڅ ضرورت نشته، بس ایمان والا مستحق د دوستانے دی۔ (قاسمیؒ)
او هرکله چه د کافرانو سره په زړهٔ کی محبت پیدا شی نو بیا د مسلمانانو مینه نهٔ پاتے کیږی ځکه دا جمع د نقیضینو ده۔
مِنَ اللّٰهِ فِیْ شَیْءٍ : یعنی څوك چه د کافرانو سره دوستانه کوی نو هغه د الله تعالیٰ د دوستانے نه په هیڅ شی کی نهٔ دے یعنی دا بالکلیه د الله تعالیٰ د دوستانے نه وتلے دے او دا خبره د عقل مطابق ده ځکه چه د یو ذات سره دوستی کول او بیا د هغه د دشمن سره دوستی کول دواړه منافات لری۔ (قاسمیؒ) ۔ (۲) لَیْسَ مِنْ دِیْنِ اللّٰهِ فِیْ شَیْءٍ۔ یعنی څوك چه په زړهٔ کی د کافرانو سره دوستی کوی نو هغه د الله د دین نه په هیڅ شی کی نهٔ دے۔
(۳) مِنْ حِزْبِ اللّٰهِ فِیْ شَیْءٍ ۔ یعنی دا د الله تعالیٰ په ډله کی نهٔ دے شمار یعنی د مسلمانانو سره به نهٔ وی شمار۔ (قرطبی ٥٧/٤)
اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقٰىةً : یعنی که یریږیٔ د هغوی نه په یره نو بیا په ظاهره کی د هغوی سره په ژبه دوستی ښکاره کولے شیٔ لکه څنګکی د ابو الدرداء ؓ وینا ذکر شوه۔
تقاة : په اصل کی وُقَیَة ده واو په تاء سره بدل شو لکه د تخمة او تهمة پشان۔ او یاء په الف سره بدله شوه۔ (قرطبی وغیره)
د تقیه معنیٰ ده ځان بچ کول او یریدل۔ تقیه په دوه قسمه ده یو د مسلمانانو ده او بله د شیعه ګانو ده۔ د مسلمانانو تقیه دا ده چه تا کافران اُونیسی او حلالوی دِ دے چه شا به زمونږ صفت اُوکړه او د مسلمانانو بدی بیان کړه، یا زمونږ ملګرے شه نو په هغه وخت کی به د هغوی صفت اُوکړے په خوله نو پدے به ته نهٔ ګناهګاریږے خو پدے شرط چه په زړهٔ کی به دِ بے نهٔ وی۔ لکه ددے تفصیل په سورة النحل آیت (۱۰۶) ﴿وَقَلْبُهٗ مُطْمَئِنٌّۢ بِالْاِیْمَانِ﴾ کی راغلے دے۔
د شیعه ګانو تقیه دا ده چه بغیر د ضرورت نه به د کفر کلمه وائی، د هغوی په نیز د معمولی شان خوف او ملامتیا په وخت کی هم د کفر اظهار واجب دے، او د هغوی په نیز انسان د تقیه نه بغیر جنت ته نشی داخلیدے۔ او دا قسم تقیه کفر دے ځکه چه د کفر کلمه بلا اجبار ویل کفر دے۔
وَیُحَذِّرُکُمُ اللّٰهُ : اَیْ مِنْ غَضَبِهٖ وَعُقُوْبَتِهٖ: یعنی الله تعالیٰ تاسو د خپل غضب او عذاب نه یروی۔ د الله تعالیٰ نفس شته د هغه د شان مناسب۔ او په نفس لفظ ذکر کولو کی زیات

سختوالي د يرے ته اشاره ده چه د کافرانو تعلق پريدئ. او (من غضبه وعقوبته) تفسير په بعض لوازماتو سره شويدے، دائے خپله معنیٰ نهٔ ده.

وَإِلَى اللهِ الْمَصِيرُ : پدے کی د آخرت يره ذکر ده او مخکی د دنيا يره وه.

| قُلْ إِنْ تُخْفُوا مَا فِي صُدُورِكُمْ أَوْ تُبْدُوهُ |
| --- |
| اووايه ! که تاسو پټوئ هغه شے چه ستاسو په سينو کی دی او يائے ښکاره کوئ |
| يَعْلَمْهُ اللهُ وَيَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ |
| پو هيږی په هغے باندے الله تعالیٰ، او پو هيږی په هغه څه چه په آسمانونو کی دی |
| وَمَا فِي الْأَرْضِ وَاللهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٩﴾ |
| او په هغه څه چه په زمکه کی دی او الله په هر شی باندے قادر دے. |

**تفسير** : پدے کی دنياوی يره بيانوی چه الله تعالیٰ ستاسو ظاهر او باطن پيژنی که چرے تاسو په پټه د کافرانو سره تعلقات ساتئ نو دا هم د الله په علم کی دی او کيدے شی چه په دنيا کی تاسو ته د هغے سزا درکړی.

مطلب دا چه پدے کی د الله تعالیٰ د طرف نه بندگانو ته دا خبردارے ورکړے کيږی چه دوی دِے د الله تعالیٰ نه يريږی، او داسے اعمال دِے نهٔ کوی چه د هغے نه الله تعالیٰ منع کړی وی، او د هغه د ناراضگئ سبب وی او بنده دِے پدے يقين سره په دنيا کی اُوسيږی چه د الله تعالیٰ نه هيڅ خبره هم پټه نهٔ ده، هغه د زړونو راز پيژنی، برابره ده که بنده ئے ښکاره کوی يا ئے پټوی، هغه د آسمان او زمکے په ټولو څيزونو پو هيږی. د زمکو او غرونو او دريابونو يوه ذره يا ددے نه هم ووړکے شے د الله تعالیٰ نه پټ نهٔ دے. او کله چه د هغه نه هيڅ شے پټ نهٔ دے، نو که يو شخص په پټه سره د کافرانو سره دوستی اُوساتی يا د نبی کريم ﷺ تکذيب اُوکړی، يا کفر اُوکړی، نو الله تعالیٰ نه دا ټولے خبرے څنگه پټے پاتے کيدے شی ؟!.

(ما) : بعض مفسرين وائی : (۱) د (مَا) نه مراد د کافرانو دوستی ده که په زړهٔ کی ئے پټ ساتی يا ئے په خوله اظهار کوی. (۲) دويم مصداق : تکذيب د رسول الله ﷺ پټوئ يا ئے راښکاره کوئ په جنگ کولو د هغه سره. (۳) عموم پکی غوره دے چه الله تعالیٰ په هر حرکت د بندگانو پو هه دے، نو د کافرانو سره دوستی چرته اُونهٔ کړئ.

اخفاء ئې مخکې ذکر کړه څکه چه موالات د کافرانو سره په پټه (یعنې په زړه کې) په هر حال کې حرام دي او ښکاره کول ئې په تقیه سره جائز دي.

وَيَعْلَمُ: دا علت او دلیل د مخکنۍ خبرې دے چه هر کله الله تعالیٰ د آسمان او د زمکې په هر څه پوهه دے نو ستاسو د زړونو حالت هم ورته معلوم دے.

او دا تعمیم بعد التخصیص دے لکه دا د قرآن کریم عادت دے چه د الله تعالیٰ عمومي علم بیانوي پس د هغې نه چه دیو شي پورې ئې تخصیص کړے وي.

**فائده**: دے آیت کې تهدید بالعلم دے او قرآن کریم کې ډیر کرت تخویف بندګانو ته په علم د الله تعالیٰ سره ورکول کیږي چه الله تعالیٰ ګوره په تاسو عالِم دے ؟!.

| يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُّحْضَرًا |
|---|
| په هغه ورځ چه مونده به کړي هر يو نفس هغه چه عمل ئې کړے دے د نیکۍ نه حاضر کړے شوے |
| وَمَا عَمِلَتْ مِنْ سُوْءٍ تَوَدُّ لَوْ أَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُ |
| او هغه چه کړے ئې دے د بد عمل نه، خوښوي به آرمان دے چه وے په مابین ددے نفس کې او په مابین ددے عمل کې |
| أَمَدًا بَعِيدًا وَيُحَذِّرُكُمُ اللهُ نَفْسَهُ وَاللهُ رَءُوْفٌ بِالْعِبَادِ ﴿۳۰﴾ |
| موده لرې، او یروي الله تاسو د خپل نفس نه او الله تعالیٰ شفقت کونکے دے په بندګانو. |

**تفسیر**: عنوان د آیت: جَزَاءُ الْإِنْسَانِ بِكُلِّ أَعْمَالِهِ سَوَاءٌ كَانَ خَيْرًا أَوْ شَرًّا وَتَحَسُّرُهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلٰى عَمَلِهِ السُّوْءِ. (د انسان په ټولو اعمالو باندے جزاء ذکر کوي برابره ده خیر وي او که شر او د قیامت په ورځ ددهٔ په بد عمل باندے افسوس ذکر کوي).

**ربط**: اُوس د آخرت یره بیانوي هغه کسانو ته چه د کافرانو سره موالات کوي.

یعنې که الله تعالیٰ په دنیا کې چا ته تاخیر او مهلت ورکړي نو ددے نه دے څوک دا معلومه نهٔ کړي چه الله تعالیٰ نه د هغه اعمال پټ دي، بلکه ددهٔ عملونه د قیامت د ورځې دپاره راجمع کولے شي چه په هغه ورځ به هر بنده خپلې نیکیانې خپلې مخې ته اُومومي، او کله چه خپل ګناهونه خپلې مخې ته اُومومئ نو دا آرمان به کوي چه کاش ددهٔ او ددهٔ ګناهونو ترمینځ داسې وړاندے والے وے چه د هغې نه روستو هیڅ لرے والے نشي کیدے.

يَوْمَ: منصوب دے په روستو (تَوَدُّ) سره. یا متعلق دے په (يُحَذِّرُكُمُ الله) پورے.

تَجِدُ: د وِجدان نه دے په معنیٰ د موندلو سره، متعدي دے يو مفعول ته چه (مَا عَمِلَتْ)

دے او (مُحضرا) ئے حال دے۔ یعنی هر نفس به اُومومی هغه عمل چه کړے ئے دے پداسے حال کی به ئے اُوموموی چه حاضر کړے شوے به وی۔
مُحۡضَرًا : یعنی حاضر به وی په عملنامو د دوی کی لیکلے شوے۔ یا به په خپل مناسب شکلونو کی دغه اعمال حاضر وی۔ یا جزاء لفظ پټ دے یعنی جزاء د دغه عملونو به حاضره وی۔ لیکن اول مطلب ظاهر دے چه هر انسان به خپل عمل وینی که خیر وی او که شر۔ لکه اُوس په دنیا کی د ویډیو په شکل اعمال ښکاری، دغه شان به الله تعالیٰ په قیامت کی هم دوی ته د دوی عملونه ښکاره کړی۔
وَمَا عَمِلَتۡ مِنۡ سُوٓءٍ : پدے کی دوه ترکیبه دی (۱) دا عطف دے په مخکی (ما عملت من خیر) باندے او (محضراً) دلته پټ دے۔ یعنی مونده به کړی هر نفس هغه عمل چه کړے ئے دے بد عمل حاضر کړے شوے۔ او روستو (تود) نوے کلام دے چه ددے روستو نفس سره لګی۔ (۲) یا دا چه دا نوے کلام دے او دا مبتداء ده او روستو (تود) ئے خبر دے۔ یعنی کوم نفس چه بد عمل کړے وی او عمل ئے حاضر شی نو دا به ارمان کوی او خوښوی به چه زما او ددے ګناه ترمینځ لرے فاصله وے۔
دا خو د نفس او د ګناه ترمینځ دومره مصیبت دے او بیا چه کله د شیطان سره اُوتړلے شی چه بد بوئی ترے روانه وی او بیا پرے دپاسه عذاب هم وی نو ددے تصور اُوکړه څه حال به وی ؟!!۔ لکه دا الله تعالیٰ په سورة الزخرف (۳۸) آیت کی ذکر کړیدی : ﴿ يَالَيۡتَ بَيۡنِي وَبَيۡنَكَ بُعۡدَ الۡمَشۡرِقَيۡنِ فَبِئۡسَ الۡقَرِيۡنُ ﴾۔
سوء : هغے ګناه ته وائی چه انسان د هغے په کولو خفه کیږی او دا ټولو ګناهونو ته شامل دے۔
اَمَدًا : هغه مودے ته وائی چه د هغے حد معلوم نهٔ وی۔ (راغبؒ)
وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفۡسَهٗ : دا ئے دوباره راوړو څکه مخکی تحذیر وو د موالات د کافرانو نه اُوس تحذیر دے د سوء (بدعمل) نه۔ دارنګه مخکی تحذیر وو د موالات نه اُوس د قیامت د ورځے نه تحذیر دے۔
وَاللّٰهُ رَءُوۡفٌ بِالۡعِبَادِ : **حکمة** : الله تعالیٰ رؤف نوم ذکر کړو د ډیرو وجو نه (۱) الله تعالیٰ رؤف (شفقت) کونکے دے پدے وجه ئے بندګان د خپل ځان نه اُویرول هسے نه چه د هغه عذاب ورته اُورسی۔ (حسن بصریؒ)۔ (۲) دے دپاره چه ددے نوم نه رجاء (امید) پیدا شی څکه چه په (ويحذركم الله) لفظ کی سخته یره پرته وه او د انسان کمال دا دے چه په هغه

کی خوف او رجاء دراړه راشي۔ (۳) دے دپاره چه بندګان ترے متنفر نشي۔

| قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ |
|---|
| اووایه !که چرے تاسو مینه کوئ د الله سره نو تابعداری وکړئ زما، مینه به وکړی تاسو سره |
| اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۳۱﴾ |
| الله تعالیٰ او بخنه به وکړی تاسو ته د ګناهونو ستاسو او الله بخنه کونکے رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کریمه کی عنوان دے :"اَلْاَمْرُ بِاتِّبَاعِ الرَّسُوْلِ ﷺ ۔ (الله تعالیٰ حکم کریدے په تابعداریٔ د رسول الله ﷺ)۔ او د رسول الله ﷺ د رشتینوالی بیان هم پکی ذکر دے ځکه چه ددهٔ د تابعداریٔ نه بغیر کار نهٔ کیږی۔

**ربط** : (۱) نصاراؤ دعوه کړے وه چه مونږ د الله تعالیٰ دوستان یو نو الله تعالیٰ فرمائی چه تاسو به د الله تعالیٰ دوستان هله جوړیږئ چه ددے آخری رسول ﷺ تابعداری شروع کړئ۔ نو دا هغوی ته جواب شو۔ (۲) مخکی د الله تعالیٰ د دشمنانو سره د دوستانے کولو نه یره بیان شوه اُوس د الله تعالیٰ محبت ته ترغیب ورکوی او د هغے ذریعه ذکر کوی۔

(۳) والله رؤف بالعباد سره هم لګیږی یعنی د الله د رأفت (شفقت) نه دا ده چه بندګانو ته نے خپل رسول (ﷺ) راولیږلو او د هغه طاعت ئے پرے واجب کړو دے دپاره چه د هغه د عذاب نه خلاص شی۔

## شان نزول

حسن بصریؒ فرمائی : اِدَّعٰى قَوْمٌ مَحَبَّةَ اللّٰهِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ هٰذِهِ الْاٰيَةَ مِحْنَةً لَّهُمْ ۔ څه خلقو د الله تعالیٰ د محبت دعوه کړے وه چه مونږ د الله تعالیٰ سره مینه لرو نو الله تعالیٰ دا آیت د هغوی د امتحان دپاره نازل کړو او پکی وے فرمایل : که تاسو د الله تعالیٰ محبت غواړئ نو څیٔ ددے رسول تابعداری اُوکړئ۔

(دا خلق مشرکان هم وو هغوی به وئیل مونږ د بتانو عبادت دے دپاره کوو چه الله ته مو نزدے کړی، دغه شان یهود او نصاراؤ به هم د الله تعالیٰ د محبت دعوے کولے)۔

د حسن بصریؒ نه دا هم نقل دی چه هغه فرمائی :

[لَيْسَ الشَّأْنُ اَنْ تُحِبَّ بَلِ الشَّأْنُ اَنْ تُحَبَّ]

کمال دا نهٔ دے چه تهٔ د الله تعالیٰ محبت وکړے فقط بلکه کمال دا دے چه تا سره د الله

تعالیٰ محبت پیدا شي او هغه حاصلیږي د پیغمبر په تابعدارئ سره. ځکه چه هر یهودي او کافر او مشرك دا دعوه لري چه زمونږ د الله تعالیٰ او د رسول الله ﷺ سره مینه ده، لیکن پدې باندې انسان کمال ته نشي رسیدلې ترڅو چه تابعداري ئې نهٔ وي کړې.

بیا د الله تعالیٰ سره محبت دا دې چه انسان د الله تعالیٰ خبره په هر څه مخکې کړي او د هغه خبره د هر چا په خبره دپاسه او درنه وګڼري او د الله تعالیٰ نه یریږي او د هغه طاعت کوي او د هغه نه حیاء لري. او چه تهٔ د الله تعالیٰ محبوب شوې د هغې نښه دا ده چه الله تعالیٰ به دې په خپل طاعت او د خپلې رضا په کارونو کې استعمالوي او چه الله تعالیٰ درسره مینه وکړه نو د خلکو په زړونو کې به ستا محبت واچوي دا به ئې نښه وي. د ایمان والو په زړونو کې چه د چا سره مینه وي دا به د الله تعالیٰ د محبت نښه وي.

سهل بن عبد الله التُّستريّ فرمائي : عَلَامَةُ حُبِّ اللّٰهِ حُبُّ الْقُرْآنِ وَعَلَامَةُ حُبِّ الْقُرْآنِ حُبُّ النَّبِيِّ ﷺ وَعَلَامَةُ حُبِّ النَّبِيِّ ﷺ حُبُّ السُّنَّةِ وَعَلَامَةُ حُبِّ اللّٰهِ وَحُبِّ الْقُرْآنِ وَحُبِّ النَّبِيِّ وَحُبِّ السُّنَّةِ حُبُّ الْآخِرَةِ ......الخ. د الله تعالیٰ د محبت نښه دا ده چه قرآن سره به مینه کوي او د قرآن سره د محبت علامه د نبي ﷺ سره محبت کول دي او د نبي ﷺ سره د محبت نښه دا ده چه د هغه سنت سره به مینه کوي او ددې ټولو محبتونو نښه دا ده چه د آخرت سره به مینه کوي او د آخرت سره د مینې نښه دا ده چه د ځان سره به مینه کوي او د ځان سره د مینې نښه دا ده چه دنیا سره به بغض لري او د دنیا سره د بغض نښه دا ده : أَنْ لَّا يَأْخُذَ مِنْهَا إِلَّا الزَّادَ وَالْبُلْغَةَ. چه د دنیا نه صرف د خپل ژوند د توښې په اندازه واخلي. (القرطبي ٤/٦١)

بیا د الله تعالیٰ محبت څه حقیقت لري نو په هغې باندې الله تعالیٰ پوهیږي خو ظاهري نښه ئې دغه مخکې ذکر شوه.

حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکي چه دا آیت کریمه د هغه تمامو خلقو په خلاف دلیل دې چه د الله تعالیٰ د محبت دعویٰ کوي او په طریقه د محمد ﷺ باندې روان نهٔ وي. ترڅو چه بنده په خپلو تمامو خبرو او کارونو کې د محمد ﷺ د شریعت تابعداري اُونکړي، نو هغه د الله تعالیٰ سره د محبت کولو په دعوه کې دروغجن دې. بخاريؒ او مسلمؒ د عائشه رضی الله عنها نه روایت کړیدې چه چا یو داسې عمل اُوکړو چه د هغې مونږ حکم نهٔ دې کړې نو هغه عمل به مردود وي. (ابن کثیرؒ)

نو په آیت کریمه کې دا مسئله ده چه د رسول الله ﷺ تابعداري فرض ده او الله تعالیٰ ته

د رسیدو دپاره صرف دا یوه لاره کولاوه ده، نورې ټولې لارې بندې دي او هغه لاره د رسول الله ﷺ د تابعدارۍ ده. نو دا خبره کول چه "منزل د ټولو یو دے او سفر جدا جدا". نو دا غلطه خبره ده بلکه زمونږ منزل هم یو دے چه الله تعالیٰ ته رسیدل دي او سفر هم یو دے که چا نور سفرونه اختیار کړل منزل مقصود ته نشي رسیدلے. دا وجه ده یهود او نصاریٰ او مشرکان او نور دعویدار که هر څومره کوشش اُوکړي نو الله تعالیٰ ته نشي رسیدلے ترڅو چه ددے نبي ﷺ په لاره نهٔ وي روان شوي چه هغه د قرآن او سنت لاره ده. پدے وجه الله تعالیٰ ته په قرب او نزدیکت حاصلولو کي او په عبادتونو او په ذکرونو کي د پیغمبر طریقے ته انتهائي ډیر ضرورت دے ورنه عبادت به خراب شي او کوشش به ناکام شي.

په یو حدیث کي راغلي دي رسول الله ﷺ فرمائي: ((که تاسو غواړئ چه الله تعالیٰ او د هغه رسول تاسو سره محبت وکړي نو په درے کارونو حفاظت وکړئ: صِدْقُ الْحَدِيْثِ (رشتیا خبرے کول) وَاَدَاءُ الْاَمَانَةِ. (امانت ادا کول) وَحُسْنُ الْجِوَارِ (او ښائسته ګاونډی توب کول). (الخلعي في الفوائد– السلسلة الصحيحة: (٦/١٢٦٤) رقم (٢٩٩٨). (والقرطبي)

امام شافعي رحمه الله د اتباع په باره کي فرمائي: ((إِذَا رَأَيْتُمُ الرَّجُلَ يَطِيْرُ فِي الْهَوَاءِ وَيَمْشِيْ فَوْقَ الْمَاءِ فَلَا تَغُدُّوْهُ شَيْئًا حَتّٰى تَعْرِضُوْا عَمَلَهُ عَلٰى كِتَابِ اللّٰهِ وَسُنَّةِ رَسُوْلِهٖ)

(کله چه تاسو یو سړے اُووینئ چه په هوا الوزي او د اُوبو په سر روان وي نو هغه هیڅ شے مهٔ ګڼرئ (ګڼے چه دا به د الله تعالیٰ ولي وي) تردے چه تاسو د هغه عمل د الله تعالیٰ په کتاب او د هغه د رسول ﷺ په سنتو پیش کړئ)

ډیر خلق د رسول الله ﷺ سنت طریقے سپکے ګڼري او هغه ماتوي، او د رسول الله ﷺ د سنتو طریقو د سپکو ګڼرلو او د هغے د ماتولو دوه لوئي اسباب دي یو خواهشات دي. خواهشاتو والا سنت اګر که سپك نهٔ ګڼري لیکن عمل پرے نهٔ کوي. او دویم سبب ئے تقلید دے. د تقلید په وجه انسان صحیح روغ حدیث ضعیف کوي، د هغے نه ډیر جوابونه کوي او د هغے اهمیت ختموي لکه دا خبره په واقع کي موجوده ده، د احادیثو سره ډیر زیاتے شویدے او کیږي، او پدے باندے هر مسلمان له خفګان پکار دے، آیا حدیثونه ګنے د جوابونو دپاره راغلي دي؟!. لیکن افسوس چه شیطان او غلطے معاشرے زمونږ دماغ بند کړي او اهل حق ئے خلقو ته په نظر کي بد او سپك بنکاره کړیدي.

څوك چه د سنتو تعظیم او اکرام نهٔ کوي نو الله تعالیٰ هغه خلقو ته ډیرے سزاګانے ورکړیدي.

لـکه بعـض واقعـات په کتاب تعظيم السنة کې ذکر کړيدي. دارنګه الفوائد دريم جلد تفصيلا وګوره.

(١) په حديث د دارمي (١/٤٤٤) او مجمع الزوائد کې هم دي، د ابن عباسؓ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (لاتطرقوا النساء ليلا) (تاسو د سفر نه د شپے خپلو ښځو ته مه راځئ) نو پدے کې دوه کسانو خلاف اُوکړو نو دواړو ته دا سزا ملاؤ شوه چه دواړو د خپلو ښځو سره بل سړے اُوموندلو. (که دوی چرته داسے نه وے کړی نو الله تعالیٰ به پدے خفګان نه اخته کړلے).

(٢) حديث د مسلم کې دی: يو سړی د رسول الله ﷺ سره په ګس لاس خوراك كولو نو رسول الله ﷺ ورته اُوفرمايل په ښی لاس خوراك كوه، هغه اُووئيل: لا اَسْتَطِيْعُ. زما طاقت نشته. نو رسول الله ﷺ ورته اُوفرمايل: لا اسْتَطَعْتَ. ته دے طاقت اُونه لرے. صحابی وائی: (مَا مَنَعَهُ اِلَّا الْكِبْرُ). دا سړے د رسول الله ﷺ د خبرے منلو نه تکبر منع کړو) پدے وجه ورته رسول الله ﷺ ښيرے اُوکړے. نو دے سړی دا لاس بيا خولے ته پورته نکړو. الله تعالیٰ ورله لاس اُوچ کړو.

(٣) سيدنا ابو هريره ؓ فرمائی: يو سړے په دوه جامو کې په تکبر روان وو نو الله تعالیٰ په زمکه کې داخل کړو (چه قارون مراد دے). يو سړی ددے پيښے اُوکړے: اَهٰكَذَا يَمْشِيْ ذٰلِكَ الْفَتٰی؟) آيا دغسے روان وو دغه ځوان؟. (ددے حديث پورے ئے توقے کولے) نو الله تعالیٰ زمکے ته راکوزار کړو نزدے وه چه ملا ئے ماته شوے وے نو ابو هريره ؓ خپلے خولے او پوزے ته اشاره اُوکړه او وے فرمايل: ﴿اِنَّا كَفَيْنٰكَ الْمُسْتَهْزِءِيْنَ﴾. (يعنی څوك چه د دين پورے توقے کوی نو الله تعالیٰ فرمائی چه زهٔ به ورله کافی شم).

(٤) عبد الرحمن بن حرملةؒ وائی يو سړے سعيد بن المسيبؒ ته راغلو چه ما له اجازه راکړه زهٔ حج ته ځم. نو هغه ورته اُووئيل اذان اُوشو مونځ ته ايسار شه ځکه چه رسول الله ﷺ فرمايلی دی: [لَا يَخْرُجُ بَعْدَ النِّدَاءِ اِلَّا مُنَافِقٌ] . د اذان نه روستو د مسجد نه نهٔ اُوځی مګر منافق. (اګرکه يو انسان بل ځای کې جمع هم کوی خو نهٔ به اُوځی) نو هغه سړے اُووتو چه ملګری رانه ځی. نو سعيدؒ اُوفرمايل: چه تاسو انتظار کوئ دے سړی ته به ځه ضرور رسيږی. نو لږ وخت روستو خبر راغلو چه دغه سړے د سورلئ نه پريوتو او ورون ئے مات شو. (حج ته هم اُونهٔ رسيدو، الله تعالیٰ ورله سزا ورکړه).

(٥) ابو يحيیٰ الساجیؒ وائی مونږ د بصرے په کوڅو کې روان وو نو مونږ مزل تيز کړو چه

اُستاذ ته په جلتئ اُورسو، مونږ سره یو ماجن (په دین کې بې باکه) وو، هغه توقے اُوکړے چه [اِرْفَعُوْا اَرْجُلَكُمْ عَنْ اَجْنِحَةِ الْمَلَائِكَةِ لَا تَكْسِرُوْهَا] خپلې خپې د ملائکو د وزرو نه پورته کړئ هسے نه چه هغه ماتے کړئ). نو د هغه ځای نه اُونۀ خوزیدو تردے چه الله تعالیٰ ورله خپے اُوچے کړې او راپریوتو. (بستان العارفین للنووی ص: ۹۲).

(٦) رسول الله ﷺ فرمائی: «کله چه یو تن په تاسو کې د خوب نه راپیدار شی نو لاس دِے لوبنی ته نۀ داخلوی تردے چه درے کرته ئې اُووینځی ځکه چه دۀ ته پته نشته چه ددۀ لاس کوم ځای شپه تیره کړیده». نو یو مبتدع اُووئیل چه زۀ پو هیږم چه زما لاس چرته شپه تیروی. نو دۀ شپه تیره کړه سحر چه راپاځیدو، خپل لاس ئې په خپل دُبر کې تر ځنګلو پورے داخل کړے وو او په ځان نۀ وو پو هه شوے. (دا هم سزا وه چه الله تعالیٰ ورکړه) (بستان العارفین: ٩٤)

(٧) شیخ الاسلام ابن تیمیة په "مجموعة الفتاویٰ" کې نقل کړیدی چه په مسئله د مُصراۃ کې د یو حنفی او شافعی مناظره وه (چه دا مشهوره مسئله ده یعنی د حیوان غلانزه د پیو نه بندول دے دپاره چه خرڅولو وخت کې ډیرے روښئ وکړی او خلك پرے دوکه کړی) نو حنفی ملا ووئیل ابو هریره رضی الله عنه غیر فقیه دے نو پدے مینځ کې د چهت نه یو مار راپریوتو تول خلك ئې پریخودل او دۀ پسے شو، خلکو ورته ووئیل چه الله تعالیٰ ته توبه وباسه نو دۀ توبه وېستله مار سمدست ورك شو. (سیر اعلام النبلا٢٠/٦١٨)

(٨) حُمیدیؒ ووئیل: ما په مصر کې د امام شافعیؒ نه د رسول الله ﷺ یو حدیث واوریدو، نو هغه ته یو سړی ووئیل: آیا تۀ پدے باندے قول کوے؟ هغه غصه شو وے فرمایل: (اِنْ رَاَیْتَنِیْ خَرَجْتُ مِنَ الْکَنِیْسَةِ اَوْ تَرٰی عَلَیَّ زِنَارًا...... حَتّٰی لَا اَقُوْلَ بِهٖ) (حلیة الاولیاء ٩/١٠٦)

(آیا تا زۀ لیدلے یم چه د ګیرجے نه راوتلے یم یا دے په ما باندے زنار لیدلے دے (یعنی آیا زۀ درته یهودی او نصرانی او مجوسی ښکاره شوم) چه زۀ به په حدیث باندے قول نۀ کوم.

دا قسم ډیر واقعات په الفوائد (٣/٨٨ نه تر ١٠٠) پورے وګوره.

## د سنتو د اتباع فوائد

يُحْبِبْكُمُ اللهُ: ځوك چه د سنتو د رسول الله ﷺ تابعدارشی هغه ته ډیر فوائد ملاویږی: (١) بنده به د الله تعالیٰ محبوب جوړ شی. (٢) ګناهونه به ئې معاف شی. (٣) د کفر نه بچاؤ ورته حاصلیږی، لکه روستو آیت نه معلومیږی (٤) هدایت ورته حاصل شو. (٥)

الفوز العظیم۔ لویه کامیابی ورته حاصله شوه۔ (٦) اجرا عظیما۔ لوی اجر ورته ملاویږی۔ (٧) واشد تثبیتا۔ (الله تعالیٰ یٔ په دین باندې زړه مضبوطوی)۔ (٨) د پیغمبرانو او نیکانو ملګرتیا ورته نصیب کیږی۔

د اتباع السنة فوائد په "الفوائد" ١٠٠/٧٤/٣ ) کی وګوره۔

| قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَإِنْ تَوَلَّوْا |
| --- |
| اووایه ! تابعداری وکړئ د الله او د رسول (په تولو افعالو کی) نو که چرته دوی واوړیدل |
| فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ ﴿٣٢﴾ |
| نو یقیناً الله مینه نه کوی د کافرانو سره۔ |

**تفسیر**: اُوس پدې آیت کی طریق المحبة ذکر کوی یعنی الله تعالیٰ ته د رسیدلو لاره د رسول الله ﷺ لاره ده۔ یعنی د الله تعالیٰاو د رسول د محبت علامه دا ده چه په هر څه کی به د هغوی اطاعت کولے شی، د هغوی حکمونه به عملی کولے شی او کومو کارونو نه چه هغوی منع کړیده هغې نه به ځان ساتی او د هغوی په خبرو به تصدیق کوی۔ (السعدیؒ) که دوی ددې نه واوړیدل نو بیا بل څه نشته مګر دا چه دوی به کفر اختیاروی او د هر سرکش شیطان تابعداری به کوی او دا کفر دے او الله تعالیٰ د کافرانو سره مینه نهٔ کوی بلکه سزا به ورکوی۔

**فوائد الآیة**: (١) د اطاعت امر په قرآن کریم کی (١٤) کرته او ماده یٔ (٤٠) کرته راغلے ده۔

(٢) په آیت کی د نبی کریم ﷺ عظمتِ شان (لوی شان) ذکر دے چه الله تعالیٰ ځان سره په خپل اطاعت کی شریك ذکر کړیدے داسے نورو ډیرو مقاماتو کی د نبی ﷺ نوم د الله تعالیٰ سره شریك ذکر کیږی چه هغه قاضی عیاضؒ په خپل کتاب ((الشفاء)) کی ذکر کړیدی۔

(٣) آیت نه معلومه شوه چه لکه څرنګ قرآن کریم حق کتاب دے دغسے سنت د نبی کریم ﷺ هم حق دی۔

(٤) دا آیت دلیل دے چه د محمد (ﷺ) طریقے نه مخالفت کفر دے۔ ځکه چه الله تعالیٰ اُوفرمایل: که دوی اعراض اُوکړی نو الله تعالیٰ کافرانو سره مینه نهٔ کوی۔ دے نه معلومه

شوه چه د محمدی (ﷺ) طریقے نه اعراض کونکے کافر کیږی. او اعراض کول د کافرانو خوئی دے.

(٥) بیا اعراض په یو څو قسمه دے یو دا چه استخفاف السنة وکړی. یعنی سنت طریقه ورته سپکه بنکاره شی، د هغے پورے استهزاء وکړی یا انکار وکړی نو دا په اجماع د مسلمانانو سره کفر دے، دویم دا چه په ټولو سنت طریقو هیڅ کله عمل نهٔ کوی نو بیا حقیقی کافر دے. دریم ترك السنة. د سستئ یا د خواهش د وجه نه سنت پریښودل چه کله پرے عمل کوی او کله نهٔ نو دا کفر نهٔ دے بلکه د کافرانو خوئی دے، پدے سره بنده په ګناه کبیره کی داخلیږی، دے ته فاسق وئیلے کیږی چه الله تعالیٰ ته ددے نه زر توبه ویستل پکار دی.

.نو اعراض (١) علی سبیل الانکار کفر دے (٢) اعراض عَلٰی سَبِیْلِ الْاِسْتِهْزَاءِ وَالْاِسْتِخْفَاف کفر دے. (٣) اعراض د ټولو نبوی سنتونو نه کفر دے. (٤) اعراض د بعض سنتونو نه په طریقه د کسل (سستئ) او د خواهش سره ګناه ده. (٥) اعراض په طریقه د پورته کولو د غیر رسول په رسول ﷺ باندے هم کفر دے ﴿فلا وربك لا یؤمنو﴾ پرے دلیل دے.

(٦) **فائده**: مخکی آیت کی اتباع ذکر ده او دلته اطاعت. اتباع په افعالو کی استعمالیږی او اطاعت غالباً په اقوالو کی. دا وجه ده چه د الله تعالیٰ په باره کی دا نهٔ ده استعمال چه (اِتَّبِعُوا اللّٰهَ) (د الله تعالیٰ اتباع وکړئ) ځکه چه د الله تعالیٰ د فعل تابعداری څوك نشی کولے. بیا دلته ئے د قول په تابعدارئ حکم وکړو او مخکی د فعل په تابعدارئ. دلیل دے چه د نبی ﷺ د فعل تابعداری به هم کولے شی او د قول هم. مګر د هغه فعل تابعداری به ئے نهٔ کوی چه د هغه پورے خاص وی لکه رسول الله ﷺ د څلورو نه زیات نکاحونه کړیدی، د هغه په خوب باندے اودس نهٔ ماتیدو او د نورو مؤمنانو په خوب باندے اودس ماتیږی نو پدے کی به تابعداری نشی کیدے. بیا د قول تابعداری ډیره مضبوطه وی ځکه چه قول د نبی ﷺ د امت دپاره قانون وی او اتباع د فعل کله فرض وی او کله سنت درجه کی وی او کله مستحب وی او کله مباح درجه کی وی چه پدے کی بیا ډیر تفصیلات وی. لیکن دا خبره یاد ساتل پکار دی چه مؤمن به دے ته نهٔ ګوری چه دا مستحب دی او که واجب او که فرض، بلکه د نبی ﷺ حکم او عمل چه ثابت شو نو د هغے تابعداری پکار ده، صحابه کرامؓ کی دا خبره نهٔ وه چه آیا پدے قول او فعل د نبی ﷺ باندے عمل مستحب دے او که فرض؟ بلکه هغوی به عمل کولو.

إِنَّ اللهَ اصْطَفَىٰ آدَمَ وَنُوحًا وَآلَ إِبْرَاهِيمَ وَآلَ عِمْرَانَ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴿٣٣﴾

یقیناً الله غوره کړیدي آدم، نوح او آل ابراهیم او آل د عمران (علیهم السلام په مخلوقاتو

**تفسیر**: ددې ځای نه روستـه د انبیاؤ علیهم السلام واقعات ذکر کیږي. ددې آیتونو حاصل او ربط دا دې چه ددې ځای نه نقلي دلیلونه په توحید باندې او د انبیاؤ علیهم السلام واقعات بیانیږي. په اول آیت کې الله تعالیٰ یوه مقدمه ایښودې ده چه الله تعالیٰ بعض پیغمبران غوره کړیدي. بیا الله تعالیٰ د عمران ﷺ د ښځې حَنّه بنت فاقوذا واقعه راوړیده چه هغې د الله تعالیٰ نه نر بچې غوښتلے وو لیکن ښځه (مریم) ورکړے شوه بیا د مریم د پیدائش واقعه بیا زکریا ﷺ د الله تعالیٰ نه بچې غوښتے دے او هغه پیدا شویدے بیا د مریم علیها السلام فضیلت ذکر دے او بیا د عیسیٰ ﷺ پیدائش او د هغه نبی کیدل او بني اسرائیلو ته رالیږل او هغوی ته دین بیانول او قوم ته د توحید دعوت ورکول او د قوم مخالفت او بیا د عیسیٰ ﷺ آسمان ته خیژول ذکر دي. چه دا ټول واقعات ئې د رد د شرك دپاره راوړیدي چه عیسیٰ ﷺ بنده دے. الله تعالیٰ ته په هر څه کې محتاج وو نو رد دے په نصاراؤ باندې او پدې واقعاتو سره مسئله د توحید ثابتوي کومه چه په اول سر د سورت کې ذکر شوه (الله لا اله الا هو الحی القیوم). د عیسیٰ ﷺ د عبدیت (بنده کیدو) پنځه ویشت دلیلونه ئې راوړیدي. ﴿إِذْ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ﴾ نه. بیا د (۵۸) آیت نه روسته ئې تشبیه الغریب بالاغرب ورکړیده چه که تاسو عیسیٰ ﷺ ته اله وایئ نو بیا خو آدم ﷺ ته لوی اله ویل پکار دي ځکه چه هغه ډیر ناشنا پیدا شویدے چه نۀ ئې پلار شته او نۀ ئې مور. او د عیسیٰ ﷺ خو مور وه. نو که بې پلاره پیدا کیدل چرته د الوهیت نښه وي بیا خو آدم ﷺ ته غټ اله ویل پکار دي؟!، نۀ بلکه دا د الله تعالیٰ د قدرت نښې دي چه الله تعالیٰ په عیسیٰ ﷺ کې ښکاره کړیدي. نو پدې دلیلونو هغوی پوهه نشو نو روسته ورته د مباهلې دعوت ورکوي. ځکه چه څوك په دلیلونو نۀ پوهیږي او انکار کوي نو هغوی ته ښیرې پکار دي بیا ئې قرآن کریم ته ترغیب ورکړیدے چه دا قرآن چه کوم بیان کوي دا حق دے، ددې نه انکار نۀ دے پکار او د توحید تفریع ئې کړیده (وما من اله الا الله) سره او څوك چه ددې نه اوړي هغوی ته ئې زورنه ورکړیده، څوك چه د الله تعالیٰ نه سوئی بل معبود کنړي هغه مفسدان دي. دا خبرې به تر (۶۳) آیت پورې بیانیږي.

۱- ربط ددے آیت د مضمون د سورت سره دا دے چه الله تعالیٰ یو ذات دے بل څوك معبود نشته او دا بندګان انبیاء علیهم السلام دی او آلهه نهٔ دی۔ دوی الله تعالیٰ ته په غوره والی کی محتاج دی، دوی الله تعالیٰ د رسالت دپاره غوره کړیدی نهٔ د الوهیت دپاره۔

۲- نزدے آیت سره مناسبت دا دے چه مخکی د رسول تذکره وشوه نو اوس الله تعالیٰ د نورو رسولانو فضیلت بیانوی چه دا الله تعالیٰ غوره کړیدی، یعنی ددے رسول پشان نور رسولان هم په خپلو خپلو زمانو کی تیر شویدی۔

۳- یا دا چه مخکی د الله تعالیٰ د محبت تذکره وشوه اُوس هغه خلك ذکر کوی چه الله تعالیٰ ورسره مینه کړیده او د هغوی نه ئے هغه رسولان رالیږلی دی چه خلکو ته د الله تعالیٰ د محبت طریقے بیانوی چه هغه په الله تعالیٰ باندے ایمان راوړل او د هغه اطاعت کول دی۔ (المنار)

٤- او د موضوع د سورت سره ئے مناسبت دا دے چه کفر بآیات الله تعالیٰ ډیر انواع دی یو قسم کفر د انبیاؤ (علیهم السلام) په باره کی غلو کول دی خاصکر د عیسیٰ عليه السلام او د هغه د مور (مریم علیها السلام) په باره کی۔

## د اصطفاء مصداقات

اصْطَفٰی : د اِصطفاء معنیٰ مخکی سورتِ بقره ذکر ده یعنی د اُوچتو او غټو کارونو دپاره غوره کول۔ (۱) د اصطفاء یو مصداق دا دے : جَعَلَهُمْ آبَاءَ الْاَنْبِيَاءِ ۔ دوی ئے د انبیاؤ (علیهم السلام) پلاران جوړ کړیدی، د آدم عليه السلام نه تول پیغمبران پیدا دی او خپله هم نبی وو او الله تعالیٰ په خپل لاس پیدا کړے وو او تعلیم د هر شی ئے ورته ورکړے وو۔ او د نوح عليه السلام نه هم عام پیغمبران پیدا دی، ځمکے والو ته الله تعالیٰ اول رسول همدا رالیږلے دے د رد د شرك دپاره او د آل ابراهیم نه د هغه قبیله او نسل مراد دے یعنی اسماعیل او اسحاق او یعقوب او یوسف علیهم السلام، چه د دوی نه ئے انبیاء جوړ کړل او په آل ابراهیم کی نبی عليه السلام هم داخل دے ځکه چه دا هم د ابراهیم عليه السلام په اولادو کی دے او امام الانبیاء دے، ددهٔ نوم ئے ځکه ذکر نکړو چه دا د الله تعالیٰ په محبوب جوړیدو کی مشهور دے۔

او د آل عمران نه مراد د هغه اولاد دی چه د دوی په اولادو کی عیسیٰ عليه السلام نبی راغلے دے او مریم پکی ولیّه وه۔ په داسے مقام کی د آل نه مضاف او مضاف الیه دواړه مراد وی۔ عمرانان دوه تیر شویدی یو د هارون او موسیٰ علیهما السلام پلار وو۔ دویم د مریم پلار وو

د دوارو مينځ کې اتلس سوه کاله تير شوي وو، دلته دواړه مراد کيدے شي، ځکه چه د هارون او موسیٰ علیهما السلام په اولادو کې هم ډير پيغمبران راغلي دي داود او سليمان عليهما السلام د دوی په اولادو کې وو. او مفسرينو ليکلي دي چه دواړه عمرانان پيغمبران دي مګر ظاهر دا ده چه دلته د مريم پلار مراد دے ځکه چه روستو د دوی واقعه راوړی. (المنار)

(۲) دويم مصداق: اِصْطَفَاهُمْ عَلَى الْاِسْلَامِ. يعنی الله تعالیٰ دا انبياء عليهم السلام داسے غوره کړی وو چه د دوی دين ئے اسلام ګرځولے وو، نه يهوديت او نصرانيت او مجوسيت وغيره.

(۳) اِصْطَفَاهُمْ لِلرِّسَالَةِ. ددے دپاره ئے غوره کړی وو چه د الله تعالیٰ پيغامات د الله تعالیٰ بندګانو ته ورسوی او دا ډير لوی منقبت او صفت دے.

(٤) دارنګه د عبادت دپاره ئے هم غوره کړی وو، د امت د تربيت دپاره ئے غوره کړی وو.

الله تعالیٰ آدم او نوح عليهما السلام د نبوت دپاره غوره کړی وو، او آل ابراهيم او آل عمران ئے د تمام عالَم په مقابله کې چانړ کړی وو، په آل ابراهيم کې نبی کريم ﷺ په درجه اولیٰ داخل دے، ځکه چه هغه د ابراهيم عليه السلام د اولادو نه وو.

حافظ سيوطیؒ په خپل کتاب ((الاکليل)) کې ليکلي دي چه دا آيت ددے خبرے دليل دے چه انبياء عليهم السلام د ملائکو نه غوره دي ځکه چه ((العالمين)) کې ملائك هم داخل دي، او الله تعالیٰ انبياؤ عليهم السلام لره په (العالمين) باندے فضيلت ورکړيدے.

دے نه روستو الله تعالیٰ فرمايلي دي: چه دا خير او برکت د هغه په اولادو او نسل کې هم مسلسل جاري پاتے شو، په سرو کې هم او په ښځو کې هم.

| ذُرِّيَّةً بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ وَاللّٰهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿۳٤﴾ |
|---|
| اولاد دي، بعض د دوی د بعضو نه دي او الله اوريدونکے پوهه دے. |

**تفسير**: يعنی دا انبياء عليهم السلام اولاد دي چه بعضی د بعضو نه پيدا دي. ذُرِّيَّةً يو اولادو ته وائي، دارنګه ذريت نسل ته وائي.

بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ: (۱) يعنی بعض د بعضو نه وو په نسل کې. (۲) دويم په دين کې يعنی دوی د يو بل سره په دين کې مشابه وو چه هغه دين اسلام دے او توحيد دے او د يو

الله تعالیٰ بندګی ده او د هغه سره شریکان نهٔ جوړول دی. (۳) یا بعضها من بعض یعنی فِی الْخِلْقَةِ وَالْإِنْسَانِيَّةِ. یعنی دوی د یو بل مشابه دی په انسانیت او پیدائش کی نو ځنګه یو ته اله وایئ نهٔ نورو ته؟! (٤) یا فِی الْإِجْتِبَاءِ وَالْإِصْطِفَاءِ وَالنُّبُوَّةِ.

یعنی ټول په غوره والی او نبوت کی د یو بل مشابه وو. (قرطبی)

قتادةَ فرمائی: أَیْ فِی النِّیَّةِ وَالْعَمَلِ وَالْإِخْلَاصِ. (تفسیر ابی زمنین وابن ابی حاتم) (یعنی دوی په نیت او عمل او اخلاص کی د یو بل مشابه وو).

**حکمة**: نو ددے تشبیه فوائد دا دی (۱) یو اله جوړول لکه عیسیٰ علیه السلام او نور انسانان کنړل تناقض دے په قول د نصاراؤ کی. (۲) دویم د ټولو دین یو دے چه هغه اسلام دے نو ولے اسلام پریدئ؟ (۳) دارنګه هغوی یو شان مخلصین وو نو تاسو ولے شرك کوئ؟.

سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ: ددے دوه نومونو حواله ئے ورکړه پدے کی تصحیح د نیتونو او اقوالو او عقائدو ته دعوت دے.

| إِذْ قَالَتِ امْرَأَةُ عِمْرَانَ رَبِّ إِنِّيْ نَذَرْتُ لَكَ مَا فِيْ بَطْنِيْ |
|---|
| کله چه اووئیل ښځے د عمران اے ربه! ما نذر کړیدے ستا دپاره هغه بچے چه په خیټه زما کی دے، |
| مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّيْ إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۳۵﴾ |
| آزاد کړے شوے (د دنیا د کار نه) نو قبول ئے کړه زما نه یقیناً ته آوریدونکے، پوهه ئے. |

**تفسیر**: د مقدمے نه روستو اُوس مقصد ته راځی او واقعه د امرأة عمران علیه السلام ذکر کوی د وجه د مناسبت نه، عمران علیه السلام د بنی اسرائیلو مشر پیغمبر وو، د مریم پلار او د عیسیٰ علیه السلام نیکه وو، بیت المقدس کی وسیدو، دهٔ ته هم تورات ورکړے شوے وو هغه به ئے لوستلو، د خلکو تربیت به ئے کولو، وخت تیریدو نو په بنی اسرائیلو کی د دین خادمان کم شو او دا خپله بوډا شو، ددهٔ د ښځے حنه بنت فاقوذا حمل وشو نو دے ووئیل چه که چرته دا حمل الله تعالیٰ نر وخیژولو او زهٔ د الله تعالیٰ نه دا غواړم چه نر بچے مے وشی نو دا به د بیت المقدس او د دین د خدمت دپاره نذر وی. او په هغه زمانه کی به د دین د خدمت دپاره د هلکانو نذر کیدو، نهٔ د جینکو. بیا به دغه هلك د دنیا کار نهٔ کولو، زمونږ په دین کی داسے نذر نشته بلکه داسے کیدے شی چه یو تن خپل بچے د دین د خدمت دپاره وقف کړی بیا د دنیا کار هم ورسره کولے شی. نو ددے مقصد دا وو چه دا بچے به صرف او صرف دین

او د بیت المقدس او د هغې د علماؤ خدمت ته وزګار او فارغه وي او خپل خدمت به پرېي نهٔ کوم، ځکه چه بیت المقدس ددین مدرسه وه۔

بعض تاریخي واقعاتو کي راغلي دي: محمد بن اسحاق لیکي چه امرأة عمران (علیه السلام) یو مارغهٔ ولیده چه خپل بچي ته ئې طعام ورکولو نو ددې خواهش شو چه زما حمل وشي نو الله تعالیٰ ورله دعاء قبوله کړه بیا دې دغه نذر وکړو)۔ (قرطبي)

مُحَرَّرًا: أَیْ مِنْ مَشَاغِلِ الدُّنْیَا ۔ د دنیا د کارونو نه به آزاد وي۔ صرف د دین او د دین د مدرسې خدمت به کوي۔ او (مُحرر) صیغه ئې د مذکر راوړه ځکه چه ددې خواهش دا وو چه هلك پیدا شي۔

**فوائد**: ۱– پدې واقعه کي د نصاراؤ په شرك باندې رد دې د ډېرو وجوهاتو نه، یو دا چه د مریم مور شته د هغې نه پیدا ده، نو اله نشي کیدې،

۲– مور ئې د الله تعالیٰ ولیه وه د الله تعالیٰ نه ئې نر بچې غوښتو الله تعالیٰ ورله پدې طریقه دعا قبوله نکړه بلکه جینۍ ئې ورله ورکړه، دلیل دې چه اولیاؤ کي دا طاقت نشته چه په الله تعالیٰ باندې په زوره کار وکړي بلکه الله تعالیٰ د خپل حکمت مطابق کار کوي۔

۳– مریم (علیها السلام) عابده وه معبوده نهٔ وه ځکه مور ئې د عبادت او د دین د خدمت دپاره منتخب کړې وه۔ او مور به ئې د رب نه ددې د قبولیت دعا کوله نو د هغې مور څومره عاجزه وه۔

۲– **فائده**: (۱) الله تعالیٰ داسې لطیف او مهربان ذات دې چه د زنانو خبرې هم آوري۔ (۲) د نیکانو خلکو سره د دین غم وي او دنیا پرست د دین او د دیني مدارسو او مراکزو پرواه نهٔ لري۔ (۳) د نیك کار د قبولیت دپاره دعا کول پکار دي۔ (٤) او د نیکانو طریقه ده چه په خپلو عملونو یریږي چه قبول به شي او که نهٔ۔ (٥) د دیني مراکزو او مدرسو خدمت کول ډېر لوی عبادت او فضیلت دې لیکن ډېر خلك ددې نه محروم دي۔

فَلَمَّا وَضَعَتْهَا قَالَتْ رَبِّ إِنِّيْ وَضَعْتُهَا أُنْثٰى وَاللّٰهُ أَعْلَمُ

نو هرکله ئې چه وېږوله هغې لره، وې ویل اې ربه زما، یقینا ما وزیږوله جینۍ او الله ښه پوهه دې

بِمَا وَضَعَتْ وَلَیْسَ الذَّكَرُ كَالْأُنْثٰى

په هغې چه هغې وزیږوله او نهٔ دې نارینه (چه دې غوښتې وو) په شان د هغه جینۍ (چه دې له ورکړې شوه)

وَإِنِّي سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ

او یقیناً ما نوم کیخودو دے له مریم او یقیناً زهٔ پناهي غواړم دے لره په تا سره

وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ﴿٣٦﴾

او ددے اولادو لره د شیطان رټلي شوی نه۔

**تفسیر** : عمران علیه السلام بوډا وو نو وفات شو او ښځه ئے حامله وه نو د هغه د وفات نه روستو دا بچے پیدا شو نو ښځے ئے الله تعالیٰ ته شکایت وکړو چه اے الله !ما خو تا نه نر بچے غوښتے وو او تا راته مؤنث بچے راکړو، نو یو قسم خفګان او غم او افسوس ئے وکړو۔ او دا په الله تعالیٰ باندے اعتراض نهٔ دے۔ یا دا کلام عذر پیش کول دي الله تعالیٰ ته چه اے الله ! ما د هلك نذر کړے وو او دا خو جینئ پیدا شوه، دا به د بیت المقدس خدمت څنګه وکړي؟ نو ما معذوره وګڼړه، تا ته عذر پیش کوم۔ (المنار)

فَلَمَّا وَضَعَتْهَا : هاء ضمیر دغه (نفس) ته راجع دے۔

وَاللّٰهُ أَعْلَمُ : دا یا د الله تعالیٰ کلام دے د جملے معترضے په طور۔ یعنی الله تعالیٰ ورله جینئ څکه ورکړه چه الله تعالیٰ ته د خپل علم او حکمت مطابق معلومه ده چه دے جینئ کي څومره خیر او برکت دے، اګرکه دا پرے خفه ده۔ پدے کي بل قراءت د متکلم په صیغه (وَضَعْتُ) هم راغلے دے نو دا بیا ددغه بي بي کلام دے چه الله تعالیٰ پو هیږي په هغه بچي چه ما وزیږولو۔ اول قول زیات راجح دے څکه هغه قراءت مشهور دے۔

وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْأُنْثَىٰ : دا د چا قول دے ؟ (۱) یا د امرأة عمران قول دے یعنی نهٔ دے نارینه په خدمت د دین کي په شان د زنانه څکه چه زنانه دومره خدمت د دین نشي کولے څومره چه هلك کوي، زنانه باندے خو حیض وغیره بیماري راتلے شي او کمزوري وي، نو څکه مے درنه هلك غوښتے وو۔ (۲) یا دا قول د الله تعالیٰ دے : أَيْ لَيْسَ الذَّكَرُ الَّذِيْ طَلَبْتُ كَالْأُنْثَى الَّتِيْ وُهِبْتُ ) نهٔ دے هغه نارینه چه دے غوښتے وو په شان د هغه زنانه چه دے ته ورکړے شوه۔ یعنی الله تعالیٰ به دے جینئ کي ډیر کمال اچوی چه نبي به ترے پیدا کیږي او د امت دپاره به یو عبرت ګرځي ﴿ وَجَعَلْنَا ابْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهُ آيَةً ﴾ (المؤمنون : ٥٠) پدے کي اشاره ده چه د الله تعالیٰ په تقدیر راضي کیدل پکار دي، الله تعالیٰ د بندګانو په کارونو ښه پو هه دے۔

اول قول غوره دے چه دا د امرأة عمران قول دے سیاق د آیت پرے دلیل دے۔ دارنګه هغے داسے مذکر نیك بچے غوښتے وو چه په هره طریقه غوره وی نو د مریم نه هم د هغے په ګمان غوره وی۔

وَإِنِّي سَمَّيْتُهَا : ماشوم ته نوم کیښودل سنت طریقه ده اګرکه مړ پیدا شی خو چه په خیټه کی ئے څلور میاشتی تیرے شوی وی۔ بیا به نوم نه کیخودل پکار دی، او داسے نوم به هم نهٔ ایږدی چه په هغے کی ډیر صفت وی لکه نبی ﷺ د (برّه) نوم کیخودو نه منع کړیده ځکه چه د برّه معنی ده نیك عمله۔ نو پدے کی د خان صفت راځی، الله تعالیٰ ناراضه کیږی۔

**مسئله** : نوم که په اوله ورځ اږدی هم صحیح ده او که په اومه ورځ اږدی لکه په بخاری او سننو کی دا خبره موجود ده۔

وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ : شیطان د انسان دشمن دے نو د الله تعالیٰ نه پناه طلب کوم چه دا او ددے اولاد د شیطان نه محفوظ وساتی۔ په حدیث کی دی : مَا مِنْ مَوْلُودٍ يُولَدُ إِلَّا وَالشَّيْطَانُ يَمَسُّهُ حِينَ يُولَدُ فَيَسْتَهِلُّ صَارِخًا مِنْ مَسِّ الشَّيْطَانِ إِيَّاهُ إِلَّا مَرْيَمَ وَابْنَهَا (بخاری٤٥٤٨)۔

هر بچے چه پیدا کیږی نو په وخت د ولادت کی پرے شیطان چونداره لګوی نو د هغے په وجه چغه ووهی سویٰ د مریم او د هغے د خوی (عیسیٰ علیه السلام) نه۔ چه دا الله تعالیٰ محفوظ ساتلی دی ځکه چه هغے دپاره د خپلے مور حنه بنت فاقوذا دعا قبوله شویده۔

مُعتزله فِرقه ددے حدیث نه انکار کوی چه ماشوم خو د شیطان په وسوسه نهٔ دے خبر بلکه ددے مطلب دا بیانوی چه ماشوم چه بلوغ ته ورسیږی نو د شیطان په وسوسه ګمراه کیږی، زمخشری په "کشاف" کی ددے حدیث نه انکار کړیدے او ویلی ئے دی چه که داسے وی بیا خو به ټوله دنیا د آوازونو نه ډکه شی۔ (مرعاة المفاتیح)

قاضی بیضاویؒ هم ددے حدیث غلط مطلب بیان کړیدے۔ د دوی دا خبره د حدیث د الفاظو سره سمون نهٔ خوری، صحیح دا ده چه دا په وخت ډ پیدائش کی چونداره ده پدے کی دے ته اشاره وی چه انسان کله پیدا شو نو د دوه دعوتونو مینځ کی راګیر دے، دعوة الرّحمن او دعوة الشیطان، او ددے نه انکار د حدیث نه انکار دے۔

دارنګه ماشوم باندے چونداره ځکه لګوی چه شیطان مفسد دے۔

**سوال**: مریم خو پیدا شوے وه او دعا ئے روسته کړیده نو ځنګه مخکی قبوله شوه؟ شیطان خو به په دغه وخت کی چونداره لګولی وی، البته د عیسیٰ ﷺ په باره کی خبره

صحیح ده ځکه هغه ددې دعا نه روسته پیدا شویدې؟۔

**جواب** : دعا د شرعی اسبابو نه ده او شرعی اسباب مخکی هم اثر کوی لکه ستا نیك عملی الله تعالیٰ ته معلومه وی چه صبا به دا شخص نیك عمل کوی نو نن دریاندې رحم وکړی، الله تعالیٰ ته پته وه چه د مریم مور به روسته دعا کوی نو مخکی نه ئې قبوله کړه۔

بیا نبی ﷺ ددې چونداری نه مستثنیٰ دې او که نهٔ؟ نو کیدې شی چه په نبی ﷺ هم نهٔ وی لګیدلی، لیکن ظاهر د حدیث دا دې چه دا د مریم او د عیسیٰ علیهما السلام جزئی فضیلت دې او باقی ټولو ماشومانو باندې دا چونداره لګیږی۔ او د جزئی فضیلت مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ غوره دې په ټولو انبیاؤ علیهم السلام باندې لیکن په یو شی کی بل نبی په رسول الله ﷺ باندې غوره کیدې شی۔

| فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُولٍ حَسَنٍ وَأَنۢبَتَهَا نَبَاتًا |
|---|
| نو قبوله کړه هغې لره رب د هغې په قبلولو ښائسته، او زرغونه ئې کړه هغې لره په زرغونولو |
| حَسَنًا وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيۡهَا زَكَرِيَّا |
| ښائسته سره او ویو خای ئې کړه دا د زکریا ﷺ سره، هر کله چه داخل شو په هغې باندې زکریا ﷺ |
| الۡمِحۡرَابَ وَجَدَ عِندَهَا رِزۡقًا قَالَ يَا مَرۡيَمُ أَنَّىٰ لَكِ هَٰذَا |
| عبادتخانې ته، وې موندل د هغې سره رزق، وې ویل: اې مریم! د کوم ځای نه دې ستا دپاره دا رزق؟ |
| قَالَتۡ هُوَ مِنۡ عِندِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَرۡزُقُ مَن يَشَآءُ بِغَيۡرِ حِسَابٍ ﴿٣٧﴾ |
| هغې وویل: دا د طرفه د الله نه دې، یقیناً الله رزق ورکوی چا له چه وغواړی بغیر د حساب نه۔ |

**تفسیر** : الله تعالیٰ دا جینئ په ډیر ښائسته قبلیدو سره قبوله کړه چه مخکی به جینئ د خدمت دپاره نهٔ قبلیده نو الله تعالیٰ ددې په نذر کی دا جینئ قبوله کړه او اجرئې هم ورته زیات ورکړو ځکه چه مورئې ډیر په اخلاص سره دعا کړې وه او دا پاکه کورنئ وه، د نبی د شا نه پیدا شوې وه۔

مهایمیؒ وائی: قبول حسن دا هم دې چه دا به د الله تعالیٰ په ډیرو اولیاؤ باندې پورته وی۔

بِقَبُولٍ حَسَنٍ : دې کی اشاره ده چه قبلیدل کله په اعلیٰ درجه وی او کله په ادنیٰ درجه۔

وَأَنۢبَتَهَا نَبَاتًا : یعنی الله تعالیٰ به ورځ کی د میاشتی په مقدار او په میاشت کی د کال په

اندازه غتهوله. یا د عقل پوره والے مراد دے، الله تعالیٰ پکی هوښیارتیا واچوله، زر به په خبره پو هیدله او صحت ئے هم ښه کیدو. دارنګه نبات حسن دا دے چه ددے اولاد به د لوی انبیاؤ علیهم السلام نه ګرځوی. زمخشري وائی: چه رازرغونیدل مجاز دے د ښائسته تربیت او اصلاح ددینه. یعنی دا ئے په صلاحیت او پاکدامنئ او طاعت باندے رالویه کړه. (قاسمیؒ)

وَكَفَّلَهَا : دے کی ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے یعنی الله تعالیٰ ددے ذمه واری ورکړه زکریا ﷺ ته، یا ذمه وار جوړ کړو الله تعالیٰ ددے زکریا ﷺ. قتادةؒ ئے معنی کوی: ضَمَّهَا إِلَيْهِ. یعنی الله تعالیٰ یو ځای کړه مریم د زکریا ﷺ سره. (طبری)

امام بخاریؒ هم وائی: (وَلَيْسَ هٰذَا مِنْ كَفَالَةِ الدُّيُوْنِ بَلْ هُوَ بِمَعْنَى الضَّمِّ) دا د قرضونو د ذمه وارئ په شان نۀ وه بلکه کفالت دلته په معنیٰ د یو ځای والی سره دے. (بخاری: ۳۴۳۲)

هرکله چه مریم پیدا شوه نو ددے مور بیت المقدس ته بوتلله او د هغه ځای علماؤ ته ئے ووئیل: دُوْنَكُمُ النَّذِيْرَةَ . دا نذر شوے جینئ واخلئ او ددے تربیت وکړئ دا به ستاسو خدمت کوی. نو زکریا ﷺ ووئیل چه دا به زۀ واخلم ځکه چه ددے ترور (خاله) زما په نکاح کی ده، هغه به ئے تربیت کوی. نورو خلکو ورسره ونۀ منله چه که دا ئے تا له درکولے نو بیا ئے مسجد ته ولے راوستله، یا دا چه دا زمونږ د عالِم لور ده، هر یو ددے په خدمت کی اجر ګټل لو نو پدے باندے ئے قرعه وکړه الله تعالیٰ ورته طریقه وښودله چه تاسو قلمونه تیار کړئ او اُویو کی ئے واچوئ د چا قلم چه بره لاړو هغه به ئے تربیت کوی. نو د زکریا ﷺ قلم نیغ ودریدو او بره راوختلو، داد هغه معجزه وه نو هغه ئے حقدار شواو پدے کی حکمت هم دا دے چه زکریا ﷺ پیغمبر دے، دا جینئ چه د نبی کور ته لاړه شی نو تربیت به ئے ښه وشی، د نبی کور د دین مدرسه وی. (القرطبی ۸٦/٤)

دویمه دا چه ترور په منزله د مور وی لکه دا خبره په حدیث کی راغلے ده: (اَلْخَالَةُ بِمَنْزِلَةِ الْأُمِّ) (خاله په شان د مور وی) (بخاری: ۲٦۹۹) نو داسے شوه لکه چه د مور کور ته لاړه او نبی د پلار په شان وی. دارنګه امن هم پکی شته، نو ځکه ئے دا مستحق شو. نو زکریا ﷺ ورله مسجد کی یو ځای عبادت خانه جوړه کړه هلته به ئے خوراك څکاك او د الله تعالیٰ بندګی کوله.

كلما دخل: زکریا ﷺ چه به کله مریم ته ډوډئ وروړله نو د هغے سره به ئے رزق وموندلو تپوس به ئے ترے وکړو چه دا د کوم ځای نه راغی؟ هغے به ویل دا د الله تعالیٰ د طرفه دے. د

(کلما) نه معلومیږي چه دا رزق به بار بار راتللو۔
الْمِحْرَابَ: مبرّد وائي : اَلْمَكَانُ الْمُرْتَفِعُ الَّذِيْ يُصْعَدُ إِلَيْهِ بِدَرَجٍ) هغه اوچت ځای چه خلك ورته په پوړئ ختیږي، دیے دپاره ئے هم داسے اُوچت ځای جوړ کړے وو چه د عامو خلکو نظر پرے نهٔ لګي۔ محراب بیا مکانُ الْمُحَارَبَه (ځای د جګړے) ته وئیلے شي، عبادت خانے ته هم محراب پدے وجه وائي چه پدے کي د شیطان او خواهش سره جګړه وي۔ په مسجدونو کي دننه چه کوم محراب وي هغه هم د شیطان د جګړے ځای دیے، په هغه زمانه کي به د هر عابد ځانله عبادت خانه وه او مشترك عبادتخانه ئے هم وه لکه بیت المقدس۔
زمونږ په دین کي محرابونه جوړول په سنت کي نهٔ دي راغلي د نبي ﷺ په دَور کي به په مسجد کي لرګے کیخودلے کیدو د محراب په ځای بانديے په دیوال کي لکه ددے په باره کي په مجمع الزوائد کي حدیث دیے۔ دا محاریب روسته د عمر بن عبد العزیزؒ په زمانه کي جوړ شویدي، که دا څوك دین ګنړي نو بیا بدعت دیے، ددے د وجه نه عبد الله بن مسعود ؓ به ویل چه څوك په محراب کي دننه ودریږي نو دا مکروه کار دیے، د یهودو سره مشابهت دیے۔ (مجمع الزوائد رقم الحدیث :۱۹۸۲ قال ورواه البزار ورجاله موثقون ۲/۲۵)
او که هسے د نبیے دپاره وي نو بیا به بدعت نهٔ وي بلکه رواج دیے او بیا پدے بانديے ډیر مالونه لګول اسراف دیے۔

## د کرامت تشریح

عِنْدَهَا رِزْقًا : دا د مریم (علیها الرضوان) کرامت وو، چه هغے ته به د اُوړي میوے په ژمي کي او د ژمي میوے په اُوړي کي ملاویدے، او کرامت د اولیاؤ حق دیے او دا د اهل سنت والجماعة مسلك دیے او ددے نه بعض جاهلان او معتزله انکار کوي۔ بیا اهل السنة والجماعة وائي چه کرامت د یو ولي د ایمان راښکاره کولو او د هغه د ایمان د مضبوطولو دپاره الله تعالیٰ د هغه د اختیار نه په غیر د هغه نه ښکاره کوي۔ په ژوند کي چه کرامت ښکاره شي نو مقصد پکي د ولي ایمان مضبوطول وي، دا وجه ده چه د چا ایمان ډیر مضبوط وي نو د هغه نه ډیر کرامتونه نهٔ ښکاره کیږي لکه د صحابه کرامؓ کرامتونه کم وو ځکه چه ایمان ئے ډیر مضبوط وو نو کرامت ته ئے حاجت نهٔ وو، او پس د مرګ نه چه ښکاره شي نو خلکو ته د هغه نیك عملي او عزت ښکاره کول مقصد وي دیے دپاره چه خلك د هغه اقتداء وکړي لکه د أصحمه (نجاشي) بادشاه د قبر نه به رڼا ختله او د ډیرو

نیکانو د قبرونو نه خوشبوئی ختلے ده۔ کرامت د ولی په اختیار کی نهٔ وی، مشرکانو د کرامتونو والو نه آلهه او معبودان جوړوی دا شرك دے۔

د صحابه کرامؓ نه هم کرامتونه د تابعینو په نسبت کم ښکاره شویدی لکه د امسا نه ئے رڼا ختلے ده، د طعام تسبیح ئے آوریدلے ده، د عمر ﷺ آواز (یَا سَارِيَةُ الْجَبَلَ) چه دا آواز غائبانه ساریه ته رسیدلے وو۔ د علاء حضرمی دعا قبوله شویده چه اے الله! په مونږ باران وکړه سمدست باران شویدے۔ ام هانیؓ رضی الله عنها په روژه کی تږے وه نو د آسمان نه ورله بوکه راغلے وه هغه ئے څکلے وه، ابوامامه ﷺ ته خلکو اُوبه نهٔ ورکولے نو په گرم میدان کی وده شو چه راپاځیدو نو په خوب کی ئے د جنت اُوبه څکلے وے او په هغے موړ شوے وو چه بیا ئے گرمی هم نهٔ کیدله، سفینه ﷺ ته زمری لاره ښودلے وه او خپلو ملگرو ته ئے رسولے وو۔ (انظر الفرقان لابن تیمیة ص:۲۸۸)

شیخ الاسلامؒ په دغه کتاب کی د صحابه کرامو ډیر کرامتونه ذکر کړیدی هغه وگورئ۔

او په تابعینو کی کرامتونه زیات وو ځکه چه د دوی اعمال زیات وو او نبی ﷺ ئے نهٔ وو لیدلے او روستو زمانه کی به هم زیات وی کرامتونه اکثر د هغه خلکو نه زیات صادریږی چه د هغوی نیك عملونه او عبادتونه زیات وی، او ساده مزاج والا وی، دے ځایه خبرو نه ځان ساتی او ذکر ډیر کوی۔

کرامت بیا ډیر صورتونه لری، دعا سمدستی قبوله شی، په لږ وخت کی ډیر کار وشی، په لږه ډوډئ باندے ډیر خلك ماړهٔ شی۔

مشرکان چه د چا نه کرامت وینی نو د هغه نه معبود او اله جوړ کړی حال دا چه د کرامت مقصد دا دے چه الله تعالیٰ په یو بنده کی خپل قدرت راښکاره کوی دے دپاره چه خلکو ته دا دعوت شی چه اے بندگانو! تاسو وگورئ فلانے زما بندگی کوی زهٔ ورله څنگه عزت ورکوم، نو تاسو هم زما عبادت وکړئ او پدے کی د دغه بنده عزت هم ښکاره شی او ایمان ئے هم مضبوط شی۔

## د معجزے، کرامت او سحر فرق

بیا یوه معجزه ده او بل کرامت۔ په معجزه کی د نبوت دعوه شرط ده او په کرامت کی د ولایت دعوه نهٔ ده پکار۔ بل د معجزے ښکاره کول لازم دی او د کرامت پټول پکار دی۔

بیا سحر په اسبابو استعمالولو سره وی څه ذکرونه او طریقے به وکړی نو اثر به وشی۔او

معجزه او كرامت د اسبابو د استعمال نه بغير وي۔

## د صوفياؤ گمراهي

ابن عربي (چه دے ته صوفياء خاتم الاولياء وائي) ويلي دي چه ولي د نبي نه غوره وي ځکه چه ولي په غير د واسطے نه د الله تعالىٰ نه اخذ (اخستل) كوي او نبي خو د جبريل عليه السلام واسطے ته ضرورت لري۔ دا سو چه دروغ دي۔ ځکه چه الله تعالىٰ ته په غير د اتباع د رسول الله ﷺ نه رسيدل ممكن نۀ دي مخكښې آيت تير شو ﴿إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ﴾ د رسول الله ﷺ د تابعدارئ واسطه ضروري ده۔ يو انسان د نبي په تابعدارئ سره ولي كيږي۔

بايزيد بسطامي به دا دروغ ويل : نَحْنُ دَخَلْنَا الْبَحْرَ الْخِضَمَّ وَقَفَ الْأَنْبِيَاءُ عَلٰى سَوَاحِلِهٖ) (الفكر الصوفي) (موږ د درياب مينځ ته داخل شوي يو چه انبياء عليهم السلام د هغے په غاړه ولاړ دي)۔ اولياء ئے په انبياؤ (عليهم السلام) باندے پورته كړيدي، دا د صوفيت حقيقت دے۔

أَنّٰى لَكِ هٰذَا : يعني دا د كوم ځاي نه راغلل؟ د دے دا مطلب نۀ دے چه گنے مريم د زكريا عليه السلام نه غوره وه، نۀ بلكه زكريا عليه السلام ته چه الله تعالىٰ كوم معجزات او كرامتونه وركړي دي هغه ډير دي، او مريم ته چه دا رزق راتللو دا هم د زكريا عليه السلام په تابعدارئ او د الله تعالىٰ په بندگئ سره، نو پدے كې ضمناً د زكريا عليه السلام كمال دے۔

مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ : هر هغه شے چه ظاهري سبب ئے نۀ وي مؤمنان د هغے نسبت الله تعالىٰ ته كوي۔

بِغَيْرِ حِسَابٍ : هر هغه رزق چه د كرامت او د تقوىٰ په وجه حاصل شي هغه بې حسابه وي۔ د متقيانو رزق بې حسابه، بے گمانه وي، چه الله تعالىٰ ورسره صحت هم بنه كوي او د عبادت توفيق هم وركوي۔

## د فاطمے رضي الله عنها قصه

دا قسم جواب فاطمة الزهراء رضي الله عنها هم كړے وو لكه ابو يعلى او ابن كثير روايت نقل كړيدے چه رسول الله ﷺ باندے لوږه وه نو فاطمے كره لاړو، هغے وويل : هيڅ نشته، لږ روسته دے ته گاونډئ دوه ټيكلي او يوه ټكړه غوبنه راوليږله نو هغے حسن او حسين رسول الله ﷺ پسے وليږل هغه چه راغلو، فاطمے د كاسے نه سر لرے كړو وے كتل چه

کاسه د غوښے او ډوډئ نه ډکه ده نو حیرانه شوه او ورته معلومه شوه چه دا د الله تعالیٰ د طرفنه برکت دے نو هغے الحمد لله او درود وویلو بیائے رسول الله ﷺ ته وړاندے کړه نو رسول الله ﷺ هم الحمد لله وویله بیائے ترے تپوس وکړو؟ (مِنْ أَيْنَ لَكِ هٰذَا يَا بُنَيَّةُ؟) اے لورے! دا د کوم طرفنه راغلل؟ هغے وویل: (يَا أَبَتِ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ إِنَّ اللّٰهَ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ) نو رسول الله ﷺ د الله تعالیٰ حمد وویلو او وے فرمایل: (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ جَعَلَكِ - يَا بُنَيَّةُ شَبِيْهَةً بِسَيِّدَةِ نِسَاءِ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ) الله تعالیٰ لره حمد دے چه ته ئے د بنی اسرائیلو د زنانو د سردارے سره مشابه کړے چه هغے ته به الله تعالیٰ کوم رزق ورکړو او تپوس به ترے وشو نو دغه جواب به ئے کولو چه (هُوَ مِنْ عِنْدِ اللهِ) دا د الله تعالیٰ د طرفنه دے۔ (مسند ابی یعلی کما فی المطالب العالیة لابن حجر (۴/۷۴) وفی اسناده عبد الله بن صالح متکلم فیه وابن لهیعة ضعفه الجمهور)۔

**فائده:** امام شعرانیؒ په "یواقیت" کی د ابوالحسن الشاذلی رحمه الله نه نقل کړیدی چه مریم ته به اول په غیر د سبب نه رزق راتلو دے دپاره چه ایمان او یقین ئے مضبوط شی، لیکن کله ئے چه ایمان مضبوط شو نو بیرته سبب ته واپس شوه او هغے ته وویل شو: ﴿وَهُزِّيْ إِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ﴾۔ خوزوه خان طرفته سته د کجورے) (قاسمی)

| هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهٗ قَالَ رَبِّ هَبْ لِيْ |
|---|
| په دغه ځای کی دعا اُوکړه زکریا علیه السلام د خپل رب نه، وے وئیل اے ربه زما! اُوبخه ما ته |
| مِنْ لَّدُنْكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً إِنَّكَ سَمِيْعُ الدُّعَآءِ ﴿۳۸﴾ |
| ستا د طرف نه بچے پاك یقیناً ته قبلونکے د دعاء ئے۔ |

**تفسیر:** دا قانون دے: اَلْحَدِيْثُ يُذَكِّرُ بِالْحَدِيْثِ ۔ یوه خبره بله خبره رایادوی نو د زکریا علیه السلام اولاد نهٔ کیدل د بوډاوالی د وجه یا ظاهر دا ده چه د مخکی نه ئے نر بچے نهٔ وو پیدا شوے نو دهٔ وویل چه الله تعالیٰ بے اسبابه، بے موسمه میوے او رزق راوړے شی نو ماته د بچی (میوه) په بوډاوالی کی هم راکولے شی نو د الله تعالیٰ نه ئے اولاد طلب کړل۔

۲- دے ته مسئله د (عَدَمُ التَّوَجُّهِ إِلٰى شَيْءٍ مَشْهُوْرٍ) وائی۔ یعنی کله یو مشهور شی ته انسان توجه نهٔ وی او ددے مطلب دا نهٔ دے چه د زکریا علیه السلام مخکښ د اولاد په پیدا کیدو یقین نهٔ وو او اُوس پیدا شو بلکه توجه ئے نهٔ وه، اُوس ئے توجه پیدا شوه۔

هُنَالِكَ : ددیے درے معانی دی: (۱) په دغه وخت کی چه خبره ورته رایاده شوه نو دا دعا ئے وکړه. (۲) یا په دغه ځای (محراب) کی. (۳) کله هنالك په معنیٰ د (مِنْ ثَمَّ) سره راځی یعنی د دغه وجه نه چه ددهٔ نر بچی نهٔ وو نو دعاء ئے وکړه. لکه سورة مریم کی راځی چه دهٔ بچے طلب کړو چه زما د نبوت میراث او د یعقوب ﷺ د اولادو میراث د نبوت پورته کړی. (اتقان للسیوطی)

## فوائد او حکمتونه

۱ – دا واقعه ئے په مینځ کی راوړه پدے کی د الله تعالیٰ د قدرت اظهار دے چه الله تعالیٰ داسے قادر ذات دے چه په بوډاوالی کی هم بچی ورکولے شی.

(۲) الله تعالیٰ د خپلو بندګانو او انبیاء علیهم السلام او صالحینو دعا آوری او هغه ورله قبلوی، کله د چا دعا براهِ راست قبوله کړی، کله دعا په بله طریقه قبوله کړی لکه د مریم د مور دعا ئے د نر بچی په باره کی قبوله نکړه بلکه جینیٔ ئے ورکړه د خپل حکمت موافق. او پدے کی دے ته هم اشاره ده چه د ولی نه د نبی شان ډیر اُوچت وی نو ځکه ئے زکریا ﷺ ته همغه نر بچے ورکړو. (۳) په بوډاوالی کی اولاد ورکول د الله تعالیٰ د قدرت نښه ده نو دغه شان عیسیٰ ﷺ بی پلاره پیدا کول هم د الله تعالیٰ د قدرت نښه ده، دا د هغه معبود کیدو دلیل نهٔ دے، که معبود کیدے نو بیا خو زکریا ﷺ کی هم د الله تعالیٰ قدرت رابنکاره شویدے نو آیا هغه پدے کار اله شو!؟، نهٔ نهٔ دے اله نو دغه شان عیسی ﷺ هم اله نهٔ دے او نهٔ کیدے شی نو په نصاراؤ هم رد شو.

(٤) پیغمبران الله تعالیٰ ته محتاج وی، خپل ځان له اولاد نشی ورکولے نو مشرکانو ته به ئے څه ورکړی چه دوی اولیاؤ ته بی ځایه د رامدد شه آوازونه کوی.

(۵) او پدے کی الله تعالیٰ مونږ ته د انبیاؤ (علیهم السلام) د دعاګانو چل او طریقه رابنودلے ده، چه د رب نه ئے دعا طلب کړیده او د الله تعالیٰ نومونه ئے هغه ته وسیله کړیدی او خپل عبادت او عاجزی ئے الله تعالیٰ ته پیش کړیده، (نداء خفیا) ئے کړیده.

زَكَرِيَّا : دا عجمی لفظ دے په معنیٰ د (تَذَكَّارُ الرَّبِّ) د رب یادولو سره. (قاسمیؒ)

طَيِّبَةً : یعنی داسے اولاد چه اخلاق او اعمال ئے پاك وی، ستا تابعدار وی، ځکه چه خاص خلك همداسے طلب کوی او ظاهری ښائست نهٔ دے مراد. او هغه هم پکی داخلیدے شی لکه د سورة مریم (٦) آیت نه معلومیږی: ﴿وَاجْعَلْهُ رَبِّ رَضِيًّا﴾. اے ربه! دا پسند (غوره) وګرځوه، چه ستا په نیز غوره وی).

سَمِيْعُ الدُّعَآءِ : ای مُجِيْبُهٗ ـ يعنی ته د دعا قبلونکے يې. دا ئے وسيله الله تعالیٰ ته پيش کړه، نو الله تعالیٰ ورله سمدست دعا قبوله کړه، ملائك ورله راغلل.

**فائده** : نيكان بچي غوښتل د انبياء عليهم السلام سنت دی او د اولادو پيدا کول په شرع کي يو مقصد دے نو ځکه د اولادو بندول ګناه ده.

| فَنَادَتْهُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَهُوَ قَائِمٌ يُّصَلِّيْ فِي الْمِحْرَابِ |
|---|
| نو آواز اوکړو دهٔ ته ملائکو او دے ولاړ وو مونځ ئے کولو په عبادت خانه کي، |
| أَنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيٰى مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ |
| يقيناً الله زيرے درکوی تا ته په يحيیٰ سره چه تصديق کونکے دے په کلمه د الله د طرفه نه |
| وَسَيِّدًا وَحَصُوْرًا وَنَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۳۹﴾ |
| او سردار به وی او بند کړے شوے به وی او نبی به وی د نيکانو نه. |

**تفسير** : الملائكة ئے جمع راوړه جنس مراد دے يعني جنس ملائك ورته آواز وکړو چه هغه جبريل عليه السلام دے. يا جمع ئے راوړيده د عزت د وجه نه. او دا احتمال هم شته چه د جبريل عليه السلام سره نور ملائك هم وی ځکه چه دا بشارت ډير عظيم وو كما قال ابن جرير ونقله صاحب المنار (المنار ۳/ ۲٤٤)

يُصَلِّيْ : انبياء عليهم السلام خپل حاجتونه په مانځه پوره کوی او ددے نه معلوميږی چه انبياؤ (عليهم السلام) ته وحی په مانځه کي هم کيږی او دا منافی د مانځه سره نهٔ وی، نبی عليه السلام خپلو سره مونځ کولو، جبريل عليه السلام ورته په مانځه کي ووئيل چه خپلئ وباسه پدے کي ګندګي ده نو هغه زر ويستلے. او اشاره ده چه دے انبياؤ (عليهم السلام) ته چه دا کرامتونه ورکړے شويدی نو دا د الله تعالیٰ په بندګئ سره، خپله بندګي به ئے وسيله کوله.

**فائده** : په خشوع والا مونځ کي په انسان ډير علمونه او حکمتونه راکولاوېږی لکه غزالیؒ وئيلی دی.

يُبَشِّرُكَ : په دين کي بشارت شته چه چا ته يوه فائده ورسيږی او تهٔ هغه ته زيرے ورکړے لکه د علم او د حج او د بچي زيرے ورکړی. زيری ورکونکي ته تحفه ورکول پکار دی لکه کعب بن مالك رضی الله عنه زيری والا ته خپله جامه ورکړه. (بخاری ورياض الصالحين

او الادب المفرد للبخاري کې باب البشارة واعطاء البشير) راغلي دي۔
يَحْيٰى : دا په عبراني ژبه کې (يوحنا) دے په معنیٰ د نِعْمَةُ الرَّب سره راځي۔ (د الله نعمت)۔ (قاسمي) او عربي کې ئے معنیٰ ده (يحيیٰ) هغه سړے چه ژوندے کيږي۔ يعنی الله تعالیٰ ورله زړه ژوندے کړيدے او دين به په دهٔ سره ژوندے کوي۔
۲ – أَحْيَا قَلْبَهُ بِالْإِيْمَانِ وَالنُّبُوَّةِ ۔ (قتاده) يعني زړه ئے ورله په ايمان او نبوت باندے ژوندے کړے وو۔ (۳) لِأَنَّ اللّٰهَ أَحْيَا بِهِ النَّاسَ بِالْهُدٰى ۔ (الله تعالیٰ په دهٔ سره خلك د هدايت په وجه ژوندي کړيدي۔ (٤) لِأَنَّهُ أَحْيَا بِهِ رَحِمَ أُمِّهِ ۔ (قرطبي)
الله تعالیٰ په دهٔ سره ددهٔ د مور رحم ژوندے کړے وو۔
بِكَلِمَةٍ مِنَ اللّٰهِ : ددے يو مصداق تورات دے چه د تورات تصديق به کوي۔ دويم د کلمه نه مراد عيسیٰ ﷺ دے چه د هغه تصديق به کوي چه دا حق نبي دے۔ دواړه په يوه زمانه کې وو دواړو به د يو بل صفتونه کول، او عيسیٰ ﷺ د يحيیٰ ﷺ د ترور د لور ځوی وو۔ لکه دا خبره ابن اسحاق او ابن جرير کړيده۔ او په حديث کې دي : (وهما ابنا الخالة) دواړه د تريندو ځامن وو۔ (بخاري : ۳۸۸۷)
ليکن پدے کې به تاويل وکړے شي هغه داسے چه عرب په خپل کلام کې توسع (فراخي) کوي، د ترور د لور ځوی ته هم د ترور ځوی وائي۔ (ابن کثير)
او د عيسیٰ ﷺ تصديق خو ټول مسلمانان کوي نو د يحيي ﷺ تخصيص ئے وکړو نو يا خو مطلب دا دے چه د ټولو خلکو نه مخکې به ئے يحيي ﷺ تصديق کوي (۲) يا دا چه په ماشومتوب کې به ئے تصديق کوي لکه الله فرمائي : ﴿ وَآتَيْنَاهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا﴾ (مريم : ۱۲) او مونږ يحيیٰ ﷺ ته د ماشوم توب په حالت کې نبوت يا د فيصلو علم ورکړے وو۔
(۳) يا پدے کې تعريض دے په مخالفينو د توحيد باندے چه يحيیٰ ﷺ د بي بي مريم او د عيسیٰ ﷺ د برکاتو نه دنيا ته راغے خو په دواړو باندے ئے د بندګانو عقيده لرله، نهٔ د معبودانو نو که بالفرض کرامات او خوارق د اُلوهيت دليل وے نو بيا پکار وه چه يحيي ﷺ پرے اول دا عقيده ساتلے وے۔ (عزيز التفاسير باختصار)

## د سيد معاني

وَسَيِّدًا : (سردار) ددے ډيرے معاني دي : (۱) اَلْكَرِيْمُ الشَّرِيْفُ۔ هغه انسان چه عزتمند شرافت والا وي۔ (۲) اَلْمَرْجُوْعُ اِلَيْهِ فِي الدِّيْنِ ۔ هغه انسان چه خلك ورته په دين کې رجوع کوي، په دين باندے ورله الله تعالیٰ پوهه ورکړي وي پدے معنیٰ باندے علماء سيدان دي۔

(۳) اَلَّذِیْ لَایُشَارِكُ فِی اللَّهْوِ وَاللَّعِبِ۔ هغه انسان چه د خلکو سره په تماشو او لوبو کی شرکت نهٔ کوی۔ یحییٰ علیه السلام ته ماشومانو په وړوکوالی کی ووئیل : راشه مونږ سره لوبی وکړه۔ هغه ووئیل : مَا خُلِقْنَا لِهٰذَا۔ مونږ دے له نهٔ یو پیدا شوی۔
(٤) حُسْنُ الْخُلُقِ۔ ښائسته اخلاقو والا۔ (٥) اَلْفَقِیْهُ فِی الدِّیْنِ۔ په دین باندے پو هه۔
(٦) سعید بن جبیر رحمه الله فرمائی : اَلَّذِیْ یُطِیْعُ رَبَّهٗ۔ هغه انسان چه د خپل رب طاعت کوی۔ (۷) اَلْجَوَّادُ۔ سخی انسان۔ ظاهر دا ده چه د سرداریٔ او مشریٔ دپاره دا ټول صفتونه ضروری دی او دا ټول په یحیی علیه السلام کی وو۔
(۸) سَیِّدًا فِی الْعِلْمِ وَالْعِبَادَةِ وَالْوَرَعِ) په علم او عبادت او پرهیزګاریٔ کی سردار وو۔ (قتاده)
(۹) اَلَّذِیْ یَفُوْقُ فِیْ جَمِیْعِ خِصَالِ الْخَیْرِ۔ هغه شخص ته وائی چه د خیر په ټولو خصلتونو کی د خلکو نه پورته وی۔ (تفسیر الخازن ۲٤٢/۱) وابن کثیر)
(۱۰) وَقِیْلَ : اَلتَّقِیُّ الَّذِیْ لَایَغْلِبُهُ الْغَضَبُ) دا هغه متقی ته وائی چه غصه پرے غلبه نهٔ کوی۔ (عکرمة) (ابن کثیر)
(۱۱) جُنید وائی : اَلَّذِیْ جَادَ بِالْکَوْنَیْنِ عِوَضًا عَنِ الْمُکَوِّنِ۔ هغه شخص چه دنیا او آخرت ئے د الله تعالیٰ په بدله کی سخا کړی وی۔ یعنی دنیا او آخرت ئے د الله تعالیٰ په بدله کی پریښی وی او الله تعالیٰ ئے اخستے وی لیکن دا د صوفیاؤ اصطلاح ده، صحیح نهٔ ده ځکه چه مؤمن دپاره د جنت طلب هم ضروری دے، جنت یواځے دوډیٔ او خواهشاتو ته نهٔ وائی بلکه هلته الله تعالیٰ هم ملاویږی۔

## د حصور معانی

وَحَصُوْرًا : دا د حصر نه دے په معنیٰ د بندش سره نو یا په معنیٰ د محصور سره دے یعنی بند کړے شوے، یا په معنیٰ د حاصر سره دے یعنی ځان د شهواتو نه بندونکے۔ ددے مصداق یو دا دا دے :

(۱) دا هغه شخص ته وائی چه د الله تعالیٰ د طرف نه د شهوت نه بند کړے شوے وی او د زنانو طاقت نهٔ لری، دا معنیٰ صحیح نهٔ ده ځکه چه چا ته شهوت نهٔ وی ورکړے شوے او د شهواتو نه ځان بندوی نو دا کمال نهٔ دے، د شهوت سره ځان بندول کمال دے۔ دویمه وجه دا ده چه انبیاء علیهم السلام ته د عیبونو نسبت کول نقصان دے، ځکه چه د انبیاؤ علیهم السلام شان او منصب ډیر اوچت دے ددینه چه هغوی ته د نقصان نسبت وشی۔ بیا د خلکو د نظر نه سپك راځی۔ (۲) غوره معنیٰ دا ده چه بند وو د شهواتو نه سره د طاقت د

هغه نه. یعنې ځان ئې منع کړے وو، او خپل انساني قوتونه ئې د خپل کنټرول لاندې روستي وو او عفت ئې دومره قوي وو تا به ویل چه د نزدیکت هیڅ قوت نهٔ لري۔ او په بني اسرائیلو کې واده نکول بهتر وو دا وجه ده عیسیٰ علیه السلام وادهٔ نهٔ وو کړے۔ او ددې معنیٰ ډیرې قرینې دي، یو دا چه مخکنۍ معنیٰ د نبوت سره مناسبه نهٔ ده، دویم دا چه زکریا علیه السلام د الله تعالیٰ داسې ماشوم غوښتے وو چه د نسل قابلیت لري ځکه چه ﴿ ذرية طيبة﴾ (مبارك نسل) سره ئې ترې تعبیر کړے وو نو معلومه شوه چه په یحیی علیه السلام کې د نارینتوب صفت کمزورے نهٔ وو۔ دریم دا چه په سورة مریم (۱۳) آیت کې الله تعالیٰ د هغه په صفت کې داسې تعبیر کړیدے ﴿ وَكَانَ تَقِيًّا﴾ یحیی علیه السلام تقویٰ دار وو۔

لیکن شیخ البانیؒ یو حدیث راوړیدے په صحیحه (۲۹۸٤) (۱۲۰٦/٦) او ابن کثیر (۳۵/۲) کې هم راوړیدے د عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما نه چه په هغې کې دا دي چه رسول الله ﷺ د یحیی بن زکریا علیهما السلام تذکره وکړه بیا ئې وفرمایل: (ثُمَّ أَخَذَ شَيْئًا مِنَ الْأَرْضِ فَقَالَ: الْحَصُوْرُ مَا كَانَ ذَكَرُهُ مِثْلَ ذِيْ) ۔ یعنې بیا ئې د زمکے نه یو ډکے راواخستو او وې فرمایل چه حصور هغه شخص ته وائي چه د هغه د سړي توب آله داسې وي او اشاره وکړه یحیی بن سعید القطان په طرف د مسواکۍ ګوتې سره۔ (ابن ابی حاتم)

او د طبري او ابن عساکر په روایت کې دي: (ثُمَّ دَلَّى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَدَهُ إِلَى الْأَرْضِ وَأَخَذَ عُوْدًا صَغِيْرًا ثُمَّ قَالَ: وَذٰلِكَ أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَا لِلرَّجُلِ إِلَّا مِثْلُ هٰذَا الْعُوْدِ) بیا رسول الله ﷺ زمکې ته لاس وربنکته کړو او یو وړوکے ډکے ئې راواخستو او وې فرمایل: یحییٰ علیه السلام سره نهٔ وو هغه اندام چه د سړي دپاره وي مګر په شان ددې ډکي۔ او دا روایت ابن ابی حاتم په خپل تفسیر (۱/۲/۲) کې ذکر کړیدے۔

ابن کثیرؒ خو دې روایتونو ته موقوف ویلی دي او ضعف ته ئې اشاره کړیده او بیا ئې ویلي دي چه دا د نبوت د منصب سره مناسب خبره نهٔ ده، مګر شیخ البانیؒ وائي چه دا ډیرو کنړو طریقو سره نقل دي، بعض ضعیف دي او بعض اسانید بیخي صحیح دي لکه روایت د طبري او ابن عساکر او د بزار (۲۳٦۰) د ضعف نه خالي دي۔

نو بیا به ددې تطبیق دا وي (۱) چه د خصاء (خصي کیدو) بیماري د هغه امراضو نه نهٔ ده چه بندګان د هغې نه نفرت کوي بلکه د دنیاوي نعمت نه محرومول دي نو دا لویه مرتبه د زهد ده۔ (۲) دویم دا چه که د دغه روایاتو په الفاظو کې فکر وکړو نو د هغې نه صراحةً دا نهٔ معلومیږي چه یحیی علیه السلام کې د سړي توب طاقت نهٔ وو بلکه په هغې کې ډیره مبالغه

شویده په پاکدامنۍ: د هغه باندې او هغه داسې چه هغه خپل شهوات داسې کنټرول کړی وو لکه چه ګویا که د هغه سره د سړی توب آله نه وی ځکه چه په زړه کې ئې هیڅ شهوات نه راوستل او عفت ئې دومره قوی وو تا به ویل چه د نزدیکت هیڅ قوت نه لری، لکه همدا معنیٰ د ﴿ تَقِیًّا﴾ هم ده. او دا په محاورو کې ویل کیږی :(زَیْدٌ عَدْلٌ) یعنی زید په عدل کې داسې مرتبې ته رسیدلې دې ګویا که ته به وائې چه ټول بدن ئې د عدل نه جوړ شویدې، لکه عیسیٰ علیه السلام په فوق العاده توګه بې پلاره د الله تعالیٰ په کلمه د کُنْ سره پیدا شویدې ته به وائې چه د عیسیٰ علیه السلام ټول بدن د الله تعالیٰ فرمان (یعنی کلمه) وی. والله اعلم.

اَلصّٰلِحِیْنَ: دا لفظ ئې روستو راوړو ځکه چه دا جامع لفظ دې. هر چا ته شامل دې، نبی او غیر نبی ته.

| قَالَ رَبِّ اَنّٰی یَکُوْنُ لِیْ غُلٰمٌ وَّقَدْ بَلَغَنِیَ الْکِبَرُ |
|---|
| دۀ اوونیل : اې ربه زما! څرنګ به وی ما لره هلك حال دا دې چه رارسیدلې ما ته بوډاوالې |
| وَامْرَاَتِیْ عَاقِرٌ قَالَ کَذٰلِكَ اللّٰهُ یَفْعَلُ مَا یَشَآءُ ﴿۴۰﴾ |
| او ښځه زما شنډه ده، الله وفرمایل: ته به همدغه شان ئې، الله کوی چه څه اوغواړی. |

**تفسیر** : اُوس زکریا علیه السلام د کیفیت تپوس کوی چه په کومه طریقه به دا اولاد پیدا کیږی دا تپوس د استبعاد (بعید ګنړلو) نه دې ځکه چه بیا ئې دعا ولې کوله؟ بلکه دا ناشنا کار دې نو ځان پوهه کوی او طریقه معلوموِل غواړی او استعجال (جلتی کول) ئې غرض دې (فتح البیان). دلته چه کومو بعضو تفاسیرو دا لیکلی دی چه شیطان وسوسه ورواچوله چه دا آواز کیدې شی ملائکو نه وی کړې بلکه شیطان کړې وی، دا خبره غلطه ده ځکه چه په انبیاء علیهم السلام باندې په صورت د وحی کې التباس او ګډوډ والې نه راځی ځکه چه که التباس راشی نو بیا خو دین ګډوډ کیږی. بلکه دلته مقصد دا دې چه آیا زۀ به بل واده کوم او که ما او ښځه به مې ځوانان کیږو او که په همدې حالت کې به یو؟.

اَلْکِبَرُ : پدې وخت کې زکریا علیه السلام د یو سل شلو کالو په عمر وو، بعض وائی د نهه نوی کالو وو، چه پدې وخت کې انسان کمزورې شی، د رګونو طاقت کم او جوش او جذبه کمه شی. (قرطبی)

عَاقِرٌ : أَيْ ذَاتُ عُقْرٍ- وَهِيَ مَعْقُورَةٌ- یعنی زما ښځه شنډه ده. ځکه دا هم بو دیٔ وه د اولادو زمانه ئې ختمه شوې وه، رحم ئې یخ شوې وو. ځینې وائي : د (۹۸) کالو په عمر وه (قرطبي)

كَذٰلِكَ اللّٰهُ : اَیْ اَنْتَ وَزَوْجَتُكَ كَذٰلِكَ . تـهٔ او ستا بي بي به په همدغه حالت د بوډاوالي کې یئ- او اولاد به پیدا کیږي ځکه چه الله تعالیٰ څه سبب ته محتاج نهٔ دې بلکه هغه چه څه غواړي هغه کوي، هغه ته څه مشکلات نشته. دلته ئې (يَفْعَلُ) فعل راوړو او روستو د مریم په واقعه کې (يَخْلُقُ) راوړي ځکه چه د ښځې او خاوند نه بچي پیدا کول عام عادت دې او بې پلاره بچې پیدا کول نوې کار دې نوې پیدائش دې. او خلق په نوې پیدائش کې استعماليږي چه په غیر د اسبابو وي او فعل هغه دې چه د اسبابو عادیهٔ مطابق وي. (المنار)

| قَالَ رَبِّ اجْعَل لِّيٓ اٰيَةً قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ |
|---|
| ده اووئیل: اې ربه زما! او ګرځوه ما له یوه نخه، الله اوفرمایل: نخه ستا به دا وي چه ته به خبرې نه کوې |
| النَّاسَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اِلَّا رَمْزًا وَاذْكُر رَّبَّكَ كَثِيْرًا وَسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْاِبْكَارِ﴿۴۱﴾ |
| خلقو سره درې ورځې مګر په اشاره سره او یادوه رب خپل ډیر او پاکي ئې وایه صبا او بیګاه. |

**تفسیر** : زکریا ﷺ د بچي د پیدا کیدو دپاره نښه وغوښتله یو ئې جلتي وه. بل: تَكْثِيْرًا لِلْعِبَادَةِ. یعنی دې دپاره چه زهٔ د الله تعالیٰ بندګي زیاته کړم چه د حمل اخستو نه تر پیدا کیدو پورې د هغه شکر وکړم چه هغه ما سره دا احسان وکړو.

الله تعالیٰ ورته دا نښه ورکړه چه تهٔ به د درې ورځو پورې خبرې نهٔ کوې یا به ئې نشې کولې مګر په اشاره سره.

اَلَّا تُكَلِّمَ : دې کې یوه معنیٰ د نهي ده یعنی چه تهٔ به خبرې نهٔ کوې. دویمه معنیٰ : ظاهره دا ده چه تـهٔ به خبرې نشې کولې یعنی قدرت به د خبرو نهٔ لرې، الله تعالیٰ به درله خوله بنده کړي. ژبه ئې ورله پدې وجه بنده وله چه په عبادت کې خلوص پیدا شي ځکه چه یو انسان د دنیا خبرې هم کوي او عبادت هم نو دومره اخلاص پکې نهٔ وي او چه خوله بنده شي او صرف د عبادت خبرې وي نو بیا پکې اثر او توجه زیاته وي.

او دا وجه نهٔ ده لکه چه بعض وائي چه دا زکریا ﷺ تـه د اولاد په غوښتو عقوبت (سزا) ورکول وو، نهٔ بلکه دا نعمت وو.

إِلَّا رَمْزًا : یعنی که ضرورت راشی نو په اشاره خبرے کولے شے ځکه چه دا نبی دے، امت سره ئے تعلق راځی۔ او خلکو ته به ئے په اشاره وئیل چه صبا او بیګاه د الله تعالیٰ تسبیحات وایئ۔

**مسئله** : اشاره عالمی لغت دے، په اشاره سره هم ډیر احکام ثابتیږی لکه ګواهی، ظهار او طلاق الخ لکه بخاری پدے باندے بابونه تړلی دی باب الطلاق فی الاغلاق الخ والاشارة (وکذا فی القرطبی)

د الله تعالیٰ عظیم قدرت ته وګوره چه روغ جوړ زکونه دی، وینه پکی ځی راځی لیکن الله تعالیٰ پکی د خبرو طاقت ختم کړی او په بے ساه شی کی د خبرو پیدا کولو صلاحیت باندے قادر دے۔ دارنګه په اضدادو باندے قدرت لری چه مړ اندام ئے ورله ژوندے کړو او ژوندئ ژبه ئے ورله بنده کړه۔

وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيرًا : پدے کی د سهار او ماښام اذکار داخل دی او سبحان الله وبحمده سهار او ماښام وئیل۔

وَسَبِّحْ : پدے کی د سهار او مازیګر مونځ داخلیږی، ځوك چه دا دوه مونځونه وکړی پدے آیت عمل راځی۔

پدے کی بعض علماء د مرجئه ؤ په شان معنیٰ کوی چه کله داسے امرونه راشی نو دوی وائی چه سهار او ماښام دعوت کوه، هغوی ته د الله تعالیٰ ذِکر معمولی شے ښکاری، دعوت هر وخت نهٔ وی البته سهار او ماښام درس قرآن او درس حدیث پدے ذکر کی داخلیږی۔ او داسے امر په قرآن کریم کی ډیر راغلے دے۔

بِالْعَشِيِّ : د ماسپښین نه تر ماښام پورے وخت ته وائی۔ او ابکار د سهار مانځه نه تر نمرخاتهٔ پورے وخت ته وائی۔ پدے دوه وختونو باندے نبی ﷺ هم حکم کړیدے: وَاسْتَعِينُوا بِالْغُدْوَةِ وَالرَّوْحَةِ وَشَيْءٍ مِنَ الدُّلْجَةِ" ۔ (سهار او ماښام او د شپے په څه حصه کی د الله تعالیٰ بندګی کوئ مقصد ته به ورسیږئ)۔ (بخاری: ۳۹)

**فوائد** : (۱) د صبا او بیګا اذکار د ماښام د مانځه نه روستو او د شپے د داخلیدو نه روستو ویل کیږی ځکه چه قید د (لَیل) او مساء پکی راغلے دے، آؤ اذکار عامه لکه تسبیحات شو هغه د مازیګر نه تر ماښام پورے دی لکه لفظ د عَشِی دا معنیٰ ورکوی۔

بیا اذکار المساء تر نصف اللیل پورے صحیح دی کما فی المرعاة باب اذکار الصباح والمساء۔

(۲) فائده: د کثرتِ ذکر او د بچی د پیدا کیدو دوه مناسبته دی (۱) اول: کثرتِ ذکر شکر النعمة دے۔ (۲) دویم ذکر سره قوتِ جنسی مضبوطیږی ددے وجه نه ویل کیږی چه څوك د الله تعالیٰ نه یره کوی نو د هغه شهوت زیات وی۔ (حاشیة البخاری ۱/۴۲) او د قرآن د قاریانو شهوت زیات وی ځکه چه تلاوتونه زیات کوی۔

(۳) فائده: د العشی او الابکار نه هر وخت مراد دے، یا دا چه پدے اوقاتو کی ذکر ډیر افضل دے۔

(٤) بعض صوفیه وائی چه د اولادو غوښتل حمق (بی وقوفی) ده، لیکن دا خبره باطله ده ځکه چه ابراهیم او زکریا علیهما السلام د اولادو دپاره دعاګانے کړیدی او د متقیانو په دعاګانو کی دا نقل دی: ﴿ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا﴾ (فرقان: ٧٤) او نبی کریم ﷺ د انس دپاره د کثرة الاولاد دعا کړے وه۔ (القرطبی)

| وَإِذْ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ يَا مَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَاكِ وَطَهَّرَكِ |
|---|
| او کله چه اووئیل ملائکو اے مریم! یقیناً الله ته غوره کړے ئے او پاکه کړے ئے |
| وَاصْطَفَاكِ عَلَىٰ نِسَاءِ الْعَالَمِينَ ﴿٤٢﴾ |
| او غوره کړے ئے ته په زنانو د مخلوقاتو۔ |

**تفسیر**: مریم الله تعالیٰ رالویه کړه نو اوس د مریم فضیلت او بیا هغے ته حکمونه او د عیسیٰ علیه السلام ورکول بیانیږی د مریم او د عیسیٰ علیه السلام بندګی بیانوی ځکه چه نصاریٰ د دوی په باره کی ګمراه شویدی، د هغوی عقیده دا ده چه آلهه درے دی۔ دیته اقانیم (اصول) ثلاثه وائی۔ الله تعالیٰ، مریم او عیسیٰ۔ بعض ورسره جبریل یو ځای کړی او مریم ترے بهر کړی ځکه په دوی کی هم ډیرے ډلے او ډیرے عقیدے دی۔ نو په ذکر د عبادت د مریم سره رد وشو په دغه ګمراه کن عقیده باندے۔

وَإِذْ قَالَتِ: د مریم سره ملائکو خبرے کړیدی پدے وجه ابن حزم رحمه الله فرمائی چه په زنانو کی آسیه او مریم نبیه وے۔ لیکن دا رایه غوره نهٔ ده بلکه د اکثر امت مذهب دا دے چه په زنانو کی انبیاء نشته او دا نیکان دی او د دوی سره کرامةً ملائکو خبری کړیدی۔ لکه د عمران بن حصین رضی الله عنهما سره او نورو صحابه کرامو سره شویدی۔

اصْطَفَاكِ: (۱) بِالْكَرَامَاتِ۔ ته ئے په کرامتونو غوره کړے یې۔ (۲) بِالْمَقَامَاتِ السَّنِيَّةِ۔

اُوچتی مرتبے ته درکړیدی۔
وَطَهَّرَكِ : (۱) مِنَ الذُّنُوبِ (۲) وَالْاَخْلَاقِ الرَّدِيْئَةِ ۔ ته ئے د ګناهونو او بدو اخلاقو نه پاکه کړے یې۔ عامو زنانو کی دغه بد اخلاق وی۔ (۳) بعض وائی : طَهَّرَكِ مِنَ الْحَيْضِ ۔ د حیض نه پاکه وه۔ لیکن حدیث نه معلومیږی چه حیض الله تعالیٰ په بناتِ آدم مقرر کړیدے اګرکه تولی زنانه ئے نهٔ دی ذکر کړی، کیدے شی چه دیته الله تعالیٰ دا کرامت هم ورکړے وی۔
وَاصْطَفَاكِ : دوباره ئے د تاکید دپاره راوړو۔ یا مخکی اصطفاء د کرامتونو او نیکو اخلاقو دپاره وه او دلته اصطفاء په نورو زنانو باندے مراد ده چه نورے زنانه هم دے ته نشوے رسیدلے۔ لیکن صحیح دا ده چه اول غوره والے د عبادت دپاره دے او دویم د ولادت د عیسیٰ علیه السلام دپاره دے۔ (روح المعانی والقاسمی)

## کومه زنانه زیاته غوره ده؟

دے کی اختلاف دے چه آسیه، مریم، خدیجه، عائشه او فاطمه رضی الله عنهن کی څوك ډیر غوره وو؟، نبی ﷺ فرمائی: "په سړو کی ډیر کاملان شته لیکن د زنانو نه صرف آسیه بنت مزاحم او مریم بنت عمران کاملان شویدی"۔ او یو حدیث کی دی چه دا دواړه په جنت کی د رسول الله ﷺ دپاره دی، څکه دا اُوچتی زنانه دی د اُوچت سړی سره لائقی دی۔ (کما فی ابن کثیر فی آخر سورة التحریم)
نو ظاهر دا دے چه دا پنځه واړه زنانه غوره دی او هر چا ته الله تعالیٰ خپل خپل غوره والے ورکړیدے۔ آسیه پدے وجه غوره ده چه په سخت ځای (د فرعون په کور کی ئے) د خپل ایمان حفاظت کړیدے، ډیرے سختے ئے تیری کړیدی او د فرعون مقابله ئے کړیده۔ او مریم پدے وجه غوره ده چه خپله نیکه وه او عیسیٰ ﷺ ترے پیدا شویدے۔ او خدیجه پدے وجه غوره وه چه په ابتداء کی ئے د اسلام مدد کړیدے او عائشه پدے وجه غوره ده چه د اسلام د آخر مدد ئے کړیدے، ډیر دین ئے امت ته بیان کړیدے روایتونه ترے نقل دی لویه عالِمه وه۔ او فاطمه پدے وجه غوره ده چه تقویٰ او حیاء پکی ډیره وه او د رسول الله ﷺ نه پیدا وه۔

| يَا مَرْيَمُ اقْنُتِي لِرَبِّكِ وَاسْجُدِي وَارْكَعِي مَعَ الرَّاكِعِينَ ﴿۴۳﴾ |
|---|
| اے مریم ! عاجزی کوه رب خپل ته او سجدے کوه او رکوع کوه سره د رکوع کونکو نه۔ |

**تفسیر** : هرکله چه یو انسان ته غوره والے ورکړی شی په علم او په صحیح عقیده نو

هغه له د الله تعالیٰ بندګی ډیرول پکار دی پدې وجه الله تعالیٰ مریم ته دا حکمونه وکړل۔

اُقۡنُتِیۡ : یعنی همیشه الله تعالیٰ ته عاجزي کوه او همیشه د هغه په بندګیٔ کې وسیږه لکه دا معنیٰ د قنوت ده۔ لکه مخکې (والقانتین) کې ذکر شو چه قنوت دوام الطاعة مع مصاحبة الخشوع والخضوع ته وائي۔ (تیسیر الکریم الرحمن) دلته ترې مراد (۱) طاعت دے (۲) یا طول القیام دے۔ یعنی اُوږد مونځ۔ (۳) یا ترې عبادت مراد دے (قاله الحسن)۔ (٤) یا ترې اخلاص مراد دے لکه سعید بن جبیر وئیلي دي۔ (زاد المسیر)

وَاسۡجُدِیۡ : دلته ئې سجده په رکوع باندې ولې مخکې ذکر کړه؟ ددې درې جوابه دي:

(۱) د هغوی په دین کې سجده مخکې وه بیا رکوع۔ دا ضعیف جواب دے بې دلیله دے۔

(۲) دویم جواب: واو د مطلق جمع دپاره دے ترتیب نۀ غواړي۔ یعنی سجده او رکوع جمع کوه، دواړه کوه په هغه ترتیب چه نبي درښودلي دي۔

(۳) دریم جواب (ظاهره دا ده) چه قرآن دلته ترتیب ورکړیدے اول ئې اعم بیا اخص بیا اخص الخاص ذکر کړیدے قنوت، ډیر عام دے په مانځه او غیر مانځه کې وي۔ او سجده خاص ده، سجده د مانځه هم وي، سجده د شکر هم وي، سجده د مصیبت په وخت هم وي۔ او رکوع بیخي خاص ده دا صرف په مانځه کې مقرر عبادت دے۔ هان د رکوع شکل مخلوق ته جوړول جائز نۀ دي او الله تعالیٰ ته کله کله بغیر د مانځه نه هم سر ښکته کول عبادت دے لکه رسول الله ﷺ چه کله مکې ته داخلیدو نو سر ئې ښکته کړے وو (تواضعا لرب العالمین) او الله تعالیٰ بني اسرائیلو ته حکم کړے وو (ادخلوا الباب سجدا)۔ دروازې ته ننوزئ چه سر ټیټونکي یئ۔

دے کې ابو سلیمان الدمشقيؒ وئیلي دي چه د هغوی په شریعت کې سجده په رکوع مقدمه وه۔ (زاد المسیر، القرطبي) لیکن دا خبره دلیل ته محتاج ده۔

مَعَ الرّٰکِعِیۡنَ : د مَعَ یوه معنیٰ دا ده چه د سرو سره شریکه جمعه کوه په بیت المقدس کې۔ او دویمه معنیٰ ډیره ښکاره ده (ځکه چه هغه خو د خلکو نه مشرقي جانب ته یواځې شوې وه) نو مطلب دا دے چه کوم خلك چه په دنیا کې الله تعالیٰ ته رکوع کوي او عاجزي نو تۀ هم د هغوی سره پدې صفت کې شریکه شه، اګرکه مکان کې به شریکه نۀ یې۔

| ذٰلِكَ مِنۡ اَنۡۢبَآءِ الۡغَيۡبِ نُوۡحِيۡهِ اِلَيۡكَ ؕ وَمَا كُنۡتَ لَدَيۡهِمۡ |
|---|
| دا (چه بیان شو) د خبرو د غیبو نه دي، وحي ئې کوو مونږه تا ته، او نۀ وې ته د دوی سره |

| إِذْ يُلْقُوْنَ أَقْلَامَهُمْ أَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ وَمَا كُنْتَ |
|---|
| کله چه غورزول دوی قلمونه خپل چه کوم یو به تربیت کوی د مریم او نه وے ته |
| لَدَيْهِمْ إِذْ يَخْتَصِمُوْنَ ﴿٤٤﴾ |
| د دوی سره کله چه دوی جګړے کولے۔ (په باره د ساتنه د مریم کی) |

**تفسیر** : په مینځ کی د رسول الله ﷺ تصدیق (رشتین والے) ثابتوی چه زما دا رسول (ﷺ) رشتینی څکه دے چه اے امته ! تاسو ته ئے هغه خبرے بیان کړے چه دا ورته حاضر نهٔ وو دا دلیل دے چه ددے خبرو ورته ما وحی کړیده او دا څکه بیانوی چه مشرکانو به د رسول الله ﷺ په خبرو کی شك کولو۔

ذٰلِكَ : یعنی دا مذکوره بیان او د زکریا او عیسیٰ او یحیی علیهم السلام قصه چه ده۔

مِنْ أَنْبَآءِ الْغَيْبِ : اخبار ته وائی او د الغیب معنیٰ ده (ما غاب عنك) چه ستا نه غائب دی۔

د غیب څلور معانی په سورة بقره (۳) آیت کی تیرے شویدی۔

إِذْ يُلْقُوْنَ : یعنی دوی خپل قلمونه کوزارول، قُرعه ئے اچوله ددے دپاره چه کوم به د مریم کفالت کوی۔ يَكْفُلُ : امام بخاریؒ وائی کفالت دلته په معنیٰ د یو ځای والے دے۔

او نور مفسرین د یکفل معنیٰ کوی : يَحْضُنُهَا، يُرَبِّيْهَا) یعنی څوك به ددے حَضانت (سنبالښت) او تربیت کوی۔ د دواړو حاصل یو راوځی۔

**مسئله** : قرعه په احکام شرعیه ؤ کی شته کوم علماء چه دا قمار (جواری) ګڼړی لکه احناف نو فقاهت ئے صحیح نهٔ دے۔ (ورد علیه القرطبی)

يَخْتَصِمُوْنَ : خصومة کله جګړے ته، او کله مناظرے ته وائی نو کله نفس خبرو اترو ته وائی لکه په سورة ص (٦٩) آیت کی دی : ﴿مَا كَانَ لِيَ مِنْ عِلْمٍ بِالْمَلَإِ الْأَعْلَى إِذْ يَخْتَصِمُوْنَ﴾ یا ﴿وَهُمْ يَخِصِّمُوْنَ﴾ (یس : ٤٩)

**تنبیه** : د قرعه طریقه مخکی ذکر شوه۔ ینظر ((القرطبی))

| إِذْ قَالَتِ الْمَلَآئِكَةُ يَا مَرْيَمُ إِنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ |
|---|
| کله چه وویل ملائکو اے مریم! یقیناً الله زیرے درکوی تا ته په یوه کلمه سره د طرفه د الله نه |
| اسْمُهُ الْمَسِيْحُ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ وَجِيْهًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمِنَ |
| نوم د هغه به مسیح عیسیٰ ځوی د مریم وی، مخوریز به وی په دنیا او آخرت کی او د |

الْمُقَرَّبِينَ ﴿٤٥﴾ وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا وَمِنَ الصَّالِحِينَ ﴿٤٦﴾

نزدے کړے شوو نه به وی۔ او خبرے به کوی د خلکو سره په زانګو کی او د نیکانو نه به وی۔

**تفسیر** : مریم د عبادت دپاره د خلکو نه مشرقی جانب ته جدا شوے وه د الله تعالیٰ بندګی به ئے کوله نو هلته ملائک (جبریل علیه السلام) ورغے او هغے ته ئے د عیسیٰ علیه السلام زیرے ورکړو۔

بِكَلِمَةٍ : د کلمے نه مراد عیسیٰ علیه السلام دے ځکه چه دا په کلمه د کُنْ پیدا دے په غیر د اسبابو نه، پلار ئے نۀ وو او نور بندګان هم په کلمه د کُنْ پیدا دی لیکن ظاهری اسباب لری۔ او کلمه د عیسیٰ علیه السلام لقب دے۔ (زاد المسیر)

مِنْهُ : اَیْ مِنْ جَانِبِ اللّٰهِ ۔ د الله تعالیٰ د طرف نه۔ دا هغه کلمه ده چه د متشابهاتو نه ده۔ صحیح معنیٰ ئے دا ده چه د الله تعالیٰ د طرف نه په کلمه د کُنْ پیدا دے او غلطه معنیٰ ئے دا ده چه د الله تعالیٰ جزء دے نو ځکه ورته نصاریٰ د الله تعالیٰ ځوی وائی۔ ددے جواب دا دے چه دا معنیٰ د نبی علیه السلام او صحابه کرامو نقل نۀ ده او د قرآن د نورو آیتونو سره ئے ټکراؤ دے ځکه که دا معنیٰ شی نو بیا د سورة الجاثیه آیت (۱۳) ﴿ جَمِيعًا مِّنْهُ ﴾ کی به هم دا معنیٰ کوے چه آسمانونه او زمکه ټول د الله تعالیٰ جزء دے او دا خو ښکاره باطله خبره ده۔ نو دلته د جزء معنیٰ کول هم باطل شو۔

اسْمُهُ : دا ضمیر مدلول د کلمے ته راجع دے یعنی دا کلمه چه په څه دلالت کوی چه هغه عیسیٰ علیه السلام دے۔

## د مسیح څه معنیٰ؟

الْمَسِيحُ : دا د عیسیٰ علیه السلام لقب دے مفسرینو ددے نوم ډیرے وجے ذکر کړیدی:

(۱) په زمکه کی د دعوت دپاره ګرزیدونکے، (۲) یا هغه شخص چه په زمکه کی ګرځیدونکے وی او هیڅ کور ئے ځائله نۀ وی جوړ کړے۔

(۳) هغه شخص چه مصیبت زده خلك ددۀ په لاس جوړیږی۔ په کوم آفت والا باندے به ئے چه لاس راښکلو جوړ به شو ۔ابن عباس) نو مسیح په معنیٰ د ماسح سره دے۔

(٤) مَمْسُوحُ الْاَخْمَصَيْنِ۔ چه خپره ئے نۀ وی، (٥) مبارك۔

(٦) بمعنیٰ الصدیق (تصدیق کونکے)۔ (قرطبی والبغوی)

(٧) المطهر من الذنوب۔ ( د ګناهونو نه پاك کړے شوے) (قاله مجاهد والنخعی) ۔(٦) او

خَرَجَ مِنْ بَطْنِ أُمِّهٖ مَمْسُوْحًا بِالدُّهْنِ ۔ د مور د خیټې نه چه راووتو نو په تیلو باندې مسه شوې وو۔ (زاد المسیر)

دجال هم مسیح دې، هغه ته پدې وجه مسیح وائی : (لانـه ممسوح احدی عینیه) د هغه یـوه سترګـه مسـه شویده یعنی نیغه راوتلې ده۔ یا هغه ماسح الارض دې یعنی د مدینې او مکې نه سوئ به په ټوله زمکه ګرځی۔

او مسیح لفظ په عبرانی ژبه کی په اصل کی مشیحا وو او دا د هغوی په نیز د بادشاه لقب وو ځکه چه د هغوی دا رسم وو چه څوك به د بادشاهئ مشر کیدو نو هغه باندې به به یو کاهن مقدس تیل رانبکل نو هغه بادشاه ته به ئې مسیح وئیلو۔ (المنار)

عِیْسَی : دا په عبرانئ کی یشوع یا یسوع دې نو کله چه عربئ ته رانقل شو نو شین بدل شو په سین لکه موشئ کی موسئ وویل شو۔ (المنار)

**حکمة** : مسیح ئې په عیسیٰ مقدم کړو ځکه چه مسیح غالباً صرف د عیسیٰ علیه السلام دپاره استعمال دې او هرچه عیسیٰ لفظ دې نو د هغه په ډیرو کسانو اطلاق کیږی۔ صاحب المنار وائی چه دلته مسیح د علم په ځای استعمال دې، وصفی معنیٰ به پکی نـهٔ اخستلې کیږی۔ او په پخوانو کی کتابونو کی د عیسیٰ علیه السلام بشارت د مسیح په لفظ سره ذکر وو۔

ابْنُ مَرْيَمَ : دا لقب ډیر ذکر کیږی رد دې په نصاراؤ چه دوی ئې د الله تعالیٰ ځوی ګڼړی او رد دې په یهودو چه هغوی ورته ولدِ زنا وائی۔

وَجِيْهًا : (۱) مخوریز، (۲) شریف تـه وائـی (۳) محبوب عند الله۔ د الله تعالیٰ پـه نیز خوبښ۔ (٤) مستجاب الدعوة۔ چه دعاګانی ئې قبلیږی۔ (٥) ذُو الْجَاهِ وَالْمَنْزِلَةِ عِنْدَ اللّٰهِ ۔ د الله تعالیٰ په نیز د اُوچتې مرتبې او شان والا۔

د عیسیٰ علیه السلام په دنیا کی وجاهت دا وو چه د مؤمنانو په زړونو کی د هغه ډیر لوی احترام موجود وو۔

پدې صفتونو کی د عیسیٰ علیه السلام عبدیت ذکر دې چه د مریم نه پیدا دې، مخلوق دې، په مخوریز توب کی الله تعالیٰ ته محتاج دې او الله تعالیٰ ته په نژدې کیدو کی محتاج وو۔

الْمُقَرَّبِيْنَ : په دنیا او آخرت کی مراد دې۔

وَيُكَلِّمُ : دا نـور وجـوه د عبدیـت دی او پدې کی فضیلت د عیسیٰ علیه السلام دې چه په وړوکوالی ترې الله تعالیٰ خبرې راویستلی دی۔

فِي الْمَهْدِ : زانګو او غيږے ته وائي دلته ترے د وړوکوالي زمانه مراد ده۔
وَكَهْلًا : د ځلوېښتو کال عمر ته چه انسان ورسيږي کهل ترے جوړ شي، اول کي شاب (ځوان) وي بيا چه شپيتو ته ورسي نو شيخ شي، بيا چه کله صحت کمزورے شي نو دغه د هَرِم زمانه ده۔

کهل په اصل کي هغه عمر ته وائي چه د سرې ويښتان سپينيدو ته نزدے شي لکه چه عرب وائي : (اِكْتَهَلَ النَّبَاتُ) شنه ګياه وچيدو ته نزدے شوه۔ (مفرداتِ راغب ص : ٤٦٠)

مفسرينو ددے نه دليل نيولے دے چه عيسىٰ علیه السلام آسمان ته ختلے دے ځکه چه په هغه باندے د کهولة زمانه نۀ ده راغلے بلکه د درې ديرشو کالو په عمر آسمان ته پورته شويدے۔
او دا استدلال د ابن عباسؓ او حسين بن المفضلؒ دے (بغوی ٤٦/٢) او ځکه صحيح دے چه ابن فارس وئيلي دي : (اَلْكَهْلُ مَنْ وَخَطَهُ الشَّيْبُ) کهل هغه چا ته وائي چه د ويښتو سپين والے پرے راښکاره شي او دا غالباً د ځلوېښتو کالو نه روستو وي او عيسىٰ عليه السلام هم ځلوېښتو ته نۀ وو رسيدلے، او بعض اهل علم وائي چه د کهولة زمانه د ديرشو کالو نه شروع کيږي (ابن الانباري – زاد المسير ٣٣٩/١)

**فائده** : کهولة کي خو هر څوك خبرے کولے شي نو دائے ولے خاص کړو ؟ ددے ډير وجوه دي (١) اوله وجه دا ده چه پدے کي اشاره ده چه ددۀ خبرے په حالت د وړوکوالي او غټوالي دواړو کي يو شان د انبياؤ خبرې دي۔ (٢) پدے کي بشارت (زيرے) دے ددۀ د عمر په اُوږد والي باندے چه د کهولة (پوخ عمر) زمانے ته به رسيږي۔ (٣) امام طبريؒ وائي چه پدے کي اشاره ده چه زمانه به په دۀ کي اثر کوي او په زمانه کي به د يو حال نه بل حال ته منتقل کيږي نو که دے چرته الٰه وے نو داسے تغير (بدلون) به پرے نۀ راتللے۔ (٤) مجاهدؒ وائي : کهل حليم (صبرناك) ته وائي۔ (زاد المسير)

الصَّالِحِيْنَ : د نيکانو نه به وي د هغوی مشرب به وي، صلاحيت اُوچت صفت دے ځکه ئے په آخر کي راوړو، عيسىٰ علیه السلام کي ډير صلاحيت وو په دنيا کي زاهد (بې رغبته) وو۔
صلاح : اِسْتِقَامَةُ الْاَعْمَالِ وَطَهَارَةُ النَّفْسِ ته وائي۔ يعني چه اعمال برابر وي او نفس پاك وي۔ (التحرير ٩٨/٣)

| قَالَتْ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ وَلَدٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِيْ بَشَرٌ |
| --- |
| دے اووئيل څنګه کيدے شي زما دپاره بچے او نۀ دے رارسيدلے ما ته هيڅ سړے، |

| قَالَ كَذٰلِكِ اللّٰهُ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ |
|---|
| وویل جبریل علیه السلام ته به همدغه شان ئے، الله پیدا کوی هغه څه چه وغواړی، |
| إِذَا قَضٰى أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿٤٧﴾ |
| کله چه فیصله وکړی د یو کار نو یقیناً هغے ته وائی شه نو شی۔ |

**تفسیر** : مریم هم د بچی د پیدائش نه تعجب وکړو ځکه دا د عادت خلاف کار وو نو هغے هم د بچی د پیدائش علامه او کیفیت معلومول طلب کړل او دا عذر ئے هم پیش کړو چه ما ته هیڅ انسان رسیدل نهٔ دی کړی نهٔ خاوند او نهٔ بل چا او اولاد خو پدے اسبابو سره کیږی نو الله تعالیٰ ورته د جبریل علیه السلام په واسطه وویل چه ته به په همدغه طریقه یی، الله تعالیٰ چه څه غواړی هغه پیدا کوی، ځکه چه هغه څه فیصله وکړی نو څه مشکلات ورته نشته د یو شی د موجودیدو اراده چه وکړی بس هغه موجود شی۔

رَبِّ : دا نداء د تحسر (افسوس) ده نهٔ د خطاب دپاره ځکه خبرے ورسره ملائك کولے او دے د الله تعالیٰ سره مناجات کوی۔ (التحریر) زمخشری وائی چا چه د رب نه جبریل علیه السلام مراد کړیدے او معنیٰ ئے په (یا سیدی) سره کړیده نو دا د تفسیر د بدعاتو نه ده۔

كَذٰلِكِ : دا اشاره ده مذکور خلق ته اَیْ مِثْلَ ذٰلِكَ الْخَلْقِ الْمَذْكُوْرِ يَخْلُقُ اللّٰهُ ۔ یعنی د دغه مخکنی پیدائش په شان الله تعالیٰ پیدا کوی څه چه وغواړی۔ (التحریر)

۲– یا معنیٰ ده اَنْتِ كَذٰلِكِ۔ یعنی ته په دغه حالت باندے یی۔

**فوائد** : (۱) ابن الانباریؒ وائی : دائے ځکه وویل (رب انی یکون لی ولد) چه گمان ئے دا وو چه دا جبریل نهٔ دے بل څوك سړے دے، غلطه اراده لری۔ (۲) جمهور وائی چه دا خبره ئے د تعجب او استفهام په طور کړیده او همدا خبره ظاهره ده۔ (زاد المسیر)

ابن عاشورؒ وائی : دا استفهام د انکار او تعجب دپاره دے پدے وجه دوه جوابونه ورکړے شو یو (کذلك یخلق الله ما یشاء) پدے کی ددے انکار ختم شو او بل جواب (اذا قضی امرا الخ) دے پدے سره ئے تعجب ورله ختم کړو۔ (التحریر والتنویر)

(۳) إِذَا قَضٰى أَمْرًا : پدے کی اشاره ده چه دا فیصله شویده واپس کیږی نهٔ لکه بل آیت کی الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَكَانَ أَمْرًا مَّقْضِيًّا﴾ (مریم) یعنی دا فیصله شوے کار دے نو ته ددے د رد کولو دعا مهٔ کوه۔

وَيُعَلِّمُهُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ ﴿٤٨﴾ وَرَسُولًا إِلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ

او وربنائی به ده ته کتاب او سنت او تورات او انجیل او (گرځوی به ئې) رسول بنی اسرائیلو ته

أَنِّي قَدْ جِئْتُكُمْ بِآيَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ أَنِّي

(وائی به) چه یقیناً زهٔ راغلے یم تاسو ته په معجزه د طرفه د رب ستاسو نه، یقیناً زهٔ

أَخْلُقُ لَكُمْ مِنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ فَأَنْفُخُ فِيهِ فَيَكُونُ طَيْرًا

جوړوم تاسو له د ختې نه په شان د شکل د مارغه نو پوکے کوم په هغے کې نو کیږی به مارغه

بِإِذْنِ اللَّهِ وَأُبْرِئُ الْأَكْمَهَ وَالْأَبْرَصَ وَأُحْيِي الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِ

په حکم د الله سره او روغوم به مورزادی ړوند او برګی مرض والا او راژوندی کوم به مړی په حکم

اللَّهِ وَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ

د الله سره او خبر به درکوم تاسو ته په هغه څه چه تاسو ئې خورئ او په هغه څه چه تاسو ئې ساتئ

فِي بُيُوتِكُمْ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿٤٩﴾

په کورونو کې، یقیناً پدے کې نخه ده ستاسو دپاره (زما په نبوت) که تاسو ایمان لرونکی یئ.

**تفسیر** : د عیسیٰ علیه السلام نور فضیلتونه او معجزے بیانیږی چه الله تعالیٰ به هغه ته د خپل دین پوهه ورکوی او خاصکر د تورات او انجیل علم به ورکوی او بیا به ئې بنی اسرائیلو ته رسول جوړوی او هغوی ته به خپله معجزه پیش کوی.

وَيُعَلِّمُهُ : دیے نه معلومه شوه چه عیسیٰ علیه السلام مُعَلَّم بنده دیے، الله تعالیٰ ته په تعلیم کې محتاج دیے نو اله نشی کیدیے.

الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ : (۱) د (کتاب) نه مراد لیکل دی یعنی دا به لیکل او لوستل کولے شی او د (حکمة) نه مراد د پوهے او د وعظ او نصیحت خبرے دی چه دیته د عیسیٰ علیه السلام سنت وائی، د عیسیٰ علیه السلام عامے خبرے د حکمة وے لکه هغه حافظ ابن کثیرؒ په ((البدایه والنهایه)) کې او ابو نعیم په ((حلیة الاولیاء)) او امام احمد بن حنبلؒ په ((کتاب الزهد)) کې راجمع کړیدی. (۲) دویم الکتاب قرآن ته وائی او حکمة سنت نبوی ته وائی. یعنی په روستنه زمانه کې به د یو بل نبی محمد رسول الله ﷺ کتاب او حکمة هم ورزده کوی، د مخکې نه دا بشارت ورکړے شو.

## د عیسیٰ علیه السلام د وعظ او نصیحت خبرے

(۱) قال عیسیٰ علیه السلام: لَاتُكْثِرُوا الْكَلَامَ بِغَيْرِ ذِكْرِ اللّٰهِ فَإِنَّ كَثْرَةَ الْكَلَامِ بِغَيْرِ ذِكْرِ اللّٰهِ قَسْوَةٌ لِلْقَلْبِ وَإِنَّ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنَ اللّٰهِ الْقَلْبُ الْقَاسِيُ۔

د الله تعالیٰ د ذکر نه بغیر خبرے زیاتے مه کویٔ ځکه چه زیاتے خبرے د الله د ذکر نه بغیر د زړه سختوالے دے او په خلکو کی د الله تعالیٰ نه ورانده سخت زړه دے۔

(۲) وقال: مَثَلُ طَالِبِ الدُّنْيَا كَشَارِبِ مَاءِ الْبَحْرِ كُلَّمَا زَادَ شُرْبًا زَادَ عَطَشًا۔

د دنیا د طلبګار مثال د دریاب د اوبو څکونکے دے، څومره چه زیات څکی هغومره زیات تږے کیږی۔

(۳) وقال: حُبُّ الدُّنْيَا رَأْسُ كُلِّ خَطِيئَةٍ۔ د دنیا محبت د هرے ګناه سر دے۔

(٤) وقال: إِجْعَلُوا كُنُوزَكُمْ فِي السَّمَاءِ فَإِنَّ قَلْبَ الْمَرْءِ يَكُونُ حَيْثُ يَكُونُ كَنْزُهُ۔

خپلے خزانے په آسمان کی کیږدیٔ ځکه چه د بنده زړه په هغه ځای کی وی کوم ځای ئے چه خزانه وی۔

(٥) وَقَالَ لِلْحَوَارِيِّينَ: يَا مِلْحَ الْأَرْضِ إِذَا فَسَدَ الطَّعَامُ صَلُحَ بِالْمِلْحِ فَإِذَا فَسَدَ الْمِلْحُ فَبِأَيِّ شَيْءٍ يَصْلُحُ۔

حوارینو ته ئے وفرمایل: اے د زمکے مالګے! کله چه طعام خراب شی نو په مالګه برابریږی نو کله چه مالګه خرابه شی په څه سره به برابر شی۔

(٦) وَقَالَ: جَالِسُوا مَنْ زَادَكُمْ فِي عِلْمِكُمْ مَنْطِقُهُ وَرَغَّبَكُمْ فِي الْآخِرَةِ عَمَلُهُ۔

د هغه چا سره ناسته کویٔ چه د هغه خبرے ستاسو په علم کی زیادت راولی او د هغه عمل تاسو لره د آخرت سره مینه پیدا کوی۔

(۷) وقال: إِنَّ فِيكُمْ خَصْلَتَيْنِ مِنَ الْعَجَبِ، اَلضِّحْكُ مِنْ غَيْرِ عَجَبٍ وَالصُّبْحَةُ مِنْ غَيْرِ سَهَرٍ۔

په تاسو کی دوه د تعجب څیزونه دی، یو د تعجب نه بغیر خندا کول او بل د بی خوبیٔ نه بغیر د سهار خوب کول۔

(۸) وقال: لَايُصِيبُ أَحَدٌ حَقِيقَةَ الْإِيمَانِ حَتّٰى لَايُبَالِيَ مَنْ أَكَلَ الدُّنْيَا۔

هیڅ یو تن د ایمان حقیقت ته نهٔ شی رسیدلے تردے چه باك ونکړی چه دنیا چا وخوره۔

(۹) وَقَالَ: فَكَّرْتُ فِي الْخَلْقِ فَوَجَدْتُ مَنْ لَمْ يُخْلَقْ أَغْبَطَ عِنْدِي مِمَّنْ خُلِقَ۔

ما په مخلوق کی فکر وکړو نو ما دا خبره وموندله چه څوك نهٔ دی پیدا هغوی زما په نیز

د پیدا خلکو نه د پسخیدو زیات لائق دی۔
(۱۰) وَقَالَ : كَمَا تَرَكَ لَكُمُ الْمُلُوكُ الْحِكْمَةَ فَاتْرُكُوا لَهُمُ الدُّنْيَا۔
لکه څنګه چه تاسو ته بادشاهانو حکمة (د دین پوهه) پریښے ده نو تاسو هغوی ته دنیا پریږدئ۔
(۱۱) يَحِقُّ أَقُولُ لَكُمْ إِنَّ حَلَاوَةَ الدُّنْيَا مَرَارَةُ الْآخِرَةِ وَإِنَّ مَرَارَةَ الدُّنْيَا حَلَاوَةُ الْآخِرَةِ۔
انظر البداية والنهاية ۲/۴۹۶) مفصلا ۔ پکار ده چه زهٔ تاسو ته ووایم چه د دنیا خوند د آخرت تریخوالے دے او د دنیا تریخ والے د آخرت خوند دے۔
نو دا د هغه د حکمة بعض مثالونه شو۔
وَرَسُولًا : منصوب دے اَیْ وَيَجْعَلُهُ رَسُولًا ۔ او کرځوی به ئے رسول بنی اسرائیلو ته، دا دلیل دے چه زمونږ دے امت کی چه راځی نو په صفت د رسالت به نهٔ وی بلکه د یو مُبلغ او بادشاه او خلیفه په صورت کی به راځی۔
أَنِّي : یعنی وَيَقُولُ : او دا به وائی چه زهٔ تاسو دپاره د ختی نه د مارغه په شان شکل جوړوم او بیا په هغے کی پوکے کوم نو د هغے نه به د الله تعالیٰ په حکم سره مارغه جوړیږی او مورزادیړوند او برګی مرض والا به د الله تعالیٰ په حکم جوړوم او مړی به راژوندی کوم۔
او کوم څیزونه چه تاسو په کورونو کی ذخیره کوئ (ساتئ) د هغے خبر به درکوم۔
د عیسیٰ علیه السلام په دَور کی د طب او ډاکټرئ چرچه وه نو هغه ته الله تعالیٰ داسے معجزات ورکړل چه طبیبان ئے عاجز کړل څکه طبیبان دا کارونه نشی کولے، هر نبی ته الله تعالیٰ د هغه د زمانی مطابق معجزه ورکړیده۔
عیسیٰ علیه السلام چه به کوم مارغه د ختے نه جوړ کړو ددے او د عام مارغه فرق به دا وو چه کله به دا مارغه والوتلو او د خلکو د سترګو نه به غائب شو نو یو ځای کی به پریوتلو او ختم به شو او عام مارغان خو ډیر وخت پورے ژوندی وی۔ دا ددے دپاره چه د الله تعالیٰ او د مخلوق د پیدائش ترمینځ فرق راشی۔
وَأُبْرِئُ الْأَكْمَهَ : د مورزادی (پیدائشی) ړوند د علاج نه ټول ډاکټران عاجز دی، بعض وائی اکمه د شپی ړوند یعنی شب کور ته وائی۔ اوله معنیٰ غوره ده۔
وَالْأَبْرَصَ : برګی مرض دوه قسمه دے یو هغه دے چه ټوله څرمن ئے خرابه شوی وی او د څرمنے لاندے وینه ئے وچه شوی وی او صرف زیړے اُوبه پاتی وی نو ددے علاج ممکن نهٔ دے۔ او دویم هغه دے چه د څرمنے لاندے وینه وی لیکن ظاهری څرمن خرابه شوی وی نو

ددے علاج په طب کې شته، دلته اول قسم برګے مرض مراد دے۔

وَأُحْيِي الْمَوْتَىٰ : عيسىٰ عليه السلام به مړی راژوندی کول یوه ورځ ورته چا وویل چه دا خو نزدے مړۀ دی مونږ له د نوح عليه السلام ځوی سام بن نوح راژوندے کړه مونږ به ستا هله ومنو۔ نو دوی ورته د سام قبر وخودلو عیسیٰ عليه السلام ورته وویل: قُمْ بِإِذْنِ اللّٰهِ) د الله تعالیٰ په حکم راپاځه۔ نو هغه راپاځیدو او سرئے سپین وو، چا ترے تپوس وکړو سر دے ولے سپین دے؟ هغه وویل: ما وئیل که قیامت دے بیا بیرته مړ شو۔ دا هم الله تعالیٰ راژوندے کړو لیکن ظاهری آواز به د عیسیٰ عليه السلام وو۔

وَأُنَبِّئُكُم : یعنی زۀ به تاسو ته ستاسو د خوراك او د ذخیره شوو څیزونو خبر درکوم ما ته به الله تعالیٰ د جبریل عليه السلام په واسطه دا خبر راکوی، ظاهری څه سبب نشته۔

**فائده** : دلته ئے (باذن الله) رانۀ وړو ځکه چه خبر ورکول آسان دے او دا نور کارونه مشکل دی۔

ځینی مفسرینو لیکلی دی چه عیسیٰ عليه السلام ماشوم وو، نورو ماشومانو ته به ئے خبر ورکولو چه تا بیګاه دا شے خوړلے دے او تا دا خوړلے دے او تا ته مور دا شے ساتلے دے او تا ته دا.....، ماشومان چه به خپلو کورونو ته واپس شو نو هریو به د خپلے مور نه هغه شے غوښتلو چه ورته به ئے ساتلے وو چه هغوی به ترے تپوس وکړو چه تاسو ته چا خبر درکړے چه ما درته دا فلانے شے ساتلے دے ؟ هغوی به جواب ورکړو چه عیسیٰ عليه السلام ۔ (روح المعانی ۱۷۰/۳)

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ : (۱) دا د عیسیٰ عليه السلام وینا ده یعنی پدے معجزاتو کی ستاسو دپاره دلیل او نښه شته زما په رشتینوالی او په ما باندے د ایمان راوړلو۔

(۲) یا دا قول د الله تعالیٰ دے یعنی پدے مخکنی بیاناتو کی نخه ده په عبدیت او بندګئ د عیسیٰ عليه السلام باندے، لیکن دا هغه چا ته فائده ورکوی چه د ایمان اراده لری او ایمان پکی وی، د الله تعالیٰ او د رسول په خبرو تصدیق لری۔

| وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ |
| --- |
| او (راغلے یم) تصدیق کونکے د هغه کتاب چه مخکی زما نه دے چه تورات دے |
| وَلِأُحِلَّ لَكُم بَعْضَ الَّذِي حُرِّمَ عَلَيْكُمْ |
| او دے دپاره چه حلال کړم تاسو ته بعض هغه شیان چه حرام کړے شوی دی په تاسو |

وَجِئْتُكُم بِآيَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿۵۰﴾

او راغلے یم تاسو ته په معجزه د طرفه د رب ستاسو نه نو ویریږئ د الله نه او تابعداری وکړئ زما۔

إِنَّ اللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴿۵۱﴾

بیشکه الله رب زما دے او رب ستاسو دے نو بندګی وکړئ د هغه، دا لاره نیغه ده۔

**تفسیر** : د معجزو نه روستو د عیسیٰ علیه السلام کارونه بیانیږی چه زهٔ راغلے یم چه تصدیق به کوم د هغه کتابونو چه زما نه مخکی راغلی دی چه هغه تورات دے۔

انبیاء علیهم السلام دا کارونه کوی (۱) چه امت ته معجزات پیش کوی ۔
(۲) امت ته آسانیانی پیش کوی۔ (۳) او د الله تعالیٰ د یو والی او د هغه د بندګئ او د خپل سنت د تابعدارئ دعوت ورکوی۔

وَمُصَدِّقًا : دا عطف دے په (بآیة) باندے د (جئتکم) دپاره مفعول دے۔

وَلِأُحِلَّ : نبی د ځان نه یو شے حلالول او حرامول نشی کولے بلکه هغه بیانونکے وی نو د (لاحل) معنیٰ ده : لِأُبَيِّنَ لَكُمْ حِلَّهُ : تاسو ته بیانوم حلالولے د بعض څیزونو د الله تعالیٰ په حکم۔ مګر راجح دا ده چه نبی شارع دے د الله په اذن سره مګر کله چه داسے خبره وکړی چه هغه تعالیٰ ته خوښه نهٔ وی نو بیائے د هغے نه منع کوی۔

بَعْضَ الَّذِي : بعض لفظ ئے راوړو ځکه چه ټول محرمات ئے ورته نهٔ حلالول بلکه د بعضو حلالوالے ئے بیانولو لکه د خنزیر غوښه په یهودیانو باندے حرامه وه نو هغهٔ ئے همغه شان حرامه پریښوده، زنا او ظلم حرام وو نو همغه شان حرام ئے پریښودل۔

حُرِّمَ عَلَيْكُمْ : یعنی تاسو باندے چه ستاسو د ظلم د وجه نه کوم شے حرام وو د هغے نه بعض به حلالوم لکه په یهودیانو باندے الله تعالیٰ وازدے او هر هغه حیوان چه نوك لری (بندو ګوتو والا وی) هغه حرام کړی وو نو الله تعالیٰ د عیسیٰ علیه السلام په دین کی حلال کړل ځکه چه د یهودیانو په دین کی سختی وه نو د عیسیٰ علیه السلام په دین کی ورسره دا آسانیانی راغلے۔

په یهودیانو باندے د اُوبن غوښه حرامه وه خو په انجیل کی حلاله وګرځوله شوه۔
(القرطبی ۹۶/٤ و ۱۰۸/۱٦) والمحرر الوجیز ۹۸/۳)

دلته بعض مفسرینو دا معنیٰ هم کړیده چه زهٔ حلالوم تاسو ته بعض هغه څیزونه چه

تاسو باندے احبارو او رهبانو حرام کړیدي۔ او (بعض) دلته په معنیٰ د (کل) سره دے، دا معنیٰ صحیح نهٔ ده ځکه چه بعض په معنیٰ د کل سره اخستل د عامے عربئ خلاف دي، بلکه دا چه د تحریم نسبت الله تعالیٰ ته کیږي، نهٔ احبارو او رهبانو ته، ځکه چه احبار او رهبان چه کوم شے حرام کړے وي هغه خو د مخکې نه حرام نهٔ دے نو بیا آساني راوستل نشو، او حال دا چه دلته عیسیٰ علیه السلام د خپل شریعت آساني بیانوي۔

وَجِئْتُكُمْ بِآيَةٍ : دائے دوباره راوړو د تاکید دپاره، او بل ددے دپاره چه روستو (فاتقوا الله) پرے تفریع او بناء کړي۔ یعني ما تاسو ته معجزے راوړیدي، آیة جنس دے یعني دغه مخکنۍ معجزے مے راوړیدي نو د الله تعالیٰ نه یره وکړئ، د هغه حکمونه ومنئ او زما تابعداري وکړئ، زما په نقش قدم راروان شئ۔ عام انبیاء علیهم السلام توحید او سنت ته دعوت ورکوي، یعني د الله تعالیٰ یواځے بندګي کول په طریقه د رسول۔

إِنَّ اللَّهَ : دا د (فَاتَّقُوا اللَّهَ) تشریح ده۔ یعني د الله تعالیٰ نه یره دا ده چه د هغه بندګي وکړے شي لکه څنګه چه زهٔ د هغه بندګي کوم ځکه هغه زمونږ او ستاسو شریك رب دے او همدا لاره نیغه الله تعالیٰ ته رسیدلے ده۔

معلومه شوه چه عیسیٰ علیه السلام خلك خپلے بندګئ ته نهٔ دي رابللي بلکه الله تعالیٰ ته ئے رابللي دي نو هغه اله نشي کیدے۔

**فائده** : تقویٰ، اطاعت د رسول او عبادت ئے جمع کړل ځکه چه د انسان کمال په دریے خیزونو کې دے (۱) عبادت (۲) په طریقه د رسول (۳) سره د پرهیز کولو د ګناهونو نه لکه ددے تفصیل په الفوائد (۳/۱۹ ۳) کې وګوره۔ بنده کې اول د الله تعالیٰ بندګي ضروري ده بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقه ضروري ده او بیا ددے سره سره په آینده کې د ګناهونو نه یره کول او د الله نه حیاء کول او همیشه د هغه سره محبت ساتل ضروري دي چه دے ته تقویٰ وائي چه دا د عبادت نه حاصلیږي۔ نو داسے انسان چه کله لږ عبادت هم وکړي نو د ډیر په ځای قائمیږي لکه ستا یو شاګرد ستا خدمت وکړي لیکن روستو درباندے هیڅ پرواه نهٔ لري، بلکه غیبتونه دے کوي نو ددهٔ خدمت کې هیڅ مزه نشته او دویم شاګرد عمل هم وکړي او د استاذ ادب هم وکړي لیکن کله چه غائب شي بیا هیڅ پرواه نهٔ لري، مینه ئے نهٔ وي۔ نو ددهٔ خدمت هم دومره کمال والا نهٔ دے او دریم شاګرد په احترام سره ستا خبره ومني او چه کله جدا شي نو هم مینه او محبت لري او صفتونه کوي نو ددهٔ معمولي خدمت هم استاذ په ډیر څه باندے حسابوي، دغه مثال ددے دریے وارو کلماتو دے فتدبر۔

صراط مستقیم : ځوك چه بندګي نهٔ کوي هغه په نیغه لاره روان نهٔ دے بلکه د هلاکت په ځاي کي ناست دے، او ځوك چه بندګي کوي لیکن د سنت په طریقه نهٔ بلکه د خواهش په طریقه وي یا د الله تعالیٰ دپاره نهٔ وي نو دا مقصد ته نهٔ رسیدو والا لاره باندے روان دے۔

| فَلَمَّا أَحَسَّ عِيسٰى مِنْهُمُ الْكُفْرَ قَالَ مَنْ أَنصَارِیْ |
|---|
| هرکله چه اولیدو عیسیٰ ﷺ د هغوی نه کفر، وے وفرمایل : ځوك دے مددګار زما |
| إِلَى اللهِ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ أَنْصَارُ اللهِ آمَنَّا |
| الله ته تلونکے، اووئیل مخلصو ملګرو: مونږ مددګاریو د دین د الله، مونږ ایمان راوړے |
| بِاللهِ وَاشْهَدْ بِأَنَّا مُسْلِمُوْنَ﴿۵۲﴾ |
| په الله باندے او ته ګواه شه چه یقیناً مونږ مسلمانان یو۔ |

**تفسیر** : عیسیٰ ﷺ به په بیت المقدس کي یو څو کاله دعوت کولو، څه کسان د هغه په دعوت مسلمانان شول مګر اکثر یهودیان د هغه مخالف شو پدے وجه چه دهٔ به په هغوی باندے ردونه کول چه اے یهودیانو! تاسو د خلکو مالونه په ناروا وخورئ او په خوله باندے ښے او نرمے خبرے کوئ او زړونه مو د شرمخانو دی، دنیا په دین باندے ګټئ او د الله تعالیٰ نه نهٔ یریږئ، سم ایمان راوړئ نو یهودیان ورپسے راپاڅیدل چه دا سړے مونږ تنګوی او زمونږ بی عزتی کوی، ددهٔ وژل پکار دی، نو عیسیٰ ﷺ او د هغه مور دواړو د فلسطین نه مصر ته هجرت وکړو لکه سورة المومنون (۵۰) کي الله تعالیٰ فرمایلي دی:

﴿ وَجَعَلْنَا ابْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهٗ آيَةً وَآوَيْنَاهُمَا إِلَى رَبْوَةٍ ذَاتِ قَرَارٍ وَمَعِيْنٍ ﴾ ۔

هلته څه زمانه وسیدل بیا بیرته بیت المقدس ته راغلل او هلته به ئے دعوت کولو تردے چه د یهودیانو مُلیانو بادشاه یَردوس ته شیطاني وکړه (چه دا هم یهودی وو) چه دا سړے راغلے دے زمونږ دین ئے تباه کړو نو هغه د عیسیٰ ﷺ د وژلو اراده وکړه، عیسیٰ ﷺ خپل ملګري راجمع کړل چه زهٔ درنه روان یم۔

ځیني مفسرینو وئیلي دی چه عیسیٰ ﷺ ته د ماشومتوب په وخت کي د پیغمبرئ مرتبه ورکړے شوے وه چه عمرئے درے کاله وو لیکن مشهوره دا ده چه هغه د دیرش کالو په عمر نبی ګرځیدلے وو او د رسالت وخت ئے درے کاله وو او په درے دیرش کلنئ کي

آسمان ته وخیژول شو - (روح المعانی ۱۶۷/۳) تفسیر الطبری (۲۷۸/۳)

او بی بی مریم د هغه نه روستو چه عیسیٰ علیه السلام د رمضان په میاشت کی په لیلة القدر شپه کی آسمان ته وخیژول شو، شپږ کاله ژوندئ وه او بیا په دوه پنځوس کلنئ کی وفات شوه (تفسیر البغوی ۳۰۸/۱) تفسیر ابی السعود (۴۳/۲)

## د عیسیٰ علیه السلام د وژلو ترتیب

نو بیا دا واقعه په دریے طریقو راغلے ده- (۱) یو دا چه عیسیٰ علیه السلام هغوی ته وویل چه څوك دے ته تیار دے چه زما شکل په هغه واچول شی او شهید شی او الله تعالیٰ ئے جنت ته داخل کړی نو یو تن دے فدائی حملے ته تیار شو نو یهودیان راغلل عیسیٰ علیه السلام ئے په خپل کور کی محاصره کړو، الله تعالیٰ ترے عیسیٰ علیه السلام بره وخیژولو او دغه نیك بنده باندے ئے مشابهت ورواچولو خلکو دغه نیك بنده مړ کړو بیا یهودیان په شك کی شو چه آیا مونږ عیسیٰ علیه السلام مړ کړو او که نهٔ ؟-

(۲) دویمه طریقه داسے ده چه عیسیٰ علیه السلام خپلو ملګرو ته وویل چه په تاسو کی به یو تن کافر کیږی نو کله چه صبا له شو یو کس په کی جاسوس جوړ شو بادشاه ته ئے وویل چه ما له دومره مال راکړه، زهٔ به درته د عیسیٰ (علیه السلام) ځای وښایم نو خلك راغلل نو الله تعالیٰ په دے جاسوس باندے د عیسیٰ علیه السلام مشابهت ورواچولو، خلکو هغه مړ کړو او عیسیٰ علیه السلام ئے ترے آسمان ته پورته کړو، دے ملګری ئے چغے وهلے چه زهٔ ستاسو ملګرے یم خو هغوی ورته نهٔ کتل قتل ئے کړو- نو د یهودیانو شك راغلو چه مونږ عیسیٰ علیه السلام مړ کړو او که دا خپل ملګرے- نو دوی غلط تدبیر جوړ کړو الله تعالیٰ په خپل تدبیر کی راونیول، عیسیٰ علیه السلام الله تعالیٰ روغ وخیژولو د هغه ملګرو ته ئے نجات ورکړو او ددهٔ مخالفینو ته ئے سزا ورکړه، بیا چه کله نصاراو هم خپل دین پریښودو نو الله تعالیٰ ددے امت مسلمانان راوستل-

(۳) دریمه طریقه دا هم ویل شویده چه د یهودو په یو سړی (طیطایوس) باندے د عیسیٰ علیه السلام مشابهت واچول شو نو هغوی خپل ملګرے مړ کړو ځکه ئے شك ډیر شو- او زیات تفصیل دپاره د سورة النساء آیت (۱۵۷) لاندے تشریح وګورئ هلته ډیر وجوه ذکر دی-

فَلَمَّا أَحَسَّ : احساس علم بالحواس ته وائی یعنی یو شے په حواسو باندے معلومول- په

سترګو لیدل۔ پدے کې اشاره ده چه دا کفر د دوی د خولے او د سترګو نه ښکاره کیده، عیسیٰ ﷺ ولیده، او په غوږونو ئے واوریده دوی به هغه ته (ابن الفاعله) ولدِ زنا یعنی د زنا کارے ځوی وئیلو (والعیاذ بالله)۔

مَنْ اَنْصَارِیْ : پدے کې اشاره ده چه عیسیٰ ﷺ خپله مدد ته محتاج دے هغه به د بل چا سره څه مدد وکړی؟!۔

اَنْصَارِیْ اِلَی اللّٰهِ : اَیْ ذَاهِبًا اِلَی اللّٰهِ۔ څوك به زما مدد وکړی چه تلونکے وی الله طرفته۔

اَلْحَوَارِیُّوْنَ : دا مخلصو ملګروته وائی۔ جمع د حواری ده، مددګار، وزیر، دوست او خالص ته وائی۔ (قاسمیؒ) دا د حَوَر نه ماخوذ دے، سپینوالی ته وائی یعنی دا سپین او مخلص ملګری وو، زړونه ئے صفا وو او ظاهری لباس به ئے هم سپین ساتلو۔ بعض وائی دوی به دوبی توب کولو، د خلکو جامے به ئے وینځلے۔ لیکن دا لغوی معنیٰ د حواری نۀ ده، اګرکه کیدے شی چه دے خلکو کې بعض کسانو به دغه کار کړے وی۔

مفسرینو د دوی په تشخیص کې مختلف قولونه لیکلی دی چه دوی ښکاریان، مجاهدین، شاهزادګان، دوبیان وو مګر غوره قول د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے چه دوی د عیسیٰ علیه السلام مخلصین او قوی دوستان او مددګار وو هر څوك چه وو او که هر کسب ئے کاوه، امکان لری چه دوی کې مختلف طبقو او کارونو والا خلك وو۔

(زاد المسیر ۱/۳۳۴) روح المعانی (۳/۱۷۶) والبحر المحیط ۲/۴۷۱)

د بنی قریظو د خبر راوړو دپاره نبی ﷺ زبیر بن عوام ﷜ ولیږلو، بیا ئے وفرمایل: د هر نبی دپاره یو حواری (مخلص ملګرے) وی او زما حواری زبیر (﷜) دے۔ (بخاری: ۲۸۴۶)

مطلب د آیت دا دے چه هرکله چه عیسیٰ ﷺ خپل قوم ته قسم قسم معجزے پیش کړے او په مختلفو طریقو سره ئے دین ته دعوت ورکړو لیکن خلکو کې انتهائی نا اهلی وه، د ایمان راوړل خو په ځای پریده، د هغه سره ئے حسد او دشمنی شروع کړه نو عیسیٰ ﷺ دا حالت ښکاره ولیدو نو هغه اراده وکړه چه د داعیانو یو تولګے تیار کړی نو اعلان ئے وکړو چه د دین په دعوت کې به زما ملګری څوك وی چه اجرئے په الله تعالیٰ وی؟ نو د هغه مخلصو ملګرو مؤمنانو دے دعوت ته لبیك ووېلو او دائے ووېل چه اے عیسیٰ! مونږ پدے وجه ستا مدد نۀ کوو چه کوم شخصی غرض لرو بلکه پدے وجه مدد ته تیار یو چه تۀ د الله پیغمبر یې، نو زمونږ مدد او نصرت په حقیقت کې د الله تعالیٰ د دین سره دے، پدے وجه ئے داسے ونۀ وېل چه (نَحْنُ اَنْصَارُكَ) مونږ ستا مددګار یو، بلکه (اَنْصَارُ اللّٰهِ) د الله

تعالیٰ د دین مددگار یو، او مونږ واقعي په الله تعالیٰ ایمان راوړے دے نو ولے به خپل ځانونه انصار الله نهٔ جوړوو، ته گواه شه چه مونږ مسلمانان یو او د اسلام احکامو ته غاړه ږدو.

نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ : یعنی مونږ د الله تعالیٰ د دین او د هغه د رسول مددگار یو. الله تعالیٰ د چا مدد ته محتاج نهٔ دے لیکن الله تعالیٰ دا دین بندگانو ته سپارلے دے امتحاناً او دا حکم ئے ورته کړیدے چه ددے دین مدد به کوئ. ﴿وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ وَرُسُلَهُ بِالْغَيْبِ﴾ (الحدید:۲۵) بیا د الله تعالیٰ د دین د مدد دپاره اول شرط دا دے چه بنده به اول خپله مؤمن کیږي، که عقیده ئے خرابه وي، نو د دین کار ورله فائده نهٔ ورکوي پدے وجه حوارینو وریسے دا وویل: مونږ په الله تعالیٰ ایمان راوړیدے، د هغه سره شرك نهٔ کوو او اے عیسیٰ! (علیه السلام) تهٔ گواه شه چه مونږ ستا د رسالت تابعدار یو، نو دے خلکو ته الله تعالیٰ غلبه ورکړه په دشمنانو لیکن روستو زمانه کې چه کله دوی دین پریښودو نو مغلوبه شو.

| رَبَّنَا آمَنَّا بِمَا أَنزَلْتَ وَاتَّبَعْنَا الرَّسُولَ |
|---|
| اے ربه زمونږ! مونږ ایمان راوړے په هغه چه نازل کړیدے تا او مونږ تابعداري کړے د رسول |
| فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ ﴿٥٣﴾ وَمَكَرُوا وَمَكَرَ |
| نو ولیکه مونږ سره د گواهانو نه. او دوی چل جوړ کړو (دپاره د وژلو د هغه) او چل جوړ کړو |
| اللَّهُ وَاللَّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ ﴿٥٤﴾ |
| الله تعالیٰ (دپاره د خلاصولو د هغه) او الله غوره دے د تدبیر کونکو نه. |

**تفسیر**: هرکله چه دوی عیسیٰ (علیه السلام) گواه جوړ کړو نو اوس الله تعالیٰ گواه کرځویچه هغه امر کونکے دے په ایمان او د رسول په رسالت باندے. کله چه یو انسان د یو حق دعوه وکړي نو بیا ورسره دعا ضروري ده.

بِمَا أَنزَلْتَ : یعني ستا په کتاب چه انجیل او تورات دے مونږ ایمان راوړیدے او د (الرسول) نه مراد عیسیٰ (علیه السلام) دے.

الشَّاهِدِينَ :یعني هغه خلك چه ستا د وحدانیت گواهي ورکوي چه هغه انبیاء علیهم السلام او د هغوی تابعدار دي.(۲) یا دا امت د رسول الله ﷺ دے. نو ددے امت سره به په قیامت کې د عیسیٰ (علیه السلام) تابعدار هم گواهي ورکوي. (۳) یا د شاهدین نه مراد هغه خلك دي چه د پیغمبرانو د رشتینوالي گواهي ورکوي. (٤) او شاهد کله دین بیانونکي ته

وائي۔ یعنی مونږ په هغه خلکو کې داخل کړه چه ستا دین بیانوي۔ دلته ټول مقاصد دلته اخستل صحیح دي ځکه چه الفاظ ئې احتمال لري۔
وَمَكَرُوا : یعنی دوی د عیسیٰ علیه السلام د قتل دپاره تدبیر او چل جوړ کړو مشوره ئې وکړه او الله تدبیر جوړ کړو د خلاصولو د هغه دپاره۔
د (مکر) نه مراد دلته مشوره کول او تدبیر جوړول دي۔
دا آیت ښکاره دلیل دے چه عیسیٰ ﷺ الله تعالیٰ بره آسمان ته خیژولے دے ځکه چه کله دوی عیسیٰ ﷺ وژلے وې نو بیا د الله ﷺ تدبیر څه فائده ورکړه حال دا چه الله تعالیٰ خیر الماکرین دے۔ معلومه شوه چه د الله تعالیٰ تدبیر کامیاب وو چه عیسیٰ ﷺ ئې بچ کړو او د هغوی تدبیر ناکام شو، خواري ئې ضائع شوه۔

**فوائد :**

(۱) الله تعالیٰ خپل انبیاء علیهم السلام او نیکانو او داعینو ته نجات ورکوي او د هغوی مدد کوي۔ (۲) د عیسیٰ ﷺ په عبدیت باندے دلیل دے چه هغه په خپل تدبیر او بچاؤ کې الله تعالیٰ ته محتاج وو۔ (۳) د الله تعالیٰ په لوی قدرت باندے دلیل شو چه ټول خلك که راجمع شي او د یو تن د وژلو اراده کوي نو الله تعالیٰ ئې خلاصولے شي۔ پدے وجه صرف په الله تعالیٰ باندے یقین پکار دے نۀ په امریکه او کافرانو باندے، د الله تعالیٰ طاقت د هر طاقت دپاسه دے۔ (٤) په نبي ﷺ او په علماؤ باندے واجب ده چه کله مري یا چرته ځي چه په دین باندے وصیت وکړي لکه عیسیٰ ﷺ چه وکړو۔
(۵) هجرت واجب دے کله چه دعوت فائده نۀ ورکوي یا د داعي د قتل کوشش کیږي لکه عیسیٰ ﷺ هجرت وکړو، رسول الله ﷺ هم هجرت کړے وو کله چه قریشو د هغه د قتل اراده وکړه۔
(٦) اسلام د عیسیٰ ﷺ او د حوارینو دین دے نو رد دے په یهود او نصاراؤ چه د اسلام دشمني کوي حال دا چه د دوی مشران په اسلام روان وو لکه شیعه ګان او مقلدین متعصبین د ائمه کرامو۔
(۷) د دعاء د قبلیدو دپاره الله تعالیٰ ته په ایمان او اتباع د رسول سره وسیله نیول پکار دي۔
(۸) په دین کې اوچته مرتبه طلب کول پکار دي لکه (فاکتبنا مع الشاهدین) نه معلومه شوه۔
(۹) مکر د الله تعالیٰ صفتِ فعلي دے، (ومکروا ومکر الله) (ویمکرون ویمکر الله) (انفال

:۳۰) الله تعالیٰ مکر (او تدبیر) کوی لیکن هغه ته به (ماکر) مکر کونکے نشی وئیلے البته داسے وئیلے شی چه (خیر الماکرین) یعنی بغیر د اضافت نه (ماکر) د الله تعالیٰ په اسماء او صفاتو کی نهٔ دے نقل، ځکه چه دا کمال نهٔ دے عند الاطلاق، دارنګه چه په یو شی سره مقید شی نو بیا هم استعمال جائز دے ځکه چه بیا ئے په معنیٰ کی کمال پیدا شی لکه (انّ اللّٰه مَاکِرٌ بِمَنۡ یَّمۡکُرُ بِهٖ وَبِرُسُلِهٖ) (الله تعالیٰ مکر کوی د هغه چا سره چه هغه د الله سره او د هغه د رسولانو سره مکر کوی) (تفسیر العثیمین ۲۸/۳)

| إِذْ قَالَ اللّٰهُ يَا عِيسَىٰ إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ |
|---|
| کله چه ووئیل الله: اے عیسیٰ! یقیناً زه پوره اخستونکے یم تا لره او اُوچتونکے یم تا لره ځان ته |
| وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا وَجَاعِلُ الَّذِينَ |
| او پاکونکے یم تا لره د هغه کسانو نه چه کفرئے کړیدے او ګرځونکے یم هغه کسانو لره |
| اتَّبَعُوكَ فَوْقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ |
| چه تابعداری ئے کړیده ستا، دپاسه د هغه کسانو نه چه کفرئے کړیدے تر ورځ د قیامت پورے |
| ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأَحْكُمُ بَيْنَكُمْ |
| بیا خاص ما ته راګرځیدل دی ستاسو نو فیصله به وکړم په مینځ ستاسو کی |
| فِيمَا كُنْتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٥٥﴾ |
| په هغه خبرو کی چه تاسو په هغے کی اختلاف کولو۔ |

**تفسیر**: دا آیتونه هم د عیسیٰ علیه السلام د عبدیت سره متعلق دی چه هغه بنده وو، د مرګ نه په خلاصیٔ کی الله تعالیٰ ته محتاج وو، کله چه خلکو هغه ته تدبیر جوړ کړو نو الله تعالیٰ عیسیٰ ﷺ ته وحی وکړه چه زهٔ تا خپل ځان ته خیژوم، آسمانونو ته دے بوځم او د کافرانو نه دے پاکوم او ستا تابعدارو ته اُوچته درجه ورکوم، عزت ورکوم او کافرانو دشمنانو ته په دنیا او آخرت کی سخته سزا ورکوم۔ دا دریے زیری هغه ته ورکړے شو۔ نو دلیل شو په عبدیت د عیسیٰ ﷺ چه پدے دریے وارو کارونو کی الله تعالیٰ ته حاجت لری، نو تاسو دا ولے الٰـه ګرځوئ، او بله فائده پکی دا ده چه الله تعالیٰ د خپلو نیکانو بندګانو سره دغسے مدد کوی اګرکه کمزوری وی او بل طرفته لوی طاقت وی۔

يَا عِيسَىٰ : الله رب العزت خپل يو نبي ته په خپل نوم آواز کولے شي هغه رب دے او دائے بندګان دي، زمونږ د نبي ﷺ ئے ډير ادب کړيدے چه خپل نوم ئے ورته نۀ دے اخستے۔

إِنِّي مُتَوَفِّيكَ : دا لفظ د متشابهاتو نه دے چه عيسيانو او پرويزيانو او مرزا غلام احمد قاديانى تربے غلطه فائده اخستے ده چه قرآن کي دي چه عيسىٰ (عليه السلام) مړ دے څکه چه (متوفيك) معنىٰ دا کوي چه زۀ تا وفات کوم نو بس عيسىٰ عليه السلام وفات شويدے، څکه چه متوفي د وفات نه دے، او (ورافعك) کي رفعت د درجے مراد دے۔

**جواب** دا دے چه د متوفي دا معنىٰ اخستل پدے مقام کي صحيح نۀ دي څکه چه د نورو نصوصو سره ټکراؤ راځي تقريباً د نوى (۹۰) نه زيات حديثونه راغلي دي چه عيسىٰ عليه السلام به روسته زمانه کي راکوزيږي او خلافت به قائموي۔ او پدے باندے اجماع د امت مسلمه ده۔ او په قرآن کريم کي ډير آيتونو سره ددے خبرے ټکراؤ دے، لکه ﴿وَمَكَرُوا وَمَكَرَ اللهُ﴾ کي بيان شو چه هرکله عيسىٰ عليه السلام وفات وي نو بيا د الله تعالىٰ د مکر فائده څه راوځي؟ دارنګه روسته سورة النساء (۱۵۷) کي راځي: ﴿وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ﴾ ﴿...... وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا﴾ يقيناً دوى نۀ دے وژلے۔

نو دوى صريح نصوص پريدي او متشابه اخلي۔ حال دا چه توفي په لغت د عربئ کي په معنىٰ د (اَخْذُ الشَّيْءِ وَافِيًا) دے، يعني يو شے پوره اخستل۔ يعني روح سره د بدن نه او د رفعت په صله کي چه کله لفظ د (الىٰ) راشي نو حقيقي رفعت (پورته والے) مراد وي۔

او که دلته روح مراد شي چه زۀ تا وفات کوم او روح دے بره خيژوم نو بيا خو ئے د نورو انسانانو سره فرق نۀ راځي څکه چه د نورو مؤمنانو روحونه هم بره خيژي۔

مطر الوراق وائي: (مُتَوَفِّيكَ مِنَ الدُّنْيَا وَلَيْسَ بِوَفَاةِ مَوْتٍ) يعني د دنيا نه دے پوره اخلم او دا د مرګ وفات نۀ دے۔

(۲) بعض علماء پدے آيت کي داسے تاويل کوي چه پدے کي تقديم تاخير دے: ﴿إِنِّي رَافِعُكَ إِلَيَّ وَمُتَوَفِّيكَ﴾ : يعني زۀ دے اوس اوچتوم او بيا دے وفات کوم يعني قيامت ته نزدے۔ او واو د مطلق جمع دپاره وي، د ترتيب دپاره نۀ وي۔ (الضحاك والفراء– قرطبي)

دا هم يو تاويل دے ليکن دومره غوره نۀ دے، قرآن فصيح بليغ کتاب دے، بې ضرورته تقديم تاخير ته ضرورت نشته۔

(۳) دريم: توفي کله په معنىٰ د خوب سره هم راځي لکه په سورة الانعام (۶۰) آيت کي دي: ﴿وَهُوَ الَّذِي يَتَوَفَّاكُم بِاللَّيْلِ﴾ الله تعالىٰ هغه ذات دے چه تاسو د شپے اوده کوي۔ نو

عیسیٰ علیه السلام هم الله تعالیٰ اودهٔ کړو او د خوب په حالت کې ئې پورته کړو دے دپاره چه رعب پرے رانشي۔ (قاله الربیع بن انسؒ – قرطبي وابن کثیر)

(٤) د بعض سلفو نه (لکه وهب بن منبهٔ نه) دا نقل دی چه عیسیٰ علیه السلام الله تعالیٰ د لږ وخت دپاره مړ کړو په مقدار د دوه درے ګینټو یا د اُوه ګینټو یا د درے ورځو او بیا ئے پورته کړو۔ (قرطبي، ابن کثیر والبغوي) لکه دا په اُوسنو انجیلونو کې هم شته، کیدے شي چه دے بعض سلفو دا انجیل کتلے وي۔ په هغے کې دا دي چه عیسیٰ علیه السلام دوی مړ کړو او په قبر کې ئے خخ کړو او په مقدار د درے ورځو مور ئے قبر له راغله، ورته ژړل ئے، عیسیٰ علیه السلام ورته راغلو وے فرمایل چه زهٔ مړ نهٔ یم۔ نو دا دائمي مرګ نهٔ وو بلکه د لږ ساعت دپاره وو۔

او په بخاريؒ کې د سیدنا ابن عباسؓ نه دا نقل دی چه د (متوفیك) معنیٰ په (مُمِیْتُكَ) سره کړے ده یعنی زهٔ دے وژنم۔ نو د هغے زمونږ ددے خبرے سره منافات نشته نو دا یا د لږ ساعت دپاره مرګ مراد دے په حالت د خوب کې، (قاله الربیعؒ) یا دا چه په خپل وخت کې مرګ مراد دے او في الحال اُوچت شویدے۔

مګر ظاهر د قرآن دا دے چه دوی عیسیٰ علیه السلام بیخي نهٔ دے وژلے بلکه الله تعالیٰ خپل ځان ته پورته کړیدے۔ او د مرګ معنیٰ اخستل د نصوصو د ظاهر خلاف دی۔

حسنؒ او ابن زیدؒ او ضحاكؒ وائي چه صحیح دا ده چه الله تعالیٰ عیسیٰ علیه السلام لره آسمان ته پورته کړیدے، نهٔ خوب وو او نهٔ وفات وو او دا خبره طبريؒ هم غوره کړیده۔ (قرطبي)

(٤) علامه قاسميؒ وائي یوه بنه وجه دا هم ده: سُمِّيَ سَلْبُ تَصَرُّفِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ بِأَتْبَاعِهِ وَانْتِهَاءُ مُدَّتِهِ الْمُقَدَّرَةِ بَيْنَهُمْ تَوَفِّيًا۔ یعنی عیسیٰ علیه السلام په خپلو ملګرو کې تصرف نشو کولے او په هغوی کې ئے مقرره موده ختمه شوه او په هغوی کې ئے خپله موده پوره کړه نو دے ته ئے توفي وئیلے ده۔ یعنی دا داسے شو لکه مرګ او وفات نو ځکه ئے تعبیر په توفي سره وکړو۔ زهٔ تا وفات کوم یعنی تهٔ به په خپلو ملګرو کې تصرف نشے کولے لکه د مړي په شان۔ او دا مطلب نهٔ دے چه حقیقةً وفات شویدے۔

وَرَافِعُكَ إِلَيَّ: ماده د رفع په قرآن کریم کې (۲۹) کرته ذکر ده او په دولس (۱۲) مقاماتو کې رفع د درجے مراد ده او په اولس (۱۷) مقاماتو کې رفع حقیقي مراد ده۔ او دلته هم حقیقي پورته والے مراد دے، لکه سیاق پرے دلیل دے۔ او په قرآن باندے فهم دپاره د آیتونو سیاق پیژندل ضروري دي۔ بیا احادیث صحیحه او بیا اجماع د مسلمانانو پرے دلیل دے۔

**فائده**: د (رافعك) نه معلومه شوه چه الله تعالیٰ په اعتبار د ذات سره د آسمانونو نه

پورته په عرش باندې دې، او دا د اهل سنت والجماعة مذهب دې خلاف ثابت دې متکلمینو لره چه هغوی وائی جهت الله تعالیٰ لره ثابتول د صفاتو د اجسامو نه دی لیکن مونږ وایو دا خبره د مخلوق په باره کې کیدې شي، نهٔ د خالق په باره کې۔ (القاسمی)

وَمُطَهِّرُكَ : ۱- یعني د کافرانو د ضررونو او کنځلو او گنده خبرو او گنده کارونو نه دې پاکوم، د گنده ماحول نه دې پاك ماحول د ملائکو ته بوځم۔ ۲- دارنگه د هغوی د قتل نه دې بچ کوم۔ (زاد المسیر)

وَجَاعِلُ الَّذِيْنَ : هرکله چه د اُوچتو همتونو والو ډیره توجه د روستو نائبانو احوالو طرفته وی چه دوی باندې به څه حالات راځي نو الله تعالیٰ هغه ته زیرې ورکړو چه هغوی ته به فوقیت ورکوم (قاسمی)۔ یعنی الله تعالیٰ ورته وفرمایل : ستا تابعدار به د کافرانو دپاسه گرځوم تر قیامته پورې۔ ددې نه نصاراو دلیل نیولې دې چه ستاسو قرآن ویلي دي چه نصاریٰ به تر قیامته پورې غالبه وی؟ ددې جواب دا دې چه د قرآن د آیت نه به غلطه فائده نشي اخستې بلکه دلته الله تعالیٰ (فوق الذین کفروا) ویلی دی یعنی نصاریٰ به د نورو کافرانو دپاسه وی او فوق المسلمین ئې نهٔ دی ویلي چه گنې په مسلمانانو به غالبه وی۔ نو نصاریٰ د یهودو نه غوره دی او الله تعالیٰ ورله قدرتونه هم زیات ورکړیدی، (اسرائیل اُوس د امریکې ماتحت دی) او یهود ذلیله او مغلوب دی۔ (قاله ابن زید– زاد)

دا هم په هغه وخت کې چه دوی د عیسیٰ علیه السلام صحیح تابعداری وکړی، (اتبعوك پرې دلیل دې) اُوس خو دوی کفار دی۔ یعنی دا بشارت د حوارینو او بیا د هغوی روستنو تابعدارو دپاره وو، تردې چه د هغه شریعت د محمد رسول الله ﷺ په راتللو سره منسوخ شو۔ اُوس به مسلمانان غوره وی۔ (التحریر)

او مسلمانان د نصاراؤ دپاسه دی لکه قتاده او ربیع او ابن سائب او شعبیؒ ویلی دی څکه چه مسلمانانو د هغه د نبوت تصدیق کړیدې او د هغه د دین توحید پسې روان شویدی نو دوی به د کافرانو دپاسه وی په عزت، قوت او حجت (دلیل) کې۔ (زاد واللباب لابن عادل)

(۲) شیخ الاسلام ابن قیم په بدائع التفسیر کې لیکي : چه پدې آیت کې د مسلمانانو فوقیت ذکر دې څکه : اَلنَّصَارٰى اَتْبَعُ لَهٗ مِنَ الْيَهُوْدِ فَهُمْ فَوْقَهُمْ وَالْمُسْلِمُوْنَ اَتْبَعُ لَهٗ مِنَ النَّصَارٰى فَهُمْ فَوْقَهُمْ﴾ نصاریٰ د یهودیانو په نسبت د عیسیٰ علیه السلام ډیر تابعدار وو نو دوی د یهودو دپاسه وو او مسلمانان د نصاراو نه د هغه ډیر تابعدار دی نو دوی به په نصاراؤ دپاسه او غالبه وی) آیا عیسیٰ علیه السلام به گیره خریله چه دوی ئې خریوی؟، آیا هغه به خنزیران

خوړل؟ آیا هغه به العیاذ بالله زناکانی کولے چه دوی ئے کوی؟، بلکه مسلمانان چه کوم نیك کارونه کوی عیسیٰ علیه السلام په هغے خوشحالیږی.

او ډیر آیتونه او احادیث پدیے باندیے دلیل دیے چه امت مسلمه ته به الله تعالیٰ په نورو دینونو والو باندیے غلبه ورکوی. د بخاری او مسلم روایت دیے چه عیسیٰ علیه السلام به راکوزیږی او صلیب به ماتوی او خنزیر به قتلوی او جزیه به نهٔ قبلوی او د هغه په نیز به یا اسلام وی یا به قتل وی او هغه به د شریعت مطابق د خلکو ترمینځ فیصلے کوی او مسلمانان به صرف د هغه مددګار او تابعدار وی او کیدیے شی چه پدیے آیت کی همدیے طرفته اشاره وی.

ثُمَّ اِلَيَّ : یعنی د تمامو انسانانو ماته راګرځیدل دی او زهٔ به د دوی ترمینځ فیصله کوم.

مَرْجِعُكُمْ : دا مصدر میمی دیے په معنیٰ د رجوع سره.

تَخْتَلِفُوْنَ : اَیْ مِنَ الدِّیْنِ . چه تاسو په کی اختلاف کوئ د دین نه. او دیے کی د عیسیٰ علیه السلام او د هغه سره د اختلاف کونکو او دارنګه د هغه د اتباعو سره د نورو کافرانو اختلاف دواړه مراد کیدیے شی. (المنار)

فَاَحْكُمُ : یعنی قولی او عملی فیصله به ستاسو د اختلاف په مینځ کی کوم او عملی فیصله دا ده :

| فَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَاُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا فِى الدُّنْيَا |
|---|
| پس هغه کسان چه کفر ئے کړیدیے نو عذاب به ورکړم هغوی ته عذاب سخت په دنیا |
| وَالْاٰخِرَةِ وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿٥٦﴾ وَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا |
| او آخرت کی او نهٔ به دوی لره څوك مددګاران. او هغه کسان چه ایمان ئے راوړو او عملونه ئے اوکړل |
| الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٥٧﴾ |
| نیك (په اتباع د پیغمبر) نو پوره به ورکړی دوی له اجرونه د دوی او الله مینه نکوی د ظالمانو سره. |

**تفسیر** : عملی فیصله دا ده چه کافرانو ته به په دنیا او آخرت کی سخته سزا ورکوم او د دوی به هیڅوك مددګاران نهٔ وی او ایمان والو ته به پوره اجرونه ورکوم.

لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ : یعنی ظالمان د الله سبحانه بدی شی، دوی سره بغض لری. ظالمان ئے دلته مشرکان او کافرانو او یهود او نصاراؤ ته ویلی دی ځکه چه دوی د الله تعالیٰ حق

غیر الله تـه ورکړیدے او ظلم یو شے په غیر د خپل ځای کی کیخودلو ته وائي۔ دوی د الله تعالیٰ بندګی عیسیٰ ﷺ ته ورکړه او عیسیٰ ﷺ لـه د الله تـعالیٰ رسالت ورکول پکار وو دوی راولګیدل هغه ته ئے ولدِ زنا ووئیلو نو ځکه ظالمان شو، نو الله تعالیٰ د دوی سره مینه نکوی که دوی هرڅو مره عملونه وکړی اجرئے نشته ځکه چه دوی ظالمان دی۔ دلته وقف دے چـه یهود او نـصاریٰ هم ډیر عملونه کوی نو الله تعالیٰ وفرمایل چه په ظلم سره د دوی عملونه برباد شو۔ الله د دوی سره محبت نکوی نو اجرونه نهٔ ورکوی۔

| ذٰلِكَ نَتْلُوْهُ عَلَيْكَ مِنَ الْآيَاتِ وَالذِّكْرِ الْحَكِيْمِ﴿۵۸﴾ |
|---|
| دا (چه بیان شو) مونږه ئے لولو په تا باندے د آیتونو او د نصیحت حکمت والا نه۔ |

**تفسیر** : مینـځ کی قرآن کریم ته ترغیب او حقانیت د قرآن ذکر کوی چه دا د الله تعالیٰ آیتونـه دی او د حـکمتونو او نصیحتونو نه ډك دی او خلك پرے کفر کوی، او د رسول الله ﷺ رشتینوالی ذکر دے، او دا د قرآن تـعقیبات دی چـه د واقـعاتو نه فائدے او نتیجه راویاسی۔

ذٰلِكَ : اشاره ده (نَبَأُ عِيْسٰى) ته یعنی دا واقعات د عیسیٰ ﷺ۔

نَتْلُوْهُ : د الله تـعالیٰ د آیتونو تلاوت په قرآن کریم کی پنځه کرته ذکر دی یو بقره کی تیر شو دویم ځای دا دے او نور روسته راځی۔

مِنَ الْآيَاتِ : دا دویـم خبر دے د (ذٰلك) یا حال دے۔ یعنی دا آیتونه دی چه متضمن دی د الله تـوحید لره او نښے دی د الله تعالیٰ د توحید او د عیسیٰ ﷺ د عبدیت۔ دارنګه نښی دی د الله سبحانه وتعالیٰ د قدرت او د حکمت۔

وَالذِّكْرِ : قـرآن کریم ته ذکر وائی ځکه چه دا د نصیحت کتاب دے او بنده ته هیرے شوے خبرے رایادوی بیا د حکمتونو والا خبری دی۔ پدے وجه د عیسیٰ ﷺ په پورته کولو او د یهودو په ذلیله کولو او پدے معجزاتو خودلو کی ډیر حکمتونه وو۔

الْحَكِيْمِ : ذُو الْحِكْمَةِ فِيْ تَالِيْفِهٖ وَنَظْمِهٖ وَاِبَانَةِ الْفَوَائِدِ مِنْهُ (زاد المسیر) یعنی د قرآن په تالیف (جوړولو) او په ترتیب او ددے نه د فوائدو په راښکاره کیدو کی حکمتونه دی۔

| إِنَّ مَثَلَ عِيْسٰى عِنْدَ اللّٰهِ كَمَثَلِ آدَمَ خَلَقَهٗ |
|---|
| یقیناً مثال د عیسیٰ ﷺ په نزد د الله په شان د مثال د آدم ﷺ دے، پیدا کړے ئے وو هغه |

مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿٥٩﴾

د خاورے نه بیا ورېل هغه ته شه (انسان) نو هغه شو.

**تفسیر** : عنوان د آیت : جواب د سوال او تشبیه د غریب ده د اغرب سره او رد د شرك دے. دا جواب دے د سوال د نصاراو (د نجران دٌ وفد لکه شان نزول ئے د سورت په ابتداء کې ذکر شو) چه اے مسلمانانو ! تاسو دۀ ته بنده وایئ نو ددۀ پلار چرته دے؟، بنده خو دیته وائی چه د پلار نه پیدا وی نو دلیل دے چه ددۀ پلار الله تعالیٰ دے (العیاذ بالله) الله تعالیٰ د دوی دا دعویٰ رد کړه چه که ستاسو دا خبره صحیح وے نو بیا خو آدم ﷺ په درجه اولیٰ د الله تعالیٰ ځوی کیدل پکار وو ځکه چه هغه الله تعالیٰ په غیر د مور او پلار نه پیدا کړے وو. بلکه د خاورے نه ئے پیدا کړے وو. الله تعالیٰ عیسیٰ ﷺ بغیر د پلار نه او آدم ﷺ ئے بغیر د مور او پلار نه او حواء (رضی الله عنها) ئے صرف د سړی نه پیدا کړے وه او د خپل کامل قدرت اظهار ئے کړیدے. بلکه الله تعالیٰ ډیر څیزونه په غیر د مور او پلار نه پیدا کوی لکه بعض حیوانات د خاورو نه او بعض څیزونه د ګرمیٔ او یخنیٔ نه او د بوټو نه پیدا کوی دا د هغه د قدرت نښې دی، ددے څیزونو د اُلوهیت دلیل نۀ وی.

د عیسیٰ ﷺ په باره کې صحیح عقیده همدا ده. نۀ مریم معبود زیږولے دے لکه څنګه چه نصاریٰ وائی او نۀ هغے د یوسف النجار سره بدکاری کړیده ! لکه چه یهودیان په هغے باندے بدنامه لګوی.

كَمَثَلِ آدَمَ : دا تشبیه الغریب بالاغرب ده. یعنی د ناشنا څیز (عیسیٰ ﷺ) تشبیه د ډیر ناشنا (آدم ﷺ) سره ورکړے شوه. دغسے د اولیاؤ په باره کې چه څوك غلطے عقیدے لری نو تۀ د هغوی تشبیه ورکولے شے چه دا اولیاء خو د نبی ﷺ نه غټ نۀ وو په نبی ﷺ به دا حالت راتللو نو دوی خو د هغه نه نښی مخکې کیدے.

خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ: یعنی اول ئے ورله شکل او جسد د خاورو نه جوړ کړو بیا ئے ورته ووېل چه اُوس شه کامل انسان سره د روح او بدن نه. نو هغه کې روح او عقل واچولے شو.

فَيَكُوْنُ : أَیْ فَكَانَ. نو هغه موجود شو. صیغه ئے د مضارع راوړه اشاره ده چه روستو به هم انسان وی او نسل به ئے انسانان پیدا کیږی. او اشاره ده چه د الله تعالی امر یو شی ته وشی نو هغه نۀ خلاف کیږی بلکه هغه به ضرور موجودیږی (قاسمیؒ) او (یکون) مرفوع دے مبتداء ئے حذف ده (أَیْ فَهُوَ يَكُوْنُ).

| اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿٦٠﴾ |
| --- |
| حق ثابت دے د طرفه د رب ستا نه پس مه کیږه د شك کونکو نه۔ |

**تفسير** : پدے کی الله تعالیٰ خپل نبی او مؤمنانو ته د قرآن کریم حقانیت بیانوی چه دا قرآن کومے مسئلے بیانوی دا حق دے ستا د رب د طرفنه دے، پدے کی شك مهٔ کوئ، د خلکو د خبرو پسے مهٔ روانیږئ، همیشه چه مناظره شروع وی نو د خلکو شکونه پیدا کیږی چه هغه بل طرفته هم څه نا څه دلیل شته نو ډیر خلك په خرافاتو روان وی نو د تاکید دپاره دا وئیل کیږی چه حقه خبره هغه وی چه د الله تعالیٰ د طرف نه وی۔ نو نصاراؤ به هم دا خبرے کولے چه د عیسیٰ ﷺ والد نشته او مارغان ئے جوړ کړیدی او مړی ئے راژوندی کړیدی نو خلك شك کوی چه دا خو به الٰه وی؟!۔

اَلْحَقُّ : دلته دوه تفسیره دی: (۱) اَلَّذِیْ اَنْزَلْتُ عَلَیْكَ مِنْ نَبَأِ عِیْسٰی هُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ۔ هغه چه مونږ په تا باندے د عیسیٰ ﷺ کوم خبر راولیږلو همدا حق دے پدے کی شك مکوه۔

(۲) اَلْحَقُّ فِیْ بَیَانِ هٰذِهِ الْمَسْئَلَةِ مَا ذُکِرَ مِنَ الْمَثَلِ مِنْ رَّبِّكَ۔ ددے مسئلے په بیانولو کی (چه عیسیٰ ﷺ د آدم ﷺ پشان مخلوق دے او الٰه نهٔ دے) حق ستا د رب د طرف نه دے او ددے نه سوئ نور خلك چه څه بیانوی هغه حق نهٔ دی۔

| فَمَنْ حَآجَّكَ فِیْهِ مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ فَقُلْ |
| --- |
| پس چا چه جګړه اوکړه تا سره پدے (حق) کی پس د هغے نه چه راغله تا ته پوهه نو ته ورته اووایه، |
| تَعَالَوْا نَدْعُ اَبْنَآءَنَا وَاَبْنَآءَكُمْ وَنِسَآءَنَا وَنِسَآءَكُمْ |
| راشئ چه را اُوبلو مونږ زامن خپل او زامن ستاسو، او ښځے زمونږ او ښځے ستاسو |
| وَاَنْفُسَنَا وَاَنْفُسَكُمْ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَلْ لَّعْنَةَ اللهِ عَلَی الْكٰذِبِیْنَ ﴿٦١﴾ |
| او ځانونه خپل او ځانونه ستاسو بیا به عاجزی وکړو نو وبه ګرځوو لعنت د الله په دروغژنو۔ |

**تفسير** : عنوان د آیت: مُبَاهَلَةُ الْمُجَادِلِیْنَ فِی الْحَقِّ ۔ څوك چه په حق کی جګړے کوی د هغوی سره مباهله ذکر ده۔

دے ته د مباهلے (ښیرو) آیت وائی۔ څوك چه په دلیلونو نهٔ قانع کیږی او د حق نه انکار

کوی نو بیا هغوی سره مباهله کیږی. بنیرے ورته پکار دی چه د دوی په وجه خلك د گمراهئ نه بچ شی.

مباهله کی مقصد دا وی چه زهٔ په حقه یم پدے وجه خان بنیرو ته وړاندے کوم.

ددے مباهلے حاصل دا دے چه د صلح حُدیبیه نه روستو د نجران د نصاراؤ یو فد د نبی کریم ﷺ خوا ته راغلو او د عیسیٰ ؑ په باره کی ئے د هغه سره مناظره اُوکړه. هغوی عیسیٰ ؑ د الله تعالیٰ خوی گنړلو او نبی کریم ﷺ په دلائلو سره ثابته کړه چه هغه د الله تعالیٰ بنده او د هغه رسول وو. کله چه په باطل باندے د هغوی اصرار او کلك والے د حد نه واوړیدو نو الله تعالیٰ خپل رسول ته د هغوی سره د مباهلے کولو حکم اُوکړو.

امام بخاریؒ د حذیفه ؓ نه روایت کړیدے چه د نجران د نصرانیانو دوه سرداران رسول الله ﷺ ته د مباهلے دپاره راغلل. د حالاتو د جانزے اخستو نه روستو یو خپل ملگری ته اُوئیل چه داسے مهٔ کوه، قسم په الله! که دا نبی وی او مونږ مباهله اُوکړه نو مونږ او زمونږ نه روستو نسل به هیڅ کله کامیابی مونده نکړی. نو هغوی رسول الله ﷺ ته په جزیه ورکولو راضی شو. امام احمدؒ د ابن عباس رضی الله عنهما قول نقل کړیدے چه که د رسول الله ﷺ سره د مباهلے په نیت دوی دغسے کار کړے وے نو د واپس کیدو نه روستو به نهٔ هغوی ته خپل مال ملاویدے اونهٔ اهل وعیال. (ټول به هلاك شوی وے).

د ابن عباس رضی الله عنهما دا قول په سنن ترمذی او نسائی کی هم موجود دے. په یو بل روایت کی دی چه د نجران د دواړو سردارانو (عاقب او سید) سره د کړے وعدے مطابق رسول الله ﷺ د صبا په وخت د علی، فاطمه او حسن او حسین (رضی الله عنهم) سره بهر را اُووتو او هغو دواړو ته ئے خبر اُولیږلو نو هغوی انکار اُوکړو او دا ئے اوویل چه (إِنَّا نُعْطِيكَ مَا سَأَلْتَنَا) تهٔ چه څه غواړے مونږ به درته هغه درکړو (یعنی جزیه ورکولو ته تیار شول) او مونږ سره یو امین (امانتدار) سړے ولیږه. رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: (لَأَبْعَثَنَّ مَعَكُمْ رَجُلًا أَمِينًا حَقَّ أَمِينٍ) زهٔ به تاسو سره یو رشتینی امین سړے ولیږم، نو دے کار ته د رسول الله ﷺ صحابه کرام راپورته شو (هر یو دا غوښتل چه دغه شخص زهٔ وگرځم) نو رسول الله ﷺ وفرمایل: راپاڅیږه اے ابوعبیده بن الجراح! نو هغه چه کله راپاڅیدو رسول الله ﷺ وفرمایل: (هَٰذَا أَمِينُ هَٰذِهِ الْأُمَّةِ) دا ددے امت امین دے. (بیا ئے هغه ورسره ولیږلو).

(بخاری بترقیم فتح الباری: ۴۳۸۰)

نبی ؑ په دوی باندے جامے او مالونه مقرر کړل چه زر جوړے به په صفر میاشت کی

ورکوی او زر جوړ ے به په رجب میاشت کی ورکوی، دا جزیه به هر کال راتلله۔
په جزیه کی مقصد دا وی چه مسلمانان به د دوی حفاظت کوی او د دوی وینه به نهٔ تویه کوی او دا د هغوی دپاره د دعوت یوه ذریعه ده چه اسلام ته مجبوره شی۔ دا به د هر چا د شان مطابق مقرروله شی ظلم به پکی نشی کوله۔
فَمَنْ حَآجَّكَ : یعنی څوك چه تا سره د عیسیٰ علیه السلام په باره کی جګړ ے او مناظر ے کوی پس د هغے نه چه تا ته یقینی علم په قرآن کی راغے نو هغوی ته ووایه چه تاسو سره زمونږ مناظره پاتی نهٔ ده بلکه ستاسو عناد به مونږ په طریقه د مباهله سره ختموو۔
مِنَ الْعِلْمِ : صاحب المنار وائی پداسے مقام کی د علم نه مراد یقین وی۔
مفسر مهایمیؒ ددے آیتونو داسے معنیٰ ذکر کړیده:
(الحق: یعنی هغه خبره چه ثابته ده او تاویل نهٔ قبلوی هغه ده چه راغلے ده ستا د رب د طرف نه کوم چه ستا تربیت کوی پدے طریقه چه تا د خبرو په حقیقتونو پوهه کوی نو بس مهٔ کیږی د شك کونکو نه په هغه خبره چه په انجیل کی د آب (پلار) لفظ د الله تعالیٰ دپاره استعمال شویدے ځکه چه هغه مجازی او د محبت لفظ دے او کله چه تا ته ستا د رب د طرفنه په پوره بیان سره حق ښکاره شو نو څوك چه درسره جګړه کوی په باره د عیسیٰ علیه السلام کی چه دلیل نیسی په ظاهر د انجیل باندے پس د هغے نه چه تا ته یقینی پوهه راغله چه انجیل کی د اب اطلاق په الله تعالیٰ باندے د محبت دپاره دے نو ورته ووایه چه اُوس زمونږ او ستاسو مناظره پاتی نهٔ ده بلکه مباهلے ته تیار شئ چه الله تعالیٰ مو هلاك کړی۔ (تفسیر القاسمی ۲/ ۷۰)۔
تَعَالَوْا : یعنی راشئ یو داسے خبر ے ته چه په هغے کی به د حق لوی والے او د باطل ښکته والے معلوم شی هغه دا چه مونږ به خپل ځامن او ښځے راوبلو الخ۔
نَدْعُ أَبْنَآءَنَا : ځامن او ښځے ولے راوباسی؟ پدے کی اشاره وی چه زهٔ په حقه یم ځکه چه څوك په حقه نهٔ وی هغه خپل ځان او بچی او ښځه نهٔ هلاکوی، ما ته یقینی معلومه ده چه دا ښیر ے په مونږ باندے الله تعالیٰ نهٔ لګوی۔
وَنِسَآءَنَا وَنِسَاءَكُمْ : دے کی اشاره ده چه زنانو باندے هم د سړو په شان د عیسیٰ علیه السلام په باره کی صحیح عقیده ساتل فرض دی ځکه ئے پدے مقام کی د سړو سره شریکی کړیدی لیکن زمونږ د زمانے د اکثرو عقیدو نه ناخبره دی۔ (المنار)
ثُمَّ نَبْتَهِلْ : أَیْ نَتَضَرَّعْ إِلَی اللّٰهِ تَعَالیٰ وَنَجْتَهِدْ فِیْ دُعَاءِ اللَّعْنَةِ (قاسمی) یعنی الله تعالیٰ ته به

عاجزي وكړو او په ښيرو كې به كوښښ وكړو. سيدنا عبد الله بن عباس رضي الله عنهما فرمائي: دعاء دا ده چه سينې ته لاس اُوچت كړے او استغفار دا دے چه يوه گوته ورسره اُوچته كړے او ابتهال دا دے چه لاسونه د سر نه پورته كړي يعني په دعا كې ډيره عاجزي او مبالغه كول. (ابوداود: ١٤٩١ وسنده صحيح)(٢) ابوعبيدؒ او كسائيؒ وائي: ابتهال لعنت وئيلو ته وائي، عرب وائي: (عَلَيْهِ بَهْلَةُ اللّٰهِ اَىْ لَعْنَتُهٗ) (بغويؒ).

بيا د مباهلې شرطونه دا دي (١) په ديني كار كې به وي (٢) داسے كار به وي چه هيڅ شك شبهه به پكې نۀ وي. (٣) د مخالف د شكونو د زائله كولو نه روستو به وي. (٤) اول به مخالف ته نصيحت وكړے شي. (٥) تضرع به پكې زياته كولے شي ځكه چه خومره تضرع زياته وي نو زر قبليږي. (٦) مباهله په اصول او فروعو ټولو مسائلو كې شته لكه په سورة البقره كې ئے تفصيل ته رجوع وكړه.

مباهله اُوس هم مشروع ده او منسوخ نۀ ده، په هره زمانه كې اهل حقو د اهل بدعو سره كړيده.

| إِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ وَمَا مِنْ إِلٰهٍ إِلَّا اللّٰهُ وَإِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ |
|---|
| يقيناً دا خامخا بيان دے حق او نشته حقدار د بندګۍ سوا د الله نه او يقيناً الله غالبه، |
| الْحَكِيْمُ ﴿٦٢﴾ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ بِالْمُفْسِدِيْنَ ﴿٦٣﴾ |
| حكمتونو والا دے. نو كه دوي واوړيدل نو يقيناً الله پوهه دے په فسادګرو. |

**تفسير**: اوس بيا قرآن كريم ته ترغيب وركوي چه دا قرآن كوم بيان كوي دا حق بيان دے او ددے بيان مقصد دا دے چه د الله تعالىٰ نه سوئ هيڅوك حقدار د بندګۍ نشته نۀ عيسىٰ او نۀ مريم او نۀ جبريل عليهم السلام.

(١) هٰذَا: كې اشاره ده مخكنى بيان ته په باره د عيسىٰ عليه السلام كې. (١) يا (هذا) كې قرآن ته اشاره ده سره د هغه قصو نه چه په قرآن كې دي. چه دا پوره بيان دے او دا هغه حق دے چه ددے نه اوړيدل نشي كيدے، د نور چا بيانونو ته ضرورت نشته او د نصاراؤ بيانونه حق نۀ دي. قَصَص په زور د قاف سره بيان ته وائي، په اصل كې د چا د نقش قدم پسے روانيدلو ته وائي. قرآن كريم ته ځكه قَصَص وائي چه ددے معاني د يو بل پسے رواني دي.

(الْحَقُّ) حق صدق او رشتيا ته وائي، او كامل ته هم وائي.

وَمَا مِنْ اِلٰـهٍ اِلَّا اللّٰهُ : په اول کی ئے هم ونیلی وو چه ﴿اَللّٰهُ لَا اِلٰـهَ اِلَّا هُوَ الْحَیُّ الْقَیُّوْمُ﴾ آخر کی ئے هم وویل چه ددے بیان حاصل دا دے چه د الله تعالیٰ سره په الوهیت کی هیڅوك شریك نشته۔ نو تفریع شوه په دے مذکوره قصو باندے۔

لَهُوَ الْعَزِیْزُ د عزیز او حکیم حواله ئے ځکه ورکړه چه اشاره ده چه د الله تعالیٰ سره څوك په عزت او حکمة کی شریك نهٔ دی نو په الوهیت کی به ورسره څنګه شریك شی۔

فَاِنْ تَوَلَّوْا : یعنی که ددے بیان نه روسته هم څوك مخ اړوی او دا کلمه نهٔ وائی او د الله تعالیٰ توحید نهٔ منی نو الله تعالیٰ به عذاب ورکړی او دا خلك مفسدان دی ځکه چه د دوی خپله عقیده هم خرابه وه او د خلکو ذهنونو کی ئے غلط شبهات اچول او غلط دعوت به ئے کولو، د خلکو ذهنونه به ئے خرابول نو ځکه ئے ورته مفسدان وویل، الله تعالیٰ به دوی پوهه دے سزا به ورکوی۔

صاحب المنار (۲۶۷/۳) وائی : عقیده خرابول د عقل خرابول دی چه دا د هر فساد سر دے۔

| قُلْ یَا اَهْلَ الْکِتَابِ تَعَالَوْا اِلٰی کَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَیْنَنَا وَبَیْنَکُمْ |
|---|
| اووایه اے کتاب والو! راشئ یوے خبرے ته چه برابره ده په مینځ زمونږ او مینځ ستاسو کی |
| اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَیْئًا |
| دا چه بندګی به نهٔ کوو سوا د الله نه او برخه داران به نهٔ جوړه وو د هغه سره هیڅ شے |
| وَلَا یَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَاِنْ |
| او نهٔ به نیسی بعض زمونږ بعضو لره معبودان (شارعان) سوا د الله نه نو که چرته |
| تَوَلَّوْا فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ﴿۶۴﴾ |
| دوی وګرزیدل نو تاسو ووایئ چه تاسو ګواه شئ چه یقیناً مونږ مسلمانان یو۔ |

**تفسیر : - مضمون** : ددے ځای نه روسته هم مخکنی دوه مضامین بیانیږی چه الله تعالیٰ په توحید سره پیژندل پکار دی او رد دے او توبیخ دے کافرانو بآیات الله ته۔ لیکن ددے آیتونو طرز جدا دے پدے وجه زمونږ بعض مشائخ وائی چه پدے آیتونو کی مقصد د رسول الله ﷺ د رسالت رشتینوالے دے چه دا آخری رسول رشتینی رسول دے، په دهٔ چه څوك اعتراضات کوی هغه خطاء دی۔ نو دا مقصد مخکنی مضمون ته ورته دے ځکه

چه څوك په رسول الله ﷺ باندې اعتراضات كوي نو هغه د الله تعالىٰ په آيتونو باندې كفر كوي او هغه نهٔ مني۔

بل مناسبت : دا دې چه مخكې د عيسىٰ عليه السلام عبديت بيان شو اُوس د الله تعالىٰ توحيد ته دعوت دې په اقسام ثلاثه ؤ سره۔ ۳– مناسبت : نصارىٰ د مناظرې او مباهلې نه عاجز شو نو دوي له پكار دي چه الله تعالىٰ ته انقياد وكړي او غاړه كيږدي ورنه دوي به عناديان او ضديان وي۔

**عنوان د آيت :** په قل يا اهل الكتاب كې اهل كتابو ته دعوت دې تولو اقسامو د توحيد ته او ايمان طرفته چه راشئ د الله تعالىٰ پوره توحيد ومنئ، د هغه سره شريكان مهٔ جوړوئ، فسادونه مهٔ كوئ، كه تاسو ئې نهٔ منئ مونږ مسلمانان خو ئې منو۔

بيا په (يا اهل الكتاب) كې د اهل كتابو يوه شبهه رد كيږي چه دوي وئيلي وو چه ابراهيم عليه السلام زمونږ په دين روان وو چه دا په سورة البقره كې هم رد شويده۔ دا د دوي دروغو عقيده وه نو الله تعالىٰ د دوي ذهن سازي كوي۔ دوي ابراهيم عليه السلام د خپل ځان تابع كولو مقصد ئې دا وو چه خلك د يهوديت نه وانهٔ وړي۔

بيا دوي وئيلي وو چه كه ابراهيم عليه السلام زمونږ په دين نهٔ وي نو زمونږ پلار خو وو او زمونږ پلاران انبياء تير شويدي نو د هغې جواب كوي په (ان اولى الناس بابراهيم) سره، چه ابراهيم او نور انبياء عليهم السلام ته نزديكت هله فائده وركوي چه د هغه په شان عقيده ولري او د هغه تابعداري وكړي، هسې په نسب كار نهٔ كيږي۔ بيا (ودت) كې حسد د اهل كتابو ذكر كوي چه دوي كوشش كوي چه تاسو د حق نه واوړي۔ بيا په كفر بآيات الله باندې توبيخ وركوي چه تاسو كفر ولې كوئ؟ بعض علماء وائي چه پدې كې زجر دې په ترك العمل باندې۔ بيا توبيخ دې په تلبيس او كتمان (پټولو) د حق باندې چه دا مرضونه په دوي كې پدې وجه پيدا شوي وو چه دوي د الله تعالىٰ په آيتونو كفر كولو۔ بيا په (۷۲) (وقالت) : كې د يهوديانو د عوامو مسلمانانو د گمراه كولو دپاره حيله بيانوي او د هغې رد ذكر كوي۔ بيا د اهل كتابو دوه قسمونو ته تقسيمول چه يو قسم په كې خائنان دي چه د خلكو مالونه خوري او بيا هغې ته جائز هم وائي، نو الله تعالىٰ فرمائي چه دا خلك د كفر د وجه نه په خيانت كې هم واقع شويدي۔ لكه دا مرض ددې امت په مبتدعينو كې هم شته۔ بيا د هغې په مقابله كې ئې زيرې وركړيدې په (۷۶) كې، بيا په (ان الذين) كې توبيخ دې په كتمان د حق او دارنګه په اشتراء الدنيا بالآخرة چه دې خلكو دين په دنيا باندې خرڅ

کړیدې، الله تعالیٰ ورسره لوظ کړیدې لیکن دوی د دنیا دپاره مات کړیدې او د آخرت سخت تخویف ئې ذکر کړیدې، بیا بیان د تحریف د اهل کتابو دې چه دوی د الله تعالیٰ په کتاب کې تحریفونه کوي. بیا په (۷۹) کې د هغوی د سوال جواب دې چه مونږ ته پیغمبرانو وئیلي دي چه زمونږ عبادتونه وکړئ. نو الله تعالیٰ وفرمایل چه دا ستاسو دروغ خبره ده چه په پیغمبرانو مو تړلې ده، پیغمبران چا ته په کفر امر نکوي تر (۸۰) پورې.

**تفسیر** : قُلْ : دا هغه آیت دې چه رسول الله ﷺ به د سهار په سنتو کې په دویم رکعت کې لوستلو، او د اهل کتابو بادشاهانو ته په خطونو کې به ئې دا آیت لیکلو، ځکه چه په دې کې توحید طرفته دعوت دې.

پدې آیت کې بیا درې قسمه توحید ته دعوت دې (۱) توحید الوهیت، (۲) توحید الربوبیة (۳) توحید الحاکمیة. د اهل کتابو اول او دریم توحید خراب وو، دوی به د عزیر علیه السلام او د عیسیٰ علیه السلام عبادت کولو، د سخې عبادت ئې کولو. او ددې نه لوی مرض پکې دا وو چه یو بل نه به ئې ارباب جوړولو یعني قانون سازان ئې خپل پیران او علماء جوړ کړي وو، حلال او حرام جوړول ئې هغوی ته سپارلي وو، الله تعالیٰ ته ئې دا نهٔ سپارل، دوی به پدې کار کې خپلو مشرانو ته سجدې هم لګولې لکه اُوس هم دوی د خپلو مشرانو نه بخنه غواړي او دا عقیده لري چه دوی درته بخنه وکړه نو کامیاب او چه دوی بخنه ونکړي نو ناکام. او د هغوی په باره کې د غیبو عقیده هم لري. نو داسې ارباب ئې ترې جوړ کړیدي چه دوی ورله کوم شې جائز کوي د هغې پسې ورځي، د حلال او حرامو واك ئې ورکړیدې تردې چه د بښنې واك ئې هم دوی ته ورکړیدې نو ځکه الله تعالیٰ دوی ته ددې مرضونو نه د خلاصیدو دعوت ورکړیدې، او د هغوی د حال مطابق دعوت ورکړې شویدې. او همدا اُصول د دعوت دي چه چا کې کوم مرض وي د هغې دعوت به ورکولې شي.

پدې آیت کې یهود او نصاریٰ او عام خلق مخاطب دي. دلته الله تعالیٰ رسول الله ﷺ ته دا حکم کړیدې چه دې خلقو لره درې خبرو ته راوبلې : اول دا چه دوی صرف د الله تعالیٰ عبادت اُوکړي. دویم دا چه د الله تعالیٰ سره هیڅوك شریك جوړ نکړي. او دریم دا چه د الله تعالیٰ د شریعت په پریخوستو سره د انسانانو د ځان نه جوړ شوې قانون او د هغوی د تحلیل او تحریم احکام ونهٔ مني.

كَلِمَةٍ : د کلمې نه مراد غټه خبره، دین او کلمه د لا اله الا الله مراد ده. دلته د کلمې نه مراد لفظ مفرد نهٔ دې لکه چه هغه اصطلاح د نحویانو ده بلکه ټول دین مراد دې.

سَوَاءٌ : يعني مُسْتَوٍ وُجُوبُهُ. يعني چه د هغې وجوب په مونږ او تاسو باندې يو شان دے. يعني يو شان فرض ده په مونږ هم او په تاسو هم.

اَلَّا نَعْبُدَ : دا تفسير د كلمې دے. يعني هغه كلمه دا ده چه صرف يو اخې به د الله تعالىٰ بندګي شروع كوو. دا ځكه وائي چه يهود او نصاراؤ به عبادتونه خاص طور سره نهٔ كول او كوم چه به ئے كول نو د غير الله به ئے هم ورسره كول.

وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ : دا ورسره ځكه زياتوي چه مشركانو او يهود او نصاراؤ به كله د الله تعالىٰ عبادت هم كولو. نو دلته ورته وائي چه هميشه دپاره به د يو الله تعالىٰ عبادت كوو، كه يو انسان د الله تعالىٰ بندګي كوي او يوه ورځ ورسره شريكان جوړ كړي نو دغه عبادت ئے ضائع دے نو په (لانشرك) كې په توحيد اُلوهيت باندې دوام ته اشاره شوه.

شرك په لغت د عربو كې حصه دارئ ته وائي او په اصطلاح كې عقيدةً د الله تعالىٰ سره بل چا له حصه داري وركول، د الله تعالىٰ سره بل خالق، رازق منل، چه هغه په غيبو پوهيږي، حاضر ناظر دے، يا عملي شرك چه د الله تعالىٰ په نوم هم نذر او منخته كول او د غير الله په نوم هم، الله تعالىٰ ته سجده لګول او غير الله ته هم سجده لګول، الله تعالىٰ ته سر ښكته كول او هغه ته هم سر ښكته كول. د شرك بيا ډير انواع او اقسام دي، لكه الله د تعالىٰ سره محبت كول او د غير الله سره هم، د الله تعالىٰ تعظيم او د غير الله تعظيم، د الله تعالىٰ نه يره او د غير الله نه هم د الله تعالىٰ په شان يره كول، دا وجه ده چه (شيئاً) لفظ ئے زيات كړو چه هر قسم شرك ته شامل شي.

**فائده** : د شرك د پيژندلو لنډه طريقه دا ده چه (۱) د الله تعالىٰ يو صفت خاصه غير له وركول (۲) يا د الله پاك حق غير له وركول. بس دغه شرك دے مثال لكه الله تعالىٰ عالم الغيب دے دا صفت كه مخلوق ته چا وركړو نو مشرك شو، دويم مثال: عبادت، محبت، عظيم د الله پاك حق دے دا شيان بل مخلوق له وركول شرك دے فتدبر او نور مثالونه پرے قياس كړه.

وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا: دا په بل قسم شرك رد دے چه د الله نه سوئ ارباب او قانون سازان نيول.

اَرْبَابًا : جمع د رب ده. يوه معنىٰ ئے مشهوره ده : پالونكے، لكه پيدا كول، رزق وركول وغيره. دا معنىٰ دلته نهٔ ده مراده ځكه چه د يهودو او نصاراؤ په عقيده كې دا نهٔ ده ثابته چه هغوي به خپل مليان او پيران داسے ګنړل چه دوي مونږ ته رزق راكوي او مونږ پيدا كوي بلكه هغوي ته پته وه چه دوي ته خو مونږ تنخواه وركوو، دوي مونږ ته محتاج دي.

(۲) بلکه ارباب في التشريع مراد دي. يعني قانون سازاو شريعت جوړونکي او حلال او حرام جوړونکي. دا معنیٰ دلته مراد ده ځکه چه یو آیت د بل تشریح کوي او دغه شان حدیث کې راغلے ده. په سورة التوبه (۳۱) آیت کې دي: ﴿ اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ نو دوی د خپلو ملیانو او پیرانو نه شارعان جوړ کړیدي.

امام ترمذيؒ د عدي بن حاتم ﷛ نه روایت نقل کړیدے چه رسول الله ﷺ د قرآن کریم دا آیت : ﴿ اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ اُولوستلو او وے ویل چه دے خلقو به د هغه علماؤ عبادت نهٔ کولو لیکن هغه علماؤ به چه کله دوی دپاره یو شے حلال کړو نو دوی به حلال گنړلو او چه کله به ئے یو شے حرام کړو نو دوی به حرام گنړلو (بی دلیله) نو الله تعالیٰ د دوی دا کار د هغوی معبود جوړول اُوگرځول. معبود همدے ته وائي چه د هغه حلال حرام بې دلیله ومنې.

(۳) عکرمة وائي : [سُجُوْدُ بَعْضِهِمْ لِبَعْضٍ] دوی کې به بعض کشرانو خپلو مشرانو ته سجدے کولے. (٤) طَاعَتُهُمْ فِيْ مَعْصِيَةِ اللّٰهِ - (ابن جریجؒ) (زاد المسیر وابن کثیر والبغوی) د الله تعالیٰ په نافرمانئ کې به ئے د هغوی طاعت کولو نو دغه ارباب شو.

په ﴿ وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ کې د مسیح او عزیر علیهما السلام د الوهیت نه انکار دے. او اشاره ده چه دا خلق زمونږ او ستاسو په شان انسانان وو، معبودان به څنګه جوړ شي ؟! او پدے کې په هغه خلقو هم رد دے چه هغوی د الله تعالیٰ د دین په حاصلولو کې د خلقو ړوند تقلید اُوکړو، او د هغوی حلال کړی څیزونه ئے حلال او د هغوی حرام کړی څیزونه ئے حرام اُوگنړل او پدے طریقه ئے هغوی خپل معبودان جوړ کړل.

مفسر الکیا الهراسيؒ په خپل تفسیر کې لیکي چه پدے کې په هغه خلقو رد دے چه په غیر د کوم دلیلِ شرعي نه د ((استحسان)) قائل دي، او د هغه خلقو رد هم دے چه دا وائي چه په تحلیل او تحریم کې بغیر د دلیل شرعي بیانولو نه د امام قول قبلول واجب دي. (قاسمي والقرطبي) نو خپل شیخ او امام به داسے نهٔ گنړي چه دلیل ورسره نهٔ وي او د هغه د قول تابعداري لازم گنړي. نو ددے آیتونو نه یره پکار ده. او دے آیتونو کې چه د یهودو کوم مرضونه ذکر دي هغه بعینه پدے امت کې هم موجود دي لکه حدیث کې دي: لَتَتَّبِعُنَّ سُنَنَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ . (صحیحین) خامخا به تاسو د پخوانو خلکو په طریقو باندے روانیږئ. نو دے امت کې هم ډیرو خلکو د خپلو ملیانو خبرے د حق په خلاف هم منلی او

مني نه پدې وجه الله تعالیٰ د اهل کتابو دا خبرې دې امت ته بار بار ذکر کوي چه ویرېږي.
پدې وخت کې ډېر خلك خپل بادشاهان او اسمبلیانې حاکمان او شارعان ګڼري څوك جمهوریت. لکه وائي : عوام طاقت کا سرچشمہ۔
او په یو صحیح حدیث د مستدرك کې راغلي دي: (سَتَفْتَرِقُ أُمَّتِيْ عَلٰى بِضْعٍ وَسَبْعِيْنَ فِرْقَةً أَعْظَمُهَا فِتْنَةً عَلٰى أُمَّتِيْ قَوْمٌ يَقِيْسُوْنَ الْأُمُوْرَ بِرَأْيِهِمْ يُحَرِّمُوْنَ الْحَلَالَ وَيُحِلُّوْنَ الْحَرَامَ) (البزار رقم: ۲۷۵۵، والمستدرك: ۶۳۲۵) وسكت عنه الحافظ وقال الهيثمي : رجاله رجال الصحيح)
زما امتی به په درې اویا فرقو تقسیم شي، پدې کې به زما په امت باندې لویه فتنې والا هغه خلك وي چه د خلکو کارونه به په خپله رایه باندې قیاس کوي نو حلال به حراموي او حرام به حلالوي. دا به کوم خلك وي؟
صاحب المنار پدې آیت کې ونیلي دي چه مسلمانان مقلدین چه د بعض فقهاؤ آراء (بغیر د دلیل نه) په باب د عباداتو او حلال او حرام کې اخلي دا عین هغه شے دے چه د الله تعالیٰ کتاب پدې سره په اهل کتابو انکار کړیدے او دا ئې د اسلام منافي ګرځولے دے بلکه د هغوی مخالفت ئې پدې باره کې عین اسلام ګرځولے دے. (المنار ۳/ ۲۷۰)
فَإِنْ تَوَلَّوْا: یعنې که دا اهل کتاب واوړېدل نو دوی ته ووایئ چه اے دشمنانو تاسو ګواه شئ چه مونږ خو د الله تعالیٰ او د رسول ﷺ خبره منونکي یو او دغه کلمه منونکي یو.
یعنې خلکو ته زمونږ په خلاف دا پروپیګنډه کوئ چه دا مسلمانان خپل مشران نۀ مني او دوی نه ارباب نۀ جوړوي. خو دغه زمونږ عقیده ده، که تاسو راته هرڅه وایئ.
یا مطلب دا چه اے مسلمانانو! تاسو دا اهل کتاب ګواه کړئ چه اصلي مسلمانان خو مونږه یو په ټولو کتابونو، نۀ تاسو، تاسو هسې دعوه لرئ.
۳- علامه ناصر السعديؒ فرمائي : ۱- چه پدې ګواهئ کې مقصد دا دے چه الله تعالیٰ مسلمانانو ته فرمائي چه تاسو د اسلام ګواهي ورکړئ ځکه کله چه تاسو اسلام او ایمان راوړو نو الله تعالیٰ ستاسو نه د علاوه خلکو په اسلام نۀ راوړو هیڅ باك نۀ کوي ځکه چه د هغوی هیڅ پاکي نشته او د هغوی نیتونه او باطن خبیث دے لکه الله فرمایلي دي: ﴿قُلْ آمِنُوْا بِهٖٓ أَوْ لَا تُؤْمِنُوْا إِنَّ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهٖٓ إِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ يَخِرُّوْنَ لِلْأَذْقَانِ سُجَّدًا﴾ یعنې اے مشرکانو که تاسو ایمان راوړئ او که نۀ، اهل علم خلك شته چه هغوی د الله تعالیٰ په آیتونو ایمان راوړي او الله تعالیٰ ته عاجزي کوي. ۲- او دارنګه کله چه په ایماني عقیده باندې شبهات وارديږي نو دا په مؤمن باندې واجبوي چه خپل ایمان تازه کړي او د خپل

اسلام اعلان وکړی دے دپاره چه د خپل یقین اخبار ورکړی او د خپل رب د نعمت شکر وکړی. ۳- دارنګه پدے ګواهئ کی په مخالفینو باندے زیات حجت قائمیږی لکه الله تعالیٰ په ګواهئ کی اهل علم پیش کوی دپاره د حجت په معاندینو.

(تیسیر الکریم الرحمن ۱۳٤/۱)

**فائده** : صاحب د تفسیر مظهری دلته یوه ښه فائده لیکلے ده هغه فرمائی : [وَمِنْ هٰهُنَا يَظْهَرُ أَنَّهُ إِذَا صَحَّ عِنْدَ أَحَدٍ حَدِيْثٌ مَرْفُوْعٌ مِنَ النَّبِيِّ ﷺ سَالِمًا مِنَ الْمُعَارَضَةِ وَلَمْ يَظْهَرْ لَهُ نَاسِخٌ وَكَانَ فَتْوٰى أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ مَثَلًا خِلَافَهُ وَقَدْ ذَهَبَ عَلٰى وِفْقِ الْحَدِيْثِ أَحَدٌ مِنَ الْأَئِمَّةِ الْأَرْبَعَةِ يَجِبُ عَلَيْهِ اِتِّبَاعُ الْحَدِيْثِ الثَّابِتِ وَلَا يَمْنَعُهُ الْجُمُوْدُ عَلٰى مَذْهَبِهِ مِنْ ذٰلِكَ كَيْلَا يَلْزَمَ اتِّخَاذُ بَعْضِنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ) (التفسیر المظهری ۶٤/۲)

او ددے ځای نه ښکاره شوه چه کله د یو تن سره د رسول الله ﷺ حدیث صحیح ثابت شی چه هغه د معارضے نه بچ وی او د هغے څه ناسخ هم نهٔ وی او فتویٰ د امام ابوحنیفه رحمه الله مثلاً د هغے په خلاف وی او د دغه حدیث موافق د څلورو امامانو نه یو امام قول هم کړے وی نو په دغه وخت کی به د دغه ثابت حدیث تابعداری واجبه وی او پکار ده چه دهٔ لره د هغه په مذهب باندے کلک پاتے کیدل پدے حدیث باندے د عمل نه منع نکړی دے دپاره چه مونږ بعض بعضو لره ارباب من دون الله جوړ نکړو آه.

بیا ئے بله فائده لیکلے ده چه "هیچا له دا جائز نهٔ دی چه په یو کار کی داسے ووائی چه د شرع علماؤ ددے په حرمت یا ددے په کراهت فتویٰ ورکړیده، یا د صوفیه مشائخو دا سنت ګرځولی دی او مونږ د هغوی د سنتو تابعداری کوو". لکه دا کار په مقلدینو او د صوفیاؤ په تابعدارو کی موجود دے.

بیا ئے دریمه فائده لیکلے ده چه په هغے کی ئے په عرسونو او میلو تیلو باندے رد کړیدے. فرمائی : ((جاهلان چه د اولیاؤ او شهداؤ په قبرونو کوم کارونه کوی دا بیخی نهٔ دی جائز لکه سجدے کول، د قبرونو نه طوافونه کول، په هغے باندے ډیوے او شمعے بلول او په هغے باندے مساجد جوړول او کال پس په هغے کی اجتماع کول لکه د اخترونو په شان چه دوی دے ته عرس وائی)) بیا ئے د عائشے رضی الله عنها روایت راوړیدے چه رسول الله ﷺ په مرض الوفات کی په یهودو او نصاراؤ د الله تعالیٰ لعنت وویلو ځکه چه دوی د خپلو انبیاؤ او نیکانو قبرونو نه مساجد جوړ کړی وو. چه پدے سره ئے امت ته یره ورکوله چه تاسو دغسے ونکړئ، آه.

**فائده** : رسول الله ﷺ چه هر کله دا آیت په اهل کتابو او د نجران په وفد باندې تلاوت کړو او هغوی کې هیڅا انکار ونکړو او دا ئې ونهٔ وئیل چه زمونږ په کتابونو کې دغه کلمه نشته نو دا یقینی دلیل شو په نبوت د رسول الله ﷺ باندې او پدې خبره چه دغه کلمه اتفاقی ده د ټولو کتابونو او رسولانو ترمینځ. نو یهود چه عزیر ابن الله، او نصاریٰ عیسیٰ ابن الله وائی نو دا د دوی په فاسدو آراؤ او تقلید باندې بناء وه، د هیڅ کتاب خبره نهٔ وه او دا هم معلومه شوه چه توحید د ټولو انبیاؤ (علیهم السلام) دین دے.

(التفسیر المظهری ۲/٦٤)

| يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تُحَاجُّونَ فِي إِبْرَاهِيمَ وَمَا أُنْزِلَتِ |
|---|
| اے کتاب والو ! ولے جګړے کوئ تاسو په باره د ابراهیم ؑ کې او نهٔ دے نازل کړے شوے |
| التَّوْرَاةُ وَالْإِنْجِيلُ إِلَّا مِنْ بَعْدِهِ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٦٥﴾ هَا أَنْتُمْ هَؤُلَاءِ |
| تورات او انجیل مګر روستو د هغه نه آیا نو تاسو سوچ نکوئ. خبردار! تاسو اے دغه کسانو! |
| حَاجَجْتُمْ فِيمَا لَكُمْ بِهِ عِلْمٌ فَلِمَ تُحَاجُّونَ |
| تاسو جګړے وکړے په هغه څه کې چه ستاسو په هغې علم شته دے نو ولے جګړے کوئ |
| فِيمَا لَيْسَ لَكُمْ بِهِ عِلْمٌ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦٦﴾ |
| په هغه خبرو کې چه نشته ستاسو په هغې علم او الله پوهیږی او تاسو نهٔ پوهیږئ. |

**تفسیر** : اوس اهل کتابو ته توبیخ ورکوی په دے خبره چه دوی به مشران او غټ خلک (یعنی ابراهیم ؑ) د خپل ځان تابع ګڼلو چه دا هم یهودی یا نصرانی وو. دغه شان مسلمانانو به دا دعوه کوله چه مونږ د ابراهیم ؑ په ملت یو. نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو. محمد بن اسحاقؒ او ابن جریرؒ او بیهقیؒ په ((کتاب الدلائل)) کې د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه د نجران نصاریٰ او د یهودو علماء رسول الله ﷺ ته راجمع شو او جګړه ئې شروع کړه، د یهودو علماؤ اُووئیل چه ابراهیم (ؑ) یهودی وو، او نصاراؤ اُووئیل چه هغه خو نصرانی وو. نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو او هغوی ئې دروغجن کړل چه تورات د ابراهیم ؑ نه تقریباً یو زر کاله روستو نازل شویدے او انجیل تقریباً دوه زره کاله روستو. نو ابراهیم ؑ یهودی یا نصرانی څنګه شو ؟! لږ عقل خو وکړئ. روستو

آیت کی به ووائی چه ابراهیم علیه السلام خو حنیف او مسلمان وو.
ابو صالح د ابن عباسؓ نه روایت کړے چه د ابراهیم او موسیٰ علیهما السلام ترمینځ (۵۷۵) کاله وو او د موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام ترمینځ (۱۶۳۲) کاله وو. (زاد المسیر ۲/۶۶)
دا آیت دلیل دے چه د تاریخ علم زده کول هم ډیر مهم دی ځکه چه پدے سره ډیر باطل اقوال او ډیرے غلطے دعوے رد کیږی.
دویم دلیل دے چه باطل پرست خپل باطل په دروغو باندے مخکښی بوځی، داسے وائی چه دا ټول امت په دے عقیده تیر شویدے ؟!.
هَاأَنْتُمْ هٰؤُلَاءِ: اُوس په هغوی باندے رد ذکر کوی چه اے سپکو خلکو ! تاسو په هغه خبرو کی جګړے وکړے او انکار مو وکړو چه ستاسو په هغے علم وو چه هغه د نبی علیه السلام صفات ستاسو په کتابونو کی موجود وو او تاسو ته ښه معلوم شو بیا هم د هغه نه انکار وکړو نو اُوس ولے په هغه خبرو کی بحثونه او جګړے کوئ چه ستاسو پرے علم نشته هغه دا چه ابراهیم علیه السلام هم د خپل ځان تابع کړو په غیر د څه دلیل نه، نو تاسو دوه ظلمونه وکړل: یوه خبره درته معلومه وه هغه مو ونۀ منله، او کومه چه درته نۀ ده معلومه ذ هغے دعوه کوئ.
علامه سعدیؒ: فرمائی چه الله تعالیٰ پدے آیتونو کی په اهل کتابو باندے په درے طریقو رد وکړو: (۱) یو دا چه د دوی جګړه په باره د ابراهیم علیه السلام کی په داسے شی کی جګړه ده چه دوی سره په هغے باندے علم نشته نو دوی له دا ممکن نۀ ده او نۀ ترے قبلیدے شی چه دوی په هغه خبره کی جګړه وکړی چه دوی د هغے نه جدا دی حال دا چه دوی په احکامو د تورات او انجیل کی هم جګړے کړیدی.
(۲) دویم دا چه یهودیان د تورات احکامو ته خپل نسبت کوی او نصاریٰ د انجیل احکامو ته خپل نسبت کوی او تورات او انجیل خو د ابراهیم علیه السلام نه روسته نازل دی نو دوی څنګه د ابراهیم علیه السلام نسبت خپل ځان ته کوی دا خو د عقل خبره نۀ ده.
(۳) دریم دا چه الله تعالیٰ خپل خلیل د یهود او نصاراؤ نه بری او بیزاره کړو او حنیف مسلمان ئے وګرځولو او د هغه تابعدار او دا نبی او ددے امت مسلمانان ئے هغه ته نزدے وګرځول نو یهودیان او نصاریٰ نۀ د ابراهیم علیه السلام نه دی او نۀ ابراهیم علیه السلام د هغوی نه دے. نو خالص نسب بغیر د تابعدارئ نه هیڅ فائده نۀ ورکوی، آه. (تفسیر السعدی)
فیما لکم به علم: ۱- ددے نه مراد هغه څیزونه دی چه دوی ولیدل او د هغے معاینه ئے

وکړه۔ (قتادة) ۲- یا ددے نه مراد (مَا أُمِرُوْا بِهٖ وَنُهُوْا عَنْهُ) هغه څیزونه چه دوی ته پرے حکم شوے وو او دوی ترے منع شوی وو۔ (السدی) (زاد المسیر)

| مَا كَانَ إِبْرَاهِيْمُ يَهُوْدِيًّا وَّلَانَصْرَانِيًّا وَّلٰكِنْ كَانَ حَنِيْفًا مُّسْلِمًا |
|---|
| نهٔ وو ابراهیم علیه السلام یهودی او نهٔ نصرانی، او لیکن هغه وو کلك موحد او مسلمان |
| وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿٦٧﴾ |
| او نهٔ وو هغه د مشرکانو نه۔ |

**تفسیر** : دا د مخکی خبرے تفصیل دے چه الله تعالیٰ پوهیږی او تاسو نهٔ پوهیږئ نو هغه چه کومه خبره بیان کړیده هغه حقه ده او هغه دا ده چه ابراهیم علیه السلام نهٔ یهودی وو او نهٔ نصرانی بلکه هغه حنیف مسلمان وو، نو څوك چه حنفاء دی هغه د ابراهیم علیه السلام تابعدار دی۔ او هغه عرب او دا اُمت مسلمه دی چه د دوی توجه صرف الله تعالیٰ ته ده، غیر الله ته نهٔ ده، خو ډیرو خلکو ځان د حنفاؤ نه ویستو او بل چا ته ئے توجه وکړه۔

حَنِيْفًا : ددے معنیٰ سورتِ بقره کی ذکر شویده : "اَلْمُقْبِلُ عَلَى اللّٰهِ وَالْمُعْرِضُ عَمَّا سِوَاهُ" ته وائی۔ یعنی چه الله تعالیٰ ته متوجه وی او د نورو نه اعراض کونکے وی)

مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ : پدے کی تعریض دے چه تاسو حنفاء نهٔ یئ، ځکه چه تاسو مشرکان یئ، عزیر او مسیح (علیهما السلام) د الله تعالیٰ ځامن ګڼړئ، او پدے کی رد دے په دعوه د مشرکانو هم چه هغوی به خپل نسبت ابراهیم علیه السلام ته کولو چه هغه خو شرك نهٔ وو کړے او تاسو مشرکان یئ او ستاسو نسبت ابراهیم علیه السلام ته صحیح نهٔ دے۔

| إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيْمَ لَلَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ |
|---|
| یقیناً ډیر نزدے (او لائق) د خلکو نه ابراهیم ته خامخا هغه کسان دی چه تابعداری ئے کړیده د هغه |
| وَهٰذَا النَّبِيُّ وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا وَاللّٰهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٦٨﴾ |
| او دا نبی دے او هغه کسان دی چه ایمان ئے راوړیدے او الله تعالیٰ دوست د مؤمنانو دے۔ |

**تفسیر** : اهل کتابو بیا دعوه وکړه چه که هغه زمونږ نه مخکی تیر شویدے خو مونږ هغه ته نزدے یو ځکه چه د هغه اولاد یو؟ نو الله تعالیٰ ددے جواب کوی چه دا نسب فائده نهٔ ورکوی بلکه د نزدیکت معیار تابعداری کول دی، او تاسو د هغه نه په عقیده او بندګی

کی جدا یئ، بلکه د ابراهیم خلیل الله علیه السلام طرف ته د نسبت زیات حقدار هغه خلق وو چه د هغه په دین کی ئے د هغه اتباع اُوکړه، د هغه په ژوند کی یا د هغه نه روسته، دارنګه محمد ﷺ او د هغه مهاجرین او انصار صحابه کرامؓ او نور مسلمانان ابراهیم علیه السلام ته نزدی دی ځکه چه دوی په عقیده کی د ابراهیم علیه السلام پسے روان دی چه هغه شرك نهٔ کولو، او دارنګه په نور دین کی هم د هغه تابع دی ځکه نبی علیه السلام فرمائی : "زهٔ په حنیفیت دین باندے رالیږلے شوے یم"۔ (معجم الطبرانی الکبیر: ۷۶۱۷)

أُوْلَى النَّاسِ : اولیٰ په معنیٰ د اقرب (نزدے) سره او په معنیٰ د محبوب سره دے۔

وَاللّٰهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ : یعنی دا خلك د ابراهیم علیه السلام محبوبان خو دی خو ورسره د الله تعالیٰ دوستان هم دی او دا ډیر لوی منقبت دے چه چا کی ایمان وی نو الله تعالیٰ ئے دوست دے او الله پاك ورسره دوستی کوی۔ پدے آیت کی د ایمان بله فائده بیان شوه چه اهل ایمان ته به د الله ولایت (دوستی) حاصلیږی نو د ایمان په جوړولو توجه پکار ده۔

| وَدَّت طَّآئِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ يُضِلُّوْنَكُمْ وَمَا يُضِلُّوْنَ |
|---|
| خوښوی یوه ډله د اهل کتابو نه ارمان دے چه تاسو ګمراه کړی او نهٔ ګمراه کوی دوی |
| إِلَّآ أَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۶۹﴾ |
| مګر ځانونه خپل او دوی نهٔ پو هیږی۔ |

**تفسیر** : پدے کی بیان د حسد د اهل کتابو دے د مسلمانانو سره چه دوی ولے نهٔ ګمراه کیږی او د هغوی د ګمراه کولو کوشش کوی او دا طریقه ده چه څوك ګمراه وی هغه کوشش کوی چه نور خلك هم ددهٔ په شان ګمراهان شی، فاسقان دا خوښوی چه عام خلك زمونږ په شان شی۔

مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ : دلته د اهل کتابو نه مراد بنو نضیر، بنو قریظه او بنو قینقاع یهودیان دی کومو چه بعض مسلمانانو ته د یهودیت دعوت ورکړے وو او قسم قسم شبهات به ئے د هغوی په زړونو کی اچول، لیکن د الله تعالیٰ مهربانی ده چه بد مکر بیرته په خپل اهل باندے راواپس کوی، نو دوی پدے کار سره خپل ځانونه ګمراه کوی لیکن نهٔ پو هیږی نو دوی چه څومره د مؤمنانو په ګمراه کولو کی کوشش کوی هغومره به خپله ګمراه کیږی او د حق نه به وړاندے کیږی، ځکه چه دا قانون دے چه د مؤمنانو سره حق دے او څوك چه

د حق په مقابله کې کوشش کوی نو هغه په خان باندے د حق دروازه بندوی نو د حق نه به نورلرے کیږی۔ نو داعی د گمراهئ ته اکثر هدایت نهٔ کیږی او خالی الذهن غلی ناست خلکو ته اکثر هدایت کیږی۔

بیا دا آیت تر قیامته پورے تولو یهودو او نصاراؤ ته شامل دے چه په دوی کی دا مرض دے، د انسانیت گمراه کول لکه اُوس په قسما قسم طریقو سره د دوئ خومره کوشش ددوی شروع دے۔

**لَوْ يُضِلُّوْنَكُمْ** : ضلال په معنیٰ د حیرانتیا راځی دلته ترے مراد ۱– د حق نه باطل طرفته اړول دی۔ (ابن عباسؓ ومقاتلؒ) ۲– یا هلاکول دی۔ (ابن جریرؒ وابوسلیمان الدمشقیؒ) (زاد)

**وَمَا يَشْعُرُوْنَ** : ۱–أَیْ أَنَّ اللّٰهَ يَدُلُّ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلٰى حَالِهِمْ ۔ دوی نهٔ پوهیږی چه الله تعالیٰ به مؤمنانو ته د دوی حال رابنکاره کوی۔ ۲– یا دوی نهٔ پوهیږی چه مونږ ځانونه گمراه کوو۔ (زاد)

| يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِآيَاتِ اللّٰهِ وَأَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ ﴿۷۰﴾ |
|---|
| اے کتاب والو ! ولے کفر کوئ په آیتونو د الله تعالیٰ او حال دا چه تاسو پوهیږئ۔ |

**تفسیر** : عنوان د آیت : اُوس د الله تعالیٰ په آیتونو باندے په کفر کولو زجر او توبیخ ورکوی چه دا خبرے (یعنی د ابراهیم علیه السلام په حنیفیت او د نبی کریم ﷺ په حقانیت باندے دلیلونه) په تورات، انجیل او قرآن کی شته او تاسو ئے بیا هم نهٔ منئ نو ستاسو څه عذر دے؟!۔

(۲) بعض وائی : دلته د کفر نه مراد عمل پرینبودل دی څکه چه د الله تعالیٰ په آیتونو باندے عمل پرینبودل هم یو قسم کفر وی۔ نو د (وانتم تشهدون) معنیٰ ده : تاسو گواهی کوئ چه دا دلیلونه او آیتونه حق دی۔ یا تاسو ددے په حقانیت باندے پوهیږئ، او بیا هم پرے کفر کوئ نو دا قید د زیات قباحت بنکاره کولو دپاره ذکر شویدے۔

(۳) د هغه دلائلو نه ولے انکار کوئ چه په قرآن کریم کی نازل شویدی او تاسو ئے هم د حقانیت دلائل وینئ او هم ئے په پټه د حقانیت اقرار کوئ۔

(٤) په هغه معجزاتو باندے ولے کافر کوئ چه هغه د نبی کریم ﷺ نه تاسو په خپلو سترگو لیدلی دی او وخت په وخت ئے گورئ۔ نو شهادت په معنیٰ د سترگو لیدلو سره دے۔ دلته دا تولی معانی صحیح دی۔

پدے کې اشاره ده چه یو کفر د عناد او جحود (انکار) وي او بل کفر د جهالت د وجه نه وي، نو ستاسو کفر د عناد، ضد او د علم نه دے، نهٔ د جهالت نه، الله تعالیٰ پو هه درکړیده او بیا هم حق نهٔ منئ نو ډیر لوی مجرمان یئ، الله تعالیٰ به درسره کوری، ستاسو سزا به ډیره سخته وي۔ (کما في بدائع التفسیر)

| يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تَلْبِسُوْنَ الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿٧١﴾ |
|---|
| اے کتاب والو! ولے گډوډ کوئ حق د باطل سره او ولے پټوئ حق لره او تاسو علم لرئ۔ |

**تفسیر** : عنوان د آیت : اُوس د حق په تلبیس او د حق په پټولو باندے توبیخ او زورنه ورکوی، لکه د دوی دا مرض په سورة البقره کې هم ذکر دے۔

بِالْبَاطِلِ : یعنی په باطلو شبهو او شکونو باندے په خلکو حق گډوډ کوئ، حق پرست ورته بدې ښکاره کوی، په هغه بدنامی لگوی۔ یا تلبیس دا وو چه کله به ئے د حق خبرے کولے او کله د باطل او دواړه به ئے یو ځای کړے او خلك به ئے پرے گمراه کول۔

وَتَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ : د جاهلانو عوامو نه به ئے حق پټ ساتلو او په لړو پو هه خلکو باندے به ئے تلبیس کولو۔ د یهود او نصاراؤ په کتابونو کې د رسول الله ﷺ صفات او د هغه د نبوت زیرے موجود وو، لیکن دا حقائق به دوی د خلقو نه پټ ساتل۔ اُوس هم باطل پرست مُلیان هغه حدیثونه او مسئلے خلکو ته نهٔ بیانوی چه په هغے کې حق پروت وی۔ دا آیت دلیل دے چه حق پټول او پدے سلسله کې د تلبیس نه کار اخستل د الله تعالیٰ په نیز ډیره بده خبره ده۔ او پدے کې د دین اصولی او فروعی مسئلے او فتویٰ او شهادت داخل دی۔ او معلومه شوه چه د باطل والو شبهات زائل کول لازم دی چه عوام الناس دوکه نشی۔

| وَقَالَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ آمِنُوْا بِالَّذِيْ أُنْزِلَ عَلَى |
|---|
| او وویل یوے ډلے د کتاب والو نه ایمان راوړئ تاسو په هغه کتاب چه نازل کړے شویدے په |
| الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَجْهَ النَّهَارِ وَاكْفُرُوْا آخِرَهٗ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿٧٢﴾ |
| مؤمنانو په اول د ورځ کې او کفر وکړئ په آخر د دے کې، دے دپاره چه دوی (مؤمنان) راوگرزی (کفر ته)۔ |

**تفسیر** : پدے او په راتلونکی آیت کې : اَلْحِيْلَةُ لِإِضْلَالِ الْعَوَامِ ۔ (د عوامو د گمراه کولو دپاره د دوی یوه حیله) ذکر ده، دوی خپله کافر دی نو د نورو خلکو د کافر کولو کوشش د

یهودو په هره زمانه کې راروان دي۔

**مناسبت** : ددې تېرو آیتونو دا دې چه پدې کې بیان د قبائحو د اهل کتابو دې چه دوی کې دا قبائح دی خان ترې وساتئ، متأثر ترې نشئ، شبهات ئې غلط دی هیڅ دلیل نهٔ لري۔

د اهل کتابو ددې سازش مقصد دا وو چه د څه سیده ساده مسلمانانو په زړونو کې د اسلام او د قرآن د رشتینوالي په باره کې شك پیدا کړي۔ دوی خپل مینځ کې دا خبره فیصله کړه چه د دوی څه کسان به سهار وخت کې د ایمان راوړو اعلان وکړي او د خلقو سره به مونځ وکړي او کله چه ماښام شي نو خپل دین طرف ته به راواپس شي۔ ددې نتیجه به دا شي چه څه کمزوري مسلمانان به دا ګمان وکړي چه دا خلق اهل علم (د علم خاوندان) او اهل کتاب دي، د دوی نیت د حق موندل وو، او اُوس چه کله د اسلام د قبلولو نه روستو ئې هغه پریخودو نو ددې مطلب دا دې چه د دوی په نیز دا ثابته شوه چه اسلام رشتینې دین نهٔ دې۔ تفسیر القرطبي (٤/ ١١١)

الله تعالیٰ د وحی په ذریعه د دوی دا دسیسه او سازش راښکاره کړو او د دوی سازش ناکام شو او په مسلمانانو باندې د هغې هیڅ بد اثر پرې نهٔ وتو او مسلمانان د یو خطرناك امتحان نه وساتل شو۔

**لطیفه** : الله تعالیٰ چه مونږ ته د دوی ددې سازش خبر راکړو نو پدې کې ډیر فوائد دي (١) یو پدیکې اعجاز القرآن دې چه قرآن دې مُعجِز کتاب دې، اخبار بالغیب ئې ورکړو، د دوی پټ رازونه ئې راښکاره کړل۔ (٢) دویم : د دوی حیلې په زړونو د مؤمنانو هیڅ اثر ونکړو ځکه چه الله تعالیٰ مخکې نه مؤمنان پدې خبر کړل چه دوی به داسې حیله کوی نو هغوی به په یره کې وسیږي، که دا خبر نهٔ وې نو کیدې شي چه د بعض نوي ضعیفو مسلمانانو په زړونو ئې اثر کړې وې، وئیل به ئې چه دا کتاب به حق نهٔ وي ځکه چه دا خلك اهل کتاب دي، دوی ښه پوهیږي، نو دوی ته به دا حق نهٔ ښکاري۔

(٣) فِيهِ رَدْعٌ لِسَائِرِ حِيَلِهِمْ فَإِنَّ اللَّهَ يُخْبِرُ نَبِيَّهُ۔ پدې کې دوی لره د نورو حیلو نه منع کول دي ځکه چه که دوی نورې حیلې جوړوي نو الله تعالیٰ به خپل نبي ته خبر ورکوي نو دوی به شرموي۔ (قاسميؒ) نو دا د یهودیانو دپاره یوه غټه معجزه هم ده چه الله تعالیٰ خپل نبي ﷺ د دوی د ډیرو پټو رازونو نه هم خبرولې شي۔

(٤) بیان د تعصب د یهودو چه ډیر متعصب دي، د خپل دین نه بغیر نور حق نهٔ مني۔

**ارتباط** : په مخکنی آیتونو کې الله تعالیٰ د اهل کتابو په باره کې فرمایلي وو چه دوی

حق پټوي او حق او باطل د يو بل سره خلط کوي نو پدې آيتونو کې د هغې مصداق يوه نمونه وښودل شوه چه دوی د دغه مطلب دپاره په هره زمانه کې قسماقسم دسيسو نه کار اخلي چه يوه دسيسه ئې دغه وه چه راز ئې الله تعالیٰ مونږ ته راښکاره کړو.

أُنزِلَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا : کې اشاره ده چه اے مؤمنانو ! دا کتاب خو ستاسو خپل دے چرته ترے وانهٔ وړئ. پدے کې اهل ايمان ذمه دار جوړ کړے شويدی د خپل کتاب فتدبر.

لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ : دا ضمير يا د دوی ملګرو مسلمانانو ته راجع دے چه هغوی ايمان راوړے وو لکه عبد الله بن سلام ﷺ وغيره. يا عامو مسلمانانو ته راجع دے، دا عموم غوره دے.

| وَلَا تُؤْمِنُوا إِلَّا لِمَنْ تَبِعَ دِينَكُمْ قُلْ إِنَّ الْهُدَىٰ |
|---|
| او تاسو تصديق مه کوئ مګر د هغه چا چه تابعدار دی دَ دين ستاسو، ووايه ! يقيناً (صحيح) هدايت |
| قُلْ إِنَّ الْهُدَىٰ هُدَى اللَّهِ أَنْ يُؤْتَىٰ أَحَدٌ مِثْلَ مَا أُوتِيتُمْ |
| خو هدايت د الله دے، آيا ورته کړے شي په مثل د هغه کتاب چه تاسو ته درکړے شويدے |
| أَوْ يُحَاجُّوكُمْ عِنْدَ رَبِّكُمْ قُلْ إِنَّ الْفَضْلَ |
| يا به دوی جګړه وکړي تاسو سره په نيز د رب ستاسو، ته ووايه يقيناً فضيلت (غوره والے) |
| بِيَدِ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٧٣﴾ |
| په لاس د الله کې دے، ورکوی ئې چا له چه وغواړي او الله فراخه فضل والا دے، پوهه دے. |

**تفسير** : دا د اهل کتابو د خبرے تتمه ده. پدے کې بيا يو څو تفسيره دي :

(١) وَلَا تُؤْمِنُوا : په معنىٰ د (لَا تُظْهِرُوا الْإِيمَانَ) سره دے يعنی خپل ايمان مهٔ ښکاره کوئ مګر هغه خلکو ته چه ستاسو د دين تابع وو او بيا ئې پريښے دے او مسلمانان شويدی، يعنی د يهودو نه چه کوم خلك مؤمنان شويدی نو دا حيله هغوی دپاره جوړه وو، خپل ملګري بيرته راواپس کوو. دا معنىٰ دومره غوره نهٔ ده ځکه چه عموم پکې نشته او بله دا چه د يهودو نه خو دومره ډيرو کسانو ايمان نهٔ وو راوړے. يا (لِمَنْ تَبِعَ) کې لام اجليه دے. يعنی تاسو ايمان مهٔ ښکاره کوئ مګر د وجه د هغه خپلو ملګرو نه چه ستاسو د دين تابع وو يعنی دا ذکر شوے ايمان د بل هيڅ شي دپاره مهٔ راوړئ مګر صرف د خپلو ديني ورونو دپاره، چه کله تاسو خپلو مخالفينو ته عقيدوی شك ورواچوئ او بيرته

درسره راستانه شي نو خپلو دیني ورونو ته به اطمینان ورکړئ او هغوی ته به ډیر لوی خدمت وکړئ.

(۲) دویمه معنیٰ: لَا تُؤْمِنُوْا په معنیٰ د (لَا تُصَدِّقُوْا) سره دے یعنی مشرانو به کشرانو یهودیانو ته وئیل چه په مسلمانانو باندے تصدیق او بهروسه او اعتماد مهٔ کوئ او د دوی خبره مهٔ منئ. روسته ورته وائی: د بل چا په خبره اعتماد څکه مهٔ کوئ چه ستاسو دین غوره دے ستاسو په شان دین بل چا ته نهٔ ورکړے کیږی او نهٔ تاسو سره څوك جګړه کولے شي او نهٔ په مباحثه کی دریاندے غالبه کیدے شي. (یعنی زمونږ خپل دین کافی دے د بل چا خبرو منلو ته ضرورت نشته، لکه اوس هم د یهودو دغه نظریه ده).

قُلْ إِنَّ الْهُدٰى : دا په مینځ کی د دوی ددے سازش او د دوی ددے خبرے جواب دے، الله تعالیٰ خپل رسول ﷺ ته اُوفرمایل چه تهٔ دوی ته اُووایه چه د هدایت چینه اسلام دے او ددے نه سوئ تهوله ګمراهی ده. نو که تاسو دا کمزورے شان سازش کوئ پدے سره د الله تعالیٰ هدایت نشئ دفع کولے او زمونږ نه هیڅوك نشئ ګمراه کولے پس د هغے نه چه الله تعالیٰ مونږ ته هدایت وکړو. (قاسمیؒ) او تاسو خو پدے خبره ډیر لوی ضدیان شوئ چه تاسو وایئ چه صرف زمونږ د مذهب والا خبره منئ او د بل چا مهٔ منئ، هدایت خو د الله تعالیٰ په لاس کی دے هغهٔ چه چا ته غواړی ورکوی او د هدایت په اهل باندے پو هه دے نو کیدے شی چه بل چا سره حق او هدایت وی نو آیا تاسو به هغه نهٔ منئ او صرف خپل مذهب باندے به کلك یئ دا خو مره د ضد خبره ده؟!!.

أَنْ يُّؤْتٰى أَحَدٌ : دا د (لا تؤمنوا) سره لګی یعنی پدے خبره تصدیق مهٔ کوئ چه وربه کړے شی یو تن ته په مثل د هغه کتاب او هغه دین چه تاسو ته درکړے شویدے یعنی پدے یقین وکړئ چه الله تعالیٰ مونږ یهودیانو ته کوم کتاب راکړیدے داسے بل چا ته نهٔ ورکوی څکه درته مونږ وایو چه په خپل کتاب کلك شئ او د بل چا خبره مهٔ منئ، خو په ایمان ښکاره کولو سره هسے چل وکړئ او خپل ملګری او نور کمزوری مسلمانان بیرته خپل دین ته راوګرځوئ. دا د امام مجاهدؒ تفسیر دے او غوره دے.

أَوْ يُحَاجُّوْكُمْ : دا هم د (لا تؤمنوا) د لاندے دے یعنی دا تصدیق هم مهٔ کوئ چه ګنے تاسو سره به ستاسو د رب په نیز څوك جګړے وکړی، هیڅوك درسره جګړه نشی کولے څکه چه تاسو په خپل کتاب کلك روان یئ.

قُلْ إِنَّ الْفَضْلَ : دا جواب دے د دوی ددے خبرے "چه ستاسو پشان کتاب بل چا ته نهٔ

ورکړے کیږی" نو اے نبی! ته ورته ووایه چه فضل او غوره والے خو د الله تعالیٰ په لاس کی دے، د هغه خوښه ده چا ته ئے چه ورکړی نو محمد رسول الله ﷺ ته ئے قرآن او غوره دین ورکړو او دا امت ئے په آخری رسول رالیږلو باندے غوره کړو نو که تاسو ورته هرځومره دسیسی جوړی کړئ نو د خپلو ځانونو د رسوائی او شرمولو نه په غیر به بله نتیجه ورنکړی، دا ځکه چه د الله تعالیٰ فضل ډیر فراخه دے، تاسو ئے چه په تنګه دائره کی راګیره وئ چه ستاسو نه په غیر دے په بله ډله کی پیغمبر راونه لیږلے شی دا غټه سهوه او خطائی ده او الله تعالیٰ د پوهے خاوند دے هرڅوک چه د فضل او مهربانئ لائق وی هغه پیژنی او هغه په خپل رحمت سره خاص کوی نو په تاسو کی د آخری رسول رالیږلو هیڅ لیاقت او استعداد نهٔ وو ځکه ئے ستاسو نه نبوت نقل کړو او آخری امت ته ئے ورکړو۔

(۲) دویم تفسیر: (لا تؤمنوا) په معنیٰ د (لَا تُصَدِّقُوا) دے او (أَنْ يُؤْتَىٰ) کی همزه د استفهام پټه ده۔ (ءَ أَنْ يُؤْتَىٰ)۔ او حاصل ددے او د مخکنی به یو راوځی یعنی تصدیق او بهروسه مهٔ کوئ او خبره مهٔ منئ: مګر د هغه چا چه ستاسو د دین تابع دی ځکه چه آیا ګنے ورکولے شی یو تن ته په شان د هغه کتاب چه تاسو ته درکړے شویدے یا ګنے دوی به جګړه وکړی تاسو سره په نیز د رب ستاسو، هیڅکله داسے نشی کیدے۔

(۳) دریم تفسیر: (لا تؤمنوا): په معنیٰ د اظهار د ایمان دے یعنی دے مسلمانانو ته خپل ایمان مهٔ ښکاره کوئ او د خپلو زړونو خبرے او ستاسو په کتاب کی چه د محمد (ﷺ) کوم زیری او صفتونه دی هغه دوی ته مهٔ ښکاره کوئ هسے نهٔ چه ورکړے شی دوی ته هغه پوهه کومه چه تاسو ته درکړے شویده، هغوی به درسره په علم کی برابر شی بلکه تاسو نه به زیات شی په دغه علم کی ځکه چه دوی خو پرے سخت ایمان لری او یا به درسره په نیز د رب یعنی په قیامت کی جګړے کوی، الله تعالیٰ ته به وائی چه دا هغه خلك وو چه مونږ ته ئے ستا د نبی صفتونه بیانول او خپله ئے نهٔ منلو۔ نو په دنیا او آخرت کی به د دوی دپاره دلیل په تاسو جوړ شی۔ نو دا آیت به په شان د ﴿أَتُحَدِّثُونَهُم بِمَا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ﴾ وی او دا معنیٰ حافظ ابن کثیر رحمه الله غوره کړیده۔ نو په مینځ کی الله تعالیٰ جواب کوی چه فضل خو د الله تعالیٰ په لاس کی دے، د هغه خوښه خوښه که چا ته ایمان او علم ورکوی او که څوك ګمراه کوی۔ نو دلته به د (لا تؤمنوا) معنیٰ وی: أَيْ لَا تُظْهِرُوا مَا عِنْدَكُمْ مِنَ الْعِلْمِ لِلْمُسْلِمِينَ) إِلَّا لِمَنْ تَبِعَ دِينَكُمْ لِئَلَّا يُؤْتَىٰ أَحَدٌ مِثْلَ مَا أُوتِيتُمْ وَلِئَلَّا يُحَاجُّوكُمْ عِنْدَ رَبِّكُمْ) تاسو مسلمانانو ته هغه علم مهٔ ښکاره کوئ کوم چه ستاسو سره دے په باره

ددے نبی کی صرف خپلو تابعدارو ته ئے ښکاره کوئ دے دپاره چه ستاسو په شان علم مسلمانانو ته ورنکړے شی یا دریاندے غالبه نکړے شی۔

(٤) تفسیر: یا د دوی د سازش خبره په (اِلَّا لِمَنْ تَبِعَ دِيْنَكُمْ) ختمه شوه او (قُلْ اِنَّ الْهُدٰى) نه تر آخره پورے د الله تعالیٰ کلام دے او جواب دے دوی ته نو (اَنْ يُّؤْتٰى) هم جواب دے: یعنی ستاسو سازش او ستاسو دا حسد پدے وجه دے چه تاسو دا نشئ برداشت کولے چه ستاسو په شان نورو ته هم یو الهی شریعت او علم او د الله تعالیٰ کتاب ورکړے شی۔ یا ستاسو دا رونه پدے وجه ده چه دا مسلمانان د قیامت په ورځ ستاسو په خلاف ګواهی ورنکړی چه دوی ایمان راوړو او تاسو د حق ښکاره کیدو باوجود کفرا ختیار کړو۔ اے رسوله! ته هم دا اُووایه چه قرآن او نور نعمتونه ټول د الله تعالیٰ په اختیار کی دی، الله تعالیٰ چه چا له غواړی ورکوی ئے او هغه د خپل رحمت دپاره خاص پیژنی۔ دا ټول تفسیرونه صحیح دی، د قرآن داسے عام الفاظ دی چه دا ټول تفسیرونه برداشت کولے شی، لیکن دویم تفسیر د مجاهدؒ بالکل واضح دے، عوام الناس ته همغه یو پیش کول پکار دی چه ګډوډ نشی۔

نبی کریم ﷺ دے دسیسو ته داسے اشاره کړیده فرمایلی ئے دی: (تَكُوْنُ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ فِتَنٌ كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ يُصْبِحُ الرَّجُلُ فِيْهَا مُؤْمِنًا وَيُمْسِى كَافِرًا وَيُمْسِى مُؤْمِنًا وَيُصْبِحُ كَافِرًا يَبِيْعُ اَقْوَامٌ دِيْنَهُمْ بِعَرَضٍ مِنَ الدُّنْيَا) (مسلم: ٣٢٨ جامع الترمذی٢/٤٣ رقم: ٢١٩٧) واللفظ له)۔

یعنی د قیامت نه مخکی به داسے فتنے موجودی شی چه د شپی په شان به تکی توری وی، په دے فتنو کی به یو سړے صبا مؤمن وی او بیګا ته به کافر وی او صبا به کافر وی او بیګاه ته به مؤمن وی، ډیر قومونه به خپل دین په دنیاوی فائدو باندے خرځ کړی۔

**فوائد الآیة:** ١- په آیت کی د یهودو دسیسه ذکر شویده مګر په هر دور کی د حق نه د اړولو دپاره باطل پرست داسے دسیسے ډیرے کوی لکه ددے وسیلے راډیو، ټیلویژون، جرائد، مجلات، انټرنیټ، فلمونه، سینماګانے، اقتصادی پابندیانی او تخویفونه او لالچونه ورکولو سره د اسلام په خلاف کار شروع دے مګر په آیت کی چه کومه دسیسه ذکر ده دا ډیر بد اثر لری ځکه چه د همجنسو او خپلو ماحول خلکو نه په ښه او بد کی تاثر زیات اخستلے کیږی لکه کله چه څوک خبر شی چه فلانی سړی ته فلانئ دوائی نقصان ورکړو، یا په فلانئ معامله کی تاوانی شو نو د هغے نه د خلکو سمدست نفرت پیدا شی، خاصکر کله چه یو پوهه انسان ته دغه نقصان ورسیږی نو خلك د هغه نه ډیر عبرت اخلی، لکه دلته

اهل کتاب د آسماني کتاب خاوندان وو او په علم باندې مشهور وو نو چه دوی د دين نه گرزي دا په عوامو ډير بد اثر لري. څکه الله تعالیٰ دا دسيسه د دوی رابنکاره کړله.

۲- دا اهل کتابو دا خيال وو چه مونږ ډير غوره قوم يو مونږ حق لرو چه په نورو قومونو باندې رنګ په رنګ لوبې وکړو څکه چه زمونږ په شان کتاب بل څوك نۀ لري، نو الله تعالیٰ جواب ورکړو چه (أَنْ يُؤْتَىٰ أَحَدٌ مِثْلَ مَا أُوتِيتُمْ) آيا ستاسو غوندې بل څوك نشي کيدې چه الله تعالیٰ ورته هدايت وکړي او داسې کتاب ورته ورکړي لکه چه تاسو ته درکړې شويدې.

۳- دا اهل کتابو خيال وو چه زمونږ راز به په خلکو باندې پټ پاتې شي نو الله تعالیٰ د هغوی د هدف او مقصد ضد کار وکړو او د هغوی دغه ناولې دسيسه ئې خلکو ته رابنکاره کړه. ٤- دا اهل کتابو خيال وو چه نبي آخر زمان به زمونږ نه راليږلې کيږي څکه چه بل قوم ددې لائق نۀ دې نو الله تعالیٰ جواب ورکړو چه ﴿قُلْ إِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللَّهِ﴾ يعني اې پيغمبره! ورته ووايه چه د فضيلت تقسيمول خو ستاسو په لاس کې نۀ دي چه په خپله طبع ئې څان دپاره وساتئ بلکه دا خو د الله تعالیٰ په اختيار کې دې، هرچا ته ئې چه خوښه شي هغه ته ئې ورکوي.

۵- اهل کتابو خپلو کشرانو ته ددې لنډ وخت دپاره د ايمان راوړلو او بيرته د پريښودو دعوت ورکړو چه سهار کې ايمان راوړئ او بيګاه تـه ئې پريدئ څکه چه دوی په خپلو کشرانو ويريدل چه هسې نۀ دوی لـه دغه ايمان خوند ورنکړي او د مسلمانانو سره په حقيقي توګه يو ځای نۀ شي.

٦- د الله تعال فضل او رحمت په يو قوم باندې وقف نۀ دې بلکه اهل خلکو ته ئې الله تعالیٰ ورکوی اګرکه نورو انسانانو ته هغوی سپك ښکاري.

| يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِ مَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿٧٤﴾ |
|---|
| خاص کوی په خپله مهربانۍ سره چا لـه چه وغواړي او الله خاوند د مهربانۍ لوی دې. |

**تفسير** : (يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِ) ددې دوه معانی دی: يو دا چه پدې کې باء د مقصور ده يعني الله تعالیٰ خپل نعمتونه او رحمتونه راخلی او بعض بندګانو ته ئې ورکوي، او هغوی پورې خاص کوی کوم چه ددې اهل وی لکه آخري پيغمبر راليږل دې امت پورې خاص کړو. (۲) يا باء د مقصور عليه ده يعني الله تعالیٰ د خپل رحمت پورې خاص کوی هغه

ځوك چه الله تعالیٰ ورته اراده وکړي. نو معنیٰ دا شوه: خاص کوي د خپل رحمت سره چا له چه وغواړي. دویمه معنیٰ: خاص کیږي د رحمت د الله تعالیٰ پورې هغه ځوك چه د الله تعالیٰ اراده وشي د هغه دپاره.

**فائده**: ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ : همیشه د (یختص) نه روستو راځي پدې کې اشاره وي چه دا تخصیص د فضل د کموالي د وجه نه نهٔ دے بلکه د الله تعالیٰ د علم او حکمة په وجه دے.

| وَمِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مَنْ إِنْ تَأْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ |
|---|
| او بعض د کتاب والو نه هغه ځوك دي چه کچرته ته امانتګر وګرزوے هغه لره په خزانه (ډیر مال) |
| يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ وَمِنْهُمْ مَنْ إِنْ تَأْمَنْهُ بِدِينَارٍ |
| واپس کوي ئے تا ته او بعض د دوی نه هغه ځوك دي چه کچرته ته امانت ورکړے هغه ته یوه اشرفي، |
| لَا يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ إِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَائِماً ذٰلِكَ |
| نهٔ ئے درکوي تا ته مګر ترڅو پورے چه همیشه ئے ته په هغه باندے ولاړ، دا په دے وجه |
| بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْأُمِّيِّينَ سَبِيلٌ |
| چه دوی ویلي وو چه نشته په مونږ باندے په مالونو د امیانو کې هیڅ لاره (یعني ګناه) |
| وَيَقُولُونَ عَلَى اللهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٧٥﴾ |
| او وائي دوی په الله تعالیٰ باندے دروغ او دوی پو هیږي. |

**تفسیر: ربط**: په تیر شوي آیتونو کې د یهودیانو د دیني او عقیدوي خیانت او غدارئ یوه نمونه ذکر شوه، اُوس د دوی د مالي او اقتصادي خیانت مثال ذکر کیږي. یعني دوی د مسلمانانو په باره کې د هیڅ غدارئ نه ځان نهٔ ساتي. الله تعالیٰ خبر ورکړیدے چه د دوی نه بعض داسے خلق دي چه په دوی باندے د ډیر مال بهروسه او اعتماد کیدے شي نو داسے خلکو نه د ایمان راوړو طمع کیدے شي، او ځیني داسے دي چه په هغوی باندے د یو دینار (روپئ) باور هم نشي کیدے، په هغے باندے منکر کیږي اګرکه د پیغمبر په شان سړي ورسره ایښي وي، آؤ هله به ئے ترے واخلي چه همیشه ورته په دروازه کې ولاړ وي چه هله شا به زما پیسې راکړه یا ورته په څنګ کې ولاړ وي چه هیڅکله ترینه نهٔ غائب کیږي یا

پرے زور وکړے شي او د زور نه مجبوره شي او ددے وجه دا ده چه دوی په الله تعالیٰ باندے دروغ تړی چه مونږ ته ئے د امیانو (عربو) او غیر یهودو مالونه حلال کړی دی او په مونږ باندے په دے باره کی د ملامته کولو هیڅ کومه شرعی لاره نشته، مونږ ته په خپل کتاب کی داسے امتیازی حکم راکړے شویدے او حال دا چه دوی پوهیږی چه زمونږ دا بهانه په الله تعالیٰ باندے دروغ تړل دی، ځکه که د دوی په کتاب کی دا حکم موجود وے نو بیا به په دوی کی غټ حرام خور شخص غټ متقی وے حال دا چه په دوی کی نیکان خلك هم شته چه هغوی د چا په یوه پیسه هم نهٔ منکر کیږی معلومه شوه چه دوی په الله تعالیٰ باندے دروغ وائی۔

مفسرین لیکی چه د عبد الله بن سلام ﷺ سره یو زر دوه سوه اوقیه سرهٔ زر یو سړی کیخودل هغه ئے ورته په وخت ادا کړل او فنحاص بن عازُوراء یهودی سره یو سړی د قریشو یوه روپئ کیخوده هغے کی ئے هم خیانت وکړو، او دا د خیانت صفت په کعب بن الاشرف یهودی کی هم وو۔

د سیدنا عدی بن حاتم ﷺ وینا ده چه ((په آیت کی د امانت دارا هل کتابو نه مراد نصاریٰ او د خیانت کونکو نه مراد یهودیان دی)) دے خائنانو یهودیانو به خلقو ته دا باور ورکولو چه د اُمیینو یعنی عربو مال په هره طریقه اخستل جائز دی ځکه چه دا مشرکان دی، حال دا چه دا سراسر دروغ او په الله تعالیٰ باندے بهتان وو۔ الله تعالیٰ هیڅ کله د چا مال په غیر د شرعی طریقے نه اخستل جائز نهٔ دی ګرځولی، د هغوی د زړونو د خوشحالئ نه په غیر د هغوی مال اخستل حرام دی۔ د الله تعالیٰ رسول ﷺ فرمایلی دی: چا چه د چا د مال حاصلولو دپاره په دروغه قسم اُوخوړلو نو دا به د الله تعالیٰ سره په داسے حال کی ملاؤ شی چه الله تعالیٰ به پرے غصه (ناراضه) وی۔ (مسند احمد وسنده صحیح)۔

بِقِنْطَارٍ : قنطار ډیر مال ته وائی او دینار لږ مال۔ بعض وائی د سپینو زرو اتیا زره درهمو ته قنطار وائی۔

مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَائِمًا : یعنی همیشه ورته په سر ولاړ یې چه شا به زما مال راکړه او شا به۔ نو هرکله چه دوی د مخلوق سره دومره خیانت کوی نو د الله تعالیٰ سره به خامخا خیانت کوی چه د هغه حق به پټوی دے دپاره چه ریاست او مشری ورته پاتی شی او رشوتونه ورته ملاؤ شی۔

سَبِيْلٌ : نه مراد لاره د ملامتیا ده۔ او دا صفت بعینه ددے امت په باطل پرستو ملیانو کی

دے چه وائی عوام خلك زمونږ بارئ دی، د دوی نه په څه طریقه مال اخستل پکار دی، نو رواجونه او بدعات ئے د هغے د حاصلولو دپاره جوړ کړیدی۔

**فائده** : پدے تقسیم کی فائده دا ده چه مسلمانان دوست او دشمن وپیژنی، دویم د مدعوینو حال معلومول د دعوت دپاره ضروری دی چه د هغوی د حال مطابق خبره وشی۔

**فوائد الآیة** : (۱) ځینی مفسرینو په آیت کی د امانتګر مصداق عبد الله بن سلام رضی الله عنه او د خیانتګر مصداق کعب بن اشرف یا فنحاص یهودی خودلے دے او ځینو امانتګر نصاریٰ او خیانتګر یهود ګنړلی لیکن صحیح دا ده چه دا د آیت معنیٰ نهٔ ده بلکه دا دوه مصداقونه دی او حصر پکی مطلب نهٔ دے، دارنګه ځینی مفسرین کرامٓ وائی چه کوم اهل کتاب ایمان راوړی هغه امانتګر دی او کوم چه په کفر باندے پاتی وی هغه خیانتګر دی۔ (تفسیر البغوی ۳/۳۱۷)

مګر غوره دا معلومیږی چه دغه دواړه ډلے په کافرو اهل کتابو کی جوړی دی چه په خپل دین باندے باقی پاتی دی او دلته د مسلمانانو خبره نهٔ ذکر کیږی لکه د آیت د سیاق نه معلومیږی۔

**فائده** : عدل ضروری دے، قرآن کریم د دوی نیکی هم ذکر کوی، د وچو د وجه نه لامده نهٔ سیزی نو په اقوال او اعمال او ردونو کی عدل ضروری دے، آؤ په رد د اهل بدع کی د هغوی محاسن ذکر کول نهٔ دی پکار لکه دا طریقه د اهل السنة ده بلکه په اخبار کی پکار دی لکه دا خبره به د آیت (۱۰۳) لاندے راشی ان شاء الله تعالیٰ۔

سوال وجواب :

که څوك ووائی چه دغه دوه ډلے یعنی امانتګر او خیانتګر خو په هر دین والو کی شته اګر که مسلمانان وی نو پدے کی څه حکمت دے چه د اهل کتابو په باره کی ئے وضاحت وکړو؟ جواب دا دے (۱) چه په نورو دینونو کی هم حرام خواره شته خو حلال ئے نهٔ ګنړی او اهل کتاب هغه خلك دی چه دوی دغه پردی مالونه ځانله حلال ګنړی۔

(۲) دارنګه د دوی دا نظریه وه چه د امیانو د مالونو خوراك د تورات حکم دے نو پدے باندے عمل کولو کی اجر او ثواب دے بلکه د دنیا اصلی مالکان مونږ یو او د نورو خلکو مالونه زمونږ نه غصب شوی دی نو زمونږ فریضه ده چه خپله مغصوبه د ظالمانو نه واخلو نو الله تعالیٰ د دوی دا نظریه رد کوی۔ (بغوی ۱/۳۱۷) او د رد حاصل دا دے چه په تاسو کی خو نیکان هم شته هغوی خو پردی مالونه نهٔ خوری نو که پردی مال خوړلو

کې اجر وي نو بیا خو به هغوی نه دا نیك عمل پاتې وي معلومه شوه چه تاسو په الله تعالیٰ باندې دروغ تړئ.

(۳) امام طبريؒ فرمائي: پدې اخبار ورکولو کې الله تعالیٰ مؤمنانو بندګانو ته دا خبرداری ورکوی چه اهل کتابو باندې په خپلو مالونو سره اعتماد ونکړي او په دوی باندې دوکه نشي ځکه چه دوی د مؤمنانو ډیر مالونه حلال ګڼړي. (تفسیر الطبری۵/۵۰۸)

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمۡ قَالُوۡا: پدې کې د دوی دوه جرمونو ته اشاره کیږي یو دا چه دوی پردي مالونه خوري او بل دا چه دوی د هغې دپاره غلط دلیلونه وائي او په الله تعالیٰ باندې دروغ تپي وائي چه دا مونږ له الله تعالیٰ حلال کړیدي پدې وجه وئیلې شي. ((عذر گناه بدتر از گناه)). د ګناه دپاره عذرونه وئیل د ګناه نه لوی جرم دې.

ذٰلِكَ: اشاره ده دغه خیانت او امانت نهٔ ادا کولو ته.

فِي الۡاُمِّيّٖنَ: اَیۡ فِیۡ اَکۡلِ اَمۡوَالِ الۡاُمِّیّٖنَ. یعنی په خوراك د مالونو د امیانو کې څه لاره د ملامتیا نشته.

د عربو مال به یهودیانو ولې جائز ګڼړلو؟

(۱) یوه وجه دا ده چه دوی به وئیل چه دا انسانان زمونږ غلامان دي او د سیّد دپاره د غلام مال خوړل جائز دي، یهود ډیر متکبران دي. (۲) دویمه نظریه د هغوی د تعصب وه چه دا به ئې وئیل: (کُلُّ مَنۡ خَالَفَ دِیۡنَنَا یَجُوۡزُ قَتۡلُهٗ وَاَکۡلُ مَالِهٖ). هر هغه څوك چه زمونږ د دین او مسلك خلاف وي نو د هغه قتل او مال خوړل جائز دي (خاصکر کله چه زمونږ خدمت نهٔ کوي او مونږ ته ضرر راکوي).

(۳) کله به ئې وئیل چه مونږ اهل علم یو او عرب خلك جاهلان دي، دوی له پکار دي چه مونږ ته مالونه راکړي، هر کله چه دوی مونږ ته په خپله خوښه مالونه نهٔ راکوي او په صحیح ځایونو کې مال نهٔ لګوي نو مونږ له حق شته چه د دوی مالونه په پټه او په دوکه او هره طریقه سره وخورو، ددې مثال داسې دې چه یو انسان اسلامي حکومت ته زکاة نهٔ ورکوي نو اسلامي حکومت ئې د هغوی نه په زوره واخلي. او دغه کارونه ددې امت په بدعتیانو کې هم شته چه د عوامو مسلمانانو مالونه په حیلو او په بدعاتو سره خوري او ډیر خلك د اهل توحید والسنة مالونه پټوي او کتابونه د هغوی د مدرسو نه پټوي او دا حلال ګڼړي. وائي چه د وهابیانو مال دې، خوړل ئې پکار دي. بعض خلك د عربو مؤسسو نه مالونه پټوي او وائي چه د عربو مال دې خوړل ئې پکار دي، دا بعینه د یهودو

صفت دے (لَتَتَّبِعُنَّ سُنَنَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ) (صحيحين)

| بَلٰى مَنْ أَوْفٰى بِعَهْدِهٖ وَاتَّقٰى فَإِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۷۶﴾ |
| --- |
| بلکه چا چه پوره والے وکړو په خپل لوظ او یریدو د الله نه نو الله مینه کوی د متقیانو سره. |

**تفسیر** : بَلٰى : اثبات د هغه نفی وی چه مخکی ذکر شوی وی یا نفی وی د هغه اثبات چه مخکی ذکر شوے وی. نو دلته معنیٰ دا ده : (بَلٰى عَلَيْهِمْ سَبِيْلٌ): آؤ په دوی باندے ملامتیا شته. لیکن کومو خلکو کی چه تقویٰ وی او د الله تعالیٰ په وعدو باندے پابند وی نو الله تعالیٰ د هغوی سره مینه کوی که هغه هر څوك وی.

پدے کی اشاره ده چه په تورات او انجیل او ټولو ادیانو کی الله تعالیٰ ظلم او د پردی مال بی اجازته خوراك حرام کړیدے او د پیغمبرانو په ذریعه ئے د خلکو نه ددے په باره کی عهد اخستے دے نو په څه دلیل دوی ذکر شوے افتراء جوړوی؟!.

بِعَهْدِهٖ : (۱) دا ضمیر یا الله تعالیٰ ته راجع دے یعنی چا چه د الله تعالیٰ په لوظ باندے پوره والے وکړو چه په هغه باندے ئے ایمان راوړو او د هغه رسول ئے ومنلو او د الله تعالیٰ نه ویریدو نیك عمل ئے وکړو. دا ددے دپاره وائی چه که تاسو د الله تعالیٰ دوستان جوړیدل غواړئ او د الله تعالیٰ ملامتیا درباندے رانشی نو وفاء بالعهد وکړئ او تقویٰ ځان کی راولئ؛ که دا نهٔ وی نو د الله تعالیٰ دوستان نشئ جوړیدے. عهد ئے ذکر کړو ځکه چه د یهودیانو نه دا وعده اخستے شوے وه چه دوی به په الله تعالیٰ باندے حقه خبره کوی، او د الله تعالیٰ کتاب به خلکو ته بیانوی لکه دا خبره سورت اعراف (۱٦۹) آیت کی ذکر ده. او یهودیانو کی د وعدے پابندی نهٔ وه نو پدے کی هغوی ته دعوت ورکوی.

(۲) یا ضمیر (مَنْ) ته راجع دے یعنی چا چه پوره والے وکړو په هغه لوظ چه دهٔ کړے وی او د هغے د ماتولو نه ویریدو نو دا متقی دے او الله تعالیٰ د متقیانو سره مینه کوی.

| إِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا أُولٰٓئِكَ |
| --- |
| یقیناً هغه کسان چه اخلی په وعدو د الله باندے او په قسمونو خپلو قیمت لږ دا کسان |
| لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ وَلَا |
| نشته هیڅ برخه دوی لره په آخرت کی او خبرے به نکوی ددوی سره الله تعالیٰ او نهٔ |

يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٧﴾

به كورى دوى ته په ورځ د قيامت او نه به پاكوى دوى لره او دوى لره عذاب دردناك دے۔

**تفسير** : عنوان د آيت : اَلتَّخْوِيْفُ الشَّدِيْدُ لِنَاقِضِي الْعَهْدِ وَالْمُشْتَرِيْنَ بِآيَاتِ اللّٰهِ تعالىٰ۔

پدے آيت كى د لوظ ماتونكو او د الله په آيتونو باندے دنيا غوره كونكو ته سخت تخويف (يره) بيانوى، يعنى څوك چه د الله تعالىٰ په آيتونو او په خپلو قسمونو او د الله تعالىٰ سره په كړى لوظ باندے دنيا غوره كوى او دغه لوظ او قسمونه ماتوى نو دوى له ډيره لويه سزا تياره ده۔

**ربط** : پدے آيت كى د يهوديانو د ذكر شوى افتراء رد كوى۔

ددے آيت مصداقات : (۱) دا آيت اول د يهوديانو په باره كى نازل وو، بيا روستو دے امت ته هم شامل دے۔ لكه په حديث د بخاريؒ كى راغلى دى شقيق بن سلمةؒ فرمائى: مونږ ته اشعث بن قيس ﷛ راووتو او وے فرمايل : تاسو ته ابو عبد الرحمن (عبد الله بن مسعود ﷛) كومه خبره بيانوى؟ مونږ ورته هغه بيان كړه نو وے فرمايل : خامخا دا آيت زما په باره كى نازل دے چه زما او د يهودى ترمينځ په زمكه جګړه راغله (چه دا زمكه په حضرموت كى وه) نو هغه پرے زما نه منكر شو نو مونږ رسول الله ﷺ ته فيصله راوړله نو نبى كريم ﷺ وفرمايل: ته به دوه ګواهان راولے يا به درته هغه قسم وكړى۔ اشعث (﷛) وائى : ما وويل : إِذًا يَحْلِفُ وَلَا يُبَالِىْ) دا خو به اوس قسم وكړى او (په ناحقه قسم باندے) پروا نۀ لرى، (نو زما مال به يوسى)۔ نو نبى كريم ﷺ وفرمايل: چا چه په يو شى باندے قسم وخوړ چه په هغے سره څان د پردى مال مستحق ګرزوى او دے پدے قسم كى دروغژن وى نو د الله تعالىٰ سره به په داسے حال كى ملاؤ شى چه هغه پرے غصه وى بيا الله تعالىٰ ددے په تصديق كى دا آيت نازل كړو۔ ان الذين يشترون الآية۔ (صحيح البخارى : ۲٤۱۷) يعنى دا آيت په قرآن كريم كى نازل وو خو زما واقعه د هغے سره برابره شوه۔ د سلفو دا طريقه وه چه كله كله به ئے په يو مصداق باندے د شان نزول اطلاق كولو۔

دغه شان سزاګانى د نورو خلكو هم شته

پدے آيت كى چه كومى سزاګانى ذكر دى دغسى سزاګانى د نورو خلكو دپاره هم په احاديثو كى راغلى دى۔ نبى ﷺ فرمائى : درے قسمه خلك دى چه الله تعالىٰ به ورسره خبرے نۀ كوى او نۀ به ورته ګورى او نۀ به ئے پاكوى او د هغوى دپاره به دردناك عذاب وى۔

ابو ذر ﷺ وفرمایل: دوی خو نامراده او تاوانیان شو دا څوك دی ؟ ای د الله رسوله! وې فرمایل: (۱) اَلْمُسْبِلُ (خپل لنګ، پرتوګ) د ګیټونه خکته کونکې۔ (۲) اَلْمَنَّانُ۔ (زبادنه کونکې) (۳) وَالْمُنَفِّقُ سِلْعَتَهُ بِالْحَلِفِ الْكَاذِبِ۔ (په دروغژن قسم سره خپله مبیعه (سودا) مشهوروونکې (صحیح مسلم:۳۰٦)۔ (٤) رَجُلٌ حَلَفَ عَلٰی سِلْعَةٍ لَقَدْ أُعْطِيَ بِهَا أَكْثَرَ مِمَّا أُعْطِيَ وَهُوَ كَاذِبٌ۔ بل هغه سړی چه په یوه سودا باندې قسم وکړی چه ما ته بل سړی ستا نه زیات مال راکولو او هغه ته مې نهٔ ده ورکړې او دې پدې خبره کې دروغژن وی۔

(٥) وَرَجُلٌ حَلَفَ عَلٰی يَمِينٍ كَاذِبَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ امْرِئٍ مُسْلِمٍ)۔ بل هغه سړی چه د مازیګر نه روستو (غوره وخت کې) دروغژن قسم وکړی چه پدې سره د یو مسلمان سړی مال پریکوی)۔ (٦) وَرَجُلٌ مَنَعَ فَضْلَ مَاءٍ۔ بل هغه سړی چه زیاتی اُوبه د مسلمان نه منع کړی۔ نو الله تعالیٰ به ورته د قیامت په ورځ فرمائی: چه نن ورځ به زهٔ تا نه خپل فضل منع کوم لکه څنګه چه تا په دنیا کې زیاتی اُوبه منع کړې وې چه ستا لاسونو نهٔ وې پیدا کړې۔ (صحیح البخاری: ٧٤٤٦)۔ (٧) شَيْخٌ زَانٍ (زناکار بوډا) (٨) وَمَلِكٌ كَذَّابٌ۔ (دروغژن بادشاه) څکه چه د بادشاه دروغو ته هیڅ ضرورت نشته۔ (٩) وَعَائِلٌ مُسْتَكْبِرٌ۔ (غریب متکبر)۔ څکه چه د غریب سړی د تکبر سره څه کار دې؟!۔ (صحیح مسلم: ٣٠٩)

(١٠) رَجُلٌ بَايَعَ إِمَامًا فَإِنْ أَعْطَاهُ وَفَى لَهُ وَإِنْ لَمْ يُعْطِهِ لَمْ يَفِ لَهُ)

بل هغه سړی چه د یو امام (خلیفه) سره بیعت وکړی که هغه ورته څه ورکوی نو دې ورسره وفاداري کوی او که څه نهٔ ورکوی نو وفاداري نهٔ کوی۔ (سنن ابی داود: ٣٤٧٦)۔

بِعَهْدِ اللهِ وَأَيْمَانِهِم : لوظ او قسم کله په یو ځل باندې هم وی او کله بیل بیل هم وی نو د یهودو سره چه اول ولګی نو داسې به وی چه (١) اول د دوی نه الله تعالیٰ لوظ اخستې وو په دوه خبرو: یو د تورات د بیانولو ﴿لَتُبَيِّنُنَّهُ لِلنَّاسِ﴾ دویم: په محمد رسول الله ﷺ باندې د ایمان راوړلو او د هغه د مدد کولو۔ ﴿لَتُؤْمِنُنَّ بِهِ وَلَتَنْصُرُنَّهُ﴾۔ او بیا په هغه لوظ کې د دوی نه قسم هم اخستې شوې وو۔ نو دلته د (أیمانهم) نه مراد هغه قسمونه دی (الَّتِي عَقَدُوْهَا بِالْتِزَامِ مُتَابَعَةِ الْحَقِّ) یعنې دوی ددې لوظ سره دا قسمونه کړی وو چه مونږ به خامخا د حق تابعداري کوو او د روستنی پیغمبر تابعدار به جوړیږو۔ نو دوی وعده هم کړې وه او بیا په دغه وعده کې ئې قسم هم کړې وو لکه دا د عربو عادت وو چه کله به ئې وعده کوله نو د زیات تاکید دپاره به ئې د هغې سره قسم هم کولو۔ نو معنیٰ دا شوه: هغه کسان چه اخلی په لوظ د الله تعالیٰ چه د الله تعالیٰ سره ئې د تورات د بیانولو او د هغه په رسولانو باندې د

ایمان راوړلو او د هغوی د مدد کولو لوظ کړے وو او بیا ئے په هغے باندے خپل قسمونه هم کړی وو او د هغے په بدله کی دنیا غوره کوی نو د دوی دپاره دغه سزاګانی دی۔ نو یهودو دغه لوظ مات کړو او خپل قسمونه ئے هم مات کړل او د رسول الله ﷺ صفات ئے پټ کړل او په هغه باندے ئے ایمان رانه وړو، دا ټول د دنیا د لالچ او د معمولی فائدو دپاره۔

(۲) یا د (ایمانهم) نه مراد خپل مینځ کی چه دوی کوم قسمونه د یو بل سره کوی او بیا هغه ماتوی نو د هغوی دپاره هم دا سزا ده۔ نو دوی دوه کاره کوی یو د الله تعالیٰ لوظ ماتوی او بل د انسانانو سره چه کوم قسمونه وکړی په هغے هم دنیا غوره کوی۔

د عهد د ماتولو سزاګانی

د لوظ د ماتولو سزا دومره سخته ده چه دومره د بلے هیڅ ګناه نهٔ ده خودلے شوے چه تفصیل ئے دا دے:

لَا خَلَاقَ لَهُمْ: په آخرت کی به ئے هیڅ برخه نهٔ وی لکه الله تعالیٰ به داسے مجرمانو ته په قیامت کی وائی: ﴿أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِي حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا﴾ (احقاف: ۲۰) تاسو خپلے مزے په خپل خسیس ژوند کی تیری کړیدی۔

وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللهُ: یعنی د رحمت او د محبت خبرے به هم ورسره الله تعالیٰ نهٔ کوی او ورباندے غصه به وی۔

وَلَا يَنظُرُ إِلَيْهِمْ: دوی ته به هیڅ توجه نهٔ ورکوی او د رحمت په نظر به ورته نهٔ ګوری، د الله تعالیٰ د نظر نه به غورزیدلی وی۔

وَلَا يُزَكِّيهِمْ: دوی به د ګناه نه په عفو سره نهٔ پاکوی او د نیکانو په صف کی به ئے نهٔ ودروی۔ دارنګه په دنیا کی به ئے پاك نکړی په توبه او نیك عمل۔

عَذَابٌ أَلِيمٌ: دردناك عذاب به ورکوی ځکه چه دوی په خپل لوظ ماتولو سره اسلام او مسلمانانو ته درد رسولے وو۔

**فوائد الآیة**: (۱) د لوظ د ماتولو سزا ډیره درنه مقرر شوه ځکه چه ددے مفاسد او ضررونه ډیر زیات او قوی دی، د انسانانو ټول ژوند په ورکړه راکړه په لوظونو باندے ولاړ دی کله چه په عقد او لوظ کی خیانت وکړے شی نو په یوه معامله باندے هم سړے نشی مطمئن کیدلے۔

(۲) دا کلمات یو طرفته د الله تعالیٰ په غضب باندے دلالت کوی او بل طرفته د لوظ ماتونکو په توهین او بی عزتی باندے او د الله تعالیٰ غضب او د دوی توهین په کنایاتو

سره وکړے شو ځکه چه کنایه د صریح نه ډیره بلیغه ده او ډیر تاثیر لري. (فی ظلال القرآن ۱/۴۱۸)

(۳) دا سزاګانې اګرکه د کافرانو لوظ ماتونکو په باره کې دي چه هغوی به په اُور کې همیشه دپاره وي او که یو مسلمان کې د لوظ ماتول راغلل نو د هغه دپاره هم ډیره لویه سزا ده، اګرکه په اُور کې به همیشه دپاره پاتې نهٔ وي لکه دا د اهل سنة والجماعة عقیده ده۔

(٤) په اسلام کې د لوظ ډیره سخته پابندي راغلې ده، ابراهیم نخعيؔ فرمائي: كَانُوْا يَضْرِبُوْنَنَا عَلَى الشَّهَادَةِ وَالْعَهْدِ (بخاری۲٦٥۲)۔

مونږ به سلفو (مشرانو) په ګواهي او لوظ باندے وهلو۔ (چه تاسو چرته ګواهي او لوظ مات نکړئ، او لوظ مهٔ کوئ چه درنه مات نشي)۔

| وَإِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيْقًا يَّلْوٗنَ اَلْسِنَتَهُمْ بِالْكِتَابِ لِتَحْسَبُوْهُ |
| --- |
| او بعضے د اهل کتابو نه یوه ډله ده چه تاووي ژبے په کتاب (د الله) دے دپاره چه ته پرے ګمان وکړے |
| مِنَ الْكِتَابِ وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتَابِ وَيَقُوْلُوْنَ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللهِ |
| د کتاب نه او نهٔ دے هغه د کتاب د الله نه او وائي دوی دا د طرفه د الله نه دے |
| وَمَا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللهِ وَيَقُوْلُوْنَ عَلَى اللهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿٧٨﴾ |
| حال دا چه هغه نهٔ دے د طرفه د الله نه او وائي دوی په الله باندے دروغ او دوی پوهیږي۔ |

**تفسیر** : ربط : (۱) مخکې آیتونو کې د اهل کتابو دوه ډلے ذکر شوے، امانتګر او خیانتګر او پدے کې دریمه ډله ذکر ده چه هغه تحریف کونکے ډله ده۔

(۲) مخکې د مالونو خیانت کونکي اهل کتاب بیان شو اوس دلته د الله تعالیٰ د کتاب خیانتګر بیانوي۔ دا هغه خلك دي چه حرام خورے ډلے ته لاره همواره وي او د الله تعالیٰ په کتاب کې ورته تحریف کوي او په الله تعالیٰ دروغ جوړوي۔

(۳) یا مخکښې د خیانت، نقض العهد او اشتراء بالآیات قباحت بیان شو اُوس د تحریف فی آیات الله قباحت بیانوي چه دا هم د دنیا دپاره کوي یا دا د مخکې آیت تفصیل دے۔

اهل کتابو د الله تعالیٰ په کتاب (تورات) کې دوه قسمه تحریفونه کړي وو، الفاظ به ئے هم بدلول چه دیته تحریف لفظي وائي او معنیٰ ګانې به ئے هم بدلولې چه دیته تحریف

معنوي وائي، خلکو ته به ئې غلط مطلب بیانولو۔ نو دوی څو مره لوی مجرمان وو چه الله تعالیٰ یو کتاب د هدایت دپاره راولیږی او یو بنده هغه بدل کړی او پرې ګمراه شي او دنیا پرې غوره کړی دغه مرض د یهودیانو وو۔

لي اللسان څه ته وائي:

ژبه کږه ول، او اړول۔ لکه یو شے به ضروری وی او هغه ئې په خوله کی په ژبه باندے غیر ضروری او معمولی ښکاره کړی، یو شے به ضروری نۀ وی هغه به ډیر ضروری کړی۔ یو شے به ښه وی او هغه به بد ښکاره کړی، یعنی خبره په خپل حقیقت باندے نۀ کول۔ یعنی د اهل کتابو یوه ډله په داسے لهجه او داسے صوت (آواز) باندے خپل کلام ادا کوی چه تاسو ګمان وکړئ چه دا رشتیا د الله تعالیٰ کلام دے خو په حقیقت کی هغسے نۀ وی۔

## د تحریف صورتونه

اهل کتابو په مختلفو شکلونو سره د الله تعالیٰ په کتاب کی تحریف کړے وو:

(۱) د الله تعالیٰ په کتاب کی به ئې د ځان نه الفاظ زیاتول لکه مخکی تیر شول دوی به وئیل: مونږ باندے د امیانو په مالونو کی د ملامتیا هیڅ لاره نشته۔ (آلعمران: ۷۵)

(۲) په نقصان او کتمان سره تحریف کول لکه آل عمران: (۱۸۷) کی ورته اشاره شویده۔

(۳) په تبدیل سره تحریف۔ لکه د نبی کریم ﷺ (نبی آخر زمان) په صفت کی ئې د درمیانه قد او تورو سترګو په ځای لوړ قد او شنو سترګو باندے تبدیلی کړے وه۔

(٤) د زنا د رجم په مسئله کی ئې تحریف کړے وو۔ (٥) د خالی په ورځ د ماهیانو نیولو په باره کی ئې په تاویل سره تحریف کړے وو۔

(٦) حافظ ابن کثیرؒ د دوی دا تحریف هم لیکلے چه د اهل کتابو ځینو علماؤ به دوه کتابونه ځان سره ساتل یو اصلی کتاب چه په هغے کی به تحریف نۀ وو شوے او بل تحریف شوے کتاب۔ کله به چه د حق خاوند رشوت ورکړو نو اصلی کتاب ته به ئې لاس کړو او د هغے نه به ئې حکم راویستو او که باطل پرست به رشوت ورکړو نو په ډیر احترام سره به ئې خود ساخته کتاب راواخستو تا به ویل چه د الله تعالیٰ اصلی کتاب همدا دے او د هغے نه به ئې ورته مسئله راویسته۔ (ابن کثیر ۱/۱۱۵)

(۷) کله د دوی تحریف په آواز او لهجه سره وو چه تحریف شوے کتاب به ئې په داسے آواز او لهجه سره ولوستو چه آوریدونکی به ګمان وکړو چه همدا د الله تعالیٰ کتاب دے لکه

په همدے آیت کی ورته په (یَلْوُوْنَ اَلْسِنَتَهُمْ بِالْکِتٰبِ) سره اشاره شویده. ددے نه دا هم معلومیږی چه اهل کتابو به د خپل کتاب د لوستو دپاره خاصه لهجه لرله لکه چه مسلمانان ئے د قرآن دپاره لری.

ددے امت د مجرمانو د لی اللسان صورتونه

پدے امت کی هم ډیر مبتدعین د خپل یو بدعت د ثابتولو دپاره یو آیت یا یو حدیث پیش کړی چه دا هم په لی اللسان کی داخلیږی لکه د تقلید د ثابتولو دپاره به وائی : ﴿ فَاسْئَلُوْا أَهْلَ الذِّکْرِ﴾ راغلے دے حال دا چه پدے کی رد دے په تقلید باندے او حکم دے په تحقیق باندے چه د پوهه خلکو نه د الله تعالیٰ او د رسول الله ﷺ حکم معلوم کړئ. او د دعا بعد السنن والفرائض بهیئة الاجتماع دپاره به درته آیت پیش کړی : ﴿ وَاِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ وَاِلٰی رَبِّکَ فَارْغَبْ﴾ دا هم د تحریف شکل دے چه د آیت دغه مطلب نهٔ دے او دوی ترے دغه مطلب اخلی. او ﴿ وَاُنَبِّئُکُمْ بِمَا تَأْکُلُوْنَ وَمَا تَدَّخِرُوْنَ فِیْ بُیُوْتِکُمْ﴾ نه علم غیب ثابتوی چه د الله تعالیٰ نه علاوه نور مخلوق هم په غیبو پوهیږی ځکه چه عیسیٰ علیه السلام وئیلی وو چه زهٔ به تاسو ته ستاسو د خوراك او تاسو چه څه کورونو کی ساتئ خبر درکوم. حال دا چه دا د عیسیٰ علیه السلام معجزه وه نو عوام خلك پدے دوکه کړی هغوی وائی آیت ئے پیش کړو، مینځ کی ئے غلط مطلب اخستے وی. بعض مشرکان وائی : د غیر الله نه مدد غوښتل جائز دی ځکه ﴿ فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِیْ مِنْ شِیْعَتِهٖ﴾ او ﴿ فَاَعِیْنُوْنِیْ بِقُوَّةٍ﴾ راغلے دے. دا هم تحریف معنوی دے. بعض خلك معلوم صحیح حدیثونه قصداً ضعیف کوی او د ضعیف حدیثونو په باره کی د ځان نه حوالے ورکوی چه دا بخاری او مسلم راوړیدی او حال دا چه په هغے کی نهٔ وی او دا کار به په قصد سره کوی نو دا هم تحریف او دروغ دی.

دارنګه یوه کمزورے مسئله به بیانه کړی بیا به وائی پدے باندے د امت اجماع ده، دارنګه تولے مزخرفے خبرے په لی اللسان کی داخل دی لکه په سورة الانعام کی به راشی ان شاء الله.

| مَا کَانَ لِبَشَرٍ اَنْ یُّؤْتِیَهُ اللّٰهُ الْکِتٰبَ وَالْحُکْمَ وَالنُّبُوَّةَ |
| --- |
| نهٔ دی مناسب هیڅ انسان لره چه ورکړے وی هغه ته الله کتاب او پوهه د دین او پیغمبری |
| ثُمَّ یَقُوْلَ لِلنَّاسِ کُوْنُوْا عِبَادًا لِّیْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰکِنْ کُوْنُوْا رَبّٰنِیّٖنَ |
| بیا وائی خلکو ته شئ تاسو عبادت کونکی زما سوا د الله نه او لیکن شئ تاسو الله والا |

بِمَا كُنتُمْ تُعَلِّمُوْنَ الْكِتَابَ وَبِمَا كُنتُمْ تَدْرُسُوْنَ ﴿٧٩﴾

پدے وجه چه تاسو خودنه کوئ (خلکو ته) د کتاب د الله او په سبب ددے چه تاسو په خپله ئے لولئ.

**تفسير** : مناسبت : پدے کی هم د اهل کتابو په بله خبره باندے رد ذکر کیږی چه دوی د انبیاؤ (علیهم السلام) په هدایتونو کی هم تحریف کړیدے.

ددے تعلق د اول د سورت سره هم دے (هو الذی انزل علیك الکتاب منه آیات محکمات) چه دوی وائی په انجیل کی عیسیٰ علیه السلام ته خوی وئیل شویدے نو جواب دا دے چه هغه متشابه لفظ دے چه صحیح او غلط معنیٰ لری نو اهل حق ترے صحیح معنیٰ اخلی چه معنیٰ ئے محبوب ده، ځکه چه عیسیٰ علیه السلام هیڅکله خپل عبادت ته دعوت نهٔ ورکوی.

د آیت عنوان دے : رسول چا ته په شرك حکم نهٔ کوی بلکه هغه په اخلاص باندے حکم کوی، ځکه چه څوك بل ته د الله تعالیٰ کتاب زده کوی او خپله هم د الله تعالیٰ کتاب لولی نو د هغه د شان سره دا لائق نهٔ ده چه هغه بل ته د شرك حکم وکړی.

## شان نزول

(۱) د امام ضحاك نه نقل دی چه د نجران نصاراؤ نبی کریم ﷺ ته ویلی وو : (أَمَرَنَا عِيْسىٰ عَلَيْهِ السَّلَامُ بِأَنْ نَعْبُدَهُ) عیسیٰ ؑ مونږ ته دا حکم کړے وو چه مونږ د هغه بندگی وکړو، دا هغه ته د تقرب سبب دے نو الله تعالیٰ دا آیت د هغوی په رد کی راولیږلو چه یو بنده له چه الله تعالیٰ نبی وکرزوی او کتاب او پیغمبری ورکړی د هغه د شان سره دا هیڅکله مناسب نهٔ ده چه هغه خلکو ته دا حکم وکړی چه زما بندگی وکړئ بلکه هغه همیشه الله تعالیٰ ته دعوت ورکوی نهٔ غیر الله ته او نهٔ خپل ځان ته نو دا تاسو په عیسیٰ ؑ باندے دروغ وایئ. (۲) د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل شویدی چه د نجران نه یهودیان او نصاریٰ نبی کریم ﷺ ته راجمع شو او د بحث مباحثے نه روستو نبی کریم ﷺ هغوی ته د اسلام دعوت ورکړو نو ابورافع القرظی یهودی پکی ووئیل : (أَتُرِيْدُ يَا مُحَمَّدُ أَنْ نَعْبُدَكَ كَمَا تَعْبُدُ النَّصَارىٰ عِيْسىٰ ابْنَ مَرْيَمَ؟) . اے محمده ! (ﷺ) تهٔ غواړے چه مونږ ستا بندگی وکړو لکه څنګه چه نصاریٰ د عیسیٰ ابن مریم (ؑ) بندگی کوی. او د نصاراؤ نه یو تن چه الرئیس ئے نوم وو ووئیل : أَوَذَاكَ تُرِيْدُ مِنَّا يَا مُحَمَّدُ، وَإِلَيْهِ تَدْعُوْنَا؟) اے محمده ! آیا تهٔ مونږ نه دا غواړے او دے ته مونږ رابلے؟ نو نبی کریم ﷺ هغوی ته په

جواب کی وویل : مَعَاذَ اللّٰهِ ! اَنْ نَّعْبُدَ غَيْرَ اللّٰهِ اَوْ اَنْ نَّأْمُرَ بِعِبَادَةِ غَيْرِهٖ، مَا بِذٰلِكَ بَعَثَنِيْ وَلَا بِذٰلِكَ اَمَرَنِيْ) (زهٔ په الله تعالیٰ باندے ددے خبرے نه پناه غواړم چه یا پخپله د غیر الله عبادت وکړم او یا بل چا ته په همدے خبره باندے امر وکړم، زهٔ الله تعالیٰ نهٔ ددے خبرے دپاره رالیږلے یم او نهٔ ئے راته پرے امر کړیدے) نو الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ د خبرے تصدیق په دے آیت سره وکړو۔ (ابن کثیر، الدر المنثور والطبری)

(۳) علامه سیوطیؒ په الدر المنثور کی دا هم ذکر کړیدی چه بعض صحابه کرامو رسول الله ﷺ ته وفرمایل: موږ تا باندے داسے سلام اچوو لکه څنګه چه موږ په یو بل باندے سلام اچوو آیا نو تا ته سجده ونکړو؟ نبی کریم ﷺ وفرمایل: نهٔ،

(وَلٰكِنْ اَكْرِمُوْا نَبِيَّكُمْ وَاعْرِفُوا الْحَقَّ لِاَهْلِهٖ فَاِنَّهٗ لَا يَنْبَغِيْ اَنْ يُّسْجَدَ لِاَحَدٍ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ)

لیکن د خپل نبی اکرام کوئ او د حقدارو حق وپیژنئ (د عبادت حقدار صرف الله تعالیٰ دے) څکه چه دا جائز نهٔ دی چه د الله تعالیٰ نه سوئ بل چا ته سجده وکړے شی۔ او په روایت د معاذ بن جبلؓ کی داسے راغلی دی چه هغه وفرمایل: ما یهود او نصاریٰ ولیدل چه خپلو مشرانو ته سجده کوی نو ما وویل چه رسول الله ﷺ ددے ډیر لائق دے چه موږ ورته سجده وکړو، نو نبی کریم ﷺ وفرمایل: نهٔ، که چرته غیر الله ته سجده جائز وے نو ما به ښځے ته حکم کړے وے چه خپل خاوند ته سجده وکړی څکه چه د هغه په ښځه ډیر حق دے۔ نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو۔ (الدر المنثور۲/۲۵۰)۔

دا ټول شان نزولونه کیدلے شی لیکن بحث د اهل کتابو شروع دے نو د ابن عباسؓ قول ډیر ظاهر دے او د آیت حکم عام دے۔

مَا كَانَ : دا لفظ په قرآن کی د ډیرو معنو دپاره استعمالیږی :

(۱) کله د نفی د وجود دپاره وی یعنی دا شے موجود نهٔ دے۔ لکه ﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ﴾: (البقرة:۱۴۳) یعنی دا خبره د سره موجوده نهٔ ده۔

(۲) کله د نفی د امکان دپاره وی یعنی کیدے نشی۔ لکه سورة القصص آیت (۶۸) کی رازی: ﴿مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ﴾ یعنی د بندګانو اختیار ممکن نهٔ دے۔ یا سورة النمل آیت (۶۰) کی دی: ﴿مَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُنْبِتُوْا شَجَرَهَا﴾ یعنی تاسو له دا ممکن نهٔ ده چه تاسو ونے رازرغون کړئ۔

(۳) مَا كَانَ په معنیٰ د مَا يَنْبَغِيْ سره وی۔ یعنی مناسب نهٔ دی، لکه سورة توبه (۱۱۰) کی دی: ﴿مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ﴾ ۔

(٤) كله په معنیٰ د (لَايَجُوزُ) وي۔ یعنی جائز نهٔ دی دلته ئې دا معنیٰ مراد ده۔

لِبَشَرٍ : انبیاء علیهم السلام بشر دي یعنی نبي له دا جائز نهٔ دي نو غیر نبي له به په طریق اولیٰ دا خبره جائز نهٔ وي چه خپل عبادت ته خلك راوغواړي۔

اَنْ يُّؤْتِيَهُ اللّٰهُ الْكِتٰبَ : یعنی کوم بنده ته چه الله تعالیٰ خپل کتاب ورکړي او صحیح عقل او پوهه ورکړي او د خلکو ترمینځ د فیصلو کولو علم یا د شریعتونو د رازونو علم ورکړي هغوي دپاره دا جائز نهٔ دي چه خلکو ته د غیر الله د عبادت دعوت ورکړي پاتې لا دا چه نبوت هم ورکړي نو نبي به څنګه خلکو ته د غیر الله د عبادت دعوت ورکړي بلکه نبي خو ددې دپاره رالیږلے شوي وي چه خلك د غیر الله د بندګئ نه منع کړي او یواځې د الله بندګئ ته ئې تیار کړي نو اے اهل کتابو ! تاسو په عیسیٰ ﷺ هم دروغ تړئ او پدې نبي محمد رسول الله ﷺ باندې هم تهمت تړئ چه دې تاسو د خپل ځان عبادت ته درغواړي۔

وَالْحُكْمَ : (١) د فیصلو علم (٢) یا د شریعت د رازونو علم ته وائي۔ (٣) حکمت ته هم وائي، دلته ټولې معاني صحیح دي۔

عِبَادًا لِّيْ : عباد جمع د عَبْدٌ ده د عبادت نه اخستې شویدې یعنی چه داسې ووائي چه زما بندګان شئ او بل عبد په معنیٰ د غلام سره راځي د هغې جمع عَبِید ده هغه دلته نهٔ دې مراد۔ نبي کریم ﷺ به د توحید د جانب ډیر احترام ساتلو، که په کومه خبره یا کار کې به د توحید نقصان راتللو نو د هغې رد به ئې کولو لکه نبي کریم ﷺ به داسې دعا کوله : اَللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْ قَبْرِيْ وَثَنًا يُعْبَدُ۔ اے الله ! زما د قبر نه بت مهٔ جوړوه چه خلك د هغې بندګي کوي۔

صحابه کرامو یو ځل وفرمایل: اَنْتَ سَيِّدُنَا۔ تهٔ زمونږ سید ئې۔ نبي کریم ﷺ وفرمایل: اَلسَّيِّدُ هُوَ اللّٰهُ)۔ سید خو الله تعالیٰ دے۔ بیا صحابه کرامو وفرمایل: اَنْتَ اَفْضَلُنَا فَضْلًا وَّاَعْظَمُنَا طَوْلًا ۔ تهٔ په مونږ کې غوره احسان والا ئې او لوی نعمت ورکونکے ئې۔ نبي کریم ﷺ وفرمایل: قُوْلُوْا بِقَوْلِكُمْ اَوْ بِبَعْضِ قَوْلِكُمْ وَلَا يَسْتَجْرِيَنَّكُمُ الشَّيْطَانُ)۔ یعنی خپله خبره کوئ او د خپل دین والو په شان خبره کوئ او شیطان دې په تاسو غلبه ونکړي چه د هغه وکیلان جوړ شئ او د شیطان په ژبه خبرې کوئ۔

مقصد دا چه مشرکانو به خپلو مشرانو او قائدینو ته سادات ویل نو نبي کریم ﷺ وفرمایل زهٔ د هغوی په شان نهٔ یم حقیقت کې سرداري خو د الله تعالیٰ ده بلکه ما ته هغه نوم وایئ کوم چه ستاسو په دین کې ما ته ویل شویدې چه هغه نبي او رسول دې۔

او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي : لَا تُطْرُوْنِيْ كَمَا اَطْرَتِ النَّصَارٰى عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ ]۔ زما داسې

اوږده صفتونه مه کوئ لکه څنګه چه نصاراؤ د عیسیٰ ابن مریم علیهما السلام په صفتونو کی مبالغې کړې وې۔ (بخاري: ٣٤٤٥)

او نبی کریم ﷺ صحابه کرام ددې نه منع کړل چه داسې به نهٔ وایئ چه [مَا شَاءَ اللّٰهُ وَشَاءَ مُحَمَّدٌ]۔ او داسې ئې هم وفرمایل:

عائشې رضی الله عنها ته خپلې مور وفرمایل: نبی کریم ﷺ ته ورپاڅیږه او د هغه حمدونه ووایه! نو هغې وویل: زهٔ نهٔ پاڅیږم او زه حمدونه صرف د الله تعالیٰ وایم۔ نو رسول الله ﷺ ورته څه ونهٔ ویل۔

یو بانډچی قیدی شو نو هغه وویل: اې الله! زهٔ صرف تا ته توبه وباسم نهٔ محمد (ﷺ) ته۔ نو نبی کریم ﷺ وفرمایل: [عَرَفَ الْحَقَّ لِأَهْلِهِ] دهٔ د حقدار دپاره حق وپیژندو۔ (وسنده ضعیف مسند احمد: ١٥٦٢٥ لانقطاع بین الحسن البصری والاسود بن سریع رضی الله عنه)

یو صحابی رضی الله عنه وویل: مونږ الله تعالیٰ تا ته سفارشی جوړه وو۔ نبی کریم ﷺ وفرمایل: الله تعالیٰ بندګانو ته سفارشی نشي جوړیدې، د الله تعالیٰ شان ددې نه ډیر اوچت دې ـــ الخ۔ سنن ابی داود (٤٧٢٨)۔

مفسرین لیکی: چه دا آیت دلیل دې پدې خبره چه عبد الحسین، عبد النبی، عبد الرسول یا ددې په شان نور نومونه (لکه پیر بخش، ګنج بخش، داتا) کوم نه چه شرك پیدا کیږی جائز نهٔ دی لکه احسن الکلام او تفسیر قاسمی کی وګوره۔

وَلٰكِنْ كُوْنُوْا : اَیْ لٰكِنْ يَّقُوْلُ كُوْنُوْا : لیکن هغه خلکو ته دا حکم کوی چه د الله تعالیٰ والا جوړ شئ۔

رَبّٰنِيّٖنَ : ربانیین جمع د ربانی ده، (١) (ی) په کی د نسبت دپاره ده او د رب نه اخستې شویدې یعنی هغه شخص چه رب ته منسوب وی۔ او الف او نون په داسې الفاظو کی زیاتیږی لکه روحی کی روحانی وئیلې شی نو دلته اصل کی ربی دې لیکن الف او نون پکی زیات شو ربانی ترې جوړ شو۔ یعنی الله والا۔

(٢) یا ربانی منسوب دې ربان ته او ربان د ربّ یرب نه صفت مشبه ده په معنیٰ د تربیت کونکی سره دې۔ یعنی شئ تربیت کونکی د خلکو۔ لکه کشتیبان ته ربان السفینة وائی څکه چه هغه هم د کشتئ تربیت کوی۔ نو د ربان معنیٰ ده مُعَلِّمُ الْخَيْرِ یعنی چه خلکو ته د خیر خودنه کوی۔

نو ربانیین هغه خلکو ته وائی چه په هغوی باندې د الله تعالیٰ بندګی او د هغه تعلق

غالبه وي. مطلق علماؤ ته نهٔ وائي بلکه چه علم بالله پرے غالب وي او که چا باندے نور علمونه غالب وي او د الله تعالیٰ د تعلق علم ورسره نهٔ وي نو هغه عالِم او ملا دے لیکن رباني نهٔ دے۔

نو د رباني معنیٰ ده الله والا، او الله والا هغه څوك دے چه د الله تعالیٰ سره ئے تعلق وي، د الله تعالیٰ دپاره ئے خبره وي او د الله تعالیٰ دپاره ئے اخلاص وي او الله تعالیٰ ته خلك رابلي او الله تعالیٰ طرفته تسکورے وهي، د الله بندګي په خلکو کي عامه کوي دا د هغه کار وي۔

د رباني مصداقات

(۱) يو رباني هغه شخص ته وائي: اَلَّذِیْ یَعْمَلُ بِعِلْمِہٖ۔ چه په خپل علم باندے عمل کوي۔ دا سیدنا علي بن ابي طالب رضی الله عنه ته منسوب قول دے۔ (بغویؔ)

(۲) بخاري (۱/ ۵۰ طبعه هندیه) کي راځي: اَلَّذِیْ یُرَبِّی النَّاسَ بِصِغَارِ الْعِلْمِ قَبْلَ کِبَارِہٖ) - چه د خلکو تربیت اول په وړو وړو خبرو سره کوي بیا په غټو غټو سره۔ یعني په تدریج سره د خلکو تربیت کوي۔ یعني اول ساده ساده مسئلے بیانوي، د توحید، د مانځه، د زکاتونو وغیره وغیره بیا د دین رازونه بیانوي۔

(۳) ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي: کُوْنُوْا فُقَهَاءَ، عُلَمَاءَ، حُکَمَاءَ۔ یعني شئ تاسو په دین پوهه، علماء، د حکمت خاوندان۔

(٤) عُلَمَاءَ، حُکَمَاءَ، نُصَحَاءَ لِلّٰهِ فِیْ خَلْقِہٖ) (قاله عطاء) (بغوی) یعني شئ علماء، د حکمت والا، د الله تعالیٰ دپاره د هغه د مخلوق خیرخواهان)

(۵) ځیني وائي: اَلَّذِیْ جَمَعَ مَعَ الْعِلْمِ اَلْبَصَرَ بِالسِّیَاسَةِ) (قرطبی)

رباني هغه شخص دے چه د خپل علم سره سره د خلکو په تربیت او سیاست کي هم بصیرت لري دے دپاره چه د خلکو تربیت د دنیا او د آخرت دپاره وکړي۔ که یو انسان سره علم وي او د خلکو تربیت نشي کولے دا رباني نهٔ دے۔

(٦) کُوْنُوْا مُتَعَبِّدِیْنَ لِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ)۔ شئ خالص د الله تعالیٰ عبادت کونکي۔ (تفسیر مقاتل بن سلیمان)

(۷) تفسیر سراج المنیر لیکي: (هُوَ شَدِیْدُ التَّمَسُّكِ بِدِیْنِ اللّٰهِ وَطَاعَتِہٖ)۔ یعني رباني هغه شخص دے چه د الله تعالیٰ دین او د هغه طاعت او عبادت ئے مضبوط راټینګ کړے وي۔

کله چه عبد الله بن عباس رضی الله عنهما وفات شو نو محمد بن الحنفیه رحمه الله ووئیل چه نن ورځ د دے امت رباني وفات شوید ے (تفسیر القرطبی ٤/ ۱۲۲)

بِمَا كُنتُمْ تُعَلِّمُونَ الْكِتَابَ وَبِمَا كُنتُمْ تَدْرُسُونَ : باء سببيه ده.

د تعلیم او درس څه فرق دے؟

تعلیم بل ته خودنے ته وائی او درس یو شے خپله لوستلو ته وائی نو حاصل دا چه د ربانی جوړیدو دپاره دوه مرکزی سببونه دی (۱) یو دا چه د نورو خلکو د عقائدو او اعمالو اصلاح وکړی او هغوی ته د الله تعالیٰ کتاب وښائی (۲) او دویم دا چه د الهی احکامو په بار بار لوستلو او عملی کولو سره خپل ځان ښائسته کړی نو د هغه عالِم په حال باندے افسوس دے چه د خپل علم په ذریعه خپل ځان ربانی جوړ نکړی او د یهودو د علماؤ په شان نورو ته په نیکیو امر کوی خو خپل ځان ئے هیر کړے وی.

(۲) د تفسیر ځینی علماء وائی : چه (تعلمون الکتاب) کی بل ته تعلیم د معنیٰ مراد دے او (تدرسون) کی د الفاظو لوستل مراد دی. یعنی انبیاء علیهم السلام خو خلکو ته دا دعوت ورکوی چه د الله تعالیٰ د کتاب سره تعلق جوړ کړئ، ددے الفاظ هم زده کړئ او ددے په حقیقت او معنیٰ باندے هم ځانونه پو هه کړئ. (تیسیر العلی القدیر لاختصار تفسیر ابن کثیر لمحمد نسیب الرفاعی ۱/۳٦۷)

**فائده** : دلته دوه الفاظ استعمال شو ځکه چه الله تعالیٰ دوی ته فرمائی چه تاسو به د دوه حالو نه خالی نهٔ یئ یا به معلمین یئ (بل ته به خودنه کوئ) یا به متعلمین یئ د بل نه به خبره زده کوئ نو ستاسو دپاره په دواړو حالتونو کی اخلاص ضروری دے نو انبیاء علیهم السلام خو استاذ او شاګر دواړو ته د اخلاص دعوت ورکوی نهٔ د شرك، نو تاسو د انبیاؤ پورے څنګه تهمتونه تړئ، نو عیسیٰ علیه السلام او محمد رسول الله ﷺ به څنګه د غیر الله عبادت ته دعوت ورکړی.

**فائده** : ضحاك وائی : څوك چه قرآن کریم لولی هغه دپاره دا لائق ده چه دے به په دین باندے پو هه وی.

ضحاك دا هم وائی : لَايَنبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يَّدَعَ حِفْظَ الْقُرْآنِ جُهْدَهُ) قرطبی (۱۲۳/٤).

هیڅ لـه دا پکار نهٔ دی چه د قرآن کریم زده کړه د خپل وس مطابق پریږدی) دے دپاره چه په ربانیین کی داخل شی ځکه چه ربانی هغه عالم ته وائی چه د الله تعالیٰ د کتاب تعلیم، تعلم، درس او تدریس کوی.

| وَلَا يَأْمُرَكُمْ أَنْ تَتَّخِذُوا الْمَلَائِكَةَ وَالنَّبِيِّينَ أَرْبَابًا |
|---|
| او حکم نکوی تاسو ته ددے چه تاسو ونیسئ ملائك او پیغمبران معبودان (شارعان) |
| أَيَأْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ إِذْ أَنْتُمْ مُسْلِمُونَ ﴿٨٠﴾ |
| آیا حکم کوی تاسو ته په کفر کولو پس د هغے نه چه تاسو مسلمانان یئ۔ |

**تفسیر** : اوس تعمیم بعد التخصیص کوی چه دے انبیاؤ علیهم السلام به د خپل ځان عبادت ته دعوت نهٔ وی ورکړے لیکن د ملائکو او د نورو انبیاؤ لکه د ابراهیم ﷺ وغیره عبادت ته به ئے دعوت ورکړے وی چه د دوی عبادت وکړئ نو الله تعالیٰ فرمائی: دا ئے هم نهٔ دی کړی، هغه تاسو ته دا حکم او اجازه نهٔ کوی چه ملائك او پیغمبرانو نه ارباب (معبودان) جوړ کړئ ځکه چه د الله تعالیٰ نه ماسویٰ نور مخلوق نه معبودان جوړول او د غیر الله عبادت ته دعوت ورکول خو کفر او شرك دے، آیا یو نبی چا ته په کفر باندے حکم کوی او اجازه ورکوی پس د هغے نه چه هغه خواری کړی وی او خلك ئے دین اسلام او توحید ته رابللی وی او بیرته هغه خپله خواری په اُوبو لاهو کړی؟!، نبی هیڅکله داسے کار نهٔ کوی۔ بلکه نبی خو ددے دپاره راځی چه د خلکو ایمان په الله تعالیٰ جوړ کړی او هغوی د شرك نه منع کړی او بواځی د الله تعالیٰ بندګیٔ ته خلك راوبلی۔

وَلَا يَأْمُرَكُمْ : امر دلته په معنیٰ د اذن (اجازه) ورکولو سره دے۔

الْمَلَائِكَةَ وَالنَّبِيِّينَ : مشرکینو کی دا مرض موجود وو چه هغوی به د ملائکو او انبیاؤ داسے تعظیم کولو چه د هغوی نه به ئے ارباب (معبودان) جوړول۔ لکه قریشو او صابئینو کی دا مرض وو چه هغوی به ملائکو ته د الله تعالیٰ لونړه وئیلی او یهود او نصاراؤ به عزیر او عیسیٰ علیهما السلام د الله تعالیٰ زامن ګنړل۔

بِالْكُفْرِ : دے نه معلومه شوه چه شرك ته کفر هم وئیلے شی نو هر شرك کفر دے او عکس نشته یعنی هر کفر شرك نهٔ دے۔ او شرك ته کفر ځکه وویل شو چه دے مشرك انسان الله تعالیٰ لره په هغه طریقه ونهٔ منلو په کومه طریقه چه هغه دے، بلکه په بله طریقه ئے ومنلو نو د الله تعالیٰ حقیقت ئے پټ کړو او کفر هم دے ته وائی چه یو بنده د معبود حقیقت پټ کړی۔

**فائده** : دا آیت صریح دلیل دے چه عبادت د بتانو لکه شرك دے دغه شان د ملائکو

عبادت او د انبیاء علیهم السلام عبادت هم شرك دے، د بت عبادت او د قبر عبادت یو شے دے۔

مُسْلِمُوْنَ : اسلام دلته په معنیٰ د اخلاص او توحید سره دے۔

| وَإِذْ أَخَذَ اللّٰهُ مِيثَاقَ النَّبِيِّيْنَ لَمَا آتَيْتُكُمْ |
|---|
| او کله چه واخسته الله تعالیٰ مضبوطه وعده د پیغمبرانو نه چه خامخا هغه چه درکړم تاسو ته |
| مِنْ كِتَابٍ وَّحِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَ كُمْ رَسُوْلٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ |
| څه کتاب او سنت بیا راشی تاسو ته یو رسول تصدیق کونکے وی د هغے چه تاسو سره دی |
| لَتُؤْمِنُنَّ بِهٖ وَلَتَنْصُرُنَّهٗ قَالَ أَأَقْرَرْتُمْ |
| خامخا ایمان به راوړئ په هغه باندے او خامخا مدد به کوئ د هغه، الله وفرمایل آیا تاسو اقرار وکړو |
| وَأَخَذْتُمْ عَلٰى ذٰلِكُمْ إِصْرِيْ قَالُوْا أَقْرَرْنَا قَالَ |
| او واخسته (قبوله کړه) تاسو په دے باندے لوظ زما، وویل دوی مونږ اقرار وکړو، الله وفرمایل |
| فَاشْهَدُوْا وَأَنَا مَعَكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۸۱﴾ فَمَنْ تَوَلّٰى |
| نو گواه شئ او زهٔ تاسو سره د گواهی کونکو نه یم۔ نو څوك چه واوړیدو |
| بَعْدَ ذٰلِكَ فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۸۲﴾ |
| پس ددے وعدے نه نو دغه کسان نافرمان دی۔ |

**تفسیر : مضمون :** ددے نه روستو نور ردونه دی په اهل کتابو باندے او د هغوی شبهات رانقل کوی او په هغے باندے رد کوی پدے اولنی آیت کی بیان دے د صدق الرسول چه دا آخری رسول ﷺ رشتینی دے، الله تعالیٰ د پخوانو پیغمبرانو نه ددهٔ په باره کی لوظ اخستے وودا چه څوك نهٔ منی هغه فاسق دے۔ په (۸۳) آیت کی ترغیب الی الاسلام دے چه راشئ په دین اسلام کی داخل شئ ځکه چه اسلام د ټولو انبیاؤ بلکه د ټولو کائناتو دین دے نو تاسو له ددے تابعداری پکار ده۔ بیا په (۸٤) کی بیان د اسلام او ایمان دے چه ایمان دے ته وائی چه الله تعالیٰ منل او ټول کتابونه او ټول رسولان منل او د الله تعالیٰ دپاره په بندگئ کی اخلاص کول او خپلے عقیدے برابرول۔ په (۸۵) کی زجر او رټنه ده په پریښودو د اسلام چه ددے په پریښودو سره انسان تاوانی کیږی۔ په (۸٦) آیت کی رد دے

په هغه یهودو باندے چه رسول الله ﷺ ئے د بعثت نه مخکی منلو لیکن کله چه مبعوث شو بیا ئے پرے کفر وکړو نو الله تعالیٰ توبیخ او زورنه ورکړے ده په کفر کولو باندے پدے آخری رسول. بیا (۸۹) آیت کی الله تعالیٰ توبی ته ترغیب ورکړیدے چه راشئ توبه وباسئ که بی توبی د دنیا نه لاړئ نو که بالفرض تو له دنیا الله تعالیٰ ته ورکړئ د الله تعالیٰ د عذابونو نه پرے نشئ خلاصیدے. بیا په (۹۲) آیت کی انفاق ته ترغیب ورکړے شویدے د وجه د یو مناسبت نه چه تفصیل ئے روستو رازی.

بیا په (۹۳) (كُلُّ الطَّعَامِ) کی جواب د یوے شبهے د اهل کتابو دے په دوه طریقو سره. بیا په (۹٦) کی د یوے شبهے رد دے چه دوی وئیلی وو زمونږ قبله غوره ده. بیا په درے آیتونو کی اهل کتابو ته رټنی ورکړے شویدی او ترغیب دے ایمان راوړو ته. بیا په دوه آیتونو کی الله تعالیٰ مؤمنان منع کړیدی د اهل کتابو د خبرو منلو نه چه تاسو ته الله تعالیٰ یو مستقل دین رالیږلے دے نو د اهل کتابو خبره مه منئ، د دوی نه متأثره نشئ، دوی تاسو کافر کوی او کفر ستاسو دپاره جائز نه دے ځکه چه قرآن او حدیث موجود دی او بیا د کفر نه د خلاصیدو دوه لارے الله تعالیٰ خودلی دی یو اعتصام بالله او دویم اعتصام بحبل الله.

نو دا عام آیتونه د اهل کتابو د شبهاتو ردونه کوی او د اسلام صحیح تصور او عظمت د هغوی په زړونو کی کینوی.

دارنګه د اهل اسلام په زړونو کی د اسلام عظمت داخلوی.

**ربط** : ۱- په مخکنو آیتونو کی وویل شو چه د شرك دعوت هیڅ بشر سره مناسب نهٔ دے پاتے لا پیغمبران علیهم السلام چه الله تعالیٰ پرے انعام کړیدے اُوس پدے آیت کی فرمائی چه الله تعالیٰ خو د پیغمبرانو نه په خپلو خپلو وختونو کی دا لوظ اخستے وو چه تاسو به خلکو ته توحید بیانوئ او پدے کار کی به د یو بل سره مدد کوئ او د یو بل تائید به کوئ نو هغوی به څنګه شرك ته دعوت ورکړی.

۲- د موضوع د سورت سره مناسبت دا دے چه دلته رد دے په کفر بالرسول چه دا هم کفر بآیات الله دے.

پدے آیت کی درے تفسیرونه دی چه یو پکی راجح دے (۱) اول دا چه دا وعده الله تعالیٰ د پخوانو پیغمبرانو نه اخستے وه چه کله آخری پیغمبر محمد رسول الله ﷺ راشی نو تاسو به په هغه ایمان راوړئ او بیا به د هغه مدد هم کوئ. نو عامو پیغمبرانو د رسول الله ﷺ زمانه لاندے نکړه صرف عیسی علیه السلام به روستو رازی او د محمد رسول الله ﷺ د

دين مدد به كوى. نو پدے كى به تنبيه وى پدے خبره چه اے انبياؤ! تاسو خپلو امتونو (يهود او نصاراؤ) ته د آخرى نبى په باره كى بيان وكړئ چه تاسو به د رسول الله ﷺ دين منئ؛ او پدے كى اشاره ده چه هركله يو نبى د محمد رسول الله ﷺ تابعدارى كوى نو امتيان خو به ئے خامخا كوى لكه پۀ يو حديث كى راغلى دى:

لَوْ كَانَ مُوسٰى حَيًّا مَا وَسِعَهُ إِلَّا اتِّبَاعِيْ). (احمد: ۱۵۱۹۵ و فيه مجالد بن سعيد ضعيف)

(كه بالفرض موسىٰ عليه السلام ژوندے وے نو هغه دپاره به صرف زما تابعدارى جائز وے).

نو معنىٰ د آيت به داسے وى چه كله الله تعالىٰ د پيغمبرانو نه وعده واخسته چه خامخا هغه شے چه زۀ ئے تاسو ته دركړم چه هغه كتاب او نبوت دے يعنى زۀ مو پيغمبران وګرزوم او بيا تاسو ته يو رسول يعنى محمد رسول الله ﷺ راشى نو تاسو به پرے ايمان راوړئ او دلته رسول اګركه نكره ده ليكن مراد ترے نبى كريم ﷺ دے او د عظمت دپاره ئے نكره كړيده بيا دلته وقف دے يعنى كه تاسو د هغه زمانه لاندے كړه نو ايمان به پرے راوړئ او مدد به ئے كوئ.

نو تمامو انبياؤ ددے اقرار اُوكړو او ددے اقرار ګواه جوړ شو او الله تعالىٰ هم ګواهى اُوكړه.
ددے عمومى اقرار او عهدنامے تقاضا خو دا وه چه كله محمد ﷺ دنيا ته تشريف راوړو نو هغه ټول خلق چه د موسىٰ او عيسىٰ عليهما السلام تابعدار وو، په هغوى لازمه وه چه په محمد ﷺ ئے ايمان راوړے وے، پدے وجه اُوس كه څوك د محمد ﷺ اتباع نۀ كوى نو هغه به فاسق او د الله تعالىٰ نافرمان او د هغه نبى دروغجن كونكے وى د كوم د محبت دعوے چه كوى او په كوم باندے چه د ايمان راوړو دعوے كوى. او كه د نجران نصارىٰ هم په عيسىٰ عليه السلام باندے د ايمان دعوىٰ كوى او په محمد ﷺ باندے ايمان نۀ راوړى نو دوى به په خپله دعوىٰ كى دروغجن وى.

(۲) تفسير: د رسول نه مراد هر يو رسول دے نو هر مخكنے رسول پدے مكلف وو چه روستنے رسول به منى لكه مثلاً هارون عليه السلام راغے نو موسىٰ عليه السلام به ئے منى او په بنى اسرائيلو كى ډير پيغمبران په يو يو كلى كى موجود وو نو هر نبى ته وئيل شوى وو چه په بل نبى به ايمان راوړئ او د يو بل تائيد به كوئ. لكه دا د حق پرستو طريقه ده. او بيا خصوصى طور سره د رسول الله ﷺ په باره كى د انبياؤ نه دا وعده اخستے شوے وه.

## د عهدونو تفصيل

بلكه په عالم الذر كى الله تعالىٰ درے قسمه لوظونه اخستى وو (۱) يو د عامو انسانانو نه

چه زما د ربوبیت اقرار به کوئ چه هغې ته د (الست بربکم) وعده وائي لکه دا په سورة اعراف (۱۷۲) کې ذکر ده. (۲) او دویم: د انبیاء کرامو علیهم السلام نه د تبلیغ په باره کې وعده اخستې شوې وه چه دین به بیانوئ. (۳) او دریم: د رسولانو نه د آخري رسول محمد رسول الله ﷺ په باره کې لوظ اخستې شوې وو لکه پدې آیت کریمه کې شو.

نو پدې کې اشاره وه عظمتِ شان د رسول الله ﷺ ته. نو پدې آیت کریمه کې د رسول الله ﷺ لوی شان ذکر دې او پدې کې رد او تعریض دې په یهود او نصاراؤ چه ستاسو د پیغمبرانو نه الله تعالیٰ ددې رسول په باره کې لوظ اخستې وو او دا لوظ ستاسو نه هم اخستې شویدې بیا هم تاسو ددې رسول مخالفت کوئ ځو مره بد بخته یئ.

لَمَا آتَيْتُكُمْ: لام تاکید او (ما) موصوله ده یعنې هغه شې چه د هغې بیان په (من کتاب وحکمة) سره شویدې. د حکمة معنیٰ مخکې سورة بقره آیت (۱۲۹) و(۱۵۱) کې ذکر شویده چه د وحی د رازونو علم ته حکمت وائي.

اِصْرِيْ: اصر: مضبوطې وعدې ته وائي.

بیا رسولانو په آخري رسول محمد رسول الله ﷺ باندې خو ایمان راوړې وو لیکن مدد ئې ورله نهٔ دې کړې ځکه چه هغوی ددهٔ زمانه نهٔ ده موندلې نو دا دلیل دې چه خضر ؑ هم وفات دې ځکه چه هغه د رسول الله ﷺ سره په جنګ بدر او اُحد او نورو غزواتو کې مدد نهٔ دې کړې، که ژوندې وې نو ضرور به ئې ورسره مدد کړې وې، د خضر ؑ په وفات باندې قرآن او حدیث او اجماع د من یعتد به او صحیح عقل دلیل دې. بعض صوفیاء ددهٔ د ژوند قائل دي لکه د مُهایمیؒ د تفسیر (تبصیر الرحمن) په ابتداء کې ذکر شویدي چه دا تفسیر د خضر ؑ نه زده کړې شویدې نو دا خبره بې دلیله ده او په وهمیاتو باندې بناء ده. زیات فصیل به په سورة الکهف کې راځي ان شاء الله تعالیٰ.

فَاشْهَدُوا: (۱) تاسو په خپله خبره ګواه شئ او زه هم تاسو سره پدې خبره ګواهي کوم نو پدې ګواهئ کې به ډیر تاکید مقصود وي. (۲) یا شهادت په معنیٰ د بیان سره دې یعنې دا خبره خپلو امتونو ته بیانه کړئ او زهٔ به ئې هم په خپلو کتابونو کې خلکو ته بیانه کړم.

فَمَنْ تَوَلّٰى: یو نبي باندې چه د بل نبي مدد لازم وي نو په امتیانو به ئې خامخا لازم وي او یو نبي الله تعالیٰ یروي چه که بالفرض تاسو واوړیدئ نو نافرمان به شئ نو پدې کې تعریض دې په امت باندې چه نبي خو د خپل لوظ نه نهٔ اوړي خو که تاسو واوړیدئ نو نافرمان او فاسقان به شئ او یهود او نصاریٰ همدغه شان فاسقان شو چه آخري نبي ئې ونهٔ

منلو۔

| أَفَغَيْرَ دِيْنِ اللّٰهِ يَبْغُوْنَ وَلَهٗ أَسْلَمَ مَنْ |
|---|
| آيا نو سوا د دين د الله نه دوی لټوی (بل دين) او خاص د الله دپاره تابعداری کوی هغه څوك |
| فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّإِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ﴿۸۲﴾ |
| چه په آسمانونو او په زمکه کی دی په خوشحالی او په زوره او خاص هغه طرفته به دوی ورګرزولے شی۔ |

**تفسير : ربط** : مخکی ئے وویل چه د الله تعالیٰ دین دا دے چه آخری رسول به منی، اوس وائی څوك چه د آخری رسول ﷺ د دين نه اعراض کوی نو ګويا که دا بل دين طلب کوی۔ او څوك چه دين اسلام نهٔ منی نو دا د ټولو کائناتو مخالفت کوی۔

د آيت مطلب دا دے چه هرکله چه دا يهود او نصاریٰ او نور کافران د دين اسلام نه علاوه نور داسے دينونه طلب کوی چه الله تعالیٰ پرے رضا نهٔ دے او هغه د انبياؤ اتفاقی دين نهٔ دے او ددے اتفاقی دين نه اوړی کوم باندے چه ټول انبياء او کائنات متفق دی څوك ئے په خپله خوښه او څوك ئے په زوره منی، او دوی د ټولو کائناتو مخالفت کوی نو آيا د دوی نه به دغه دين څه قبول شی او دوی ته به فائده ورکړی؟ هيڅکله نهٔ، او نهٔ دا د انصاف خبره ده چه د داسے ښکلی دين نه علاوه څوك بل دين طلب کړی، حال دا چه الله تعالیٰ هغه ذات دے چه د هغه تابع دی آسمان والا او زمکے والا، څوك په خپله خوښه او څوك په زوره سره او دا ټول به الله تعالیٰ ته ورګرزولے شی چه پدے کی به يهود او نصاریٰ هم وی نو الله تعالیٰ به ورسره ګوری چه د الله تعالیٰ د دين نه سوئ ئے بل دين طلب کړيدے نو پدے کی اهل کتابو او ټولو کافرانو ته دعوت شو چه راشئ دين اسلام قبول کړئ ورنه الله تعالیٰ ته به ورګرزولے شئ او حساب به درسره کوی۔

او پدے کی اشاره شوه چه اسلام د ټولو کائناتو دين دے، د عامو کائناتو دين دے په طريقه د امر تکوينی سره چه الله تعالیٰ ورته امر کړيدے چه دا اسلام ومنئ نو هغوی ورته غاړه اينبی ده او مسلمانانو منلی دے په طريقه د شرع باندے او په خپله خوښه سره۔

شان نزول

مفسرين ليکی : اهل کتابو خپل مينځ کی اختلاف وکړو هريو دعوه وکړه چه مونږ د ابراهيم عليه السلام په دين روان يو او دا جګړه ئے رسول الله ﷺ ته راوړه نو رسول الله ﷺ

وفرمایل: ستاسو دواړه ډلے د ابراهیم علیه السلام د دین نه جدا یئ نو هغوی غصه شو او دائے وویل : مونږ ستا په فیصله باندے راضي نهٔ یو او نهٔ ستا دین قبلوو نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو ( أَفَغَيْرَ دِيْنِ اللّٰهِ يَبْغُوْنَ ) یعنی آیا دوی د الله تعالیٰ د دین نه (چه دین اسلام دے) علاوه بل دین غواړی چه هغه د ځان نه جوړ شوی دینونه دی۔

(البغوی ۲/۶۳،القرطبی ٤/۱۲۷ ، البحر المحیط لابی حیان ۲/٤١٥، اسباب النزول للواحدی ص (۷٤)۔

د طَوْعًا وَكَرْهًا تفسیرونه

پدے مقام کی مفسرینو ددے دواړو الفاظو ډیر تفسیرونه کړیدی چه په لاندے ترتیب سره ئے وګوره ! اصلی معنیٰ ئے دا ده طوع دیته وائی چه یو بنده په خپله خوښه او خوشحالئ سره یو کار وکړی او کُرْهً دیته وائی چه زور پرے وشی او مجبوراً یو کار وکړی۔

(۱) آسمانونو والا (ملائك) طوعاً یعنی بغیر د استدلال نه تابع دی او زمکے والا مسلمان او کافر دواړه کرهاً تابع دی، کافر د الله تعالیٰ د امر کونی (تکوینی) تابع دے ځکه چه الله تعالیٰ پرے څه فیصله کوی سر ترے نشی اړولے، او مسلمان هم کرهاً تابع دے ځکه چه د دلیل عقلی یا نقلی او معجزے نه مجبوره شویدے نو اسلام ئے قبول کړیدے۔

(۲) دویم فرق : (طَوْعًا) د ملائك او مؤمنانو سره لګی چه دوی په خپله خوښه اسلام راوړیدے او فائده ئے ورته ورکړیده۔ او کرهاً د کافرانو سره لګی چه دوی په زوره تابع دی دا په دوه طریقو سره ❁ یو دا چه کله اسلامی خلافت راشی نو کافر د قتل نه یریږی، د اسلام احکام منی یا جزیه ورکوی یا په طریقه د منافقت اسلام کی داخلیږی۔

❁ یا دا چه کافر د الله تعالیٰ د امر کونی تقدیری نه مجبوره دے چه الله تعالیٰ پرے څه فیصله کوی د هغے نه نشی اوړیدے، د هیڅ تغیر طاقت پکی نهٔ لری لکه الله تعالیٰ پرے مریضتیا، یا مرګ راولی، مال ترے اخلی، ذلیله کوی ئے، یا دا چه کافر په داسے وخت کی اسلام راوړی چه په هغه وخت کی به ورته فائده نهٔ ورکوی لکه د مرګ په وخت کی کافر ته هم پته لګی چه اسلام حق دین دے بیا د تابعدارئ اقرار کوی لیکن ترے نهٔ قبلیږی۔ دا تفسیر د قتاده رحمه الله دے۔

نو معنیٰ به داسے وی چه اے کافرانو ! تاسو دومره کمزوری او مجبوره یئ چه د الله تعالیٰ د حکم نه نشئ اوړیدلے نو راشئ د الله تعالیٰ دین په خوشحالئ او رضامندئ سره قبول کړئ۔

(۳) مجاهد رحمه الله وائی : چه مؤمن الله تعالیٰ ته طوعًا سجده کوی او د کافر سوری کرهًا سجده کوی۔

(٤) الحسن رحمه الله وائی چه مؤمن طوعاً ایمان راوړی او کافر کرهًا (د توری په زور) ایمان راوړی۔

(٥) الزجاج وائی : ټول مخلوق الله تعالیٰ ته کرهًا تابع دی چه هیڅوك د هغه د تکوینی اوامرو نه سر نشی اړولے او نهٔ پکی څوك د تغیر طاقت لری، البته په تشریعی اوامرو کی هغه څوك غاړه ایښودونکی ګڼړل کیږی چه طوعًا په خپله خوښه ورته تسلیم شی او عقیده پرے وساتی۔

بعض مفسرینو ته دا آیت مشکل ښکاره شویدے نو هغوی وئیلی دی چه دا په عالم المیثاق کی مراد دے چه کله الله تعالیٰ د انسانانو روحونه پیدا کړل نو الله تعالیٰ ترے اقرار واخستو چه آیا زهٔ ستاسو رب نهٔ یم؟ ټولو بندګانو اقرار وکړو چه ته زمونږ رب یے که د چا په زړه کی وه او که نهٔ وه۔ اول او دویم مطلب راجح دے۔

أَفَغَيْرَ : أی أَيَتَوَلَّوْنَ عَنْ دِيْنِ اللّٰهِ وَغَيْرَ دِيْنِ اللّٰهِ يَبْغُوْنَ) ۔ آیا دوی د الله تعالیٰ د دین نه اوړی او بل دین طلب کوی۔ همزه د استفهام تعجبی دپاره ده یعنی دا څومره عجیبه خبره ده چه د الله تعالیٰ د دین نه سوئ بل دین دوی طلب کوی او د ټولو کائناتو مخالفت کوی۔

وَلَهٗ أَسْلَمَ مَنْ : پدے کی اشاره ده چه کافران ولے د الله تعالیٰ د دین نه علاوه بل دین لټوی او تشریعی امرونه یے نهٔ قبلوی؟ حال دا چه په تکوینی امورو کی د الله تعالیٰ نه خلاف نشی کولے نو دوی له پکار دی چه په تشریعی اوامرو کی هم ترے خلاف ونکړی دے دپاره چه د ټولو کائناتو د قانون سره موافق شی۔

| قُلْ آمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَا أُنْزِلَ عَلَيْنَا وَمَا |
|---|
| ته اووایه ! مونږ ایمان راوړے په الله او په هغه کتاب چه نازل کړے شویدے مونږ ته او په هغے |
| أُنْزِلَ عَلٰى إِبْرَاهِيْمَ وَإِسْمَاعِيْلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْأَسْبَاطِ |
| چه نازل شوے په ابراهیم، اسماعیل، اسحاق، یعقوب (علیهم السلام) او په اولاد د یعقوب باندے |
| وَمَا أُوْتِيَ مُوْسٰى وَعِيْسٰى وَالنَّبِيُّوْنَ |
| او په هغه کتابونو چه ورکړے شویدی موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام او نورو پیغمبرانو ته |
| مِنْ رَّبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ |
| د طرفه د رب د دوی نه، جدائی نهٔ کوو مونږ (په ایمان راوړو کی) په مینځ د یو تن کی |

| مِنۡهُمۡ وَنَحۡنُ لَهٗ مُسۡلِمُوۡنَ ﴿۸۴﴾ |
|---|
| د دوی نه او مونږ يو خاص الله ته تابعدار۔ |

**تفسیر** : مخکې آيت کې اسلام اجمالي طريقې سره ذکر شو نو سوال پيدا شو چه د اسلام څه عقائد او نظريات او اعمال دي؟ په بل تعبير : اسلام د څه شي نوم دے؟ داسې آيت په سورة البقره (۱۳۶) آيت کې هم تير شويدے، تفسيرئے هلته وګوره مګر جزئي طريقې سره فرقونه شته، هلته ئے (قُولُوا) جمع صيغه وئيلې وه او دلته (قُلْ) مفرد ځکه چه هلته خبره د مؤمنانو د دعوت شروع وه او دلته خبره د رسول الله ﷺ د عظمتِ شان بيانيږي نو ځکه ئے هغه ته حکم وکړو چه ته ئ دے خلکو ته ووايه! او د نصاراؤ سره مقابله او بحث نبي کريم ﷺ کولو۔ بيا د سورتِ بقرے آيت کې تاکيدات او کلمات زيات دي ځکه چه هغه مقام د دعوت دے او دا مقام د شان د رسول الله ﷺ دے۔

مُسۡلِمُوۡنَ : اَیۡ مُخۡلِصُوۡنَ وَمُنۡقَادُوۡنَ۔ يعنې مونږ د الله تعالیٰ دپاره په بندګئ کې اخلاص کوونکي يو او د هغه د حکمونو تابعدار يو۔ ايمان او اسلام دواړه ئے جمع کړل ځکه چه ايمان باطني شے دے او اسلام ظاهري اعمال دي نو اشاره کوي چه مونږ ظاهراً او باطناً غاړه اېښودونکي يو او تاسو کې نۀ ايمان شته او نۀ اسلام۔

نو دے آيت کې د ايمان تعريف دا شو چه الله تعالیٰ لره په غير د شريکانو نه منل او د هغه ټول کتابونه او د هغه ټول رسولان منل، او په هغوی کې تفرقې نۀ راوستل او د الله تعالیٰ دپاره په اعمالو کې اخلاص کول ديته ايمان او اسلام وائي۔

| وَمَنۡ يَّبۡتَغِ غَيۡرَ الۡاِسۡلَامِ دِيۡنًا فَلَنۡ يُّقۡبَلَ مِنۡهُ |
|---|
| او څوک چه لټوي په غير د اسلام نه بل دين نو هيچرے به قبول نشي ددۀ نه۔ |
| وَهُوَ فِی الۡاٰخِرَةِ مِنَ الۡخٰسِرِيۡنَ ﴿۸۵﴾ |
| او دے به وي په آخرت کې د تاوانيانو نه |

**تفسیر** : اُوس توبيخ او تخويف ورکوي هغه چا ته چه اسلام پريدي او د اسلام نه علاوه بل دين طلب کوي۔ او دا جواب د اهل کتابو د سوال هم دے چه هغوی وئيلي وو چه يهوديت او نصرانيت هم الله تعالیٰ ته رسيدلې لارې دي او د هغه دينونه دي، دا هم الله رالېږلي دي، نو جواب کوي چه الله تعالیٰ په يهوديت او نصرانيت وغيره دينونو باندے

راضي نهٔ دے بلکه د الله تعالیٰ قانون دا دے چه څوك د اسلام نه علاوه بل دین لټوی نو هغه الله تعالیٰ ته قبول نهٔ دے، صرف د اسلام لاره الله تعالیٰ ته کولاوه ده او د نورو دینونو په روانیدو سره انسان په دنیا او آخرت کی تاوانی کرزی او هغه لارے جهنم ته تلی دی۔

وَمَنْ يَّبْتَغِ : د اسلام نه علاوه نور دینونه طلب کول دوه قسمه دی (۱) کلًا۔ چه بیخی تول په توله اسلام پریدی او په بل دین د یهودیت یا نصرانیت، یا مجوسیت یا صابئیت او شرك باندے روان شی نو دا خو همیشه دپاره تاوانی شو۔ کافر شو۔

(۲) دویم بعضاً طریقے سره بل دین طلب کول دی چه اسلام منی، قرآن او حدیث او قیامت منی لیکن په دین کی نورے طریقے او خبرے راننباسی چه هغے ته بدعات وائی نو هغه هم الله تعالیٰ ته قبول نهٔ دی نو کله به هغه بدعتِ مُکَفِّره وی بنده به پرے کافر کیږی او کله به پرے فاسق کرزی خو الله تعالیٰ ته قبول نهٔ دے، نبی کریم ﷺ فرمائی :

[مَنْ عَمِلَ عَمَلًا لَيْسَ عَلَيْهِ أَمْرُنَا فَهُوَ رَدٌّ]۔

چا چه یو عمل وکړو چه په هغے باندے زمونږ حکم او طریقه نهٔ وه نو هغه به مردود وی۔ (مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هٰذَا مَا لَيْسَ مِنْهُ فَهُوَ رَدٌّ) (صحیح مسلم) ۔ چا چه زمونږ په دین کی هغه څه راپیدا کړل چه د دین نه نهٔ وی نو هغه به مردود وی۔

مِنَ الْخَاسِرِيْنَ : یعنی عمل به ئے هم برباد شی او ددے دپاسه به اُور ته هم روان وی دغه لوی تاوان دے۔

| كَيْفَ يَهْدِي اللّٰهُ قَوْمًا كَفَرُوْا بَعْدَ إِيْمَانِهِمْ وَشَهِدُوْا |
| --- |
| څنګه به هدایت وکړی الله هغه قوم ته چه کفرئے کړے پس د ایمان نه او ګواهی ئے ورکړیده |
| أَنَّ الرَّسُوْلَ حَقٌّ وَّجَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ﴿۸۶﴾ |
| چه دا رسول حق دے او راغلی وو دوی ته ښکاره دلیلونه او الله هدایت نکوی قوم ظالمانو ته۔ |
| أُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ أَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ﴿۸۷﴾ |
| دغه کسان بدله د دوی دا ده چه په دوی باندے به لعنت د الله وی او د ملائکو او د خلکو ټولو۔ |
| خٰلِدِيْنَ فِيْهَا لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ﴿۸۸﴾ |
| همیشه به وی پدے کی، سپك به نکړے شی د دوی نه عذاب او نهٔ به دوی ته مهلت ورکړے شی۔ |

| إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا |
|---|
| مګر هغه کسان چه توبه ئې وېستله پس ددې (کفر) نه او خپل عمل ئې برابر کړو |
| فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٨٩﴾ |
| نو يقيناً الله بخونکے مهربان دے۔ |

**تفسير** : پدے آيت کې يو رد دے په مرتدينو او بل رد دے په يهوديانو باندے۔ حاصل ئې دا دے چه آمَنُوا بِهِ إِجْمَالًا وَكَفَرُوا بِهِ تَفْصِيلًا) په رسول الله ﷺ باندے ئې اجمالاً ايمان راوړے ليکن تفصيل ئې نهٔ مني نو لاړل ګمراه او تاوانيان شو۔ لکه تفصيل ئې لاندے راروان دے۔

نو دا آيت دوه طريقو سره لګي (۱) يو د مرتدينو په باره کې دے چه د شان نزول نه معلوميږي۔ مفسرين ليکي چه دا آيت د بعض کسانو په باره کې وو چه په رسول الله ﷺ باندے ئې ايمان راوړو او بيا بيرته مرتد شو، دين ئې پرېښودو او د مشرکانو سره پيوسته شو نو الله تعالىٰ د هغه مرتدينو په باره کې دا آيت راوليږلو، د دوی دپاره ئې وعيد بيان کړو بيا ئې توبې ته ترغيب ورکړو چه راشئ د مرګ نه مخکې توبه وباسئ الله تعالىٰ به مو کامياب کړي نو مخکې په اهل کتابو رد وو او دلته په مرتدينو باندے او په هره زمانه کې مرتدين خلک وي۔

## شان نزول

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دے چه د انصارو نه يو سړي (حارث بن سويد) اسلام راوړو او د رسول الله ﷺ سره څه زمانه وو بيا د خپل قوم سره پيوست شو او کفر ئې اختيار کړو مګر څه موده روسته په ارتداد باندے پښيمانه شو او خپلوانو ته ئې جواب وليږهٔ چه زما دپاره د نبی کريم ﷺ نه پوښتنه وکړئ چه د ارتداد نه به مے توبه قبوله شي او که نهٔ ؟ نو الله تعالىٰ دا آيت (کيف يهدی الله نه تر – فان الله غفور رحيم) پورے نازل کړو نو د هغه د قوم يو سړي دا آيت راواخستو او په حارث بن سويد باندے ئې ولوستو نو حارث ووېل : تهٔ هم رشتينے ئې او رسول الله ﷺ ستا نه ډېر رشتينی دے او الله تعالىٰ د دړے وارو نه زيات رشتينی دے نو بيرته راواپس شو او ښائسته اسلام ئې راوړو۔ (اسباب النزول للواحدی ص : ٧٤ وتفسير ابن کثير ٣٧٩/١، والسلسلة الصحيحة للالبانی رقم : ٣٠٦٦)

نو ددے تفسير په بناء د آيت مطلب به داسے وي : الله تعالىٰ داسے شخص ته هدايت نهٔ

كوي چه حق وپيژني او بيا ئے قصداً پريدي او د دوي سزا به دا وي چه لعنت به پرے وي او په عذاب کي به هميشه وي، هاؤ! که په خپله خوښه سره په ژوند کي توبه وباسي نو لاره ورته کولاوه ده، الله تعالیٰ ئے توبه قبلوي خو غالباً داسے خلکو ته د هدايت توفيق نهٔ ملاويږي.

(۲) دويمه طريقه : (چه دا د حسن بصري رحمه الله نه نقل ده) چه دا آيت هم د اهل کتابو په باره کي دے لکه د نورو آيتونو بحث هم د اهل کتابو په باره کي شروع دے يعني آمَنُوْا بِهٖ قَبْلَ بِعْثَتِهٖ وَ كَفَرُوْا بِهٖ بَعْدَ بِعْثَتِهٖ) . چه دے اهل کتابو به د رسول الله ﷺ نه د راتللو نه مخکي په هغه ايمان راوړو او د الله تعالیٰ نه به ئے دعاګانے کولے چه اے الله ! مونږ سره ددے نبي آخر زمان په راليږلو مدد وکړه، او ددے نبي صفتونه به ئے کول او دا به ئے د ځان نه شمارلو او خلکو ته به ئے وئيل چه مونږ به د هغه ملګري کيږو ليکن هرکله چه هغه الله تعالیٰ راوليږلو نو دوي پرے کفر وکړو او دائے ووئيل چه اُوس به مونږ ددهٔ تابعداري کوو؟ نَصِيْرُ اَذْنَابًا بَعْدَ مَا كُنَّا رُؤُوْسًا) . مونږ به لکئ ګرزو پس د هغے نه چه مونږ سرونه (يعني مشران) وو. نو الله تعالیٰ پدے آيتونو کي دهمکي ورکوي دغه اهل کتابو ته چه داسے خلکو ته الله تعالیٰ هدايت نهٔ کوي اګرکه الله تعالیٰ هدايت بالکل بند کړے نهٔ دے چه بيخي امکان ئے ختم شي، ممکن وه چه دوي توبه وباسي او ايمان راوړي ليکن غالباً داسے خلکو ته هدايت نهٔ کيږي ددے وجه نه ډيرو لږو يهوديانو ايمان راوړے وو او اکثر په خپل کفر کي د دنيا نه لاړل، نو الله تعالیٰ دوي ته دعوت ورکوي او يره ورکوي چه د هدايت نه محرومه نشئ، زر زر توبه وباسئ او ايمان راوړئ. (تفسير الطبري۳/۳۴۱) وبدائع التفسير للامام ابن القيم)

وَجَآءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ : يعني دوي ته د نبي کريم ﷺ په حقانيت باندے ښکاره معجزات او دليلونه راغلل لکه علماء فرمائي چه الله تعالیٰ د نبي کريم ﷺ په نبوت باندے درے زره معجزے او دلائل النبوة ورولي وو چه هغه څه حصه امام بيهقيؒ په ((دلائل النبوة)) کتاب کي راجمع کړيدي څکه چه عالمي پيغمبر وو د هغه د نبوت نه مخکي هم داسے نښے خودلے شوے وے چه چا به وليدو نو په هغه کي به ئے شك نهٔ راتللو.

وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ : الله تعالیٰ داسے ظالمانو ته د هدايت توفيق نهٔ ورکوي چه حق وپيژني او بيا قصداً هغے لره لتي ورکوي د دوي سره به د حکمت نه کار نهٔ اخلے څکه چه دوي سره د پوهے نه ګمراهي اختيار کړيده.

إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا : البته که چا پدې ظالمانو کې توبه وېستله نو د توبې دروازه کولاوه ده الله تعالیٰ ئې قبلوي چه د خپلې ګناه نه رجوع وکړي او بیرته په اسلام کې داخلیږي او بیرته نیك اعمال برابر کړي نو الله تعالیٰ بخښه کونکې دې (په تیر شوي ارتداد باندې به ئې نۀ نیسي) او مهربان دې (د استحقاق نه زیات به په خپلې مهربانۍ سره جنتونه ورکړي او په دنیا کې به د نیکو عملونو توفیق ورکړي)۔

وَأَصْلَحُوا : خپل عمل نیك کړي۔ یا کوم تابعدار چه ئې ګمراه کړي وي د هغوي بیرته اصلاح وکړي۔

**فائده** : د عجیبه خبرو نه دا ده چه دا قسم بندګان زمونږ په امت کې هم ډیر زیات دي، او الله تعالیٰ خپل بندګان پیژني چه یو سړي باندې به هسې د اسلام نوم پروت وي او په مینځ کې به پکې اسلام نۀ وي، ددې ناشنا مثال دا دې چه اکثر انسانان داسې دي چه که تۀ ترې تپوس وکړې چه اسلام منې؟ هغه وائي، آؤ، بالکل نو اجمالًا اسلام مني لیکن که تا ورته د اسلام تفصیلات یو یو بیان کړل نو د ډیرو منلو ته به تیار نۀ وي نو پداسې خلکو باندې د اول نه څوك د کفر فتویٰ نشي ورکولې ځکه چه د اسلام اقرار کوي لیکن کله چه پرې امتحان راشي نو خپله کافر شي، لکه یو داعي توحید بیانول شروع کړي نو ډیر خلك به وائي چه دوي باباګان او اولیاء نۀ مني، نو د اسلام غټه خبره ئې پریښوده۔ که چا د رسول الله ﷺ د اطاعت او اتباع خبره شروع کړه نو ډیر خلك به وائي چه دوي امامان نۀ مني نو ظاهره کې به ځان ته عاشقِ رسول وائي لیکن که سنت طریقې دې ورته تفصیلًا بیان کړې نو په هغې کې به ډیرو منلو ته تیار نۀ وي، عجیبه مسلمان دې!!۔ که په سود یا په رسمونو رواجونو او بدعاتو دې رد وکړو ډیر خلك به درسره دا نۀ مني، یوې علاقې ته ورشه هغوي ته ووایه ! چه تاسو کې څوك منکرِ حدیث شته ؟ ټول به ووائي چه مونږ حدیثونه منو، بخاري منې؟ آؤ، بیا بخاري راواخله یو یو حدیث ترې شروع کړه نو ډیر احادیث به درله خلك رد کړي، د ایمان د زیادت او نقصان خبره به راشي نو ډیر خلك به ئې نۀ مني، د مانځه ډانچه او نورو ډیرو احادیثو کې به درسره اختلاف شروع کړي، بیا بخاري منلو ته تیار نۀ وي، نو ځان د یهودو سره مشابه کړي چه اجمالاً ئې خو ایمان راوړې وي لیکن تفصیلًا ئې کفر کړې وي۔ کمال او کامیابي دا ده چه بنده اسلام ظاهرًا او باطناً، اجمالا او تفصیلا دواړو طریقو سره ومني۔

**فائده** : څوك چه د اسلام نه مرتد شي دا په درې قسمه دي (۱) هغه ډله کافران چه په

اخلاص سره توبه وباسی نو الله تعالیٰ توبه قبلوی.
(۲) هغه ډله چه توبه ئے په اخلاص سره نهٔ وی بلکه ورخ په ورخ د هغه کفر زیاتیږی نو د دوی توبه قبوله نهٔ ده. (دا د منافقت توبه ده)
(۳) هغه ډله چه د مرګ د ورځے پورے په کفر کلك وی او په همدے حالت کی مره شی نو د دوی توبه هم نشته او نهٔ به ورته الله تعالیٰ بخښنه وکړی او نهٔ به ترے فدیه قبوله کړی.

| إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه کفر ئے کړے پس د ایمان نه بیا زیات شو په کفر کی |
| لَنْ تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الضَّالُّونَ ﴿۹۰﴾ |
| هیڅرے به قبوله نکړے شی توبه د دوی او همدا کسان هم دوی ګمراهان دی. |

**تفسیر** : مخکی آیت سره متعلق دے چه الله تعالیٰ فرمائی توبه وباسئ ځکه چه د بعض خلکو توبه نهٔ قبلیږی نو توبه وباسه مخکی د رد کیدو د توبی نه. نو پدے کی ترغیب دے توبی ته مخکی د رد کیدو د توبی نه او تخویف دے کافرانو دپاره.
كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ : هغه کسانو چه کفر ئے وکړو روستو د ایمان راوړو نه لکه یهودیان شو چه اجمالًا ایمان راوړے وو لیکن د رسول الله ﷺ د راتلو نه روستو مرتد شو او د آخری نبی (ﷺ) نه ئے انکار وکړو او پدے کی منافقان او مرتدین هم داخل دی.
ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا : د کفر د زیادت صورتونه
(۱) یو دا چه (بِأَنْ مَاتُوا عَلَيْهِ) یعنی د کفر په حالت کی مره شی نو ددهٔ اُوس اصلاح نهٔ کیږی (۲) دویم : دوی مفسدان او معاندین وګرزیدل ځکه چه یو کفر کول دی او بل بیا د حق سره عناد کول او صد عن سبیل الله (خلك د الله د لارے نه اړول) دی دا په کفر کی زیادت دے.
(۳) د کفر سره بل کفر ملګرے کول لکه چه اهل کتابو په نبی کریم ﷺ د بعثت نه مخکی ایمان راوړے وو خو کله چه مبعوث شو، دوی د خپل ایمان نه ارتداد غوره کړو او انکار ئے ترے وکړو او بیا ئے همدا کفر لاپسے قوی کړو چه د نبی کریم ﷺ پسے به ئے سپکے سپورے وئیلے چه دا هره خبره د کفر دپاره کافی وه.
(٤) بل دا چه د کفر سره منافقت هم یو ځای کړی یعنی په خوله باندے توبه وباسی او په

زړه ئے ارتداد کلك کړے وی، دا اګرکه د مؤمنانو نه پټ دی لیکن الله تعالیٰ ته ئے د زړونو علم دے نو ځکه ورله توبه نهٔ قبلوی۔

## سوال وجواب

پدے مقام کی دا اشکال کیږی چه اسلام کی دا قانون دے چه هر څومره لوی کافروی د زړګونو کلونو کافر وی او توبه وباسی، د مرګ نه مخکی د هغه توبه قبلیږی او دلته وائی چه د کافرانو مرتدینو او زیات کفر کونکو توبه نهٔ قبلیږی؟

ددے اشکال ډیر جوابونه دی چه یو پکی ډیر غوره او نور جائز دی (۱) یو جواب دا دے چه (لَنْ تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ) نه مراد بعد الموت دے یعنی که دوی په حالت د کفر کی مړه شی نو توبه ئے نهٔ قبلیږی او دلیل پدے باندے روستو آیت دے چه په هغے کی (وَمَاتُوا) لفظ ورسره ذکر دے او هلته فدیه هم ذکر ده نو دواړه جمع کړه ددے کافرانو نهٔ توبه قبلیږی او نهٔ فدیه۔ نو سیاق د آیت دلیل شو۔ سره د اصولو د دین نه او همدا پکی غوره تفسیر دے۔

(۲) دویم جواب: لَنْ تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ عِنْدَ الْغَرْغَرَةِ۔ یعنی د دوی توبه نهٔ قبلیږی په هغه وخت کی چه روح ئے مریٔ ته راورسیږی او د خپل مرګ نښے وینی۔ لکه په روایت د ترمذیؒ کی د نبی کریم ﷺ ارشاد دے: (اِنَّ اللّٰهَ يَقْبَلُ تَوْبَةَ الْعَبْدِ مَا لَمْ يُغَرْغِرْ) ۔ (ترمذی: ۳۵۳۷) الله تعالیٰ د بنده توبه قبلوی تر هغه وخته پورے چه روح ئے مریٔ ته نهٔ وی رسیدلے۔ ځکه دا توبه د مشاهدے شوه نهٔ د ایمان بالغیب۔ او دا جواب هم د آیت د سیاق سباق نه معلوم شو۔ او مخکی او ددے تفسیر حاصل یو دے۔

(۳) جواب: دلته الله تعالیٰ د توبی د قبولیت خبره کړیده او قبولیت د توبی فرع ده د توبی د ویستلو ځکه قبولیت هله راځی چه بنده توبه وباسی لکه منطقیان وائی: (سالبه تقاضا د وجود د موضوع نهٔ کوی)۔ نو معنیٰ دا شوه: لَنْ تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ لِاَنَّهُمْ لَا يَتُوبُوْنَ۔

د دوی توبه به هیڅکله قبوله نشی ځکه چه دوی توبه نهٔ وباسی نو څه به قبوله شی۔ یعنی الله تعالیٰ به دوی ته د توبی توفیق نهٔ ورکوی ځکه به نهٔ قبلیږی او توفیق ځکه نهٔ ورکوی چه دوی ته الله تعالیٰ پدے ګناهونو باندے سزا ګانے ورکوی نو کله پرے د توبے لاره بنده کړی۔ لکه د ختم الله علی قلوبهم په شان آیت شو۔ (قاسمیؒ) او چا ته چه د توبی توفیق ملاؤ شی نو بیا ئے الله تعالیٰ توبه قبلوی هم۔

(٤) جواب: لَنْ تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ لِاَنَّ تَوْبَتَهُمْ لَا تَكُوْنُ اِلَّا نِفَاقًا) یعنی د دوی توبه به هیڅکله

خکه قبوله نشي چه د دوی توبه د منافقت توبه وي او الله تعالیٰ هغه توبه قبلوي چه د اخلاص والا وي خکه چه څوك د اسلام نه روستو کافر شي او بیا په کفر کې پوخ شي نو پداسې خلکو باندې چه کله تکلیف او مصیبت راشي نو زر ووائي چه اے الله! زما دے توبه وي، کله وائي په توبو مې دے توبه وي، یا دا چه کله د مسلمانانو غلبه راشي نو دوی ږیرې راوږدې کړي، تسپې لاس کې راواخلي او مونځونو ته هم حاضرېږي خو زړونو کې همغه شان دهریت او کفر وي. بعض خلکو د کفارو په ملکونو کې تعلیم کړے وي نو هغوی چه کله د مسلمانانو ملکونو او معاشرے ته راشي نو مونځونه هم کوي، حجونه او عمرے هم کوي لیکن په زړه کې ئې په اسلام باندې اعتراضات وي، د میراث او د تقدیر او داسې نورو مسئلو باندې اعتراضونه لري او په زړه کې د اسلام نه متنفره وي. نو که داسې خلك مونځونه او حجونه او عمرے هم وکړي او استغفر الله هم په ژبه ووائي نو دا د منافقت دپاره وي چه په هیڅ شان سره ترے قبول نهٔ دي. او دا تفسیر د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما دے. (زاد المسیر ۱/۳۵۵)

یا په بل تعبیر: بعض مفسرین لیکي پدے آیت او روستني آیت کې د مرتدانو دوه ډلے نورے بیانیږي چه د هغوی دپاره نهٔ توبه شته او نهٔ مغفرت (۱) یوه هغه ډله ده چه د ارتداد نه روسته توبه وباسي خو حقیقي توبه نهٔ بلکه صرف د دنیاوي یو مقصد دپاره توبه وباسي او په حقیقت کې همدغه شان په کفر کې قوي وي نو د دوی حکم دا دے چه د دوی توبه د الله تعالیٰ په دربار کې نهٔ قبلیږي ځکه چه د دوی توبه حقیقي توبه نهٔ ده، بلکه همدا کسان پاخه گمراهان دي چه په زارهٔ گمراهئ باندے پاتي دي. او دویمه ډله روستو آیت کې ذکر ده.

| إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه کفرئې وکړو او مړه شول پداسې حال کې چه دوی کافران وي |
| فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِم مِّلْءُ الْأَرْضِ ذَهَبًا وَلَوِ افْتَدَىٰ |
| نو هیچرے به قبول نکړے شي د یو د دوی نه ډکه زمکه سره زر، اګرکه په بدله کې ئې ورکړي |
| بِهِ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٩١﴾ |
| هغه، دا کسان دوی دپاره عذاب دردناك دے او نهٔ به وي دوی لره هیڅ مددګاران. |

**تفسیر**: اوس پدے آیت کی د مرتدینو او دارنګه د نورو کافرو ډله بیانیږي چه هغوی د مرګ د ورځے پورے توبه ونهٔ ویستله او په حالت د کفر کی پرے مرګ راغلو نو د نجات تولے لارے په دوی باندے بندے شوے، د نجات یوه لاره د الله تعالیٰ رحم او مهربانی ده او هغه په دوی نشته ځکه چه الله تعالیٰ ترے ناراضه دے او بل توبه ویستل دی هغه ئے هم ونهٔ ویستله او دریم د ځان د خلاصولو دپاره فدیه (عوض) ورکول دی نو الله تعالیٰ فرمائی: چه دا هم ترے نهٔ قبلوم نو مجرم په جرم کی ونیولے شو، په عذاب کی به ګرفتار وی نو الله تعالیٰ فرمائی : راشئ مخکی نه دنیا کی توبه وباسئ او خپل ځانونه جوړ کړئ.

ذَهَبًا : سرهٔ زر دا محبوب مال دے ځکه ئے دا ذکر کړل۔ بیا دلته دری مرتبی دی (۱) یو دا چه تول زمکه د سرو زرو کیدے نهٔ شی عادةً، دا فرضِ محال دے۔ (۲) دویم که شی نو د مجرم په ملکیت کی راتلے نهٔ شی (۳) او که دے ئے مالك هم شی او الله تعالیٰ ته ئے ورکوی نو هغه ئے ترے نهٔ قبلوی ځکه چه د الله تعالیٰ ورته هیڅ حاجت نشته۔ او دے به ئے د ځان خلاصولو دپاره ځکه ورکوی چه د آخرت عذاب ډیر سخت دے لکه د سورة مائده (۳۶) آیت کی الله فرمائی : ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَّمِثْلَهٗ مَعَهٗ لِيَفْتَدُوْا بِهٖ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ﴾ یقینا کافران که دوی دپاره تول زمکه او ددے په شان بله زمکه شی او دوی ئے په قربانئ کی ورکړی نو قبوله به ترے نشی)

او پدے کی اشاره ده چه یهودیانو او مرتدینو د مال دپاره حق او توحید او اسلام پریښے وو پدے وجه ورته وائی چه اګرکه ستاسو ډیر مالونه شی نو په قیامت کی به هیڅ فائده درنکړی، د مال دپاره حق مهٔ پریدئ.

| لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ |
| --- |
| هیچرے به تاسو ونهٔ رسیږئ نیکئ ته تردے چه خرچ کړئ د هغه شی نه چه تاسو ئے خوښوئ |
| وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ شَيْءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ﴿۹۲﴾ |
| او هغه چه تاسو خرچ کوئ هر شے چه وی نو یقیناً الله په هغے باندے پو هه دے۔ |

**تفسیر**: مناسبتونه :

(۱) مخکی الله تعالیٰ د فدیے بدی بیان کړه چه د کافر نه مال نهٔ قبلیږی نو سوال ذهن ته راغے چه مال لګول به هیڅ کار نهٔ ورکوی، دا به هیڅ نیك عمل نهٔ وی نو الله تعالیٰ

وفرمایل: چه نهٔ، د مؤمن سړی مال لګولو سره الله تعالیٰ دهٔ لره جنت ته رسوی او دا لویه نیکی ده، د کافر فدیه څکه نهٔ قبلیږی چه هغه بی ځایه ده او د مؤمن څکه قبلیږی چه دا په ځای باندے ده۔ نو دا آیت جواب د سوال مقدر شو۔

(۲) دارنګه مخکی ئے د کافرانو حال بیان کړو چه د هغوی نهٔ توبه قبوله ده او نهٔ فدیه نو د هغوی برعکس الله تعالیٰ دلته د مؤمنانو حال بیانوی چه د دوی مال لګول فائده ورکوی او الله تعالیٰ ئے قبلوی۔ (۳) کافران د مال په وجه مرتد کیږی او خوږ ښائسته دین اسلام پریږدی، یهودو مال نهٔ لګولو نو څکه کفر کی پاتی شو نو اے ایمان والو! تاسو د هغوی په خلاف دغه محبوب مالونه د الله تعالیٰ دپاره ولګوئ۔

(٤) پدے کی کافرانو ته هم دعوت ورکول دی چه ترڅو پورے تاسو د محبوب شیانو نه تیر نشئ لکه پیسے، ریاست، قلنګونه او نور څیزونه نو تاسو به د کفر د تیارو نه راونهٔ وځئ، د محبوب څیزونو خرچ کول کامله نیکی ده۔

**لَنْ تَنَالُوا** : د نیل نه اخستے شویدے او د نَیل دوه معانی دی (۱) رسیدل (۲) او حاصلول۔ نو معنیٰ دا ده : هیچرے تاسو به ونهٔ رسیږئ نیکئ ته۔ یا حاصل به نهٔ کړئ تاسو پوره نیکئ۔

(البر) : بر، په سورة البقره کی تیر شوی وو چه فراخه نیکئ ته وائی، ددے ډیر مصداقات دی : (۱) یو موضع البر مراد دے چه هغه جنت دے څکه چه د نیکئ ځای جنت دے۔ (ابن عباسؓ، ابن مسعودؓ، مجاهدؒ)

(۲) : بر : ښائسته اخلاقو ته هم وائی لکه رسول الله ﷺ فرمایلی دی : اَلْبِرُّ حُسْنُ الْخُلُقِ) رواه مسلم) نیکی ښائسته اخلاق دی یعنی تاسو به هیچرے ښائسته اخلاقو والا جوړ نشئ تردے چه مال ولګوئ۔ (۳) بر تقویٰ ته هم وائی۔ یعنی کامل متقیان به د مال په لګولو ګرځئ۔ (مقاتل بن حیان)

(٤) بر : صدق (رشتیا) ته هم وائی یعنی تاسو رشتینی مؤمنان کیدے نهٔ شئ تردے چه تاسو محبوب مال ولګوئ۔ (القرطبی)

(٥) بر : هر قسم طاعات او د خیر کارونو او ثوابونو ته وائی چه د هغے په وجه بنده جنت ته رسیږی۔ نو معنیٰ دا شوه چه تاسو ته به د هر قسم طاعاتو او د خیر کارونو کامل توفیق هله ملاویږی چه د الله تعالیٰ دپاره محبوب څیزونه خرچ کړئ او کله چه تاسو د الله تعالیٰ محبت د مالونو په محبت باندے مخکی کړو او د هغه په رضا کی مو ولګول نو دا به

ستاسو په رشتینی ایمان، د زړونو په نیکئ او اخلاص، او په یقینی تقویٰ باندے دلیل وی۔

د مِمَّا تُحِبُّوْنَ مصداقات دا دی:

(۱) نو پدے کی دا هم داخلیږی چه غوره مالونه خرچ کړی،

(۲) یا کله چه خرچ کونکے ورته خپله محتاج وی او مال خرچ کړی،

(۳) یا په حالت د صحت کی خرچ وکړی دے ټولو ته شاملیږی۔ (تفسیر السعدی ۱/۱۳۸)

دا ټول مطلبونه یو بل ته نژدی نژدی دی ځکه چه تقویٰ کی حسن خلق، او صدق هم داخل دی او هغه سبب د جنت دے۔ نو چا نتیجه یاده کړیده او چا سببونه۔ او د بر خپله معنیٰ ده پوره نیکی نو معنیٰ ئے دا ده: (لَنْ تَكُوْنُوْا اَبْرَارًا) (البغوی عن الحسن البصری) تاسو کامل نیکان نشئ جوړیدے الخ او دا خبره چه کله مؤمن ته وکړی نو هغه ډیر متوجه کیږی چه ما ته وائی چه ته نیك عمله نهٔ جوړیږے مگر پدے کار سره، نو دا خو ډیره ضروری خبره شوه۔ نو پدے کی ډیر کامل ترغیب وی۔

مما تحبون یعنی محبوب څیزونه۔

د محبوب څیزونو په انفاق باندے بنده ولے نیك عملئ ته رسیږی؟

نو ددے حکمتونه دی، اهل علم وائی: مَنْ اَحَبَّ شَيْئًا بَعُدَ مِنَ اللّٰهِ بِثَلَاثَةِ اَوْجُهٍ۔(چا چه د یو دنیاوی شی سره مینه وکړه نو د الله تعالیٰ نه به په درے طریقو سره وړاندے شی)

(۱) (مَحَبَّةُ غَيْرِ الْحَقِّ)۔یعنی دهٔ مینه وکړه د هغه شی سره چه هغه الله نهٔ دے یعنی د غیر الله سره ئے مینه وکړه۔ (۲) اَلشِّرْكُ الْخَفِیُّ۔ (د دنیاوی شی سره مینه کولو کی پټ شرك پروت دے) (۳) اِیْثَارُ الْخَلْقِ عَلَی الْحَقِّ، فَاِذَا تَصَدَّقَ بِهٖ زَالَ ذٰلِكَ الْبُعْدُ)۔ پدے سره مخلوق او خپل ځان په الله باندے غوره کول راځی نو کله چه بنده دغه محبوب شے صدقه کړی نو دغه وړاندے والے د الله نه ختم شی، نو بنده الله ته نژدے شی۔ بنده الله تعالیٰ لره په خپل ځان باندے غوره کړی۔ (تفسیر القاسمی ۲)

د صحابه کرامو پدے آیت باندے د عمل کولو نمونه

دا آیت چه کله نازل شو نو د عمر بن خطاب ﷺ یو اس ډیر خوښ وو نو هغه ئے د الله تعالیٰ دپاره ورکړو۔ (بخاری) او دغه شان سیدنا زید بن حارثه سره یو اس وو نهٔ بل څه او دا ئے وویل اے الله! تا ته معلومه ده چه ما سره ددے یو اس نه علاوه بل څه محبوب شے نشته

نو هغه نے رسول الله ﷺ ته ورکړو چه دا د الله تعالیٰ په لاره کی خرج کړی نو هغه د هغه خوی سیدنا اسامه بن زیدؓ ته ورکړو او دا ئے ورته وویل چه ستا صدقه الله تعالیٰ قبوله کړه (الدر المنثور والقرطبی)

(۲) سیدنا عمر فاروق ؓ د خیبر د غنیمت خپله هغه برخه مسلمانانو ته وقف کړه کومه چه ددهٔ په نیز ډیر نفیس او محبوب مال وو.

(النسائی ۲/۲۳۲، والدارقطنی ٤/۱۹۳، وتفسیر القاسمی ٤/١٤٦ والبخاری)

(۳) د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما یوه وینځه وه، هغه ئے ډیره خوښه وه او د الله دپاره ئے آزاده کړه او بیا ئے وویل که چرته ددے آیت په خلاف کی نهٔ واقع کیدے نو ما به دے خپلے وینځے ته رجوع کړے وے او په نکاح به مے اخستے وے لیکن د الله دپاره مے آزاده کړه. (تفسیر البغوی ۲/٦٦ تفسیر ابن المنذر ۱/۲۸۸)

(٤) د ابو طلحه ؓ یو باغ وو (بیرحاء ئے ورته ویلو) چه اوس کوم ځای د مسجد نبوی باب مجیدی دے په دغه ځای باندے دا باغ وو، او د مسجد نبوی مخامخ وو. کله چه دا آیت نازل شو نو هغه وویل اے د الله رسوله! زما دا باغ دے او دا ما ته په ټولو مالونو کی زیات محبوب دے او دا دے د الله تعالیٰ دپاره صدقه وی نو ته اے د الله رسوله! دا واخله او تقسیم ئے کړه نبی کریم ﷺ وفرمایل: بَخٍ! ذٰلِكَ مَالٌ رَابِحٌ. دا خو ډیر ګټور مال دے، بیا ئے وویل: تهٔ دا په خپلوانو کی تقسیم کړه نو ابو طلحه رضی الله عنه بیا دغه باغ په خپلو خپلوانو او ترونو ځامنو کی تقسیم کړو. (بخاری: ٥٦١١ ومسلم: ۲۳٦۲)

(٥) سیدنا عبد الله بن مسعودؓ، عمر بن عبد العزیزؒ، او ربیع بن خیثمؒ به چینی صدقه کوله او دا به ئے ویل چه دا مونږ ته محبوب شے دے. (قرطبی ٤/۱۳۲)

نو پدے باندے د عمل طریقه دا ده چه تا سره یو شے دے او ستا ډیر خوښ دے نو بل چا ته ئے ورکړه او پدے کی دا هم داخلیږی چه کله یو سړے ژوندے وی او مال لګوی ځکه چه په ژوند کی مال ته ضرورت راځی یعنی د مرګ نه مخکی مخکی مال لګول. لکه امام عطاءؒ ئے داسے معنیٰ کریده: (لَنْ تَنَالُوا شَرَفَ الدِّيْنِ وَالتَّقْوٰى حَتّٰى تَتَصَدَّقُوْا وَاَنْتُمْ اَصِحَّاءُ اَشِحَّاءُ تَأْمَلُوْنَ الْعَيْشَ وَتَخْشَوْنَ الْفَقْرَ) (القرطبی ٤/۱۳۳)

تاسو د دین او د تقوی شرافت نشئ حاصلولے تردے چه تاسو صدقه وکړئ پداسے حال کی چه تاسو روغ بدن والا، بخل کونکی یئ او د ژوند امید لرئ او د فقر نه یریږئ.

حَتّٰى تُنْفِقُوْا: ضحاکؒ د ابن عباسؓ نه دا هم نقل کړی چه ددے نه مراد زکاة اداکول دی.

(بغویؒ) نو که څوك زکاة ادا کړي هم پدے آیت کی داخلیږي.

نو دا آیت نفلی صدقه او فرضی صدقه دواړو باندے تیزي ورکوي. نو په آیت کی مطلق انفاق ذکر دے چه پدے کی په فقیرانو، بهائمو (حیواناتو)، خپل ځان، او خپل اهل وعیال باندے انفاق کولو ته شامل دے.

مِمَّا : (۱) بیا ظاهر دا ده چه دلته (ما) نه مراد مال دے ځکه چه انفاق غالباً د مال لګولو دپاره استعمالیږي نو کله به د انسان د پیسو سره مینه وي، کله د ګاړي سره، کله د عطرو سره، کله د نورو څیزونو سره نو هغه محبوب څیز به لګوي.

(۲) تفسیر فتح البیان لیکي : لفظ د ما (يَشْمُلُ الرُّوحَ وَالنَّفْسَ وَالْمَالَ وَالْجَاهَ). خپل روح او بدن او مال او مرتبه ټول د الله دپاره قربانولو ته شامل دے. مګر دغه څیزونه په نورو ځایونو کی ثابت دي چه د الله تعالیٰ دپاره به قربانولے شي خو دلته ظاهر تفسیر دا دے چه دا مال لګولو ته شامل دے.

وَمَا تُنفِقُوا : سره اُوس خبره عامه کوي چه که تاسو هرڅه شے - لږ وي که ډیر - د الله تعالیٰ د رضا دپاره خرج کوئ نو الله تعالیٰ په هغے پوهه دے ضرور به ئے بدله درکوي.

| |
|---|
| كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِيٓ إِسْرَآئِيلَ إِلَّا مَا حَرَّمَ إِسْرَآئِيلُ |
| ټول طعامونه حلال وو بنی اسرائیلو لره مګر هغه چه حرام کړے (بند کړے) وو یعقوب عليه السلام |
| عَلَىٰ نَفْسِهِ مِن قَبْلِ أَن تُنَزَّلَ التَّوْرَاةُ قُلْ فَأْتُوا بِالتَّوْرَاةِ فَاتْلُوهَا |
| په خپل ځان باندے مخکی د نازلیدو د تورات نه، ته ووایه نو راوړئ تورات پس ولولئ هغه |
| إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿۹۳﴾ فَمَنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ |
| که چرته یئ تاسو رشتینی. نو هغه چا چه جوړ کړل په الله باندے دروغ پس ددے نه |
| فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿۹۴﴾ قُلْ صَدَقَ اللَّهُ فَاتَّبِعُوا مِلَّةَ |
| نو دغه کسان دوي ظالمان دي. ته ووایه ! رشتیا وئیلی دي الله نو روان شئ د دین |
| إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۹۵﴾ |
| د ابراهیم عليه السلام پسے چه متوجه وو الله ته او نهٔ وو د مشرکانو نه. |

**تفسیر** : اوس بیا د یهودیانو د شبهاتو جوابونه شروع کوي نو پدے آیت کی د یهودیانو

بله شبهه او د هغے جواب ذکر دے، مناسبت ئے دا دے (۱) چه مخکی ووئیل شو چه نیکانو کی به هله داخلیږئ چه د الله تعالیٰ دپاره محبوب څیزونه خرچ کړئ نو دلته وائی چه یعقوب عليه السلام هم پدے باندے عمل کړے وو چه هغه د الله تعالیٰ دپاره دا نذر کړے وو چه د اُوښانو غوښه به نهٔ خوری او نهٔ به د هغے پئ څکی. دا جزئی مناسبت دے.

(۲) او د سیاق سره ئے مناسبت دا دے چه د یهود او نصاراؤ سره بحث شروع دے نو پدے کی د یهودیانو بله شبهه ده او هغه شبهه اکثرو مفسرینو پدے طریقه لیکلے ده چه یهودیانو په رسول الله ﷺ باندے دا اعتراض کړے وو چه د یعقوب عليه السلام په دین کی خو د اوښ غوښه حرامه وه او تهٔ هغه حلال گنړے نو ته څنگه خپل ځان د هغه په دین باندے گنړے؟ معلومه شوه چه ته د هغه په دین باندے روان نهٔ یی. نو الله تعالیٰ پدے آیت کی جواب ورکوی چه د ابراهیم او د یعقوب علیهما السلام په دین کی د اُوښانو غوښے حلالے وے او تاسو په هغوی دروغ وایئ صرف دا وه چه یعقوب عليه السلام په خپل ځان باندے د اُوښ غوښه حرامه کړے وه د څو عذرونو د وجه نه (۱) یو دا چه بیمار وو، عِرق النساء بیماری ئے وه او د اُوښ غوښه او پئ (شوده) دغه مرض دپاره ضرر وو نو دغه ئے په ځان باندے حرام کړل لکه دا قول د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے. (تفسیر القرطبی ۴/۱۳۴)

(۲) یا دا چه د الله تعالیٰ دپاره ئے نذر کړے وو چه که زهٔ الله تعالیٰ ددے مرض نه ښه کړم نو دغه غوښه او پئ به په ما د الله تعالیٰ دپاره حرام وی چه ما ته ډیر محبوب شے دے. (زاد المسیر ۲/۴).

(۳) او څینی وائی چه دا کار ئے د شکرانی دپاره کړے وو کله چه د ذکر شوی مرض نه الله تعالیٰ شفاء ورکړه (البحر المحیط ۳/۳) . بیا روستو د هغه اولادو د هغه د تابعداریٔ دپاره په ځان بندے کړے مگر په روستو بنی اسرائیلو باندے د هغوی د جرمونو د وجه نه الله تعالیٰ حرامے کړے.

(۴) څینی وائی چه دا کار ئے صرف ددے دپاره کړے وو چه الله تعالیٰ ترے راضی شی او دا څکه چه د هغه په شریعت کی دا قسم کار عبادت گنړل کیدو.

(تفسیر البغوی ۲/۶۷ طبع دار طیبة) وروح المعانی (۲/۴).

بیا الله تعالیٰ په تحریم قهری طریقے سره په بنی اسرائیلو باندے حرام کړل چه دوی جرمونه وکړل نو الله تعالیٰ پرے دغه غوښے د سزا په طریقه حرامے کړے نو حاصل دا شو چه دا د ابراهیم عليه السلام په دین کی جائز وے، د تورات د نازلیدو د زمانے نه مخکی پورے

لیکن په تاسو باندے حرام شویدی ستاسو د جرمونو د وجه نه، دے دپاره چه تاسو د خپلو جرمونو نه واوړئ نو د رسول الله ﷺ دین د ابراهیم علیه السلام د دین سره برابر دے، دوی بیا په تورات حواله ورکوله چه په هغې کې ئے لیکلي دي چه دا په ابراهیم او یعقوب علیهما السلام حرامے شویدی او بیا د هغوی په اولادو باندے نو الله تعالیٰ خپل نبی ته وفرمایل چه دوی ته ووایه چه ورشئ تورات راوړئ چه په کې وګورو نو هغوی تورات رانۀ وړے شو، ویریدل چه ونۀ شرمیږو۔ نو الله تعالیٰ پدے آیتونو کې په هغوی باندے الزامی ردونه وکړل۔

كُلُّ الطَّعَامِ : ددے نه مراد ټول د خوراك څكاك څیزونه دي د کوم په ذریعه چه یهودیانو اعتراض کړے وو یعنی دا تاسو چه کوم خوراکونه ذکر کوئ دا حرام نۀ وو۔ استغراق کلی مراد نۀ دے چه د ټولے دنیا خوراکونه حلال وو۔

حِلًّا : مصدر دے په معنیٰ د حلال سره مذکر او مؤنث، جمع او مفرد پکې برابر دي۔

مِنْ قَبْلِ أَنْ تُنَزَّلَ : یعنی د تورات د نزول نه مخکې دا ټول خوراکونه حلال وو بیا په تورات کې د دوی د جرمونو د وجه نه الله تعالیٰ په بنی اسرائیلو باندے د بعض څیزونو پابندیانی ولګولے لکه هر نوك والا حیوان پرے حرام شو لکه اوښان او بطی وغیره او د حیواناتو وازدے۔ لکه الله فرمائی: ﴿ فَبِظُلْمٍ مِنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ أُحِلَّتْ لَهُمْ ﴾ (نساء: ١٦٠)۔ نو د یهودیانو د ظلم په وجه مونږ په دوی باندے پاك څیزونه چه دوی له حلال وو حرام وګرځول) نو د خپلو عذابونو نسبت بل چا ته مۀ کوئ۔

نو دا یو قسم شبهه وه چه یهودیانو راپورته کړے وه او قرآن ئے څکه تردید وکړو چه د چا دا ګمان رانشی چه رشتیا به نبی کریم ﷺ د ابراهیم علیه السلام نه پدے کار کې مخالف وی نو الله تعالیٰ وفرمایل چه زۀ درته رشتیا خبره کوم، ما دغه غوښے په ابراهیم او یعقوب علیهما السلام باندے نۀ وے حرام کړے نو بیا ئے وفرمایل: چه د ابراهیم علیه السلام د دین پسے روان شئ په کوم باندے چه دا آخری نبی (ﷺ) روان دے۔

## ددے آیت بل تفسیر

ددے آیتونو د لګولو دویمه طریقه دا ده چه پدے آیتونو کې دلیل د نسخ بیانیږی څکه چه یهودیانو به وئیل چه په دینونو کې نسخ (منسوخیت) نۀ راځی الله تعالیٰ چه یو دین راولیږی بیا هغه نۀ منسوخ کوی، مقصد ئے دا وو چه زمونږ دین د نبی کریم ﷺ په دین

سره نهٔ منسوخ کیږي نو الله تعالیٰ دلته د نسخ دپاره دلیل بیانوي چه په دین کې نسخ شته دلیل دا دے چه یعقوب عليه السلام په ځان هغه شے حرام وګرزولو نذراً چه هغه د ابراهیم عليه السلام په دین کې حرام نهٔ وو او بیا الله تعالیٰ په بني اسرائیلو باندے د هغوي د جرمونو په وجه حرام وګرزولو قهراً نو دلیل دے چه نسخ واقع شویده. او دا آیت دواړو تفسیرونو ته شامل دے. نو که تاسو وایئ چه په هغوي باندے هم دا حرام وو نو ورته ووایئ چه تاسو په تورات دروغ جوړوئ او الله تعالیٰ رشتیا وئیلی دي.

وانظر تفسير السعدي (١٣٨/١) والتحرير والتنوير (١٥٥/٣)

**فوائد الآية :** ١- د یعقوب عليه السلام بیماري د عِرق النساء وه، دا یوه بیماري ده چه د ملا نه تر پوندو پورے اوږد رګ باندے دردونه وي، پدے کې ګنده ماده راجمع شي چه د هغے په وجه دردونه ونیسي، ددے سبب کې مفسرینو مختلف اقوال ذکر کړیدي چه نقل کولو ته ئے ضرورت نشته، د زیات معلومات دپاره، تفسیر القرطبي (١٣٤/٤)، البغوي (٦٧/٢، المنار (٤/٤) وغیره ته رجوع کولے شي.

٢- پدے آیت کې د یهودیانو تکذیب او رد دے چه دوي د خپل ځان پاکي بیانوله نو الله دروغژن ثابت کړل. (زمخشري- قاسمي).

٣- طعام: هر شي ته وائي چه خوړلے شي کله د اُوبو دپاره هم استعمالیږي.

٤- د دفع د اوهامو او تصحیح د تصوراتو یوه ضروري خبره ده څکه ورته قرآن کریم ورته تعرض کوي.

٥- نذر منل او د الله تعالیٰ د خپل خواهش خلاف بعض حلال شیان پریخودل زمونږ دین کې هم شته لکه عمر فاروق او عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنهما د طعام او شربت په باره کې داسے نذر کړے وو.

**فَاتْلُوْهَا** : د تورات لوستل دوه قسمه دي (١) یو په طریقه د عبادت باندے نو دا ناروا ده لکه حدیث کې دي چه عمر فاروق رضي الله عنه تورات لوستلو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته غصه شو او ورته ئے وویل: لَوْ كَانَ مُوْسٰى حَيًّا مَا وَسِعَهُ اِلَّا اتِّبَاعِيْ (که موسیٰ عليه السلام ژوندے وے نو هغه دپاره به هم جائز نهٔ وے مګر زما تابعداري). او بل روایت کې دي:

[لَوْ بَدَا لَكُمْ مُوْسٰى فَاتَّبَعْتُمُوْهُ وَتَرَكْتُمُوْنِيْ لَضَلَلْتُمْ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيْلِ] (الدارمي: ٤٣٥ اسناده ضعيف لضعف مجالد بن سعيد والحديث حسن) . که تاسو ته موسیٰ عليه السلام رابنکاره شي او تاسو د هغه پسے روان شوئ او زهٔ مو پریښودم خامخا به ګمراه شئ د نیغے لارے نه). او یو

څل عبد الله بن سلام ﷺ وفرمایل: یا رسول الله !که مونږ تورات ولولو ؟ وے فرمایل: نهٔ، نو دا آیت نازل شو چه ﴿ یَا أَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُوا ادْخُلُوا فِی السِّلْمِ کَافَّةً﴾ ـ په اسلام کی پوره پوره داخل شئ۔ (۲) د تاریخ د معلومولو او د تحقیق دپاره او په مخالف باندے د رد په نیت لوستل او مطالعه کول ئے جائز دی، دا تقسیم څکه کوو چه د امت علماؤ، سلفو مشرانو تورات مطالعه کړیدے او د هغے نه ئے حوالے ورکړیدی چه زمونږ د آخری نبی او د قرآن رشتینوالے د دوی په کتابونو کی هم شته۔ بعض بی باکه ملیان وائی چه تورات منسوخ نهٔ دے څکه چه دلته دلته د هغے په تلاوت امر شویدے۔ جواب دا دے چه دلته صرف د هغوی رد په یوه مسئله کی غرض دے، د تورات لوستل د عبادت دپاره مراد نهٔ دی۔

| إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ |
|---|
| یقیناً اولنے کور چه کیخودے شوے دے د خلقو دپاره خامخا هغه دے چه په مکه کی دے، |
| مُبَارَكًا وَّهُدًى لِّلْعَالَمِينَ ﴿٩٦﴾ فِيهِ آيَاتٌ بَيِّنَاتٌ مَّقَامُ |
| برکت والا دے، او هدایت دے دپاره د مخلوقاتو۔ پدے کی نخے دی ښکاره (یو پکی) ځای د ودریدو |
| إِبْرَاهِيمَ وَمَن دَخَلَهُ كَانَ آمِنًا وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ |
| د ابراهیم ﷺ دے او څوك چه داخل شو دے ته وی به په امن او خاص د الله دپاره په خلکو باندے |
| حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا وَمَن كَفَرَ |
| حج کول د بیت الله دی په هغه چا چه طاقت لری هغے ته د لارے او چا چه کفر وکړو |
| فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ ﴿٩٧﴾ |
| نو یقیناً الله بی حاجته دے د ټولو مخلوقاتو نه۔ |

**تفسیر** : اُوس الله تعالیٰ د کعبے او د حرم فضائل په ډیرو طریقو سره بیانوی، دا ولے بیانوی؟ دا هم جواب د شبهے دے چه یهود او نصاراو وئیلی وو زمونږ قبله غوره ده۔

شان نزول او ربط

۱– یهودو مسلمانانو ته وویل : زمونږ قبله بیت المقدس ډیر غوره او افضل دے او مسلمانانو وویل چه کعبه ډیره افضله ده نو دا آیتونه نازل شو۔ (روح المعانی ٤/٤)

د یهودو دا تصور غلط وو نو څکه الله تعالیٰ ددے جواب وکړو دے دپاره چه هسے نهٔ چه د

یهودو ددے خبرے د وجه نه د چا تصور غلط جوړ شی او یهودیان ورته غوره بنکاره شی، ځوك به ووائی چه دا خللك اهل كتاب او د علم خاوندان دی رښتیا به وائی نو ځکه ئے وفرمایل چه په مخ د زمکه باندے د عبادت دپاره اوله جوړه شوے کوټه هغه دغه کعبه معظمه ده۔

(۲): مخکی ئے وویل چه د ملتِ ابراهیمی پسے روان شئ او دروغ مهٔ وایئ نو اُوس وائی چه د دوی دا بله خبره هم دروغژنه ده چه د کعبی معظمے نه بیت المقدس غوره گنړی وائی چه بیت المقدس ته ابراهیم علیه السلام د عراق نه هجرت کړے او د اکثرو انبیاء علیهم السلام مسکن او مدفن دے او مسلمانانو ته وائی چه تاسو څنګه خپل ځانونه ابراهیم علیه السلام ته نزدے گنړئ حال دا چه د هغه د اولادو قبله مو پریښوده او کعبه مو قبله وګنړله؟۔

د ابوذر رضی الله عنه په حدیث کی راغلی دی چه دهٔ پوښتنه وکړه چه اے د الله رسوله! کوم یو کور اول جوړ شویدے؟ وے فرمایل: مسجد حرام۔ بیا کوم یو؟ وے فرمایل: بیت المقدس۔ مینځ کی ئے څومره وخت وو؟ (أَرْبَعُوْنَ عَامًا)۔ څلوېښت کاله۔ مخکی مونږ ویلی وو چه د بعض علماؤ په نیز کعبه اول ملائکو بیا روستو آدم علیه السلام او د هغه اولادو جوړه کړیده بیا ابراهیم علیه السلام بیا بنو جُرهم، بیا قریشو بیا عبد الله بن زبیر رضی الله عنه او بیا حجاج بن یوسف جوړه کړیده او دویم قول دا وو چه اول جوړونکے ابراهیم علیه السلام دے او دا دواړه تاریخی خبرے دی نو ددے وجه نه به په آیت کی دوه تفسیرونه وی او رد به وی په یهود او نصاراؤ او د کعبی فضائل به پکی بیانیږی او بندګانو ته فائدے بیانیږی، د قرآن کمال دا دے چه یوه خبره کی ډیرے خبرے راجمع کوی۔

(۱) تفسیر: اَوَّلَ بَیْتٍ وُّضِعَ مُطْلَقًا) یعنی کائنات چه الله تعالیٰ پیدا کول نو اول ئے پکی دا کوټه ودروله د بندګانو د فائدو دپاره لکه په حدیث د بخاری کی راغلی دی۔ (اِنَّ هٰذَا الْبَلَدَ حَرَّمَهُ اللّٰهُ یَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ) ۔ ک له چه الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه پیدا کړل نو دے ښار ته ئے عزت ورکړو۔ (۲) دویم تفسیر: (اَوَّلَ بَیْتٍ وُّضِعَ مُتَعَبَّدًا وَّقِبْلَةً)۔ یعنی اوله کوټه چه د خلکو دپاره د عبادت ځای او قبله جوړه شویده نو هغه دا کعبه ده۔ ددے نه مخکی کورونه به وو لیکن اول عبادتخانه دا جوړه شویده، ددے نه معلومیږی چه پخوانو انبیاؤ علیهم السلام به هسے دے طرفته مونځ او عبادت کولو او د ابراهیم علیه السلام د زمانے نه روستو ټول انبیاء علیهم السلام پدے قبله راغونډ شویدی لکه (للناس او للعالمین) الفاظو نه معلومیږی نو بیت المقدس د هیڅ نبی قبله نهٔ وه صرف زمونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم

تـه د اولسو یا اتلسو میاشتو دپاره بیت المقدس قبله جوړه شوه او بیرته بیا کعبې ته واړولے شـو دا زمـونږ د نبی ﷺ خصوصیت شو چه دوه قبلو ته ئے مونځ وکړو۔ موسیٰ علیه السلام به هم بیت الله ته راتلو۔ حدیث د صحیحینو کی دی: (أَمَّا مُوسٰى كَأَنِّیْ أَنْظُرُ إِلَيْهِ إِذَا انْحَدَرَ فِی الْوَادِیْ يُلَبِّیْ) (بخاری۱۵۵۵ ومسلم۴۴۰) ۔ هرچه موسیٰ علیه السلام دے گویا که زهٔ هغه ته گورم چه په دغه کنده کی ورښکته شو (کعبے ته روان دے) او تلبیه وائی)۔

## کعبه په لسو وجوهو سره د بیت المقدس نه غوره ده

(۱) کعبه معظمه د زمکے په مخ اوله کوټه ده چه د عبادت دپاره مقرر کړے شویده او بیت المقدس دویمه کوټه ده۔

(۲) د آدم علیه السلام د زمـانے نه تر نن ورځے پورے کعبه د خلکو د عبادت ځای دے، بیا چا پکی شرعی عبادت کړے او چا پکی شرك کړیدے او چا د عبادت په صفت منلے او چا ترے انکار کړے لکه اهل کتاب ئے ترے کوی۔

(۳) کعبـه په یو ښار ځای کی واقع ده چه مکه ورته وائی لیکن د خلکو د زیاتی گڼرے په وجه هغے ته بکه هم وائی آیا دومره گڼره په بیت المقدس کی شته ؟ سره ددے نه چه په ډیر تروتازه وطن کی واقع دے۔

(٤) څـومره چه کعبه برکت ناکه کوټه ده چه ډیر زیات حسی او معنوی برکات لری، په هیـڅ وخـت کـی د تـازه میـوه جاتو نه نهٔ خالی کیږی او نهٔ د عبادت کونکو نه خالی کیږی چه دغسے بیت المقدس نهٔ دے۔

(۵) کعبه د ټولو عالمونو دپاره د هدایت یوه ذریعه ده او د اتفاق او اتحاد یو مرکز دے۔

(٦) پـدے کـی د الله تـعـالیٰ د قدرتونو ډیرے ښبے ښانی دی چه تفصیل ئے روستو راځی لـکـه د زمزم کـوهے او د صـفـا او د مروه غونډئ چه د اسماعیل علیه السلام او د بی بی هاجرے رضی الله عنها حالات تاسو ته رایادوی۔

(۷) دلتـه د ابراهیم علیـه السـلام مقـام (ځای د ودریدو) شته آیا په بیت المقدس کی د پیـغـمبرانو علیهم السلام او د ابراهیم علیه السلام کـوم یـو یـادگار شته چه د خلکو په زړونو کی ځای ونیسی او د نن ورځے پورے ئے زیارت کوی؟۔

(۸) د کـعـبـی مـعـظمی گیرچاپیره ځای د امن والا گرځیدلے دے، چه کافران هلته حملے نهٔ کـوی او الله تـعالیٰ د امن ځای گرځولے دے (حرم ئے گرځولے دے) آیا بیت المقدس دغه شان

حرم او د امن ځای دے څه ؟!

(۹) الله تعالیٰ په ټولو خلکو باندے د کعبې زیارت (حج) کول فرض کړيدی تردے چه په اهل کتابو هم فرض دی چه ایمان راوړی او بیا حج وکړی آیا بیت المقدس ته د حج دپاره ورتلل فرض دی ؟۔

(۱۰) که څوك د دغه کوټې خاص زیارت فرض نۀ گنړی لکه تاسو اے اهل کتابو ! نو الله تعالیٰ ستاسو نه سره د ټولو مخلوقاتو نه بی پروا دے آیا بیت المقدس دغه حیثیت لری ؟۔

بَكَّةَ : د مکے تقریباً شل نومونه دی چه حافظ ابن کثیر (۳۸۳/۱) کی ذکر کړیدی او د مدینے دوه سوه نومونه دی چه سمهودیؒ په خلاصة الوفاء باخبار دار المصطفی (۵/۱) کی د هغے نه پنځه نوی (۹۵) ذکر کړيدی۔ او ډیروالے د نومونو د یو شی په شرافت باندے دلالت کوی۔

## مکه او بکه

مكة : معنیٰ ده، قِلَّةُ الْمَاءِ - د اُوبو کموالے۔ یا مکه د تَمَكُّكُ نه اخستے شویده چه د مغزو ویستلو ته وائی (مفردات راغب ص: ۴۹۱) مکه معظمه هم د جبارو خلکو ماغزه راویاسی او هلاکوی ئے کله چه پرے حمله وکړی لکه اصحاب الفیل چه ئے هلاك کړل۔

او بكة : معنیٰ ده ټیل کول او جنګیدل۔ نو پدے کی هم په وخت د طواف کی خلك یو بل سره ټیل کوی او یو بل سره جنګیږی۔ نو بناء پدے به بکه خاص د طواف ځای ته وائی او مکه عامه ده۔

ځینی وائی : بك، ټکولو او ماتولو ته وائی۔ لِأَنَّهَا تَبُكُّ أَعْنَاقَ الْجَبَابِرَةِ إِذَا أَلْحَدُوا فِيهَا بِظُلْمٍ) نو مکه کی چه څوك الحاد (او فساد) وکړی نو څټ ئے ماتوی۔ (القرطبی ۱۳۸/۴)

او د بکه معنیٰ د عاجزی کولو هم ده، دلته ټول مخلوق عاجزی کوی بادشاه وی که ګدا۔

(۲) امام مجاهدؒ وائی : مکه او بکه دواړه یوشے دے او کله میم په باء سره بدلیږی لکه طین لازب او لازم) او راتب کی راتم او په دائب کی دائم وئیلے شی۔ (تفسیر کبیر ۱۵۶/۸)

## کعبه معظمه برکتناکه ده

مُبَارَكًا : دا حال دے د (وضع للناس) نه یعنی پداسے حال کی دا کور کیخودلے شویدے چه برکت پکی اچولے شویدے۔ (مبارکا) د برکت نه اخستے شویدے او د برکت معنیٰ ده زیادت

او ډيروالے او بل دوام (بقاء) او هميشوالے۔

د کعبي برکات دا دي: ﴿ تنګ ځای دے او په لکهونو مخلوق په کی الله تعالیٰ ځای کوی او خلك پكى په ګڼړه طوافونه کوی او ځوك پكى غالباً نۀ مری۔

(۲) اُویه پکی هر چا ته ملاویږی (۳) رزق هر چا ته ملاویږی، هر قسم خوراکونه او بی موسمه میوه جات پکی ملاویږی، د نورو ښارونو نه ورته راوړل کیږی، سره ددے نه چه خپله یو شاړ ځای وو۔ (٤) دعاګانی پکی قبلیږی (٥) یو مونځ پکی په یو لاکه باندے دے۔

(٦) کعبه هیڅکله د عبادت نه نۀ خالی کیږی، یو پدے وجه چه د ټولے دنیا قبله ده او د اقالیمو په اعتبار سره په ځلیریشتو ګینټو کی داسے وخت نۀ راځی چه هغه د یو اقلیم د مانځه وخت نۀ وی او خلك پكى کعبی معظمے ته د قبلے په شکل په سجده نۀ وی پراته، او بل پدے وجه چه د خلکو زړونه ورته مائل کړځول شویدی چه په ټول کال کی ورته مخلوق د عُمرو او عبادتونو دپاره راروان دے۔

(۷) په دائمی شکل باندے د حج کونکو او عمره کونکو ګناهونه الله تعالیٰ بخښی او داسے وخت نۀ دے راغلے او نۀ به د قیامته پورے راشی چه د کعبی معظمے دغه برکت منقطع شی او چا ته پکی بخښنه ونشی۔

(۸) د کعبی یو برکت دا هم دے چه د دنیا بقاء په دے باندے ده، ترڅو پورے چه کعبه ودانه وی، الله تعالیٰ به دنیا نۀ ورانه وی۔ لکه الله فرمائی: ﴿ جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيَامًا لِلنَّاسِ ﴾ (المائدة: ۹۷)۔ الله تعالیٰ کعبه چه عزتمند کور دے د خلکو د ژوند سبب ګرځولے ده۔

وَّهُدًى لِّلْعٰلَمِيْنَ : (۱) يعنی سبب د هدايت دے۔ (۲) یا ځای د هدايت دے۔

## کعبه معظمه څنګه هدايت دے؟

(۱) کعبه پدے وجه هدايت دے چه دا قبله ده او په مانځه کی دے طرفته توجه کیږی، او پدے باندے اجر ملاویږی۔ (۲) سبب معرفة الله۔ د الله د وجود او معرفت ډیر دلائل دی یو پکی کعبه ده چه پدے سره د الله تعالیٰ په وجود باندے ډیر استدلالونه کیږی۔ نو کعبه د الله تعالیٰ د توحيد نښه ده۔ لکه الفوائد (۲) جلد وګوره۔

(۳) کعبه کی الله تعالیٰ یو هدايت دا هم اچولے دے چه ځوك هلته په ښه نیت لاړ شی نو اګر که مشرك وی هم ورته الله تعالیٰ ضرور هدايت کوی، فاسق وی الله تعالیٰ ورته د توبی توفیق ورکړی، مبتدع وی الله تعالیٰ ورته د سنتو توفیق ورکړی، که ډیر ضدی نۀ وی نو

ضرور په هغه کې تبدیلي او نرمي پیدا کیږي- پدې وجه هر حاجي او عمره کونکي دپاره پکار دي چه د ځان سره د هدایت نیت وکړي نو الله تعالیٰ به ورته ډیر زیات هدایت وکړي۔
(٤) کعبه کې زیات نیك اعمال کیږي دا هم هدایت دے۔ (٥) توبه خلك اُوباسي دا هم هدایت دے۔ (٦) علماء بیانات کوي په هغے هم هدایت کیږي۔
(٧) د کعبے په لیدلو سره زړه نرم شي خیر طرفته مائل شي، دا هم هدایت دے۔
(٨) دعا قبلیږي، د الله تعالیٰ محبت ډیریږي۔ (٩) مرکز دے د مسلمانانو نو د هغوی د اجتماع او وحدت سبب دے، دا هم هدایت دے۔ (١٠) کعبه سبب د رغبت د بندګانو دے الله تعالیٰ ته او دا لوی هدایت دے چه د سړي رغبت الله تعالیٰ ته پیدا شي۔
لِلْعَالَمِيْنَ : کې اشاره ده چه قبله د ټولو انسانانو قبله ده اګرکه یهود او نصاریٰ دي، لیکن هغوی بدله کړیده۔
فِيْهِ آيَاتٌ : فیه ضمیر دغه بیت ته راجع دے مراد ترے ټول حرم دے۔ یعنی په دغه ځای کې چه حرم دے ښکاره نښے دي د الله تعالیٰ په قدرت او وجود او معرفت باندے او پدے خبره چه دا د الله تعالیٰ حرمِ محترم دے۔

## د حرم ناشنا نښے

امام ابن القیمؒ په بدائع التفسیر کې ذکر کړیدي چه ما په یوه رساله کې د حرم (٤٠) آیات بینات ذکر کړیدي لیکن هغه ئے بیا نهٔ دي بیان کړي، ارمان چه بیان کړي ئے وے ځکه چه هغوی ته الله تعالیٰ د دین ډیر لوی بصیرت ورکړے وو۔ نو ددے (آیات بینات) د معلومولو ډیرے طریقے دي چه کله ډیر هوښیار ملګري په حرم کې کیني او یو یو د خپل ذهن او مشاهدے مطابق هغه بیانوي نو ډیر شے به راجمع کړي بعض مونږ ذکر کوو :
(١) یو خو خپله پدے آیت کې ذکر دے چه هغه (مقام ابراهیم) دے چه دا د الله تعالیٰ د قدرت لویه نمونه ده چه په اُوچه کټه کې د هغه د قدم نښوتل دي، بیا یوازې د قدم ځای نرمیدل، بیا بیرته دغه ځای کلکیدل او بیا پدے کاڼړي باندے زرګونه کلونه تیر شویدي او تر اُوسه پورے باقي پاتے دے۔
(٢) اَلْمَحَبَّةُ فِيْ قُلُوْبِ النَّاسِ۔ کعبه د خلکو په زړونو کې محبوبیت لري، سیده ساده کوټه ده لیکن ډیر رعب لري او د خلکو ورسره ډیره مینه پیدا کیږي۔ که یو فاسق ئے هم ویني نو زړه ئے نرمیږي۔ نو دا محبوبیت پکې چا واچولو ؟ دا د الله تعالیٰ د عظمت لوی دلیل دے۔

که خوك ئې يو کرت وينې بار بار ئې زړه کيږي۔
(۳) تنګ ځای دے او ډير خلك په کې راجمع کيږي۔
(٤) زمزم اُوبه پکې دي چه د مرضونو شفاء ده او د خوراك نه خوراك دے۔ چه هغه د ډيرے مودے پورے نهٔ خرابيږي۔ او د زمزم د يو څاڅکي سره د نورو اُوبو زر څاڅکي واچوه د زمزم طاقت او خوند به پرے غالبه وي۔ (۵) ضررى او ماتونکي حيوانات دے مقام ته نهٔ راځي۔ لکه مار، لړم، زمرى، ګيدړان وغيره۔ (٦) د کعبې په کوم ګوټ باندے چه باران وشي نو په هغه طرف باندے الله تعالیٰ په دغه کال کې فراخيانې راولي۔
(۷) کعبه باندے زلزله نهٔ راځي۔ (۸) هلته صفا او مروه دي۔
(۹) يو ښکارى به ښکار طلب کوى خو کله چه ترے ښکار حرم ته داخل شي بيا ئې پريږدي۔ (القرطبي ٤/١٣٩)
(١٠) ځاى د امن دے، لکه روستو نه معلوميږي۔ مشرکانو به هم چه کله خپل قاتل په حرم کې وموندو نو هغه ته به ئې څه ونهٔ ويل۔ (١١) ددے نه الله تعالیٰ ټول کافران جبارين اړولي دي کله ئې چه ددے غلطه اراده کړيده تردے چه ابرهه سره د لوى لښکر نه ئې مقابله ونکړے شوه۔ (التحرير والتنوير)۔
(١٢) هلته د انسان خوَله بد بوئي نکوى۔ (١٣) حجر اسود ښکلولو سره زړه خوشحاله شي۔ (١٤) په کعبه باندے رحمتونه نازليږي۔ (١٥) ددے نور تر آسمانه پورے رسيږي لکه بعض کسانو دغه نور ليدلے دے۔ (١٦) مؤمنان په ديدار نهٔ مړيږي، بار بار شوق ورته کيږي۔ (١٧) په هغے کې د ډيرو عبادتونو کولو په وجه د رزق فراخي راځي۔ (١٨) ددے بيت الله نه حج او عمره کولو سره د بنده فقر او ګناهونه ختميږي۔
(١٩) د امت د خيريت سبب دے چه کله د کعبې تعظيم کوى۔ لکه حديث کې دي: (لَا تَزَالُ هٰذِهِ الْأُمَّةُ بِخَيْرٍ مَا عَظَّمُوْا هٰذِهِ الْحُرْمَةَ) (ابن ماجه: ٣١١٠ وفي سنده يزيد بن ابى زياد ضعيف)۔ دا امت به په خير روان وي ترڅو چه ددے کعبې د احترام تعظيم کوى۔
(٢٠) د زمانے او د مودو په تيريدو سره دا باقي پاتے ده سره ددے نه چه دشمنان ئې هم زيات دي دا دليل دے چه الله تعالیٰ ددے حفاظت کړيدے۔
(٢١) لس برکات (٢٢) او لس طريقے د هدايت نو ټول څلويښت شو۔
مَقَامُ إِبْرَاهِيْمَ : دا خبر د مبتداء محذوفي دے يعني مِنْهَا مَقَامُ اِبْرَاهِيْمَ)۔ يعني ځينې د دغه ښکاره نښو نه مقام ابراهيم دے۔ يا دا بدل دے د آيات بينات نه، او مقام ابراهيم اګر که مفرد

دے لیکن په ډیرو نسخو باندې مشتمل دے لکه چه مخکښې ورته اشاره وشوه نو بدلیت ئے صحیح دے۔

وَمَن دَخَلَهُ كَانَ آمِنًا : (۱) یوه ظاهري معنیٰ ده چه څوك حرم ته داخل شو نو هغه ته به ضرر او تکلیف نشي ورکولے او نهٔ به تنګولے شي، دغه ته به د الله تعالیٰ د طرف نه او د مسلمانانو د طرفنه امن وي نو دا حکم شرعي دے چه څوك حرم ته داخل شي نو تاسو ورته امن ورکړئ۔ او الله تعالیٰ په جاهلیت زمانه کې هم د امن ځاي ګرزولے وو چه عامو کافرانو به په کلو او علاقو باندې حملے کولے او مکه الله تعالیٰ د خلکو د حملو نه بچ ساتلے وه۔

(۲) او دے کې دا معنیٰ هم ده چه څوك حرم ته د عبادت او د تعظیم په نیت باندې داخل شو او مؤمن وو نو هغه ته به الله تعالیٰ په قیامت کې د عذابونو نه امن ورکړي، ځکه چه حج او عمرے سره د بنده ګناهونه معاف کیږي او د جنت د داخلیدو او د جهنم نه د بچاؤ ذریعه ده۔

## د حج فرضیت

وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ : د جمهورو علماؤ په نیز پدے آیت باندې حج فرض شویدے۔ مګر څینی علماء کرام وائي چه په ﴿وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ﴾ (البقره: ۱۹۶) آیت باندې فرض شویدے، په هر تقدیر په عمر کې حج کول یو ځل فرض دي۔ مګر صحیح قول اولنے دے ځکه چه حج په (۹) سنه هجري کې فرض شویدے او (واتموا الحج) والا آیت په (۶) کال د هجرت نازل شویدے۔

لله : دا کلمه ئے مخکښې راوړه اشاره ده اخلاص ته چه حج به صرف او صرف د الله تعالیٰ د رضا او د هغه د حکم د عملي کولو په نیت کولے شي۔

(علی الناس) حج اګرکه په مسلمانانو فرض دے لیکن ددے سره سره ئے (علی المؤمنین) ونهٔ ویل بلکه (علی الناس) ئے وویل شاید چه ددے حکمت به دا وي چه حج د اسلام نه مخکښې قومونو باندې هم فرض وو لکه یهود او نصاریٰ بلکه د ابراهیم ؑ د زمانے نه راپدے خوا هیڅ یو نبي نشته چه هغه حج نهٔ وي کړے۔ (روح المعاني ۱۴/۴)

نو پدے کې په اهل کتابو باندې هم رد دے چه که تاسو په رشتیا په ابراهیمي ملت باندې روان يئ نو د هغه سنت مو ولې پرینښي دي؟، اهل کتابو ته به حج مشروع نه

ښکاره کیدو. (تفسیر مظهری۲/۱۰۰)

حِجُّ الْبَیْتِ : حج لغت کی قصد کولو ته وئیلے شی خاصکر چه د لوی شی اراده وی.

مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا : اول کی ئے ووئیل چه په هر چا حج لازم دے اُوس وائی چه هر څوك چه حج ته د لارے طاقت مومی په هغه فرض دے، که دا قید ئے نهٔ وے لګولے نو بیا به حج په هر چا لازم وے غریب وی که مالداره.

## استطاعت څه شے دے؟

د نبی کریم ﷺ نه تپوس وشو چه (مَا السَّبِيلُ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ؟) د لارے طاقت څه شے دے؟ نبی کریم ﷺ جواب ورکړو : (اَلزَّادُ وَالرَّاحِلَةُ) توښه او د سورلئ طاقت. یعنی دومره توښه درسره وی چه ستا تللو راتللو پورے تهٔ د سوال نه بچ کیږے او کور ته نفقه پریدے او د سورلئ (جهاز وغیره) ټیکټ وس دے کیږی نو حج درباندے فرض دے، خو افسوس چه د ډیرو مسلمانانو دا دواړه طاقتونه شته لیکن هغوی حج د عمر آخر ته ساتلے وی چه ښه بوډا شی او د کار نه وځی بیا د حج اراده وکړی، افسوس په حال دا داسے خلکو!!.

بیا کوم انسان سره چه توښه او د سورلئ طاقت وی نو هغه باندے حج فرض دے بیا برابره ده چه بدنی طاقت ئے وی او که نهٔ، که بدنی طاقت ئے وی خپله به ځی او که بدنی طاقت ئے نهٔ وی نو نائب به ولیږی لکه د رسول الله ﷺ نه یوے زنانه پوښتنه وکړه :

[إِنَّ فَرِيْضَةَ اللّٰهِ عَلٰى عِبَادِهِ أَدْرَكَتْ أَبِىْ شَيْخًا كَبِيْرًا لَايَثْبُتُ عَلَى الرَّاحِلَةِ أَفَأَحُجُّ عَنْهُ؟ قَالَ نَعَمْ، وَذٰلِكَ فِىْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ] (بخاری: ۱۵۱۳ومسلم: ۳۳۱۵).

د الله تعالیٰ فریضه (حج) زما پلار باندے راغلے ده چه هغه ډیر بوډا دے په سورلئ نشی ټینګیدے نو آیا زهٔ د هغه د طرفنه حج وکړم؟ نبی کریم ﷺ وفرمایل: آؤ، او دا پوښتنه په حجة الوداع کی وه) معلومه شوه چه حج په مال فرض دے.

وَمَنْ كَفَرَ : پدے کی عام کفرونو ته هم اشاره ده او خصوصاً د حج پریخودل مراد دی. دلته الله تعالیٰ د حج په نهٔ کولو باندے د کفر اطلاق کړیدے اګرکه د عامو اهل علمو وینا دا ده چه د حج پریخودلو په ګناه سره بنده د اسلام نه نهٔ وځی خو دومره ده چه د کافرانو عمل دے او دیته کفر دون کفر وائی خو دلته په یهودیانو باندے رد ذکر کیږی او هغوی د نورو کفرونو سره سره حج هم نهٔ منی او بل د بیت الله بیعزتی کوی دا کعبه نهٔ منی نو پدے معنیٰ باندے به دا حقیقی کفر وی چه پدے سره به د اسلام نه بهر کیږی. او که مسلمان

سړی حج ونکړو نو په دهٔ باندے خطره ده چه اسلام نه وځی معنیٰ به دا وی چا چه حج ونکړو نو دا کفر ته نزدے شو او حقیقی کافر به نهٔ وی لکه دا وعید رسول الله ﷺ هم بیان کړیدے: (مَنْ مَلَكَ زَادًا وَرَاحِلَةً تُبَلِّغُهُ إِلَى بَيْتِ اللَّهِ وَلَمْ يَحُجَّ فَلَا عَلَيْهِ أَنْ يَمُوتَ يَهُودِيًّا أَوْ نَصْرَانِيًّا) (الترمذی ۱/۱٦۷) وسنده ضعیف للحارث الاعور) څوك چه د توښے او د سورلۍ مالك شو چه دا ئے بیت الله ته ورسوی او دهٔ حج ونکړو نو دا دے یهودی مړ شی یا نصرانی) یعنی خاتمه به ئے الله تعالیٰ خرابه کړی او دا د وعید په درجه کی وئیل شویدی۔

دا روایت د سند په لحاظ ضعیف دے لیکن دغه شان قول د عمر فاروق رضی الله عنه نه په حسن سند ثابت دے لکه شیخ البانیؒ په السلسلة الضعیفة رقم: (٤٦٤١) کی راوړیدے۔ (لِيَمُتْ يَهُودِيًّا أَوْ نَصْرَانِيًّا رَجُلٌ مَاتَ وَلَمْ يَحُجَّ وَجَدَ لِذَلِكَ سَعَةً)۔ یعنی هغه سړے یهودو یا نصرانی مړ شو کوم چه د حج دپاره فراخی مومی او حج ونکړی)۔ نو پدے سره ئے تائید کیږی۔

وَمَنْ كَفَرَ : یعنی څوك چه حج نهٔ کوی نو دهٔ د کافرانو عمل وکړو او څوك چه کفر وکړی نو الله تعالیٰ د ټولو مخلوقاتو نه بی حاجته دے نو دهٔ ته ئے هم هیڅ حاجت نشته، د حج فائده خو بنده ته راواپس کیږی، کعبه الله تعالیٰ د بندګانو دپاره ایښے ده کله چه بنده د هغے نه فائده نهٔ اخلی د الله تعالیٰ ورته څه ضرورت دے، دارنګه کعبه د الله تعالیٰ د محبت ځای دے کله چه دا بنده د الله تعالیٰ سره مینه نهٔ لری نو د الله تعالیٰ ورته څه ضرورت دے۔

| |
|---|
| قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَاللَّهُ شَهِيدٌ عَلَى مَا |
| اے کتاب والو! ولے کفر کوئ په آیتونو د الله تعالیٰ او الله ګواه دے په هغه عملونو |
| تَعْمَلُونَ ﴿۹۸﴾ قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ مَنْ |
| چه تاسو ئے کوئ۔ ووایه! اے کتاب والو! ولے منع کوئ د الله د لارے نه هغه چا لره |
| آمَنَ تَبْغُونَهَا عِوَجًا وَأَنْتُمْ شُهَدَاءُ |
| چه ایمان ئے راوړیدے، تاسو لټوئ دغه لارے لره کوږوالے او حال دا چه تاسو علم لرئ |
| وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿۹۹﴾ |
| او نهٔ دے الله ناخبره د هغه عملونو نه چه تاسو ئے کوئ۔ |

**تفسیر** : پدے دوه آیتونو کی الله تعالیٰ اهل کتابو ته رټنه ورکوی څکه چه د دوی

موضوعات ختمیږي او مؤمنانو ته ترغیب ورکوي چه د دوی خبره مه منئ نو دلته دوه دعوته دي، اهل کتابو ته وائي چه ورانے مه کوئ او مؤمنانو ته وائي چه د دوی د خبرو منلو نه ځان وساتئ، اهل کتابو ته وائي چه تاسو ! د عناد او د ضد د غونډئ نه راخکته شئ او دلائلو ته غاړه کیږدئ او ایمان راوړئ او د الله تعالیٰ په آیتونو کفر مه کوئ ځکه چه ستاسو په کفر اختیارولو باندے تاسو سره څه دلیل دے؟ الله تعالیٰ ستاسو په پټو اعمالو باندے خبردار دے نو الله تعالیٰ ته ور روان یئ هغه به درسره حساب کوي۔

لِمَ تَصُدُّوْنَ : هغوی به ووائي چه مونږ څه کفر کړیدے؟ ورته ووایه چه تاسو ولے خلك د الله تعالیٰ د لارے نه اړوئ چه په دین کی ورته شبهات پیدا کوئ، کله د اوبښانو په غوبښو او پیو باندے اعتراض کوئ او کله د قبلے په بدلون باندے حال دا چه تاسو خو عاقلان یئ او هم په پټه کی په حقائقو باندے ګواه یئ نو د الله تعالیٰ په حضور کی به څه جواب ورکوئ الله تعالیٰ ستاسو د عملونو نه خبردار دے۔

عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ : دلته د سبیل الله نه مراد ټول اسلام دے، د سبیل الله اطلاق کله په یو سنت طریقه هم کیږي، یعني د رسول الله ﷺ نه خلك اړول، او د هغه د سنت نه خلك اړول۔

مَنْ آمَنَ : دا مفعول دے د (تصدون) دپاره۔

تَبْغُوْنَهَا عِوَجًا : د اړولو طریقه ئے دا وه چه د الله لاره به ئے خلکو ته بده او کږه ښکاره کوله، لکه د باطل پرستو طریقه دا ده چه کله د حق مقابله کوي نو کله زور استعمالوي چه په هغے کار ونشي نو بیا کله (تَشْوِيْهُ صُوْرَةِ الْحَقِّ) کوي یعني د حق شکل او صورت بد او نفرتي ښکاره کوي دے دپاره چه خوك ئے قبول نکړي۔ لکه کله وائي چه دا نوی پیدا شویدي، نابته ورته وائي او کله ورته (صُبَاة) صابیان وائي، کله ورته حشویه وائي، کله وائي دا د انګریز پیدا وار دے، کله وائي وهابیان دي، د پلار نیکه خلاف دین دے، کله وائي د دوی په لاره کی بے ادبي ده، د دوی مذهب ناقص دے، قرآن او حدیث کی لسمه حصه دین نشته، کله وائي میښه پکي راته وښایئ، پدے ټولو خبرو سره د دوی غرض د حق شکل بد ښکاره کول دي چه خوك ورته نزدے رانشي، دا اعتراضونه په هره زمانه کی باطل پرست کوي۔ دا د یهودو طریقه هم وه، بعض باطل پرست د عوامو د متنفره کولو دپاره وائي چه ستاسو بخاري کی خو په ولاړه متیازے کول هم راغلي دي نو آیا تاسو به په ولاړه هم متیازے کوئ۔ ته به وائي چه بخاري زمونږ کتاب دے او د دوی کتاب نه دے، مونږ وایو چه په حدیث کی په ولاړه نه چه په پرتو راغلي وي هم مونږ به ئے منو، نو دا

جائز دي پدې کې هيڅ اشکال نشته.
وَأَنْتُمْ شُهَدَآءُ : يعني تاسو په پته ددې ګواهي هم ورکوئ چه دا رسول حق دے. او شهداء په معنیٰ د پوهه سره يعني تاسو پدے پوهيږئ چه دا کار زمونږ غلط دے.

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا مِّنَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتَابَ يَرُدُّوْكُمْ |
| اے ايمان والو! که چرته تاسو تابعداري کوئ د يوے ډلے د اهل کتابو واپس به کړي تاسو |
| بَعْدَ إِيْمَانِكُمْ كَافِرِيْنَ ﴿١٠٠﴾ |
| پس د ايمان ستاسو نه کافران. |

**تفسير**: پدے آيت کې الله تعالیٰ ايمان والا منع کوي د طاعت د اهل کتابو نه.

## ارتباط :

(۱) مخکې آيتونو کې الله تعالیٰ د اهل کتابو د شبهاتو جوابونه وکړل او هغوی ته ئے دعوت ورکړو چه ځانونه خپله هم مهٔ ګمراه کوئ او نورو خلکو ته هم د ګمراهئ دعوت مهٔ ورکوئ نو اُوس مسلمانانو ته وائي چه تاسو د هغوي خبره مهٔ منئ ځکه چه دوی تر قيامته پورے يوازی ستاسو په عملي اطاعت کولو باندے اکتفاء نهٔ کوي بلکه هغوی کوشش کوي چه تاسو د ايمان نه بيرته وګرځئ.
(۲) مخکې د اهل کتابو دسيسے بيان شوے نو دلته ئے د هغه دسيسو يوه بله نمونه بيانوي چه څنګه ئے ستاسو اتفاق خراب کړو او په جنګ ئے اخته کړئ لکه د شان نزول نه معلوميږي.

## شان نزول

ددے آيتونو په شان نزول کې مفسرينو کرامو اوږده واقعه ليکلې ده چه په مدينه منوره کې د مشرکانو دوه قومونه اُوسيدل چه يو ته ئے اوس او بل ته ئے خزرج وئيل دا دواړه په اصل کې ورونه وو او د هر ورور نه بيا يو يو قوم جوړ شوے وو. دغه دواړه قومونه په خپل مينځ کې اتفاق وو او يو سل شل (۱۲۰) کاله پخوانئ دشمنيانی ئے راروانے وے، په دغه اوږده دشمنئ کې به کله يو قوم غالب شو او کله بل قوم. دغه اوږدے جګړے دوی ډير کمزوری کړي او ستړي کړي وو او د مدينے منورے نورو اُوسيدونکو (اهل کتابو) ته ئے

سخت محتاج کړی وو (اهل کتابو به دوی لره جنګول او یو ته به ئے قرض پیسے ورکړے بیا به ئے ترے سود اخستو او د هغے په مقابله کی به ئے ترے زمکے قبضه کولے او خپله مشری به ئے پرے کوله) کله چه الله تعالیٰ فضل وکړو او رسول الله ﷺ مدینے ته هجرت وکړو او هغه بانده اوس او خزرج دواړو قومونو ایمان راوړو نو د دوی اختلافات او جګړے ختمے شوے نو په مجالسو کی به شریك کیناستل او د یو بل سره ډیر خواږه شول نو دے اتفاق یهودیانو ته ډیر زوروړکړو او ډیر پرے خفه شو چه یو طرفته هغوی د اهل کتابو د احتیاج نه خلاص شو او د دوی مشری ختمه شوه او بل طرفته اسلام مضبوط شو او مخ په ترقیٔ روان شو۔ نو د دوی یو مشر (سپین ګیرے) شاس بن قیس وو چه غټ حسدګر او مکار وو، دے د صحابه کرامؓ په یو مجلس ورتیر شو چه هغوی یو بل سره په مینه محبت خبرے کولے او دهٔ پکی د پخوانیٔ دشمنیٔ څه آثار ونهٔ لیدل نو سخت خفه شو او یو ځوان ئے دے کار ته تیار کړو چه تهٔ ورشه او د دوی دا اتفاق خراب کړه نو هغه راغلو، د دوی مجلس کی کیناستو او د جاهلیت زمانے د جنګونو خصوصاً د جنګ بُعاث په باره کی ئے شعرونه په اوچت آواز ولوستل چه په هغے کی اوسیان په خزرجیانو بانده غالبه شوی وو، نو ددے اشعارو په اوریدو سره شیطان مینځ ته راغلو نو د دواړو یو بل ته غصه پیدا شوه او دا ئے ووییل که ستاسو خوښه وی چه دا جنګ بیا تازه کړو، او دے ته خبره ورسیده چه توررو پسے روان شی او یو بل ته صفونه د جنګ تیار کړی نو په دے وخت کی رسول الله ﷺ خبر شو هغه راغے او دوی سره ئے خبره وکړه چه آیا تاسو ګمراه نهٔ ویٔ چه زما په وجه الله تعالیٰ تاسو ته هدایت وکړو، آیا تاسو دشمنان نهٔ ویٔ چه زما په وجه تاسو ورونه ورونه شویٔ، زهٔ ستاسو په مینځ کی موجود یم او تاسو د جاهلیت خبرے بیرته راتازه کویٔ، نو پدے کی د شیطان وسوسه ختمه شوه او صحابه کرامو تورے په زمکه کیخودے او یو بل ته ورغاړے وتل او وے ژړل او په خپلو کړو بانده پښیمانه شو نو الله تعالیٰ دغه دسیسه د دوی شنډه کړه او دا آیتونه نازل شو، لیکن حکم د آیتونو عام دے۔ (القرطبی والبغوی والمنار)

إِنْ تُطِيعُوا فَرِيقًا : د اهل کتابو هغه خبره منل ناروا دی چه تا ته د اسلام مخالفه خبره وکړی او که په دنیاوی لین دین کی خبرے اترے وی نو د هغے په منلو انسان نهٔ ګناهګاریږی لکه یو سودا ترے اخلے، یا پرے خرڅوے۔

دا آیت کریمه دلیل دے پدے خبره چه (اَلتَّشَبُّهُ بِأَهْلِ الْكِتَابِ وَطَاعَتُهُمْ فِي الْأَقْوَالِ وَالْأَعْمَالِ سَبَبٌ لِلْاِرْتِدَادِ) چه د اهل کتابو (کافرو) سره مشابهت کول او د خبرو او عملونو کی د

هغوی طاعت او تابعداری کول سبب د مرتد کیدو دے۔ ددے وجه نه زمونږ په اسلام کی دا قانون دے چه د اهل کتابو په مخالفت کی په اسلام باندے مضبوط والے راځی او د اهل کتابو په موافقت کی د اسلام بربادي ده۔ لکه نبی ﷺ فرمائی : (لَا تَزَالُ أُمَّتِيْ عَلَى الْفِطْرَةِ مَا لَمْ يُؤَخِّرُوا الْمَغْرِبَ إِلَى أَنْ تَشْتَبِكَ النُّجُوْمُ)۔ (ابوداود : ٤١٨ وابن ماجه : ٦٨٩)

یعنی زما امت به په فطرت (او صحیح دین) باندے روان وی ترڅو چه د ماښام مونځ نه روستو کوی تردے چه ستوری ګنړ شی۔ یعنی که ناوخته کوی نو فطرت به ئے خرابیږی ځکه چه پدے کی د یهودو مشابهت دے۔ دغه شان د ماښام روژه ماتول وختی خودلے شویدی ځکه چه په ناوخته والی کی د یهودو سره مشابهت دے۔ افسوس چه زمونږ ډیر مسلمانان د یهودو چال چلن او لباس او طرز او طریقے سره خومره مینه لری!!۔

او ددے خبرے تفصیل په سورة بقره (لَا تَقُوْلُوْا رَاعِنَا) کی تیر شویدے۔ (فتاوی الدین الخالص (ج٦)۔

| وَكَيْفَ تَكْفُرُوْنَ وَأَنْتُمْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ آيَاتُ اللّٰهِ |
|---|
| او څرنګ کفر کوئ تاسو او حال دا چه لوستلے کیږی په تاسو باندے آیتونه د الله |
| وَفِيْكُمْ رَسُوْلُهٗ وَمَنْ يَّعْتَصِمْ بِاللّٰهِ |
| او په تاسو کی رسول د هغه دے او چا چه منګولے ولګولے په الله تعالیٰ پورے |
| فَقَدْ هُدِيَ إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿١٠١﴾ |
| نو یقیناً هغه ته هدایت وشو لارے نیغے ته۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی توبیخ دے په کفر کولو باندے یعنی دلیل د کفر نشته او دلیل د ایمان موجود دے۔ د ایمان دوه دلیلونه دی، (١) د ایمان اول دلیل د الله تعالیٰ کتاب دے چه پدے سره د بنده ایمان جوړیږی لکه دا په سورة حدید کی هم راغلی دی (هُوَ الَّذِيْ يُنَزِّلُ عَلٰى عَبْدِهٖ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ لِّيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّوْرِ) د الله تعالیٰ په آیتونو سره بنده د تیارو نه رڼا طرفته راوزی۔ په تاسو کی صبا او بیګاه لوستلے شی، او تاسو ئے په یو بل باندے لولئ او جبریل ﷺ ئے هم تازه په تازه د آسمان نه راوړی او په هغے کی تاسو ته د کافرانو دسیسے او د هغوی حسدونه بیانولے شی نو تاسو به څنګه د هغوی خبره منئ۔

دویم دلیل د ایمان (وفیکم رسوله) د رسول الله وجود یعنی (ذَاتُ الرَّسُوْلِ وَأَخْلَاقُهُ الْعَذْبَةُ

وَمُعْجِزَاتُهٗ) ـ د رسول الله ﷺ ذات او د هغه خواږه اخلاق او د هغه معجزات دی نو داد ایمان ذریعه ده، مګر دا نعمت صحابه کرامو ته حاصل وو، چه هغوی مخامخ لیدل، او اُوس خو نبی کریم ﷺ وفات دے نو پدے وجه دلته عامو مفسرینو وئیلی دی لکه میمون بن مهرانؒ، زجاجؒ، ابن عطیةؒ، او تفسیر قرطبی، روح المعانی او عامو تفاسیرو لیکلی دی چه د (فیکم رسوله) نه مراد د رسول الله ﷺ سنت او احادیث او آثار دی چه دا مونږ ته رارسیدلی دی. نو قرآن او حدیث د کفر نه منع کونکی څیزونه دی.

قاضی عیاضؒ په ((شفاء)) کی د آیت (وَمَا أَرْسَلْنَاكَ اِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَالَمِيْنَ) په تشریح کی وئیلی دی: [وَهٰذِهِ الرَّحْمَةُ بَاقِيَةٌ مَا بَقِيَتْ سُنَّتُهٗ] ـ او د رسول الله ﷺ دا رحمت والے به باقی وی ترڅو پورے چه د هغه سنت باقی وی. او سنت خو د هغه باقی دی نو رسول الله ﷺ اُوس هم د خلکو دپاره رحمت دے. ددے وجه نه د نبی کریم ﷺ په سنتو باندے عمل کول سبب دے د زیادت د ایمان لکه تدبر قرآن هم د ایمان د زیادت سبب دے.

**تنبیه** : (وَفِيْكُمْ رَسُوْلُهٗ) دا جمله د متشابهاتو نه ده، بریلیان ترے غلطه معنیٰ اخلی وائی چه رسول الله ﷺ په هر ځای کی حاضر ناظر دے ځکه چه الله تعالیٰ وئیلی دی چه په تاسو کی رسول الله ﷺ موجود دے. **جواب** دا دے چه دا معنیٰ په سلفو کی هیچا نهٔ ده کړے نو دا معنیٰ د سلفو د فهم خلاف ده نو د منلو هیڅ وړ نهٔ ده. دویم دا چه په قرآن کریم کی بعض خطابات خاص وی نو دا خطاب دے صحابه کرامو ته چه د هغوی ترمینځ رسول الله ﷺ موجود وو. او په مونږ کی رسول الله ﷺ نهٔ دے موجود دلیل دا دے چه الله تعالیٰ په سورة الانفال کی وئیلی دی: ﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَاَنْتَ فِيْهِمْ﴾ ـ رسول الله ﷺ چه یو ځای کی موجود وی نو هلته الله تعالیٰ عذابونه نهٔ نازلوی، نهٔ زلزله راځی، نهٔ د کانړو باران کیږی او حال دا چه په دنیا کی څومره عذابونه، سیلابونه او زلزلے راځی. نو باطل پرست د متشابهاتو نه غلطه فائده اخلی.

۲- دویم دا چه دلته فکر وکړه، الله تعالیٰ داسے نهٔ دی وئیلی (وفیکم محمد) په تاسو کی محمد (ﷺ) موجود دے ځکه چه د هغه ذات گرامی خو اُوس وفات شویدے بلکه دلته ئے (وفیکم رسوله) وئیلے دے یعنی تاسو کی رسول الله ﷺ موجود دے په اعتبار د وصف د رسالت سره. یعنی د هغه رسالت موجود دے او د هغه د ذات د موجود والی نه چه کوم مقصود وو هغه د هغه رسالت نه مقصود دے. فتدبر.

وَمَنْ يَّعْتَصِمْ بِاللّٰهِ : اُوس الله تعالیٰ د ایمان د باقی پاتی کیدو بله طریقه بیانی دوه مخکی

تیرے شوے چه د الله تعالیٰ د کتاب سره تعلق وساته او بل د رسول الله ﷺ د سنتو سره. نو دریمه طریقه دا چه (اعتصام بالله وکړه) یعنی د الله تعالیٰ سره رشته او تعلق جوړ کړه. او بله طریقه روستو راځی (اعتصام بحبل الله) وکړه.

اعتصام: دوه معانی دی (۱) یو ځان بچ کول. (۲) او بل منګولے لګول او لاس وراچول.

## د اعتصام بالله دوه مصداقه

په الله تعالیٰ بانده منګولے خو ظاهراً نشی کیدے نو ددے وجه نه مفسرینو ددے دوه مصداقه بیان کړیدی (۱) یو: (وَمَنْ يَّعْتَصِمُ بِدِيْنِ اللّٰهِ وَبِطَاعَتِهِ) . یعنی چا چه د الله تعالیٰ دین او د هغه طاعت مضبوط راونیولو او هغه ئے په هیڅ حالت کی د هیچا د وسوسو د وجه نه نهٔ پریخودو، یهودی وی که نصرانی او کهٔ منافق وی نو دهٔ ته نیغے لارے طرفته هدایت وشو، دے بیا څوك نشی ګمراه کولے. یعنی دین بانده کلك شه د ګمراهئ نه به بچ شے ځکه چه څوك ګمراه کیږی د هغے وجه دا وی چه کله یو حکم پریدی او کله بل او کله د یو چا په وسوسه کی رازی او کله د بل چا.

(۲) دویم اعتصام بالله. توکل علی الله ته وائی. یعنی چا چه په الله تعالیٰ بانده توکل وکړو او هغه ته ئے ځان وسپارلو. او توکل ئے په دے مقام کی ځکه ذکر کړو چه دوی د یهودیانو تابعداری ځکه کوی چه په الله تعالیٰ بانده ئے توکل نهٔ وی او یهود ورته بنه ښکاره کیږی چه دوی مونږ سره مدد کوی، مونږ ته خرچے راکوی او ز مونږ ګاونډیان دی. (تفسیر السعدی)

یا دا جمله متعلق ده د (اِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا) سره یعنی که تاسو د اهل کتابو تابعداری پدے وجه کوئ چه د هغوی د شرونو او چلونو نه یریږئ، نو مهٔ یریږئ بلکه ځان الله تعالیٰ ته وسپارئ ځکه چه څوك الله تعالیٰ ته ځان وسپاری نو الله تعالیٰ به ئے کافی شی. نو دا جمله تذییل دے د مخکی (اِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا) دپاره.

**فائده**: حافظ ابن قیمؒ په بدائع التفسیر کی لیکی: اعتصام دوه قسمه دے: په اعتصام بالله سره بنده د هلاکت نه بچ کیږی او په اعتصام بحبل الله (د الله په رسئ بانده منګولے لګولو) سره بنده د ضلالت (ګمراهئ) نه بچ کیږی. نو اعتصام بالله الله تعالیٰ ته ځان سپارل دی او اعتصام بحبل الله په دین بانده عمل کول دی نو ګویا که اعتصام بالله په منزله د ایمان دے او اعتصام بحبل الله په منزله د عمل دے.

نو پدے آیت کی د ارتداد نه د بچاؤ دوه لارے خودلے شویدی۔

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَ |
|---|
| اے ایمان والو ! ویریږئ د الله نه په لائقه یره د هغه سره او مهٔ مرئ مګر په داسے حال کی |
| أَنْتُمْ مُسْلِمُونَ ﴿۱۰۲﴾ |
| چه تاسو مسلمانان یئ۔ |

**تفسیر : مضمون :** ددے نه ځای نه د سورت دویمه حصه شروع کیږی، مخکی الله تعالیٰ د یهود او نصاراؤ او نورو کافرانو ضمنًا قبائح بیان کړل او د هغوی په کفر باندے ئے رد وکړو او د هغوی شبهات چه د رسول الله ﷺ او د قرآن په باره کی وو هغه ئے رد کړل او د مؤمنانو صفات ئے بیان کړل چه دوی الله تعالیٰ ته التجاء والا دی، حنفاء دی او یهود او نصاریٰ د الله تعالیٰ نه باغیان دی، او دا ئے ددے دپاره بیان کړل چه مسلمانان د هغوی نه ځان وساتی او د هغوی اصلاح وشی۔ اُوس الله تعالیٰ ددے امت تربیت ذکر کوی چه دا د سورت دویمه موضوع هم ده او دوی ته آداب او اخلاق بیانوی او قوانین ورته اړدی او دے ته د بعض مفسرینو په اصطلاح کی بناء الجماعة المسلمة وائی (د مسلمان جماعت او نظم جوړول) چه دوی به خپل مینځ کی څنګه زندګی تیروی او اکثر آیاتونه د اُحُد او د بدر د غزا متعلق دی او د هغے نه مخکی او روستو قوانین بیانیږی او عام آیتونه د خلافت او د جهاد سره تعلق لری ځکه چه مدینے ته کله رسول الله ﷺ هجرت وکړو نو د یهودو او منافقانو ډلے هلته موجودے وے، د کفارو دسیسے وے نو پدے کی غزا د بدر او د احد راغله چه په هغے کی الله تعالیٰ په خپلو قوانینو سره د مسلمانانو تربیت وکړو چه دا تر قیامته پورے د مسلمانانو په کار رازی۔

**مناسبت :** (۱) الله تعالیٰ مسلمانان د اهل کتابو د طاعت نه منع کړل نو اُوس ورته د کتاب الله په طاعت باندے حکم کوی چه په قرآن عمل وکړئ۔ (واعتصموا بحبل الله)

(۲) په اسلام باندے د بقاء دپاره الله تعالیٰ دلته قوانین بیان کریدی یو قانون د تقویٰ دے چه دا اختیار کړئ او بل قانون د اعتصام بحبل الله دے۔

(۳) او دا د اعتصام بحبل الله بیان هم دے۔

(٤) مخکی د اهل کتابو کفر بآیات الله بیان شو نو دلته اعتصام بآیات الله بیانیږی۔

(۵) مخکی کفر بآیات الله بیان شو چه د هغې په وجه د یهودو او نصاراؤ نه خلافت واخستل شو نو دلته تربیت د جماعتِ مسلمه بیانوی دے دپاره چه دا نعمت ترے وانخستل شی۔

**حاصل الآيات** : دلته الله تعالیٰ د مسلمانانو د تربیت دپاره څه احکام بیان کړیدی چه دا اجتماعی احکام هم دی او انفرادی هم، یعنی خلافت او اجتماع به ستاسو څنګه جوړیږی، د هغوی به څنګه اصلاح کیږی؟ نو اول نه ورله د مقدمے په شکل تهذیب النفوس او تهذیب الاخلاق کوی (یعنی د نفسونو او اخلاقو جوړول او صفا کول) دے دپاره چه د خلافت اهل وګرځی۔

## نفسونه په څه سره جوړیږی؟

د نفسونو جوړیدل په یو څو کارونو باندے کیږی (۱) یو عقائد او تصورات برابرول، ذهن سازی کول لکه روستو به وائی چه یو تن شهید شی نو د هغه په باره کی به دا تصور ساتے چه دا جنت ته لاړو، (۲) دویم بیان الاعمال الصالحات چه فلانئ نیکیانی وکړئ لکه مال ولګوئ، د مانځه پابندی وکړئ، د الله تعالیٰ په لاره کی جهاد وکړئ۔

(۳) دریم : تَرْكُ الذُّنُوبِ وَالسَّيِّئَاتِ۔ د ګناهونو او معصیتونو پریخودل لکه سودونه پریدئ، تفرقے او اختلافات پریدئ او په دین کی بدعات مهٔ پیدا کوئ او د کفارو طاعت مهٔ کوئ، د منافقانو په شان مهٔ جوړیږئ۔ کله چه په بنده کی دا درے قسمه کارونه راغلل نو دا انسان به صحیح بنده جوړ شی او د مسلمانانو معاشره به برابره شی نو داسے خلکو سره به الله تعالیٰ د کافرانو په مقابله کی مددونه کوی او شخصی مددونه به هم رازی نو اُوس هغه قوانین شروع کوی په هغے کی اول قانون :

اول قانون : تقویٰ اختیارول مَعَ الدَّوَامِ عَلَى الْإِسْلَامِ یعنی ترمرګه پورے په اسلام باندے همیشه وسیدل۔ (۲) قانون : اعتصام بحبل الله کول۔ (چه د ټولو خلکو عقیده دِ یوه وی) او د تفرقو نه ځان ساتل۔ او په (ولتکن) کی د امر بالمعروف او نهی عن المنکر کمیټی تیارول دی چه په مسلمانانو کی به داسے خلك ضرور وی چه هغه خلکو ته د نیکو خبرو حکم وکړی او د بدو نه ئے منع کړی۔ بیا د تفرقو نه الله تعالیٰ منع کړیده او تخویف ئے بیان کړے چه څوك تفرقے کوی نو الله تعالیٰ به ئے په آخرت کی مخونه تور کړی۔

بیا په (وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَوٰتِ) کی د الله د قدرت او د هغه د غِنیٰ عن المخلوق او فراخوالے د

بادشاهئ بیانوی چه د هغې خاص مناسبت دے د دغه مقام سره چه په خپل ځای کی به راشي.
بیا الله تعالیٰ د امر بالمعروف قانون عام کوی او وائی چه دا د هر تن ذمه واری ده چه هغه به ځان کی د دعوت صفت پیدا کوی.
بیا اهل کتابو کی دوه ډلے بیانوی چه یو اهل الایمان او بل اهل الکفران، د اهل ایمان ئے لس صفات بیان کړیدی او د کافرانو ئے لس قبائح (بد صفات) بیان کړیدی دیته معرفة المدعوین وائی یعنی چا ته چه دعوت ورکولے شی د هغوی حال پیژندل چه تاسو به فاسقانو ته داسے دعوت ورکوئ او نیکانو ته به داسے دعوت ورکوئ. او دا وائی چه بعض اهل کتاب ناکاره خلك دی چه د دوی پرواه ونهٔ کړئ او خپل اسلامی خلافت نه مو منع نکړی ځکه چه دغه اهل کتابو به فسادونه کول او مسلمانان ئے صحیح خلافت ته نهٔ پریخودل او دوی به ددے کار دپاره مالونه هم لګول نو ځکه په (۱۱٦) آیت کی الله تعالیٰ تخویف ورکړیدے چه کافران دے په دنیا او مال متاع باندے نهٔ خوشحالیږی، دوی جهنم ته روان دی. بیا ئے په (۱۱۷) کی انفاق ته ترغیب ورکړیدے چه د کافر انفاق تباه دے که دوی د اسلام په خلاف مال لګوی په نقصان به ورته تمام شی، او د مؤمن انفاق کی اجر دے او د مال د لګولو طریقه خودلے شویده، بیا په (یا ایها الذین آمنوا) کی ادب دے او قانون هم دے چه په ملك کی د ایمان والو نه په غیریو کافر راز دار نیول منع دی او د هغے لس وجے بیانوی بیا هرکله چه دا دومره لوی دشمن دے نو ددے نه به د ځان خلاصولو طریقه څه وی نو الله تعالیٰ د هغے دوه علاجونو نه بیان کړیدی یو الصبر او دویم التقوی، چه دا بنده اختیار کړی نو دشمن به ضرر ونکړی بیا په یوه رکوع کی الله تعالیٰ دوه غزوات ذکر کړیدی غزوه د احد او غزوه د بدر. چه دا مثالونه دی ددے دپاره چه کله تاسو د الله تعالیٰ د حدودو او قوانینو پابند وئ نو فتح به نازلیږی د هغے مثال د بدر دے او که پابندی نهٔ وی نو شکست به رازی لکه د هغے مثال اُحد دے.
د اُحد او د بدر واقعات صحابه کرامو ته معلوم وو نو بیا ورته الله تعالیٰ ولے دغه بیانوی؟ نو وجه دا ده چه پدے سره الله تعالیٰ د هغوی تربیت کوی. په آخره کی به د الله د تصرفاتو ذکر وشی چه عالَم کی د هغه واك چلیږی چه څوك لاندے کوی او څوك باندے کوی خو قوانین ئے دغه دی په دغه قوانینو باندے عمل کول ستاسو کار دے، تر (۱۲۹) آیت پورے به دا شپږ قوانین بیانیږی بیا د هغه ځای نه (۳۱) قوانین ئے نور بیان کړیدی دا غټ حاصل شو.

بعضی تنظیم پرست ملیان وائی چه دلته د تأسیس الجماعة یعنی د یو تنظیم جوړولو قوانین بیانیږي او مراد ترې وړوکے تنظیم دے، دا د قرآن تحریف دے، تنظیمونه جوړولو کی څلویښت نقصانات دی لکه په الدین الخالص ٦ / ١٠ ) کی ذکر دی او دلته د خلافت اسلامی او د ټولو مسلمانانو تربیت والا احکام او قوانین بیان شویدی۔

**تفسیر**: حَقَّ تُقَاتِهِ : حق تقویٰ څه ته وائی؟

(١) امام مجاهد وائی : اَلْجِهَادُ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ حَقَّ جِهَادِهٖ وَاَنْ لَّا یَخَافَ فِی اللّٰهِ لَوْمَةَ لَائِمٍ، وَیَقُوْمَ بِالْقِسْطِ وَلَوْ عَلٰی اَنْفُسِهِمْ وَآبَائِهِمْ وَاَبْنَائِهِمْ) (حق تقویٰ دیته وائی چه د الله تعالیٰ دپاره لائقه مجاهده وکړے شی او د الله په باره کی د هیچا د ملامتیا نه یره ونکړے شی او په انصاف باندے ودریږی اگرکه (فیصله) ددهٔ په خان او پلار او خامنو باندے وی) او دا په سورة الحج کی هم راغلی دے ﴿ وَجَاهِدُوْا فِی اللّٰهِ حَقَّ جِهَادِهٖ﴾۔ د الله دپاره خان پوره کړول۔

(٢) د سیدنا انس بن مالک ﷺ نقل دی : (هُوَ حِفْظُ اللِّسَانِ)۔

دا د ژبی حفاظت ته وائی څکه چه په ټولو عملونو کی د ژبے حفاظت گران عمل دے، تهجد، جهاد وغیره اعمال آسان دی، مجاهد به وی، په کافرانو به حمله کوی او همیشه به په یره کی وی لیکن ژبه به د مسلمانانو د عزتونو نه نشی بندولے، د مؤمنانو حق پرستو علماؤ پسے به خبرے کوی، هر څه به برباد کړی۔

(٣) د عبد الله بن مسعود ﷺ نه نقل دی : (هُوَ اَنْ یُّطَاعَ فَلَا یُعْصٰی وَاَنْ یُّذْکَرَ فَلَا یُنْسٰی، وَاَنْ یُّشْکَرَ فَلَا یُکْفَرُ)۔ حق تقویٰ دیته وائی چه د الله طاعت (تابعداری) وکړے شی او نافرمانی ئے ونکړے شی، او د الله یادول وی او هیرول ئے نهٔ وی او د هغه شکر کول وی او ناشکری ئے نهٔ وی۔ او که دے کی درنه فرق راتللو نو زر به الله تعالیٰ ته توبه وباسی۔

نبی کریم ﷺ نه هم تقریباً دا قسم تعریف نقل دے، نبی کریم ﷺ فرمائی: موسیٰ ؑ د الله نه تپوس وکړو چه زیاته تقویٰ چاکی ده ؟ نو الله ورته وفرمایل: (اَلَّذِیْ یَذْکُرُ وَلَا یَنْسٰی)۔ هغه شخص چه الله تعالیٰ ورته یاد وی او هیڅکله ئے نهٔ هیروی۔

د الله یادول په مختلفو طریقو سره دی، په ذکر اذکار او تسبیحاتو سره او په بدنی نورو اعمالو سره او په مالی اعمالو سره او همیشه د هغه د احکامو لحاظ وی۔او حق تقویٰ بنده کی څنګه پیدا کیږی ؟ نو د هغے طریقه دا ده چه د آخرت د عذابونو استحضار بنده وکړی او خپلو سترګوته ئے مخامخ کړی لکه دا د یو حدیث نه هم معلومیږی چه نبی

کریم ﷺ دا آیت ولوستو او بیا ئے وفرمایل: (لَوْ أَنَّ قَطْرَةً مِنَ الزَّقُّوْمِ قَطَرَتْ فِيْ دَارِ الدُّنْيَا لَأَفْسَدَتْ عَلَى أَهْلِ الْأَرْضِ مَعَايِشَهُمْ فَكَيْفَ بِمَنْ يَكُوْنُ طَعَامَهُ) که د زقوم یو څاڅکے دنیا کور راپریوځی نو د ټولو خلکو ژوند به خراب (او تریخ) کړی۔ نو ستا څه ګمان دے په هغه چا چه دا به ئے خوراك وی۔ (الترمذی: ۲۵۸۵، وسنده ضعیف فیه عنعنة سلیمان الاعمش عن مجاهد- البانی، الضعیفة: ۶۷۸۲) والراجح صحته لان الاعمش عنعنته مقبولة عن کبار التابعین وقال الحاکم: اسناده علی شرط الشیخین ووافقه الذهبی: ۳۱۵۸)۔

نورے طریقے په الفوائد (۳۲۶/۳۲۵/۳) کی ذکر دی لکه: (۲) امیدونه لنډول۔ (۳) همیشه په غم کی وسیدل۔ (٤) او په خپلو کارونو کی فراخی نهٔ پیدا کول۔ (۵) په خپلو همجنسو انسانانو باندے رحم کول۔ (٦) او د خلکو نه مخ نهٔ راتاوول۔ (۷) دارنګه د خپل عبادات په ښائسته طریقه کول۔ (۸) د خپل رب زیات یادول۔ (۹) د خپل ژبے حفاظت کول۔ (۱۰) د ګناهونو نه ځلان ساتل۔ (۱۱) او همیشه استغفار کول۔ (۱۲) او لا یعنی (بی فائدے) څیزونه پریخودل۔ (۱۲) په خپل عمل باندے د قبلیدو نه یره کول۔ (۱۳) قرآن کریم په تدبر سره لوستل۔

(٤) علامه قاسمیؒ وائی: حق التقویٰ څه ته وائی: (وَذٰلِكَ بِدَوَامِ خَشْيَتِهِ ظَاهِرًا وَبَاطِنًا وَالْعَمَلُ بِمُوْجَبِهَا وَالْإِنَابَةُ لَهُ)۔ حق التقویٰ همیشه د الله تعالیٰ نه یره کول په ښکاره او په پټه او هغه ته انابت کول او د تقویٰ په کارونو باندے عمل کول دی۔ دا ټول مطلبونه په آیت کی مراد کیدے شی۔ (محاسن التنزیل ۱۰۳/۲)۔

ځینی علماء وائی: دا آیت منسوخ دے په آیت ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ﴾ (التغابن:۱۶) سره ځکه چه حق التقویٰ د انسان د وس نه بهر ده ځکه چه لائقه یره د الله تعالیٰ نه دا ده چه بنده ټول هغه کارونو باندے راتلل وکړی چه الله تعالیٰ د هغے مستحق دے او حال دا چه بنده پوره طریقے سره ددے د ادا کولو نه عاجز دے چه د الله تعالیٰ د شان مطابق عمل وکړی۔ نو الله تعالیٰ په سورة التغابن کی دغه آیت راولیږلو هغے دا تفسیر وکړو چه (حق تُقَاتِهِ) دے ته وائی چه بنده د الله تعالیٰ نه د خپل وس مطابق ویریږی او د وس مطابق طاعت وکړی که په ولاړه مونځ نشی کولے په ناسته به ئے وکړی، که په ناسته نهٔ وی نو په ملاسته به ئے وکړی، که روژه ورے نشوه نیولے نو فدیه ورکړه، که د هغے نه هم عاجز وے نو هیڅ درباندے نشته۔ صرف عقیده پرے ولره۔ لیکن ظاهر دا ده چه پداسے قسم آیتونو کی نسخ نهٔ وی بلکه هغه آیت د سورة تغابن بیان دے ددے آیت او مطلب به دا وی چه

حق تقویٰ دیته وائی چه د بنده څو مره وس کیږی په نیکئ به راتلل کوی او د ګناه نه به ځان ساتی۔ او دارنګه پدے آیت کی مقصد دا دے چه الله تعالیٰ ته همیشه دپاره انابت کویٔ او د هغه نه همیشه خشیت کویٔ او د هغه لوی شان او عظمت په زړه او په عمل سره وپیژنئ۔ او د (فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ) مقصد دا دے چه د الله تعالیٰ نه د الله تعالیٰ په احکامو کی د خپل وس مطابق یره وکړئ۔ نو د دواړو ترمینځ هیڅ تعارض نشته۔ (القاسمی ۲/۱۰۳)

وَلَا تَمُوْتُنَّ : یعنی په اسلام باندے همیشه وسیږئ تردے چه په تاسو باندے پدے حالت کی مرګ هم راشی۔ نو دلته په اسلام باندے تر مرګه پورے باقی پاتے کیدل مقصود دی۔ یعنی په هیڅ حالت کی ځان نه اسلام مهٔ جدا کوه اګر که په تو قو کی وی او د یهودیت په هیڅ وسوسه کی مهٔ راځه هسے نه چه د اسلام نه دے واړوی۔نو دا اعتراض ختم شو چه د مرګ نه ئے څنګه منع کړیده حال دا چه مرګ خو د انسان په اختیار کی نهٔ دے؟ نو بعضو جواب کړیدے چه د مسلمون نه مراد (محسنون الظن بالله) دے، (یعنی په الله باندے ښه ګمان کونکی یئ) لکه په حدیث د جابر کی په صحیح مسلم کی راغلی دی : (لَا يَمُوْتَنَّ أَحَدُكُمْ إِلَّا وَهُوَ يُحْسِنُ الظَّنَّ بِرَبِّهِ) ۔ (په تاسو کی دِے یو تن ته مرګ نهٔ راځی مګر په داسے حال کی چه په خپل رب باندے ښائسته ګمان لری)۔ (مسلم: ۷٤۱۲)

**فائده** : د قوانینو په اول کی ئے د تقویٰ د قانون نه شروع وکړه ځکه چه کله په افرادو کی تقویٰ نهٔ وی نو هیڅ قسم شرعی نظام نشی جوړیدے او خلافت نشی قائمیدے، د تقویٰ نه بغیر د دین په هیڅ کار باندے راتلل نشی کیدے۔ هر خیر چه الله تعالیٰ روستو بیان کړے نو د هغے دپاره اول کی تقویٰ ضروری ده هله به هغه خیر حاصلیږی۔

| وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا وَّلَا تَفَرَّقُوْا وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ |
|---|
| او منګولے ولګوئ په رسئ د الله ټول او مهٔ ډلے ډلے کیږئ او یاد کړئ نعمت د الله تعالیٰ په تاسو باندے |
| إِذْ كُنْتُمْ أَعْدَآءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوْبِكُمْ فَأَصْبَحْتُمْ |
| کله چه وئ تاسو دشمنان نو مینه ئے واچوله په مینځ د زړونو ستاسو کی نو شوئ تاسو |
| بِنِعْمَتِهٖٓ إِخْوَانًا وَكُنْتُمْ عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنْقَذَكُمْ مِّنْهَا |
| په احسان د هغه سره رونړه رونړه او وئ تاسو په غاړه د کنده د اور نه نو بچ ئے کړئ د هغے نه، |

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ آيَاتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ﴿۱۰۳﴾

دغه شان بیانوی الله تعالیٰ تاسو ته احکام خپل دے دپاره چه تاسو هدایت مونده کړئ۔

**تفسیر :** حبل الله څه شے دے؟

حبل : په اصل کی رسئ (پړی) ته وائی او دلته ترے مراد هغه شے دے چه د هغے په ذریعه سړے د الله تعالیٰ رضا ته رسیږی لکه قرآن کریم وغیره۔ نو مفسرینو ددے ډیر مصداقات بیان کړیدی : (۱) د علی رضی الله عنه نه نقل دی چه (حبل الله) قرآن کریم ته وائی۔ یعنی د قرآن کریم عقیدے او اعمال مضبوط راونیسئ۔ او دا په حدیث د مسلم (٤٤ کتاب فضائل الصحابة حدیث رقم ٣٦) کی راغلے دے زید بن ارقم رضی الله عنه فرمائی: رسول الله ﷺ وفرمایل: (أَلَا وَإِنِّيْ تَارِكٌ فِيْكُمْ ثَقَلَيْنِ أَحَدُهُمَا كِتَابُ اللّٰهِ هُوَ حَبْلُ اللّٰهِ، مَنِ اتَّبَعَهٗ كَانَ عَلَى الْهُدٰى، وَمَنْ تَرَكَهٗ كَانَ عَلٰى ضَلَالَةٍ......الحدیث)۔ زهٔ په تاسو کی دوه درانه څیزونه پریخودونکے یم یو د الله تعالیٰ کتاب دے چه دا د الله تعالیٰ رسئ ده، څوك چه ددے پسے روان شو دا به په هدایت وی او چا چه دا پریخودو نو په ګمراهئ باندے وی )۔

(۲) عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی: د (حبل الله) نه مراد الجماعة (د مسلمانانو جماعت یعنی خلافتِ اسلامی) دے چه ددے نه مهٔ بهر کیږئ۔ او جماعت عقیدے ته وائی لکه هغه فرمائی: (اَلْجَمَاعَةُ مَا وَافَقَ الْحَقَّ وَإِنْ كُنْتَ وَحْدَكَ) ۔ جماعت هغه دے چه د حق موافق وی اګرکه ته یواځی یې۔ یعنی اګرکه ته یواځی ځای کی یې خو ستا عقیده د حق موافق وی نو ته جماعت یې۔ (البیهقی والوجیز والاغاثة)

(۳) مجاهد وائی : حبل الله، عهد الله او امر الله ته وائی۔ یعنی د الله تعالیٰ لوظ او د هغه حکمونه۔ لکه روستو نه هم معلومیږی ﴿إِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللّٰهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ﴾ (آل عمران ۱۱۲)۔ چه هلته حبل په معنیٰ د ذمے او لوظ سره دے۔

ددے ټولو عبارتونو حاصل مطلب یو ته راجع کیږی ځکه چه قرآن کریم د الله تعالیٰ عهد (لوظ) او د هغه امر دے او حق هم دغه قرآن دے۔

قرآن ته ولے حبل الله وائی ؟

وجه دا ده چه د رسئ په وجه سره اُوبه د کوهی نه راوځی، که یو انسان لاندے پروت وی نو د هغه د راختلو او د نجات ذریعه ده نو قرآن کریم هم دغه شان دے چه انسان ته د

بنـاسـتـه عقائدو او اعمالو او اخلاقو سیراب والے ورکوی او انسان پدے سره پورته کیږی.
او لـکه څنګه چه سرے په رسئ نیولو سره د پریوتو نه بچ کیږی نو دغه شان په قرآن کریم رانیولو سره بنده د هلاکت او ګمراهئ نه بچ کیږی. (قاسمیؒ)

**فائده** : الله تـعـالیٰ په اعتصام بحبل الله باندے حکم وکړو او داسے ئے ونهٔ ویل چه متحد او متـفـق شئ ځـکـه چه اعـتصام بحبل الله دیته وائی چه د ټولو خلکو عقیده او عمل یو شان شی نـو خپـله به اتفاق راشی لکه هر یو تن دا کوشش کوی چه زما عقیده او عمل د کتاب او سنت موافق شی نو دا کسان که د علاقے په اعتبار سره د یو بل نه ډیر لری وی خو متـحـد او متـفـق بـه وی، او کـه هـسـے وحدت راشی او عقیدے ئے بیلے وی نو په یو مجلس کی بـه نـاسـت وی خـو زړونـه بـه ئے د یو بل نه نفرت کوی او دا وحدت هیڅکله همیشه نشی پاتے کیدے، د مفادو په ختمیدو به هغه وحدت ختم وی. ډیر خلك د اتفاق کوشش کوی او صرف خلك یو ځای ته راجمع کوی نو هغوی دے نکتے ته نهٔ دی متوجه شوی او د مختلف ادیانو او د مختلفو عقیدو والا خلك یو فلیټ فارم باندے د راجمع کولو کوشش اُوس پدے دَور کی ډیر زیات شروع دے لیکن دا کار هیڅکله نشی کیدے.

وحـدت د عـقیدے د وروروليئ نه هم ډیر مضبوط وی، عرب وی که عجم خو د یو بل سره به ئے مینه وی کله چه بنده د اسلام په خوند پو هه شی.

**وَّلَا تَفَرَّقُوْا** : او تـفرقے مهٔ جوړوئ او تفرقه دیته وائی چه د قرآن او د سنت خلاف عقیدے جـوړی کړی او په هغے روان شی دا تفرقه ده، او که نظمونه د خلکو مختلف وی او عقیده د ټولو یوه وی نو دا تـفـرقـه نهٔ ده لکه د یوے عقیدے خلکو کی څه کسان ووائی چه مونږ قـرآن او حـدیـث د مدرسے په شکل چلوو او بل وائی مونږه ئے د جهاد په شکل چلوو او بل وائی چه مـونـږه ئے د دعوت په طریقه نو دا خاص اختلاف نهٔ دے ځکه چه عقیده د ټولو یوه ده، صرف تـرتیـب او نظم ئے د یو بل نه جدا وی اګرکه ددے نظم دپاره تعصب کول چه صرف هغه ورته حق ښکاره کیږی او نور ورته سپك ښکاری دا به ناروا وی.

او تـفـرقـه دا ده چه د قـرآن او حـدیـث خـلاف عـقیدے جوړی کړی لکه خوارج، معتزله، مـرجـئـه، قدریه او روافضو د قرآن او حدیث خلاف عقیدے او عملونه جوړ کړل نو دا تفرقے والا خلك دے، او همیشه اختلاف ددے نه پیدا کیږی چه یو تن آیت او حدیث پریدی او بل طرفته روان شی.

**فائده** : جَمِیْعًا وَّلَا تَفَرَّقُوْا دا دوه تـاکیـدونـه دی، اول تـاکیـد کی غرض دا دے چه په

مسلمانانو کی دے هیڅوک په غیر د اعتصام نه پاتی نشی بلکه ټول دے په حبل الله باندے اعتصام وکړی۔ او د ولا تفرقوا معنیٰ دا ده چه داسے اعتصام وکړئ چه د هغے نه روستو تفرقے پیدا نکړئ چه هره ډله د قرآن کریم د آیتونو نه د خپلے عقیدے په حقانیت باندے د ځان نه دلیلونه نیسی چه هغه دلیل ددے امت سلفو (مشرانو) نهٔ وی نیولے۔ نو اعتصام بالکتاب والسنة په فهم د سلفو سره لازم ددے۔

وَاذْكُرُوْا : اُوس پدے کی د مسلمانانو په یوه عقیده باندے د راجمع کیدو فضیلت بیانوی او امر په شکر باندے کوی چه د الله تعالیٰ ددے نعمت شکر وکړئ چه تاسو ئے خپل مینځ کی په یو شان عقیده او عمل باندے راجمع کړئ او ستاسو د زړونو ترمینځ ئے د یو بل سره مینه واچوله او زاړه جنګونه او دشمنیانے ئے ستاسو ختمے کړے۔

نِعْمَتَ اللهِ : د نعمت الله نه مراد دلته تالیف القلوب دے (یعنی د زړونو یو ځای کول)۔

بِنِعْمَتِهٖ : ۱– نعمت یو اسلام ته وائی ځکه چه یو مسلمان د بل مسلمان وروړ دے۔ ۲– دویم نعمة معنیٰ مصدری ده یعنی د الله تعالیٰ په نعمت کولو سره په تاسو باندے تاسو ورونه ورونه شوئ۔ نو صحابه کرامؓ داسے ورونه ورونه شو چه د یو بل نه به قربانیدل، د ایثار نمونی ئے مشهوری دی، په غزا د یرموك کی اُوبه راوړلے شوے، هر یو وویل چه دے بل ملګری له ئے ورکړه دا به ورته زما نه ډیر محتاج وی نو اُوبه پاتے شوے او ټول شهیدان شول، خپله به ئے طعام نهٔ خوړو او بل ته به ئے ورکولو، انصارو د مهاجرینو سره خپلے زمکے شریکے کړے او مالونه ئے ورکړل۔ او د اَوس او د خزرج د یو سل شلو کالو جګړے او دشمنیانی په اسلام سره ختمے شوے، نو دا دلیل دے چه په اسلام کی الله تعالیٰ د مسلمانانو ترمینځ په زړونو کی محبت اچولے دے او دا یو ضروری شے هم دے چه بنده به ئے کوشش کوی۔ لکه رسول الله ﷺ فرمایلی دی : (اِیَّاکُمْ وَسُوْءَ ذَاتِ الْبَیْنِ فَاِنَّهَا الْحَالِقَةُ) (الترمذی ۲۵۰۸ باسناد حسن)۔ تاسو د ذات البینی (خپل مینځی) اختلافاتو نه ځان وساتئ ځکه چه دا د انسان دین خریوی (ختموی ئے)۔

شَفَا : یو طرف او غاړے ته وائی۔

حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ : دوی د اُور د کندے په غاړه ځکه وو چه دوی مشرکان او کافران وو او د آخرت منکر وو او بد صفات پکی موجود وو، او د الله تعالیٰ اصول دا دی چه د آخرت منکر او بدو صفات والا اُورته بوځی، دا خلك اګرکه اصحاب الْفَتْرَة وو یعنی په داسے زمانه کی وو چه نبی ورته نهٔ وو راغلے لیکن بیا به هم جهنم ته تلل، دا دلیل دے چه د دغه

زمانے خلك اکثر اصحاب الفترة نهٔ وو (اصحاب الفترة دے ته وائی چه هیځ نبی ورته نهٔ وی راغلے) او په دوی کی اکثر خلك پو هیدل څکه چه د ابراهیم علیه السلام دین موجود وو او یهودیانو به تورات لوستلو او په دغه زمانه کی ډیر خلك په حق باندے پو هیدل لکه زید بن عمرو بن نفیل او قُس بن ساعده او ورقه بن نوفل وغیره خلك په حق باندے پو هیدل او د توحید عقیده ئے لرله نو څوك چه په دغه وخت کی د حق تابعدار نهٔ وو هغه به هم جهنم ته تلل اګرکه رسول الله ﷺ لا نهٔ وو راغلے. او د هغه د راتګ نه بعد که هغه څوك ونهٔ منی نو بیا به خامخا اُور ته روان وی.

فَأَنْقَذَكُمْ مِنْهَا : یعنی تاسو ئے ددے اُور نه خلاص کړئ په سبب ددے کتاب سره. یا په اسلام سره. ددے ﴿فَأَنْقَذَكُمْ مِنْهَا﴾ فائده یو اعرابی داسے ونیلے وه کله چه هغه د ابن عباس رضی الله عنهما نه واوریدل چه دا آیت ئے لوستو نو هغه وویل : (وَاللّٰهِ مَا أَنْقَذَهُمْ مِنْهَا وَهُوَ يُرِيْدُ أَنْ يُوْقِعَهُمْ فِيْهَا). یعنی قسم په الله چه دوی ئے د اُور نه نهٔ دی ساتلی ددے دپاره چه دوی به پکی بیرته ګوزاری) یعنی هرکله چه الله تعالیٰ تاسو د اُور د کندے نه وساتلئ نو الله تعالیٰ ددے نه ډیر عزتمند دے چه تاسو دوباره هغے ته واپس کړی.

نو عبد الله بن عباس رضی الله عنهما وفرمایل: (خُذُوْهَا مِنْ غَيْرِ فَقِيْهٍ).

دا خبره تاسو د داسے سړی نه زده کړئ چه په دین کی ئے دومره ډیره پو هه نشته.

نو دے نه معلومه شوه چه ټول صحابه کرام اول د جهنم نه خلاص دی او بیا هر مؤمن چه په هغه کی صحیح تابعداری د کتاب او سنت راشی، والحمد لله، اللهم اجعلنا منهم.

او هغه حدیث ددے ځای نه ماخوذ دے چه نبی علیه السلام فرمائی :

(أُمَّتِيْ هٰذِهِ أُمَّةٌ مَرْحُوْمَةٌ لَيْسَ عَلَيْهَا عَذَابٌ فِي الْآخِرَةِ، عَذَابُهَا فِي الدُّنْيَا الْفِتَنُ وَالزَّلَازِلُ وَالْقَتْلُ) (ابو داود، والصحیحة رقم : ۹۵۹ ). زما امت باندے رحم شویدے په دوی باندے به په آخرت کی عذاب نهٔ وی (او څه نا څه ګناهونه ترے کیږی) نو ددے امت عذابونه دنیا کی فتنے او زلزلے او قتلونه دی چه په دوی به راځی او د آخرت د عذاب نه به خلاص وی. او دا ډیر لوی بشارت دے ولله الحمد علی ذلك، خو دا د هغه چا دپاره دے چه د قرآن او د حدیث صحیح عقیده او صحیح عمل لری.

په قرآن کریم کی ډیر آیتونه دی چه دلالت کوی د صحابه کرامو په جنتی کیدو باندے یو دا آیت دے او بل سورة التوبه (۱۰۰) آیت کی دی ﴿رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ﴾. او داسے نور هم شته.

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللهُ لَكُمْ : دا ترغیب ددے دپاره بیانوی چه بندګان متوجه شي ځکه چه قرآن کریم کې ذهن سازي زیاته ده. مطلب دا دے چه الله تعالیٰ تاسو ته دا آیتونه بیانوي چه متضمن دي احکامو لره پدے سره الله تعالیٰ ستاسو د هدایت اراده لري، د دنیا او د آخرت فائدے درکوي نو دا په ځان بوج مهٔ ګنړئ.

| وَلْتَكُنْ مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ |
|---|
| او وي دِ ے ستاسو نه یوه ډله چه دعوت ورکوي نیکئ ته او امر کوي په نیکئ |
| وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿١٠٤﴾ |
| او منع کوي د بدئ نه او دا کسان هم دوي کامیاب دي. |

**تفسیر** : پدے آیت کې بیان دے د قانون د امر بالمعروف والنهي عن المنكر او رئاسة الامر بالمعروف والنهي عن المنكر دے چه دا دِ ے د مسلمانانو په ملك کې موجود وي بلکه په خلافتِ اسلامي کې مقصودي کمیتئ هم دا ده ځکه چه د خلافت مقصد دا دے چه منکرات د علاقے او ملك نه ختمول او معروفات عام کول.

**مناسبت** : د مسلمانانو اتفاق چه راځي او تفرقے ختمیږي نو هغه پدے طریقه چه یو بل ته د نیکئ دعوت ورکړے شي او د منکراتو نه منع کړے شي، کله چه دعوت الی الله په یوه علاقه کې نهٔ کیږي نو هلته سخت فسادونه پیدا کیږي ځکه چه د منکراتو مثال داسے دے لکه په فصلونو کې چه ګیاهګانے خپله راخیژي او غنم وغیره دانے کرل غواړي.

وَلْتَكُنْ : خامخا دِ ے وي.

## آیا دعوت (امر بالمعروف او نهي عن المنکر) په هر چا فرض دے؟

مِّنكُمْ : (۱) دا من یا تبعیضیه دے، یعني څه کسان دے په تاسو کې دا ذمه واري سنبال کړي. ځکه چه په امت کې هر تن امر بالمعروف او نهي عن المنكر نشي کولے ځکه چه په امت کې ډیر ناپوهه خلك هم شته چه ددے استعداد نهٔ لري. نو پدے معنیٰ به دا حکم فرض کفائي وي چه بعض کسانو کولو نو د نورو نه فریضه ساقطه ده. (۲) دویم قول دا دے چه دا من بیانیه دے، (وے دِ ے ستاسو نه) یعني تاسو ټول یعني په تاسو کې دے هر یو تن امر بالمعروف وکړي. او ددے تائید دا دے چه روستو آیت (۱۱۰) کې وائي چه تاسو ټول یو داسے امت یئ چه د خلکو د فائدے دپاره ویستلے شوي یئ الخ نو پدے صورت کې

به دعوت الى الله فرض عين شي۔
لیکن تحقیق دا دے چه دا دواړه آیتونه په مختلفو احوالو باندے حمل دی که چرته د مسلمانانو اسلامی حکومت موجود وو او په هغے کی څه کسان د امر بالمعروف او نهی عن المنکر دپاره مقرر شو نو نورو خلکو ته حاجت نشته چه هر یو تن د منکراتو د ختمولو دپاره ډنډه راواخلی بلکه هغوی دے راخبر کړے شی۔ او که داسے نهٔ وی او ستا مخامخ یو منکر کار کیدو او منع کولو والا څوك نهٔ وو، یا داسے ځای کی کیدو چه تهٔ هلته ورتللے شوے او نهی عن المنکر کمیتیٔ والا نشو راتلے نو په دغه وخت کی به په تا باندے نهی عن المنکر واجب وی، مثال ئے ستا کور دے چه ددے نه حکومت نهٔ خبرېږی نو په تا باندے به هلته نهی عن المنکر لازم وی۔ یا دا چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر به کله ټولے معاشرے ته وی نو دا د حکومت کار دے او کله به افرادو ته وی نو دا د هر مسلمان کار دے نو ددے وجه نه امر بالمعروف او نهی عن المنکر به کله فرض عین وی او کله به فرض کفائی وی، ددے وجه نه کله چه مشران موجود وی نو ما او تا ته به ضرورت نهٔ وی چه د هغوی مخے مخے ته راشو او خبرے وکړو او یو ځای کی مشران نشته او ستا مخے ته موقعه راغله نو هلته به امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوے، پدے وجه په ژوند کی ضرور داسے موقعے راځی چه په هغے کی په انسان باندے امر بالمعروف او نهی عن المنکر فرض ګرځی لکه خپله ښځه، بچی، شاګردان، غلامان او خپل ماتحت خلك واخله۔ نو ددے وجه نه غوره دا ده چه دا من تبعیضیه دے او د (کنتم خیر امة) مطلب دا دے چه دا امت به مجموعی طور سره د دین دعوت کوی او په هر هر فرد باندے همیشه دپاره لازم نهٔ دے۔
اِلَى الْخَيْرِ : د خیر مصداق دے (۱) الاسلام۔ اسلام کامل خیر دے۔ (۲) ابن کثیرؒ وائی: الکتاب والسنة۔ (۳) تفسیر معالم او زاد المسیر لیکی چه خیر طاعة الله ته وائی۔ او ددے ټولو حاصل یو دے، اسلام د الله طاعت دے او کتاب وسنت هم اسلام دے۔
وَيَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ : معروف هر هغه شی ته وائی چه په شریعت کی د هغے حُسن (ښائست) معلوم وی، او شریعت ورته ښه وائی۔ او منکر هر هغه شے دے چه په شریعت کی د هغے قباحت معلوم وی۔ بیا معروف د ایمان نه تر مستحبی مسئلے پورے واخله او منکر د کفر نه واخله تر صغیره او خلافِ اولیٰ پورے باندے ئے اطلاق کیږی۔
د دعوت الى الخیر او امر بالمعروف فرق څه دے؟

فرق دا دے چه دعوت کافرو ته وی او امر بالمعروف مسلمانانو ته وی۔ یعنی کافرانو ته به دعوت ورکوی چه اسلام ته راشئ او کتاب او سنت ومنئ او د الله تعالیٰ طاعت کی داخل شئ او مسلمانانو ته به وئیلے شی چه دا دا نیکی وکړئ او ددے فلانی فلانی منکراتو نه ځان وساتئ۔

وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ : الله تعالیٰ دے خلکو ته کامیاب ووئیل ځکه چه دا کامل مکملین دی، خپله کامل دی چه په دین عمل کوی او د نورو د تکمیل کوشش کوی چه هغوی هم په دین عمل وکړی۔

حافظ ابن القیمؒ وائی : اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ : لَا الدَّاعُوْنَ اِلٰی رَأْيِ فُلَانٍ وَفُلَانٍ) الله تعالیٰ دلته حصر کړیدے چه همدا خلك کامیاب دی نهٔ هغه خلك چه د فلانی فلانی رأی ته دعوت ورکوی)

## پدے آیت کی فوائد او قواعد

پنځلس قواعد دی خو دلته به بعض ذکر کړو : (۱) یو وعظ دے او بل امر بالمعروف او نهی عن المنکر دے۔ نو امر بالمعروف او نهی عن المنکر د حکامو کار دے، نهٔ د عوام الناس ځکه چه په امر او نهی کی اقتدار ضروری وی، چه داسے وکړه او داسے مهٔ کوه او دا زور غواړی او د عوامو کار وعظ او نصیحت دے یعنی چا ته د خیر خبره کول په غیر د زور نه، که د چا خوښه وی منی به ئے او که نهٔ وی نو زور پرے نشی کیدے۔ مونږ په درجه د وعظ کی یو او امر بالمعروف او نهی عن المنکر مرتبے ته لا نهٔ یو رسیدلی۔ البته که په چا مو وسه کیدله نو دغه وخت کی به امر بالمعروف او نهی عن المنکر موجودیږی لکه خپل ماتحت خلك لکه چه مخکی بیان شو۔

(۲) په داعی باندے لازمه نهٔ ده چه تهوله دنیا ته به دعوت کوی بلکه داعی چه د خولے نه خبره راویاسی نو د هغه فریضه ادا شوه لکه رسول الله ﷺ به په خپل کور کی بی بی ته خبره وکړه نو په هغے لازمه وه چه هغه به ئے نورو ته کوی نو بیا هر چا ته چه د دین یوه خبره ورسیدله، هغه به ئے بل ته کوی۔ پدے وجه دا خبره غلطه ده چه بعض کسان ئے کوی چه داعی باندے لازمه ده چه بهر به وځی او تولو کافرانو ته به ورځی او دعوت به ورکوی او دا عادةً هم ممکن نهٔ ده چه یو تن په تولو دنیا کی وګرزی او نهٔ د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامؓ نه پدے باره کی څه نقشه او مثال شته، بلکه تهٔ په یو مسجد او مدرسه او

محله کی د قرآن او حدیث درس وکړه ستا دعوت وشو۔ کما فی القرطبی سورة الاحزاب)

(۳) فائده: د امر بالمعروف او نهی عن المنکر مختلفې طریقې او لارې دي (۱) اوله طریقه دا ده چه په اسلامي حکومت کی د امر بالمعروف کمیټئ مقرر شي۔ (۲) دویمه طریقه: په خطبه کی د دین خبرې کول (۳) تعلیم او تعلم او درس او تدریس چه دا د دعوت الی الله ښه لاره ده ځکه چه پدې سره سرهٔ زر تیاریږي لکه د سورة الرعد په آیت (۱۷) ﴿ وَمِمَّا يُوقِدُونَ عَلَيْهِ فِي النَّارِ ابْتِغَاءَ حِلْيَةٍ أَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِثْلُهُ ﴾ کی به راشي ان شاء الله تعالیٰ۔

(٤) التصنیف والتالیف: ښه او مفید تصنیفات (کتابونه) لیکل۔

(٥) کله به دعوت په عمل سره وي، لکه په یو ځای کی په سنت طریقه عمل نهٔ کیږي نو تهٔ ورشه او په سنت طریقه عمل وکړه خلکو کی به دغه طریقه خوره شي۔

(٦) وقف الکتب: یوې مدرسې ته دیني کتابونه وقف کول چه خلك هغه ګوري او فائدې ترې اخلي دا هم د دعوت لاره ده، یوه لائبریري او مکتبه جوړول او دارنګه یوه مدرسه جوړول یا د مدرسې خرچه اخراجات برداشت کول، یو مدرس او استاذ له تنخواه مقررول۔

(۷) الشریط: (کیسټ)، ایم پی ترې، میموري کارډونو کی بیانونه واچوه او چا ته ئې تحفه کی ورکړه، ستا دعوت پدې سره هم کیږي۔

(۸) علماؤ دپاره پروګرامونه مقررول او اصلاحي اجتماعات جوړول او هغوی بیان ته راغوختل ځکه چه تهٔ امي ئې خپله بیان نشې کولې نو علماء راوغواړه پدې سره تهٔ په دعوت کی برخه اخستې شې۔

(۹) په علاقو کی ګرزیدل او خلکو سره انفرادي خبره کول نو د دعوت مزاج هر مؤمن لره جوړول پکار دي، او صفا د کتاب او سنت دعوت پیش کول پکار دي، نهٔ تاویلي ما ویلي۔

(٤) **فائده**: د دعوت او امر بالمعروف او نهی عن المنکر د قواعدو نه دا هم ده چه داعي کی به یو څو صفات وي لکه په دهٔ کی به ایمان وي، علم به وي، تقویٰ وي، عدل به وي (انصاف نه به کار اخلي، چه یو سرې د رد لائق نه وي او دا پرې رد کوي، داسې به نهٔ کوي) خیر خواه به وي، په خلکو به شفقت کوي، او خلکو سره به نیك اخلاق کوي۔ او په دهٔ کی به امانت وي (یعني هغه دین به بیانوي چه کوم الله تعالیٰ رالیږلې دې، د ځان نه به خبرې نهٔ جوړوي ﴿ وَأَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ أَمِينٌ ﴾ (اعراف:٦٨)

(٥) امر بالمعروف او نهي عن المنکر هغه څوك کولے شي چه هغه کي ایمان وي او بل پکي د الله تعالیٰ دپاره غیرت وي. نور قواعد هم شته.

## د دعوت طریقه

ددے دپاره چه دعوت مؤثر ثابت شي د داعي دپاره لاندینئ خبرو ته متوجه کیدل لازم دي

(١) په هره موضوع کي چه دعوت چلوي پکار ده چه په هغے کي مضبوط معلومات ولري او د ضعیفو او کمزورو معلوماتو نه ځان وساتي.

(٢) پکار ده چه هر شرعي حکم د خپل چوکاټ نه وننه باسي، غلو په دین کي ډیر ضرر رسوي. ځیني خلك یو مستحب حکم په خلکو د فرضو درجے ته رسوي او د ځیني فرضي احکامو په دعوت کي د مستحبو په اندازه کوشش هم نهٔ کوي، او په بعض وختونو کي یو مکروه عمل به د قطعي حرامو درجے ته رسوي او په قطعي حرامو باندے د مکروه په اندازه هم نه خفه کیږي، بلکه د هر عمل مرتبه پیژندل او د هغے مطابق دعوت کول ضروري دي.

(٣) پکار ده چه په دعوت کي داعي خپله د منکراتو کونکے جوړ نشي ځکه چه ډیر داسے واعظان شته چه د یو منکر نه خو به خلك منع کوي لیکن په داسے انداز ئے کوي چه خپله په هغه کي ډیر منکرات راجمع شي چه بیا دا داعي ددے خبرے محتاج وي چه ددهٔ منکرات منع کړے شي.

(٤) په دعوت کي به فاحش او ناکاره او مزاج خفه کونکي الفاظ نهٔ استعمالوي بلکه د محبت او نرمئ او خیر خواهئ الفاظ استعمال کړي.

## د دعوت مراحل

دعوت لاندے مرحلے لري.

(١) کافران اسلام ته دعوت کړي او د هغوی شبهات دفعه او اعتراضونه ئے جواب کړي.

(٢) د ګمراه ډلو (لکه معتزله او خوارج وغیره ؤ) د عقائدو اصلاح وکړي او د بدعتونو مخه ئے ونیسي. (٣) د مسلمانانو د معاصیو (ګناهونو) او جنایتونو مخنیوے وکړي او د شریعت په سمه لاره باندے ئے برابر کړي.

(٤) لیونیان ورانکارئ ته پرینږدي او د دوائي غم ئے وکړي او هم ماشومان د بي ځایه ګرځیدو نه منع کړي او د تعلیم او تربیت بندوبست ئے وکړي.

(۵) د مستحباتو خودنه ورته وکړی او د مکروهاتو نه ئې منع کړی۔ (عزیز التفاسیر)

| وَلَاتَكُونُوْا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوْا وَاخْتَلَفُوْا |
|---|
| او مهٔ کیږئ تاسو په شان د هغه کسانو چه هغوی ډله ډله شول او اختلاف ئې وکړو |
| مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَ هُمُ الْبَيِّنَاتُ وَأُوْلَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۰۵﴾ |
| پس د هغې نه چه راغلل دوی ته ښکاره دلیلونه او دغه کسان دوی دپاره عذاب لوی دے۔ |

**تفسیر**: اوس الله تعالیٰ بیا منع کوی د اختلافاتو نه۔

(۱) پدے آیت کریمه کی الله تعالیٰ مسلمانان د یهودو او نصاراؤ په شان په مختلفو ډلو کی د تقسیمیدلو نه منع کړیدی، چه هغوی د حق نه سر وارولو او د خپل نفس د خواهش تابعداری ئې اُوکړه او یو بل سره ئې حسد اُوکړو، تردے چه انبیاء کرام علیهم السلام ئې هم خپل مینځ کی تقسیم کړل، په دین کی ئې بدعت ته لاره ورکړه او دغه شان د حق خبرے د ښکاره دلائلو راتللو باوجود د هغوی په مینځ کی حسد او دشمنی او بغض او عناد پیدا شو، او د هغوی زړونه مختلف شو۔

امام فخر الدین رازیؒ ددے آیت په ضمن کی لیکی چه ((د دوی نه به هریو دعویٰ کوله چه هغه په حق دے، او ددهٔ مخالف په باطل دے))۔ دے نه روستو لیکی چه ((که په انصاف سره سوچ اُوکړے شی نو وبه وینی چه ددے زمانے اکثر علماؤ کښې هم دا صفت پیدا شویدے، الله تعالیٰ دِے مونږ معاف کړی او زمونږ په حال دِے رحم اُوکړی))۔

په سلفو علماؤ کی دا صفت نهٔ وو موجود۔ صحابه کرامؓ به د قرآن او سنت په رڼا کی فتوے ورکولے او که کله به د هغوی په مینځ کی په کومه مسئله کی اختلاف کیدو نو د هغوی په زړونو کی به فرق نهٔ راتلو، د مسلمانانو په زړونو کی اختلاف د تقلید جامد او د فقهی مذاهبو د ړوند عصبیت نه روستو پیدا شو۔ د قرآن او سنت نه چه څومره وړاندے شو نو هغومره دے مرض جرړے اُونیولے او خبره د یو بل تکفیر او تضلیل ته اُورسیده۔

بعض غلط فهمو او په امت کی اختلاف ته لاره ورکونکو د ((اِخْتِلَافُ اُمَّتِیْ رَحْمَةٌ)) په شان ضعیف او موضوع حدیث نه مدد واخستو۔ ددے حدیث هیڅ صحیح سند نشته۔ دا طبرانیؒ او بیهقیؒ په (المدخل) کی د ابن عباس رضی الله عنهما نه په ضعیف سند سره مرفوعاً روایت کړیدے۔ ددے حدیث سند خو کمزورے دے، خو ددے نه علاوه د ډیرو قرآنی آیتونو او د صحیح احادیثو خلاف دے۔ الله تعالیٰ فرمائی: ﴿وَلَا يَزَالُوْنَ مُخْتَلِفِيْنَ إِلَّا مَنْ

رَّحِمَ رَبُّكَ﴾ (هود: ۱۱۸/۱۱۹) چه ((خلق به همیشه خپل مینځ کی اختلاف کوی سوئ د هغه خلقو نه چه په چا باندے الله تعالیٰ رحم اوکړو)). پدے آیت کی د اختلاف او د رحمت په مابین کی تباین اُوخودلے شو. او نبی کریم ﷺ فرمایلی دی: [وَلَا تَخْتَلِفُوْا فَتَخْتَلِفَ قُلُوْبُكُمْ] یعنی خپل مینځ کی اختلاف مۀ کوئ، که نۀ وی نو ستاسو زړونه به مختلف شی. (مسلم: ۱۰۰۰ والبخاری).

او دارنګه مخکی حدیث تیر شو: (وَالْجَمَاعَةُ رَحْمَةٌ وَالْفُرْقَةُ عَذَابٌ) (صحيح الترغيب: ۹۷٦ باسناد حسن صحيح) جماعت (اتفاق) رحمت دے او فرقه واریت عذاب دے.

تَفَرَّقُوْا وَاخْتَلَفُوْا : دا کوم خلك مراد دی؟ نو د احادیثو نه معلومیږی چه دوی یهود او نصاریٰ دی، په یهودو کی یو اویا ډلے او په نصاراؤ کی دوه اویا او زما په امت کی به درے اویا ډلے جوړیږی، چه دا ټول به په اُور کی وی سوئ د یوے ډلے نه چه روان دی په هغه دین او طریقه چه زۀ او زما صحابه (کرام) په کوم باندے روان دی. یعنی اګرکه زما امت د تفرقو او اختلافاتو نه منع شویدے لیکن بیا به هم دوی دا اختیاروی او د (كُلُّهُمْ فِى النَّارِ اِلَّا وَاحِدَةٌ) مطلب دا دے چه ټول به اُور ته ځی بیا به د بعضو بدعت مُكَفِّرَه وی نو همیشه به په اُور کی وی او د بعضو به بدعت مُفَسِّقَه وی نو بیا به د اُور نه څه وخت روستو راوځی.

او بیا عامو مفسرینو لیکلی دی چه (هُمُ الْمُبْتَدِعَةُ مِنْ هٰذِهِ الْاُمَّةِ) . دا ددے امت بدعتیان دی چه هغوی تفرقه او اختلافات پیدا کړیدی، ددے آیت خلاف اول هغوی کړیدے.

مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَ هُمُ الْبَيِّنٰتُ : دا ورسره ځکه وائی چه یو تن د جهالت او ناپو هئ او خطائی په وجه د کتاب او سنت خلاف عقیده او نظریه ولری نو الله تعالیٰ ئے معاف کوی ځکه چه جاهل دے خو چه بینات راشی په حقانیت د اسلام او بیا هم بنده د هغے په خلاف عقیده او نظریه جوړوی نو دا تباه دے.

د تفرقوا واختلفوا فرق

ځینی علماء وائی چه دواړه یو شے دے او دویم تاکید د اول دے. ظاهر دا ده چه دواړو کی فرق شته، تفرقه راځی په عبادت کی یعنی د کتاب او سنت خلاف عبادتونه او عملونه جوړول، او اختلاف راځی په دیانت کی یعنی عقیده د ځان نه جوړه کړی. (روح المعانی) یعنی عملی او عقیدوی بدعاتو جوړولو نه منع وشوه.

(۲) فرق: تفرقه دیته وائی چه د کتاب او سنت خلاف عقیده او عمل جوړ کړے شی او اختلاف دیته وائی: (مُعَانَدَةُ الْحَقِّ) د حق سره ضد او عناد کول. صورت ئے دا دے چه یو تن

د کتاب او سنت خلاف عقیده او عمل جوړ کړي خو قرآن او سنت ته هم بنه ګوري او په هغې رد نهٔ کوي نو دا هم مذموم دے۔ لیکن هغه شخص چه د قرآن او حدیث نه جوابونه کوي او خپلې ضعیفې خبرې ته بنه وائي نو دے شخص تفرقه هم وکړه او اختلاف ئې هم وکړو دا ډیر مذموم دے۔ او دا کار ډیرو متأخرینو کړیدے چه خپله یوه ضعیفه خبره راواخلي او د کتاب او د سنت نه جوابونه کوي، ددے نه مونږ او ټولو مسلمانانو له یره پکار ده بلکه کتاب او سنت ته تسلیمیدل پکار دي او خپله او د نورو علماؤ رایه چه کله د کتاب او سنت خلاف راشي هغه پریخودل لازم دي۔

## د یوے غلط فهمئ ازاله

بیا تفرقه او اختلاف دین بیانولو ته نهٔ وائي بلکه چه څوك د یو سنت طریقے خلاف کوي هغه تفرقے او اختلاف والا دے۔ او هغه څوك چه د قرآن او حدیث خلاف یوه عقیده او عمل راپیدا کړي او د کتاب او د سنت سره ضد کوي او د هغې په خلاف بغاوتونه او پروپیګنډے کوي دغه اختلاف والا دے۔

او پدے کې اجتهادي اختلاف نهٔ دے داخل چه مثلاً یو مجتهد عالم ذهن په یوه مسئله کې یو طرفته لاړ شي او د بل عالم بل طرفته لاړ شي ځکه چه دا اختلاف د صحابه کرامؓ ترمینځ هم موجود وو ځکه چه الله تعالیٰ په ذهنونو کې تفاوت او فرق پیدا کړیدے مګر پدے کې به د هغه چا خبره منلے شي چه د کتاب او سنت سره ئې خبره برابره وي، آیت او حدیث پیش کړي او صحیح مطلب ترے واخلي۔ د زیاتي پوهے دپاره چه تفرقه او اختلاف بنه واضح شي یو مثال دوه واوره ۞ متاخرینو دا مسئله لیکلے ده چه د سري او د ښځے دواړو د جنازے کولو په وخت به د هغوی سینے ته ودریږي نو دا خبره په هیڅ حدیث کې نشته بلکه یوه عقلي خبره ده، وائي چه په سینه کې ایمان پروت دے او دے ته مخامخ ودریدو کې د هغه د ایمان ګواهئ ورکول دي۔ بیا ورته حدیث رسیدلے دے چه نبي کریم ﷺ به په جنازه د سري او ښځه کې فرق کولو چه د سري سر ته او د ښځے شا ته حصے ته به برابر ودریدو لکه د انس بن مالك ﷺ نه نقل دے نو د هغې نه جواب کوي چه نبي کریم ﷺ د ښځے شا طرفته ځکه ودریدو (لِأَنَّ الْجِنَازَةَ لَمْ تَكُنْ مَنْعُوْشَةً) چه جنازه باندے نعش نهٔ وو نو نبي ﷺ دغه ښځه د سرو نه پټه وله۔ لکه دا خبره صاحبِ هدایه لیکلے ده۔ نو وګوره د صحیح حدیث نه جواب کوي او خپله د ځانه جوړه شوے مسئله مضبوطوي،

دغه د اختلاف او تفرقې صورت دے. جواب خو هله کیږي چه هغه سره هم صحيح حديث وي او د دواړو ترمینځ تعارض ورته ښکاره شي او دلته خو دے طرفته حديث نشته صرف عقلي خبره ده. خو پدے باندے مشران علماء کرام گناهگار او ماخوذ نهٔ دي ځکه چه د هغوي ضد مطلب نهٔ وو بلکه کله به هغوي ته حديث نهٔ وو رسيدلے نو اجتهادي مسئله کي به خطاء شو، البته هغه تن به ماخوذ وي چه حديث ورته رسيدلے وي ليکن هغه د ځان نه اړوي او وائي چه زمونږ مذهب خراب نشي.

دويم مثال: روستني فقهاء وائي چه زنانه کله مړه شي نو د هغے به دوه کمڅۍ جوړې شي او دواړه به د هغے په سينه واچولے شي پدے باره کي هيڅ صحيح حديث نشته او ددے په مقابله کي په صحيحينو کي د ام عطيه رضي الله عنها صحيح حديث راغلے دے هغه فرمائي: زينبه رضي الله عنها (د رسول الله ﷺ لور بي بي) چه کله وفات شوه نو مونږ د هغے درے کمڅۍ جوړے کړے او شا ته مو گوزار کړے. نو دلته دا روستني احناف وائي چه دا د اُم عطيه خپل عمل دے او هغه خو مجتهده نهٔ ده او نبي ﷺ ورته حکم نهٔ دے کړے. جواب دا دے چه ام عطيه ته نبي کريم ﷺ پدے موقعه حکمونه کړيدي او هغے هيڅ عمل د ځان نه نهٔ دے کړے بلکه نبي ﷺ ورته فرمايلي وو چه ما ته به وخت په وخت خبر راکوئ لکه دا خبره امام ابن حبانؒ په خپل ((صحيح)) کي ثابته کړيده (ذِكْرُ الْبَيَانِ بِأَنَّ أُمَّ عَطِيَّةَ إِنَّمَا مَشَطَتْ قُرُوْنَهَا بِأَمْرِ الْمُصْطَفَى (ﷺ) لَا مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِهَا) (۳۰۲/۷) حديث رقم (۳۰۳۳). يعني ام عطيه د هغے کمڅۍ د رسول الله ﷺ په حکم گمنزل کړے وے نهٔ د خپل ځان نه.

کله وائي چه په کلو (بانډو) کي د جُمعے مونځونه نهٔ کيږي او بعض پکي وائي چه په بانډو کي چه په کومو مساجدو کي د جُمعے مونځ شروع وي نو صحيح ده خو که نوے مسجد جوړ شو او په هغے کي ئے څوك شروع کوي نو په هغے پابندي لگوي نو دا هم تفرقه او اختلاف پيدا کونکي دي ځکه چه دا مسئله د کتاب او د سنت خلاف ده چه تفصيل ئے زمونږ په کتاب (الحق الصريح شرح مشكاة المصابيح باب الجمعة) کي کتلے شئ.

نو دا د تفرقې صورت دے چه خپل مذهب باندے ورسره حديث نشته او د صحيح حديث نه جوابونه کوي. او دا تفرقې معتزله، خوارج او جهميه او تولو باطل پرستو کړيدي. جهميه و د الله تعالیٰ د اسماء او صفاتو نه انکار وکړو، د ځان نه ئے مسئلے جوړے کړے نو

(تفرقوا) شو بيا به ئے د قرآن او حديث نه جوابونه كول نو (واختلفوا) شو. عام اهل بدع دا كار كوى. د مؤمن سړى مذهب به صرف قرآن او حديث وى نۀ بل څه. نو د تفرقے او اختلاف نه د خلاصيدو طريقه دا ده چه تنظيمونه او مذهبونه مۀ جوړوه او د كتاب او د صحيح سنت تابعدارى شروع كړه، دغه به ستا مذهب وى او د ټولو علماؤ كرامو اكرام او احترام ساته او د هغوى نه فائده اخله او ځان پرے كتاب او سنت ته رسوه، دغه زمونږ دعوت دے، كه څوك د كتاب او د سنت خلاف مسئله وليكى كه هر چا ليكلى وى دغه به زمونږ دين نۀ وى نو د هغے جواب كولو ته به ضرورت نۀ وى لكه ډير مبتدعين اهل حديثو ته وائى چه په عرف الجادى او نزل الابرار او دغسے نور كتابونه يادوى چه پدے كى فلانئ فلانئ غلطے مسئلے دى مونږ وايو چه په كتاب او سنت كى دے څوك غلطے مسئلے راوباسى مونږ د هغے ذمه وار يو، نۀ د علماؤ د خبرو ځكه چه مونږ خو دغه كتابونو ته دعوت نۀ وركوو، زما دعوت صفا كتاب او سنت طرفته دے.

| |
|---|
| يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ فَأَمَّا الَّذِينَ |
| په هغه ورځ چه سپين به شى بعض مخونه او تور به شى بعض مخونه پس هرچه هغه كسان دى |
| اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ |
| چه تور شو مخونه د هغوى (ورته وئيلے به شى) آيا تاسو كفر كړے پس د ايمان ستاسو نه |
| فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿١٠٦﴾ وَأَمَّا الَّذِينَ ابْيَضَّتْ |
| نو وڅكئ عذاب په سبب د هغے چه تاسو كفر كولو. او هرچه هغه كسان دى چه سپين شو |
| وُجُوهُهُمْ فَفِي رَحْمَةِ اللَّهِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿١٠٧﴾ |
| مخونه د هغوى، نو په رحمت د الله كى به وى، دوى به په هغے كى هميشه وى. |

**تفسير** : ربط : الله تعالىٰ د اختلاف او تفرقے نه منع وكړه نو اُوس وعيد بيانوى چه اختلافات ځكه مه پيدا كوئ چه د قيامت ورځ راروانه ده، په هغے كى به مو مخونه تور شى. د الله تعالىٰ او د رسول الله ﷺ په خبره منلو كى د مخ سپين والے دے او ددے په مخالفت كى د مخ تور والے دے.

يَوْمَ : يعنى دا لوى عذاب به په هغه ورځ رابنكاره شى چه بعض مخونه به تك سپين

شي او د بعض کسانو مخونه به د ډير غم نه تك تور شي ته به وائے چه توره تبۍ ده.
تَبْيَضُّ وُجُوهٌ : ددے ډیر مصداقات دی (۱) د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی : (تَبْيَضُّ وُجُوهُ أَهْلِ السُّنَّةِ وَالْجَمَاعَةِ وَتَسْوَدُّ وُجُوهُ أَهْلِ الْبِدْعَةِ وَالْفُرْقَةِ) (ابن کثیر والقرطبی) سپینیږی به مخونه د اهل سنتو (چه د کتاب او سنت تابعدار دی) او د جماعت (یعنی اتفاق) والو او توریږی به مخونه د بدعتیانو او اختلاف والو.
(۲) تَبْيَضُّ وُجُوهُ أَهْلِ الْإِيمَانِ وَتَسْوَدُّ وُجُوهُ الْكُفَّارِ. سپینیږی به مخونه د مؤمنانو او توریږی به مخونه د کافرانو (یهود او نصاراؤ او نورو کفارو) لکه روستو آیت نه خپله دا معنیٰ معلومیږی. (قاله ابی بن کعبؓ) – قرطبی والبغوی ۲/۸۷)
(۳) تَبْيَضُّ وُجُوهُ أَهْلِ الطَّاعَةِ وَتَسْوَدُّ وُجُوهُ الْعُصَاةِ.
د طاعت والا خلکو مخونه به سپینیږی او د نافرمانو مخونه به توریږی د هغوی د نافرمانئ مطابق، په قیامت کی به د چا سره د سپوږمئ په اندازه رڼا وی او د چا سره د بیتیری او د چا سره به د هغے نه هم کمه وی دا به د طاعت په اندازه وی.
د مخونو سپینیدل دا دی چه ویرقیږی او په خپل عملونو او د الله په ثواب او نعمتونو باندے خوشحاله شی، او تورواله ئے دا دے چه غمژن او مصیبت زده شی او د خپل عمل او د الله تعالیٰ د عذاب په وجه تور شی. پدے باندے دلیل بل آیت دے : ﴿لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ وَلَا يَرْهَقُ وُجُوهَهُمْ قَتَرٌ وَلَا ذِلَّةٌ﴾ (یونس: ۲۶) (البغوی والقرطبی)
فَأَمَّا الَّذِينَ : دا لف نشر غیر مرتب دے اول ئے روستنی خلك ذکر کړل تور مخونو والا قریب وو نو ځکه د هغوی تذکره اول کوی. دارنګه دا قسم خلك زیات دی نو د دوی تذکره مخکې کوی.
أَكَفَرْتُمْ : د مخونو د توریدو سره سره به دوی ته توبیخ هم ورکولے شی او دا به د هغوی د شرمولو دپاره وئیلے شی چه تاسو هغه کسان یئ چه د ایمان نه روستو مو کفر وکړو؟.

## د ایمان نه روستو کفر کولو څه مطلب ؟

دا کوم خلك دی چه د ایمان نه روستو ئے کفر کړیدے؟ (۱) نو ددے اول مصداق یهودیان دی چه دوی تورات او موسیٰ علیه السلام منلے وو، ایمان ئے راوړے وو لیکن کله چه آخری نبی ﷺ راغلو نو دوی پرے کفر وکړو. او دغه شان نصاریٰ هم وو. (عکرمة -قرطبی)
(۲) دویم په دوی کی منافقان هم داخل دی چه اول کی دوی ایمان راوړو او بیا ئے فسادونه

شروع کړل. (قاله الحسنؒ - ابن کثیر) (۳) مفسرین وائی پدے کی مشرکان هم داخلیږی چه دوی سره هم فطری ایمان وو لیکن هغه ئے ضائع کړو او د رسول الله ﷺ او د قرآن نه نه ئے انکار شروع کړو نو د فطری ایمان نه روستو ئے کفر اختیار کړو. یا دوی په ایمان باندے قادر وو چه هغه راوړی نو دا په منزله د ایمان شو لیکن دوی دغه قدرت په ایمان باندے ضائع کړو (والعیاذ بالله). (۳) مالك بن انسؒ فرمائی: دا آیت د اهل الاهواء (خواهش پرستو) په باره کی دے. (٤) قتادهؒ وائی : دا د مرتدینو په باره کی دے. (قرطبی)

## د آیت اشارات :

(۱) (اَلتَّفَرُّقُ وَالْاِخْتِلَافُ سَبَبٌ لِلْكُفْرِ وَالْاِرْتِدَادِ) . (تفرق او اختلاف پیدا کول سبب د کفر او مرتد کیدو دے) لکه دا روستو سورت انعام (۱۵۳)کی راځی : ﴿ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيلِهِ ﴾ . د الله تعالیٰ د لارے نه بغیر نورو لارو پسے مهٔ روانیږئ ګنے د صحیح لارے نه به واوړئ. او دا واقعی خبره ده چه د بدعت او خرافاتو په لاره څوك روان شویدے او نور مذهبونه او تعصبونه ئے پیدا کړیدی نو هغه په صحیح اسلام باندے نهٔ دے روان شوے او مونږ دا دعوے سره وایو او ددے مثالونه بنایو چه څوك په تقلیدِ جامد کی ننوتو نو د هغه نه به اوبا فیصده دین پاتی کیږی، هغه پرے عمل نشی کولے، دا د ضد او د عناد خبره نهٔ ده بلکه پدے مونږ تجربه کړیده او په ډیر سوچ او سمجهـ سره ئے وایو، هر مسلمان دے ځانله پدے سوچ وکړی او د ځان خیر خواهی دِے وکړی.

ددے وجه نه علماء کرامؒ فرمائی : اکثر اهل بدع په وخت د مرګ کی بی ایمانه کیږی او خاتمه ئے خرابیږی، بدعت د خاتمے د خرابیدو لوی سبب دے.

(۲) او اشاره ده چه اتباع د سنت کی حسن الخاتمه ده. (۳) طاعت، سنت، وحدت نور پیدا کوی او معصیت، بدعت او اختلاف اسوداد (توروالے) پیدا کوی.

### د الله تعالیٰ رحمت څه شے دے؟

فَفِيْ رَحْمَةِ اللهِ : د الله تعالیٰ د رحمت ډیر مصداقات دی (۱) اول مصداق ئے جنت دے او جنت ته ئے رحمت ویلو څکه چه دا د الله تعالیٰ په رحمت باندے حاصلیږی.

(۲) (فِيْ ظِلِّ الْعَرْشِ). د عرش د سوری د لاندے به وی، او بیا به جنت ته داخلیږی.

(۳) رحمة الله د الله تعالیٰ ضیافت (میلمستیا) ته هم وائی، یعنی دوی به د الله تعالیٰ میلمانه وی لکه بل آیت کی دی : ﴿ يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِيْنَ اِلَى الرَّحْمٰنِ وَفْدًا ﴾ (مریم:۸۵).

په کومه ورځ چه مونږ به متقیان رحمٰن ذات ته راجمع کړو پداسې حال کې چه میلمانه به وي)

| تِلْكَ آيَاتُ اللهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ |
| --- |
| (دا چه تیر شو) آیتونه د الله تعالیٰ دي، لولو مونږ دے لره په تا باندے په حق سره |
| وَمَا اللهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِّلْعَالَمِينَ ﴿۱۰۸﴾ |
| او نۀ دے الله چه وغواړي ظلم کول په مخلوقاتو۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کې د قرآن کریم حقانیت بیانوي او دا خبره بیانوي چه دا مخکنے وعید حق دے ځکه چه دا د الله تعالیٰ د طرفنه دے سره ددے نه چه الله تعالیٰ د ظلم نه بري دے او پدے آیت کې ضمناً د رسول الله ﷺ صدق (رشتینوالے) دے۔

یعني اے پیغمبره! دا څه چه مونږه په تا باندے په حق سره لولو دا د الله تعالیٰ آیتونه دي که مونږ در باندے ددے وحی نۀ وے کړے نو ته به څه خبر وے چه د قیامت په ورځ به د مخونو څه حال وي؟، نۀ به دے تور مخونه پیژندلي او نۀ سپین مخونه۔ او دا څه چه په تا لوستلے کیږي نو دا د الله تعالیٰ خبرے دي، داهسے وهمي او ګپ نۀ دے بلکه یقیني خبرے دي۔ او د کافرانو او مرتدینو مخونه توریدل پدے وجه دي چه الله تعالیٰ په دوی باندے د دوی د بدو عملونو په وجه داسے حالت راوستے او دوی ددے مستحق دي ځکه چه الله تعالیٰ په هیڅ مخلوقاتو باندے د ظلم اراده هم نۀ لري۔

وَمَا اللهُ : دا جواب د سوال دے چه د بندګانو مخونه توروِل خو ډیر زیات شرم دے او لویه تباهي ده نو الله تعالیٰ دا کار د بندګانو سره ولے کوي؟ نو الله تعالیٰ جواب کوي چه الله تعالیٰ په بندګانو باندے اراده د ظلم هم نۀ کوي پاتے لا دا چه ظلم وکړي۔ نو پدے کې په نفي د ظلم باندے ډیره مبالغه پرته ده۔ نو دے خلکو په خپل ځانونو باندے ظلم وکړو ځکه چه د الله سبحانه په نافرمانۍ کې دغه ظلمتونه ترلے شویدي، بلکه الله تعالیٰ د بندګانو سره احسان وکړو چه بیان ئے ورته وکړو چه د ظلم کارونه مۀ کوئ ورنه سزا به در ورسیږي۔

د اهل السنة والجماعة عقیده دا ده چه الله تعالیٰ ظلم کولے شي (قادر دے پرے) لیکن کوي ئے نۀ، او د اشاعره او ماتریدیه ؤ عقیده دا ده چه الله تعالیٰ ظلم نشي کولے، په قدرت کې ئے نشته نو دا خبره د دوی ضعیفه ده ځکه چه کله ذیو شي قدرت نۀ وي او د هغے

نفي وکړے شي نو دا کمال نهٔ دے لکه ړوند پردو ښخو ته نهٔ ګوري نو دا کمال نهٔ دے او چه په لیدو قادر وي او نهٔ ګوري نو دا کمال دے، پدے وجه الله تعالیٰ نفي د ظلم د خپل ځان نه کړیده او ظلم الله تعالیٰ نهٔ کوي ځکه چه ظلم عیب دے او الله تعالیٰ د عیب کارونه نهٔ کوي، دارنګه ظلم هغه څوك کوي چه قدرت ئے نهٔ وي، عاجز وي، او چه کله قادر شي نو بیا د حد نه زیاتے کوي نو د الله تعالیٰ ظلم ته حاجت نهٔ راځي۔

| وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ |
|---|
| او خاص د الله دپاره هغه څه دي چه په آسمانونو کې دي او هغه څه چه په زمکه کې دي |
| وَإِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْأُمُوْرُ ﴿۱۰۹﴾ |
| او خاص الله ته ورګرزولے شي ټول کارونه۔ |

**تفسیر** : پدے کې د الله تعالیٰ مملوکیت او مالکیت بیانیږي چه ټول اختیارات د الله تعالیٰ دي۔ **مناسبت** ئے دا دے چه ټول کائنات د هغه دي نو پکار ده چه د هغه په دین عمل وکړے شي او د هغه په رسئ باندے منګولے ولګولے شي، مالك هغه دے نو قانون به د هغه منلے شي۔ (۲) دویم دا د نزدے (ظلم) سره لګي، فَفِيْهِ بَيَانُ اِتِّسَاعِ مُلْكِهٖ وَقُدْرَتِهٖ وَغِنَاهُ عَنِ الظُّلْمِ) یعنې د الله تعالیٰ بادشاهي فراخه ده او هغه قادر او د مخلوقاتو نه غني (بې حاجته) دے نود هغه ظلم ته حاجت نشته، ځکه ظلم خو عاجز انسان کوي۔

| كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ |
|---|
| وئ تاسو غوره امت راوستلے شوي يئ دپاره د خلکو، امر به کوئ په نیکئ سره او منع به کوئ |
| عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَلَوْ آمَنَ أَهْلُ الْكِتَابِ لَكَانَ |
| د بدئ نه او ایمان به لرئ په الله باندے او که چرته ایمان راوړے وے کتاب والو خامخا دا به |
| خَيْرًا لَّهُمْ مِنْهُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ وَأَكْثَرُهُمُ الْفَاسِقُوْنَ ﴿۱۱۰﴾ |
| غوره وه دوی لره، بعض د دوی نه مؤمنان دي او زیات د دوی نه نافرمان دي۔ |

**تفسیر** : دا بیان دے د (وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ أُمَّةٌ) دپاره مخکې ئے وویل چه په تاسو کې دے بعض کسان د نیکئ دعوت وکړي نو اُوس وائي چه هر امتي له د دین دعوت پکار دے۔ او د اهل کتابو دوه ډلے بیانوي۔

یا مطلب دا دے چه اے مؤمنانو! تاسو به مخکښے حکم (د تفرقه او اختلاف نهٔ کولو) ولے نهٔ عملی کوئ څکه چه تاسو په ټولو امتونو کی د الله تعالیٰ په نیز غوره امت یئ، د انبیاؤ علیهم السلام کار تاسو ته سپارل شویدے چه هغه خلکو لره نیکیو ته رابلل او د بدیو نه منع کول دی نو تاسو د انبیاؤ علیهم السلام جانشین یئ نو ستاسو اختلافاتو پیدا کولو ته ضرورت نشته بلکه تاسو به اختلاف او تفرقه ختموئ.

امام احمد، ترمذیؒ او حاکمؒ د معاویه بن حیده ﷛ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل: (اِنَّكُمْ تُتِمُّوْنَ سَبْعِيْنَ اُمَّةً، اَنْتُمْ خَيْرُهَا وَاَكْرَمُهَا عَلَى اللّٰهِ) (ترمذی بسند حسن - البانی)

اے مسلمانانو! تاسو اویا امتونه پوره کوئ (یعنی تاسو نه نهه شپیته (٦٩) امتونه مخکی تیر شویدی) تاسو د هغوی نه غوره او د الله په نیز د هغوی نه زیات عزتمند یئ.

كُنْتُمْ: اَیْ كُنْتُمْ فِیْ عِلْمِ اللّٰهِ. یعنی تاسو مخکی نه د الله تعالیٰ په علم کی غوره امت وئ.

یا كُنْتُمْ په معنیٰ د (اَنْتُمْ) سره دے. یعنی تاسو غوره امت یئ. اول قول ظاهر دے.

اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ: اخراج راویستلو ته وائی او ددے معنی د پیدائش ده یعنی تاسو دنیا ته راویستلے شوی یئ (پیدا کړے شوی یئ) او دا مطلب نهٔ دے چه بنده به خامخا د کور نه وځی هله به د دین دعوت کیږی.

رسول الله ﷺ ددے تفسیر داسے کړیدے: [اَنْتُمْ خَيْرُ النَّاسِ لِلنَّاسِ تَأْتُوْنَ بِهِمْ فِي السَّلَاسِلِ فِيْ أَعْنَاقِهِمْ حَتّٰى يَدْخُلُوْا فِي الْإِسْلَامِ]. (بخاری: ٤٥٥٨ و ٣٠١٠)

یعنی تاسو د خلکو (کافرانو) دپاره غوره یئ چه هغوی په زنځیرونو کی راولئ او بیا ئے په اسلام کی داخل کړئ) څکه چه ډیر کافران نیولے شویدی بیا ئے د مسلمانانو اعمالو لیدلو سره اسلام قبول کړیدے. نو دا مسلمانان ددے کافرانو دپاره غوره شو او سبب د رحمت شو چه د دوی په وجه په اسلام کی داخل شول. نو دا آیت د قتال فی سبیل الله سره ولګیدو.

دویم مصداق ئے دا هم دے چه خلکو سره ښیګړه دا ده چه د نیکئ دعوت ورکړی او د بدئ نه ئے منع کړی، ددے وجه نه علماء کرامؒ فرمائی: غوره هدیه چه یو سړے ئے خپل مسلمان ورور ته ورکوی هغه د حق کلمه ده چه هغه ته ئے بیانه کړی.

**فوائد**: (١) (كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ) نه معلومیږی چه په امت کی هر استعداد والا کسانو دپاره پکار دی چه د نیکئ حکم وکړی او د بدئ نه منع وکړی دے دپاره چه په خیریت کی داخل شی. لکه روستو د عمر فاروق ﷛ قول راځی. (٢) دلته ئے امر بالمعروف او نهی عن

المنکر د ایمان نه مخکې ذکر کړیدے ددے بعض خلك دا فائده وائي چه ایمان په ټولو امتونو فرض وو او امر بالمعروف الخ ددے امت خصوصیت دے مګر دا خبره خطاء ده ځکه چه امر بالمعروف او نهي عن المنکر په پخوانو هم لازم وو، قرآن کریم کې ئے ځای په ځای په هغوی باندے ردونه کړیدي چه هغوی نهي عن المنکر پریخوستے وو فرمائي: ﴿لَوْلَا يَنْهٰهُمُ الرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ عَنْ قَوْلِهِمُ الْاِثْمَ وَاَكْلِهِمُ السُّحْتَ﴾ المائده: ٦٣) ﴿فَلَوْلَا كَانَ مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْ قَبْلِكُمْ اُولُوْا بَقِيَّةٍ يَّنْهَوْنَ عَنِ الْفَسَادِ فِي الْاَرْضِ﴾ (هود:١١٦).

(٢) نو بله وجه دا ده چه امر بالمعروف او نهي عن المنکر د ایمان د زیاتوالي سبب دے نو سبب ئے مخکې ذکر کړیدے. (٣) دریمه وجه دا ده چه ایمان بنیاد دے یعني دغه امر بالمعروف او نهي عن المنکر به د ایمان په بنیاد وي نو مطلب به دا وي چه زما په الله تعالیٰ ایمان دے ځکه تا ته په نیکۍ دعوت درکوم او ګناه بده ګنړم. ځکه که چرته ایمان نهٔ وي نو امر بالمعروف ورته فائده نهٔ ورکوي. (٤) څلورمه وجه: د امر بالمعروف او نهي عن المنکر صفت د ټولو انسانانو په عرف کې ښه صفت دے مؤمنان وي که کافران، چا کې چه دا صفت وي هغه ورته غوره ښکاري او هرکله چه دلته خبره ددے امت د خیریت (غوره والي) بیانیدله په ټولو امتونو باندے نو هغه صفت ئے مخکې ذکر کړو کوم چه اتفاقي غوره دے د مؤمنانو او کافرانو په نیز. (قاله استاذ صاحب المنار) (٥) صاحب المنار وائي: زما په نیز متبادر دا ده چه امر او نهي ئے مقدم کړل پدے کې تعریض دے په اهل کتابو چه هغوی د ایمان دعوه کوي لیکن دوی په دعوه د قیام د امر بالمعروف او نهي عن المنکر باندے قادر نهٔ دي ځکه چه دوی به خپل مینځ کې یو بل د منکراتو نه نهٔ منع کول نو ګویا که دوی په دعوه د امر بالمعروف او نهي عن المنکر کې د مؤمنانو سره نهٔ دي شریك، نو ایمان ئے روستو ذکر کړو د کوم چه دوی دعوه لرله دے دپاره چه دا خبره پرے مرتبه کړي چه د دوی دا ایمان صحیح نهٔ دے ځکه چه دے د ایمان صحیح ثمره نهٔ ده راوړے. ددے وجه نه ئے روستو وفرمایل: ((که اهل کتابو صحیح ایمان راوړے وے نو دا به ورله بهتره وے)) آه.

**فائده**: سیدنا عمر فاروق ﷺ به پدے آیت کې فرمایل:

(مَنْ سَرَّهٗ اَنْ يَّكُوْنَ مِنْ خَيْرِ اُمَّةٍ لِلنَّاسِ فَلْيُؤَدِّ شَرْطَ اللّٰهِ مِنْهَا) (رواه ابن جریر).

که څوك پدے خوشحالیږي چه دے د غوره امت نه حساب شي نو د الله تعالیٰ شرط دے د امت نه ادا کړي هغه دا چه په نیکۍ دے حکم کوي او د بدۍ نه دے منع کوي. نو کوم خلك چه په خپلو دکانونو او کاروبارونو بوخت دي او هغوی سره د نیکۍ د حکم او د بدۍ

نه د منع کولو هیڅ پرواه نهٔ وی او شرك او قسما قسم گناهونه کیږی او د هغه په زړه کی هیڅ درد نهٔ وی نو دا د غوره امت نه نشی گرزیدلے۔

﴿وَلَوْ آمَنَ أَهْلُ الْكِتَابِ﴾: پدے کی ترغیب دے چه دے غوره امت کی هر څوك داخلیدے شی، پدے دین کی تعصب نشته، او د مدعوینو (اهل کتابو) دوه ډلے بیانیږی، یعنی که اهل کتابو ایمان راوړے وے نو دا به دوی له ډیره غوره وے ځکه چه په غوره امت کی به داخل شوی وے نو الله تعالیٰ ددوی خیر خواهی کوی چه راشئ او په صحیح معنو سره دا آخری نبی ومنئ او پدے کتاب باندے ایمان راوړئ او دا فرصت او موقعه د لاس نه ونهٔ باسئ، خو افسوس دا دے چه دوی کی مؤمنان ډیر کم دی چه په خپل کتاب ایمان راوړی او د هغے په سبب بیا په قرآن کریم هم ایمان راوړی او اکثر ئے فاسقان دی ضد کوی، نو دلته وقف دے چه ټول کافر دی نو الله تعالیٰ فرمائی چه بعض پکی مؤمنان هم شته لیکن اکثر ئے نافرمان دی۔

| لَنْ يَضُرُّوكُمْ إِلَّا أَذًى وَإِنْ يُقَاتِلُوكُمْ |
|---|
| هیچرے ضرر نشی درکولے تاسو ته مگر ضرر د ژبی او که چرته جنگ کوی دوی تاسو سره |
| يُوَلُّوكُمُ الْأَدْبَارَ ثُمَّ لَا يُنْصَرُونَ ﴿١١١﴾ |
| نو راوابه روی تاسو ته شاگانے بیا به د دوی سره هیڅ مدد نشی کیدے۔ |

**تفسیر**: اوس دا اهل کتابو فاسقانو حال بیانوی او ددے ځای نه د دوی لس بد صفات بیانیږی، او ددے په بیانولو کی فوائد دی (۱) یو دا چه (مَعْرِفَةُ الْمَدْعُوِّيْنَ) چه تهٔ چا ته دعوت ورکوے نو د هغوی حال وپیژنه، ضدی او غیر ضدی وپیژنه چه د هغے مناسب دعوت ورکړے شی او د هغوی شبهات په ډیر ښائسته انداز سره او په الزامی ردونو سره وکړے شی۔ (۲) دویمه فائده دا ده چه پدے کی دے غوره امت ته تسلی ورکړے شویده چه ستاسو دشمنان شته خو الله تعالیٰ به تاسو ته په هغوی باندے فتح او نصرت درکوی۔

(۳) دریم: معرفة العدو۔ خپل دشمنان وپیژنئ چه د دین نه مو وانهٔ روی۔

(٤) څلورم: عَدَمُ الْخَوْفِ مِنَ الْأَعْدَاءِ۔ د دوی نه یره مهٔ کوئ ځکه چه دا ملحد او کافر اهل کتاب (یهودیان) تاسو ته به هیڅ ضرر درنکړی مگر صرف د خولے ردے بدے به وائی او که د دوی ستاسو سره جنگ راشی نو شا به راروی او تیخته به کوی او همدغسے اُوشوه، د

خیبر پـه ورځ الله تـعالیٰ یهودیان رسوا کړل او پـه مدینـه کی هم رسوا شول او د شام د نصرانیانو خو صحابه کرامو ملا ماته کړه. د هغوی ملك او حکومت همیشه دپاره د هغوی د لاس نه اُووتلو او د الله تعالیٰ په حکم سره اُوس په شام کی د مسلمانانو غلبه ده او آینده به هم وی، تردے چه قیامت ته نژدے به هلته عیسیٰ بن مریم ؑ راکوزیږی او شریعت محمدی به نافذ کوی.

لَنْ يَضُرُّوْكُمْ إِلَّآ أَذًى : اذی دلته د خولے ردو بدو ته وائی.

يُوَلُّوْكُمُ الْأَدْبَارَ : یعنی شاګانی به راړوی او شکست به خوری او تیښته به کوی.

ثُمَّ لَا يُنْصَرُوْنَ : کـلـمـه د (ثم) د تراخی فی المرتبه دپاره استعمال ده یعنی الله تعالیٰ چه د دوی د خذلان او د مدد نـهٔ کـولو خبر ورکړو دا په دوی باندے ددے نه ډیر زیات سخت لګی چه د دوی پـه باره کـی وویـل شـی چـه دوی به تاسو ته شاګانی راړوی. ځکه چه د شاګانو راړولو خبره د جنګ پورے بنده ده او د نهٔ مدد وعده هـمـیشه دپاره ده. او دا ترقی د ادنی نه اعـلیٰ تـه ده ځـکـه چـه اول کـی ئـے وویـل چه ستاسو د مقابلے د ټینګے نهٔ دی بیا وائی چه هیڅکلـه بـه دوی فتـح ونـهٔ مـومی همیشـه بـه دوی پـه هر ځای کی ناکام وی. نو دا د مخکنی نه لوی احسان شو. (القاسمی)

نـو د دوی لـس بد صفات دا دی : (۱) فاسقان دی (۲) الا اذی- د خولے ردی بدی به وائی او غـلـطے پروپیګنډے به کوی. (۳) وان یقاتلوکم. الجبن (بزدله دی). (٤) لا ینصرون. د الله د طرفـنـه منصورین نهٔ دی. یعنی دوی د الله تعالیٰ د نصرت او مدد نه محروم دی پدے وجه چه د الله تعالیٰ سخت دشمنان دی.

(٥) پـه دوی ذلـت وهـل شـویدے. ذلیلان دی. (٦) وضربت علیهم المسکنة. دوی د ډیر حرص په وجه ځانونه محتاج ښکاره کوی او د قناعت د مزو نه محروم دی. (۷) کفر بآیات الله کـوی. (۸) قتـل الانبیاء کوی. (۹) عصیان (هر قـسـم نافرمانی کوی) (۱۰) د الله تعالیٰ د حـدودو نه تیروتل د دوی لازمی صفت دے. او که (بغضب من الله) ورسره ملګرے کړی چه دوی مغضوب علیهم دی نو بیا به یولس بد صفات شی.

| ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ أَيْنَ مَا ثُقِفُوْٓا إِلَّا |
|---|
| وهلے شویدے په دوی باندے ذلت هرځای چه دوی وموندلے شی مګر (چه منګولے ولګوی) |
| بِحَبْلٍ مِّنَ اللّٰهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ وَبَآءُوْا بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَضُرِبَتْ |

| |
|---|
| په رسۍ د الله باندې او په رسۍ د خلکو او اخته شویدي دوی په غضب د طرفه د الله نه او وهلې شویده |
| عَلَيْهِمُ الْمَسْكَنَةُ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوا يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللهِ وَيَقْتُلُونَ الْأَنْبِيَاءَ |
| په دوی باندې خواري، دا پدې وجه چه یقیناً دوی به کفر کولو په آیتونو د الله او وژل به ئې پیغمبران |
| بِغَيْرِ حَقٍّ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوا يَعْتَدُونَ ﴿١١٢﴾ |
| په ناحقه دا پدې وجه چه دوی نافرماني کوله او وو دوی چه د حد نه به ئې تیروتل کول۔ |

**تفسیر** : الله تعالیٰ ذلت او رسوائي د یهودیانو قسمت جوړ کړیدې، دوی چه چرته او په کومه زمانه کې هم وي ذلیل او رسوا به اُوسیږي او بې امنه به وي او، دوی به وهلې کیږي او مالونه به ئې تالا کیږي او دوی به قیدیان کیږي او تاریخ شاهد دې چه د دنیا په هره حصه او هره زمانه کې دوی ته احترام او عزت په نصیب شوې نهٔ دې۔ دوی ته عارضي سکون او آرام صرف د دوو نه په یو صورت کې ملاویږي یا خو به جزیه ورکولو سره د ذمي کیدو په طریقه ژوند تیروي یا به د یو لوئې غیر اسلامي طاقتور حکومت پشت پناهي حاصلوي لکه چه نن صبا په فلسطین کې د یهودیانو حکومت د امریکا، برطانیه، روس او فرانس او نورو حکومتونو په شا باندې او د هغوی په مدد سره قائم دې۔

شیخ لقمان السلفیؒ په خپل تفسیر کې لیکي : اُوسني حال کې د مشهور نوي مسلمان مفکر رجاجارودي بیان شائع شویدې چه که امریکه خپل لاس راخکاري نو د اسرائیلو حکومت د عربو مسلمانانو مخې ته څلیریشت گینټو نه زیات نشي ټینګیدې۔ د دوی ذلت او رسوائي ددې نه زیاته بله کومه کیدې شي چه فلسطیني مسلمان بچي په کاڼړو ویشتلو سره د هغوی ژوند تنګ کړیدې۔ (تیسیر الرحمن)

إِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ : اَیْ اِلَّا اَنْ یَّعْتَصِمُوْا۔ د ذلت نه به پدې طریقې سره بچ کیږي چه د الله تعالیٰ په رسۍ او د خلکو په عهد او لوظ منګولې ولګوي یا څه عارضي امن به دوی ته هله ملاویږي چه دا دوه کارونه وکړي یو دا چه د الله تعالیٰ په رسۍ (قرآن) منګولې ولګوي یعني ایمان راوړي نو بیا به ترې بالکلیه ذلت ختم شي۔

وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ :

ددې دوه مصداقه دي (۱) یو اتباع الجماعة۔ یعني چه دوی د مسلمانانو د خلافت او اجتماعیت تابعدار شي او مسلمانانو کې داخل شي۔ نو بیا سوال دا دې چه کله یو تن د

الله په رسی: منګولې ولګوی (مسلمان شی) نو هغه په مسلمانانو کی داخل شو نو دوباره (حبل من الناس) ولې ذکر کوی؟ جواب دا دے چه کله نا کله یو تن مسلمان شی لیکن باغی وی د مسلمانانو د خلافت نه بغاوت کوی نو بیا به هم ذلیله وی۔ پدے وجه ئے دوه قیدونه ولګول چه یو په قرآن منګولې ولګوی او بل د مسلمانانو په جماعت کی ورداخل شی او بغاوت نهٔ کوی۔

(۲) دویم: حبل من الناس: نه مراد عهد او امان د نورو خلکو دے یعنی د مؤمنانو یا کافرانو نه امان واخلی۔ یا د هغوی اجتماعیت مراد دے یعنی یهودی که ایمان راوړی د ذلت نه به بچ وی یا دا چه په عارضی توګه به د ذلت نه پدے طریقه بچ کیږی چه د نورو کافرانو او د غټو ملکونو په اجتماعیت کی ورننوزی او د هغوی پورے ځان وتړی نو د هغوی په واسطه به د ظاهری ذلت نه بچ شی، څوك به ئے نهٔ وژنی او نهٔ به ئے مال تالا کوی څه دا من شپے به تیری کړی لکه امریکایانو چه یهودیان په خپل څنګ کی نیولی دی او نظامی، سیاسی او اقتصادی مددونه ورسره کوی۔

الْمَسْكَنَةُ : خواری او محتاجی او فقر او فقیری۔ یعنی زړونه به ئے خوار وی اګرکه ظاهری مال به هم ورسره وی۔ یا دا چه دوی کی سرمایه دارانه نظام دے، یو څو کسان به پکی مالداره وی نور عوام به خوار غریبانان وی۔

ذٰلِكَ : یعنی دا مسکنة او ذلت او غضب درے واړه پدے وجه دی چه دوی د الله تعالیٰ په آیتونو همیشه دپاره کفر کولو د وجه د تکبر او سرکشیٔ نه۔

ذٰلك : یعنی دا کفر بآیات الله او قتل الانبیاء پدے وجه دی چه دوی ناقرمانی کوله۔ څکه چه یو ګناه سړے بل ته راکاږی نو اول ئے ګناهونه او اعتداء شروع کړه بیا قاتلان شو بیا ئے د الله تعالیٰ په آیتونو کفر وکړو۔

بِمَا عَصَوْا : عصیان په ګناهونو کی استعمالیږی او اعتداء په بدعاتو کی، او اعتداء د الله تعالیٰ د حدودو نه تیروتو ته وائی۔ یا عصیان هغه دے چه لږ او ډیر تول حرام وی او اعتداء دیو شی اصل جائز وی لیکن زیاتے پکی حرام وی۔

| لَيْسُوْا سَوَآءً مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ أُمَّةٌ قَآئِمَةٌ يَّتْلُوْنَ آيَاتِ |
| --- |
| نه دی دوی تول برابر، بعض د اهل کتابو نه یوه ډله ده چه ولاړه ده (په دین) لولی آیتونه |
| اللهِ آنَآءَ الَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُوْنَ ﴿١١٣﴾ يُؤْمِنُوْنَ بِاللهِ وَالْيَوْمِ |

| |
|---|
| د الله تعالىٰ په وختونو د شپه کې او دوی سجدے کوی. ایمان لری په الله او په ورځ |
| الْآخِرِ وَيَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُسَارِعُوْنَ فِي الْخَيْرَاتِ |
| روستنۍ، او حکم کوی په نیکۍ او منع کوی د بدۍ نه، او جلتی کوی په نیکیو کې |
| وَأُولَـٰئِكَ مِنَ الصَّالِحِيْنَ ﴿١١٤﴾ وَمَا يَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ |
| او دا کسان د نیکانو نه دی. او هغه چه دوی ئے کوی د نیک عمل نه |
| فَلَنْ يُكْفَرُوْهُ وَاللهُ عَلِيْمٌ بِالْمُتَّقِيْنَ ﴿١١٥﴾ |
| نو هیچرے به محرومه نشی د ثواب د هغے نه او الله پوهه دے په متقیانو باندے. |

**تفسیر**: اُوس د اهل کتابونو د نیکانو حال بیانوی چه دا ټول په ګناهونو او کفر کې سره برابر نهٔ دی بلکه دوی کې نیکان او ایمان والا خلك هم موجود دی.

شان نزول

د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه کله عبد الله بن سلام ﷺ او د هغه بعض ملګرو (اَسَد بن عُبَيْد، ثَعْلَبَه بن سَعْيَه او اُسَيْد بن سَعْيَه) ایمان راوړو او یهودیت ئے پریښودو نو د دوی مشرانو او ملیانو وریورے پروپیګنډے شروع کړے چه دوی ډیر بد خلك دی، د خپلو پلرونو دین ئے پریښودو او په قرآن کریم باندے ئے ایمان راوړو نو الله تعالىٰ دغه آیتونه نازل کړل. (الدر المنثور۲/۲۹٦ وابن کثیر۲/۱۰۵) یعنی دوی نیکان خلك دی او تاسو بد عمله یئ چه سره د علم نه په خپل جهل باندے کلك یئ او اسلام نهٔ قبلوئ.

دا کسان بنی هدل وو او د بنو قریظه او بنو نضیرو د ترونو خامن وو په کومه شپه چه بنو قریظه د رسول الله ﷺ په فیصله راکوزیدل نو دوی په دغه شپه اسلام راوړو. (الروض الانف۳/٤٤٢)

أُمَّةٌ قَائِمَةٌ : (۱) اَیْ مُسْتَقِيْمَةٌ . یعنی استقامت والا دی، په نیغه لاره روان دی، د نورو یهودیانو په شان کاږه نهٔ دی.

(۲) مُسْتَقِيْمَةٌ عَلَى الْحَقِّ. په دین او حق باندے مضبوط ولاړ دی.

(۳) قَائِمَةٌ فِي الصَّلَاةِ. په مانځه باندے ولاړ دی. ددے خلکو نه عبد الله بن سلام ﷺ او د هغه په شان بعض نورو کسانو ایمان راوړے وو.

(٤) قَائِمَةٌ بِأَمْرِ اللهِ، مُطِيْعَةٌ لِشَرْعِهِ، مُتَّبِعَةٌ نَبِيَّ اللهِ) ولاړ دی د الله تعالىٰ په دین، تابعدار دی د

هغه د شریعت، تابعدار دی د الله تعالیٰ د نبی ﷺ (ابن کثیر) دا تول اقوال صحیح دی۔
یَتْلُوْنَ آیَاتِ اللهِ: د تلاوت نه دے یا د تِلُو نه دے تابعداریٔ ته وائی، اول قول ظاهر دے۔
د شپے په مانځه کی اُورِد قراءت کول او اُورِده سجده کول بهتر عمل دے پدے وجه ئے دا دواړه حالتونه جدا جدا ذکر کړل۔ لکه الله تعالیٰ د مؤمنانو په صفت کی فرمائی:
﴿وَالَّذِيْنَ يَبِيْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِيَامًا﴾ (الفرقان/٦٤) ۔ او دغه مؤمنان هغه کسان دی چه شپه تیره وی پداسے حال کی چه سجدے لګوی الله تعالیٰ ته او هغه ته ولاړ وی)۔
آنَاۤءَ الَّيْلِ : جمع د اِنْیٌ ده لکه نِحْیٌ او اَنْحَاء یا جمع د اِناً ده لکه مِعًی او اَمْعَاء۔ اوقات او ساعاتو ته وائی۔ یعنی دا خلك مونځونه کوی او د شپے مونځونه اوږده کوی او د الله تعالیٰ کتاب لولی او هغه ته په رکوع او سجده سره عاجزی کوی، نو دوی چه څه عمل کوی د هغے اجر به ورته الله تعالیٰ ضرور ورکوی۔
یُؤْمِنُوْنَ : یعنی د مؤمنانو په شان دوی هم ایمان لری په الله تعالیٰ او په ورځ د آخرت۔ او په الله تعالیٰ چه ایمان راوړی نو تول هغه څه هم منی چه الله تعالیٰ په هغے باندے ایمان لازم کړیدے او آخرت ئے ذکر کړو ځکه چه دا مؤمن تیزوی په کولو د هغه کارونو چه الله تعالیٰ ته ئے نزدے کوی۔ ایمان یو معنوی شے دے پدے وجه ئے ظاهری اعمال ترے مخکی ذکر کړل ځکه چه په اعمالو سرے مؤمن معلومیږی۔
وَیَاْمُرُوْنَ: یعنی دے خلکو په ایمان سره خپل ځان کامل کړو نو بیا د نورو خلکو خیر خواه هم دی چه د هغوی د کامل کیدو کوشش هم کوی نو په نیکئ باندے حکم کوی الخ۔
وَیُسَارِعُوْنَ : پدے کی د دوی لوی همتونه ذکر کوی چه دا هغه اُوچت همت والا خلك دی چه هر قسم نیکئ ته د یو بل نه ځان مخکی کوی او هره نیکی په خپله موقعه باندے کوی او د خیر د کارونو سره ئے سخته مینه ده او د هغے فوائد ورته معلوم دی۔
مسارعه: جلتی کولو ته وائی، باب مفاعله ده، د یو بل نه مخکی کیدل، بیا مسارعه تَقْدِیْمُ الْاَهَمِّ فَالْاَهَمّ ته وائی یعنی ضروری شے مخکی کول او غیر ضروری روستو کول۔ ددے وجه نه د مسارعے دپاره علم ته ضرورت دے چه د اعمالو مرتبے به پیژنی چه دا عمل ډیر مهم دے او دا کم او ددے وخت دے او ددے وخت نهٔ دے نو مسارعه فی الخیرات ممکن نهٔ ده مګر په علم سره، نیکئ پیژندل، بیا د هغے اوقات پیژندل بیا زړه ژوندے وی د هغه نیکو پسے منډے وهی نو علم او حیاتِ قلبی د مسارعه فی الخیرات دپاره ضروری دی۔

فِي الْخَيْرَاتِ : جمع د خَيْرَةٌ ده هر نیك كار ته وائي. او دا مسارعه صفت د انبياؤ عليهم السلام هم دے ﴿ إِنَّهُمْ كَانُوا يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَيَدْعُونَنَا رَغَبًا وَرَهَبًا ﴾ (انبياء : ٩٠) او د هر مؤمن صفت به وی۔

مِنَ الصَّالِحِيْنَ : يعنی ددے شائسته صفاتو په وجه به الله تعالیٰ دوی لره په نیکانو کی داخل کړی۔ او د الله تعالیٰ په نیز باندے ددے کسانو احوال صحیح دی او دوی د هغه د رضا مستحق دی۔

فَلَنْ يُّكْفَرُوْهُ : كفر ناشكریٔ او انكار ته وائي يعنی دوی نه به انكار نشی كيدے او د دوی ناشكری به نشی كيدے، يعنی الله تعالیٰ ددهٔ شكر كوی او د الله تعالیٰ شكر دا دے چه جزاء وركوی او په لږ عمل ډيره بدله وركوی۔ دلته ئے معنیٰ ده (اَیْ فَلَنْ يُّحْرَمُوْا ثَوَابَهٗ)۔ يعنی دوی به د هغه عمل د ثواب نه نشی محروميدے۔

**فائده وحكمة** : (فلن يكفروه) نه دا فائده معلوميږی چه د قرآن كريم په ډيرو آيتونو كی راغلی چه الله تعالیٰ د مؤمن عمل نهٔ بربادوی، ضرور بدله وركوی نو دے سره د الله تعالیٰ محبت پيدا شی او نيكیٔ كی رغبت پيدا شی لكه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ أَنِّي لَا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنكُم ﴾ (آلعمران: ١٩٥) وقوله : ﴿ وَأَنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ (آلعمران:١٧١) وقوله ﴿ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ مَنْ أَحْسَنَ عَمَلًا ﴾ (الكهف: ٣٠) وقوله ﴿ فَلَا كُفْرَانَ لِسَعْيِهِ ﴾ (انبياء : ٩٤) وقوله ﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴾ (التوبة : ١٢٠) ﴿ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُصْلِحِينَ ﴾ (اعراف : ١٧٠)

متكلمين وائی چه بنده به عمل وكړی او هيڅ اجر به ورنكړی، صرف د الله تعالیٰ مشيئت دے چه هغه څه غواړی هغه كوی، كه څوك د اجر نه محروموی او كه نهٔ نو د الله تعالیٰ سره د خلكو بغض پيدا كوی۔ انظر الفوائد (١)

ددے مؤمنانو لس صفتونه دا دی : (١) قائمة (٢) يتلون آيات الله (٣) يسجدون۔ (٤) ايمان بالله۔ (٥) ايمان باليوم الآخر۔ (٦) امر بالمعروف او نهی عن المنكر۔ (٧) مسارعه فی الخيرات۔ (٩) من الصالحين (١٠) المتقين۔ يا ايمان بالله واليوم الآخر يو صفت شمار كړه نو لسم به دا شی چه مسارعه كی يو علم ضروری وی او بل حياتِ قلبی۔

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَن تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُم

يقيناً هغه كسان چه كفرئے كړيدے هيڅرے به دفع نكړی د دوی نه مالونه د دوی او نهٔ اولاد د دوی

مِنَ اللهِ شَيْئًا وَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿۱۱۶﴾

د عذاب د الله نه هیڅ شے او دغه کسان خاوندان د اُور دی دوی به په هغے کی همیشه وی۔

**تفسیر** : پدے آیت کی الله تعالیٰ کافرو اهل کتابو او نورو کافرانو ته د آخرت تخویف بیانوی او دا دفع د وَهم ده چه دے کافرانو سره خو ډیر مالونه او اولاد دی نو دوی باندے څنګه ذلت او مسکنت راځی؟ نو الله تعالیٰ فرمائی : دا مالونه او اولاد دوی لره د الله تعالیٰ د عذاب نه نشی بچ کولے بلکه سیده به اُور ته روان وی۔ نو که یو سړے اُور ته روان دے نو د هغه د مال او اولاد نه متاثر کیدل نهٔ دی پکار نو پدے آیت کی الله تعالیٰ ذهن سازی دوه قسمه کړیده۔ یو عَدَمُ التَّأَثُّرِ مِنَ الْكُفَّارِ وَأَمْوَالِهِمْ وَأَوْلَادِهِمْ) ۔ کفار که هرڅو مره تیکنالوجئ جوړه ولو کی مخکی شی خو صبا له اُور ته روان دی نو دا به ورته څه فائده ورکړی؟ او دا څه کمال دے؟ بلکه کمال خو دا وو چه عقل ئے استعمال کړے وے او ایمان ئے راوړے وے او آخرت ئے بښه شوے وے نو د دوی نه متاثر کیدل د بی وقوفو کار دے۔ او دویم پدے کی د دغه کافرانو دپاره تخویف دے چه اُور ته روان یئ په مال او اولاد باندے فخر مهٔ کوئ راشئ ایمان راوړئ۔

دغسے آیت ددے سورت په ابتداء کی هم تیر شویدے هغے ته رجوع وکړه۔

مَثَلُ مَا يُنْفِقُونَ فِي هَٰذِهِ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيحٍ فِيهَا

مثال د هغه مال چه خرچ کوی ئے دوی پدے ژوند دنیوی کی په شان د هوا دے چه په هغے کی

صِرٌّ أَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ فَأَهْلَكَتْهُ

اُور وی، ورسیږی فصل د یو قوم ته چه ظلم ئے کړے وی په ځانونو خپلو نو هلاك کړی هغے لره

وَمَا ظَلَمَهُمُ اللهُ وَلَٰكِنْ أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿۱۱۷﴾

او ظلم نهٔ دے کړے په دوی باندے الله تعالیٰ او لیکن دوی په ځانونو خپلو ظلم کوی۔

**تفسیر** : (مَثَلٌ لِمَنْ أَنْفَقَ فِي غَيْرِ طَاعَةِ اللّٰهِ وَمَرْضَاتِهِ) ۔ دا مثال دے د هغه چا چه مالونه د الله تعالیٰ د طاعت او د هغه د رضا نه په غیر په نورو ځیزونو کی خرچ کوی نو دا برباد دی۔

**مناسبت** : دا کافران مالونه لګوی د صد عن سبیل الله دپاره لکه یهودیانو به عربو

مشرکانو ته وسلے ورکولے چه تکړه شئ او د مسلمانانو معاشره خرابه کړئ. نو الله تعالیٰ د دوی د مال لګولو بدی بیانوی چه مال لوی نعمت وو خو دوی په غلط ځای کی استعمال کړو نو په قیامت کی به افسوس نه کوی. لکه د سورة انفال (۳۶) آیت نه معلومیږی.

فِیْ هٰذِهِ الْحَیَاةِ الدُّنْیَا : یعنی د دنیا په باره کی او دے دپاره چه دنیا ئے بنه شی او د دنیا عهده او مشری ورته ملاؤ شی او خپل اِزم او قانون د بالادستئ دپاره مال لګوی، نهٔ د الله تعالیٰ او د هغه د دین اسلام د غلبے دپاره.

صِرٌّ : دا د اضدادو نه دے صر اُور ته هم وائی او اَلْبَرْدُ الشَّدِیْدُ (بخاری) سختے یخنئ ته هم وائی.

ظَلَمُوْا اَنْفُسَهُمْ : یعنی په کفر او شرك او معاصیو (ګناهونو) سره.

الله تعالیٰ د داسے بد نصیبه کافرانو د بد نصیبئ د زیات وضاحت دپاره دا مثال بیان کړو چه د یو قوم یو تازه باغ یا فصل وی چه هغے ته په کتلو سره هغه خوشحالیږی نو ناڅاپه یوه سخته یخه هوا (سیلیٔ) راشی چه په هغے کی د اُور په شان تیزی وی چه هغه ورله اُوسوزوی یعنی کافرانو ته د هغوی د خیر کارونو هیڅ فائده نهٔ رسیږی ځکه چه د ایمان نه بغیر هیڅ عمل هم د الله تعالیٰ په نیز قابل قبول نهٔ دے.

نو دغه شان کافرانو خپل مال ولګولو او فصل ئے ځان له وکرلو نو الله تعالیٰ به ورسره په هغے باندے حساب وکړی او تهول انفاق به ورله برباد کړی ځکه چه د الله تعالیٰ د رضا مطابق نهٔ دے او د هغه د دین موافق نهٔ دے لکه څنګه چه دغه خلکو په خپل فصل باندے خواری کړے وه او مالونه ئے لګولی وو او امید ئے دا وو چه مونږ له به فائده راکړی لیکن هیڅ فائده ئے ورنه کړه بلکه لا افسوسونه ئے زیات شو نو دغه شان دوی به په خپلو مالونو باندے خواری هم وکړی خو په آخر کی به دغه انفاق په دوی باندے افسوس وګرځی.

او د هلاکت سبب ئے د دوی د نفسونو ظلمونه (شرکونه او عام ګناهونه) دی.

وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ : الله تعالیٰ په دوی ظلم ځکه نهٔ دے کړے چه الله تعالیٰ دا قانون ایښے دے چه د ګناه سره به مصیبتونه تړلی وی لکه زهرو کی ئے د وژلو او کولمو خرابولو طاقت ایښے دے نو انسان دے هغه نهٔ استعمالوی، نو که څوك ئے استعمال کړی خپل ځان دے ملامته کړی پړے کی الله تعالیٰ طرفته د هیڅ ظلم نسبت نشی کیدے.

| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ لَا يَأْلُوْنَكُمْ |
|---|
| اے ایمان والو! مۀ نیسئ رازدار سوا ستاسو نه (بل خوك)، هغوی کوتاهي نکوی په تاسو کی |
| خَبَالًا وَدُّوْا مَا عَنِتُّمْ قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَآءُ |
| د فساد، خوښوی دوی هغه شے چه په مشقت کی اچوی تاسو، یقیناً ښکاره شویده کینه |
| مِنْ أَفْوَاهِهِمْ وَمَا تُخْفِيْ صُدُوْرُهُمْ أَكْبَرُ قَدْ بَيَّنَّا |
| د خولو د دوی نه، او هغه چه پټوی سینے د دوی ډیر لوی دے، یقیناً بیان کړیدی مونږ |
| لَكُمُ الْآيَاتِ إِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۱۸﴾ |
| تاسو ته نخښے (د دشمنئ د دوی) که تاسو عقل لرئ۔ |

**تفسير** : تر رکوع پورے یو قانون ذکر دے (اَلنَّهْيُ عَنِ اِتِّخَاذِ الْبِطَانَةِ عَنْ غَيْرِ أَهْلِ الْإِيْمَانِ) چه ایمان والو له دا جائز نۀ دی چه غیر مسلم خلك خپل رازدار جوړ کړی۔ او دا قانون د تربیت د مسلمانانو دے۔

ابن جریرؒ، ابن اسحاقؒ، ابن المنذرؒ او ابن ابی حاتمؒ وغیرهم د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه څه مسلمانانو د مدینے د یهودیانو سره د ګاونډتوب په وجه یا د جاهلیت د دور د یوے معاملے په بنا یو قِسم تعلق وو، چه د هغے په وجه سره دا یره کیده چه دا مسلمانان به د خپلو زړونو خبرے او د مسلمانانو رازونه هغوی ته اُووائی او مسلمانانو ته به د دوی د ناخبرئ په وجه څه خطره پیوسته شی پدے وجه الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو او مسلمانان ئے ددے نه منع کړل چه دوی غیر مسلمو لره خپل رازدار جوړ کړی۔

څینو وئیلی دی چه دا آیت د منافقینو په باره کی نازل شوے وو دے دپاره چه مسلمانان د خپلو زړونو خبره او د مسلمانانو راز وُنه وائی۔ ځکه چه ددے نه روستو آیت کی ددے خلقو صفت بیان شویدے چه ((کله دوی تاسو سره ملاویږی نو وائی چه مونږ ایمان راوړے او کله چه تاسو نه جدا کیږی نو ستاسو په خلاف د غصے په وجه په خپلو ګوتو چکونه لګوی)) او دا صفات د منافقانو وو۔ (قاسمیؒ) لیکن غوره دا ده چه ددے نه یهودیان مراد دی لکه پدے باندے سیاق د آیتونو دلالت کوی۔

څینو وئیلی دی چه په آیت کی تمام کافران مراد دی۔ د لفظ د (مِنْ دُوْنِكُمْ) یعنی تاسو د خپل ځان (مسلمانانو) نه سوئ بل څوك خپل رازدار مۀ جوړوئ)) نه ددے رائے تائید

کیږي. او همدا حقه ده.
ابن ابی حاتمؒ روایت کړیدے چه سیدنا عمر ؓ ته اُووئیل شو چه د حِیره علاقے یو نصرانی غلام دے چه ډیر ذهین او هوښیار کاتب دے، تاسو دا خپل کاتب ولے نهٔ مقرروئ؟ نو هغه اُووئیل چه ددے مطلب دا دے چه زهٔ یو غیر مسلم خپل بِطانه (او رازدار) جوړ کړم؟ رازيؒ وائي چه عمر ؓ ددے آیت نه دلیل نیولے وو. (قاسمي)
او ددے منع علت قرآن دا اُوخودلو چه غیر مسلم همیشه د مسلمانانو د تباهئ او بربادئ سوچ کوي او هر وخت تمنا کوي چه مسلمانانو ته نقصان اُورسی، پدے وجه الله تعالیٰ هغوی ته اُووئیل چه اے مسلمانانو ! آیا تاسو نهٔ گورئ چه د هغوی پټ کړے شوے بُغض او حسد کله نا کله د هغوی په ژبو سره ښکاره کیږي.
حافظ ابن کثیرؒ وائي چه دا آیت دلیل دے ددے خبرے چه غیر مسلمو ته د مسلمان ملکونو په دفترونو کې داسے ذمه واریانے نهٔ دی ورکول پکار چه د هغے په ذریعه هغوی د مسلمانانو راز حاصل کړي او دشمنانو ته د هغے اطلاع ورکړي.
مفسر الکیا الهراسیؒ لیکي چه ددے آیت د مخه ډیو ذمي (غیر مسلم نه چه د مسلمانانو په ملك کې اُوسیږي) د مسلمانانو په یوه معامله کې مدد اخستل جائز نهٔ دی. (قاسميؒ)
بِطَانَةً : رازدار. بطانه اصل کې : (اَلثَّوْبُ الْبَاطِنُ الَّذِیْ یَلِی الْجَسَدَ) ته وائي یعنی هغه باطنی جامه چه دننه د بدن سره لګیږي او د ټول بدن نه خبرداره وي. نو دا بیا په معنیٰ د رازدار سره استعمالیږي، دا یو ډیر مزیدار قانون دے چه که پدے باندے د ملك حاکمانو عمل وکړونو د کفارو د ډیرو شرونو نه به محفوظ شي. لیکن پدے باندے عمل نشته، کافران راځي د مسلمانانو په مینځ کې گرځي او د هر څه نه خان خبروي چه څوك څه کوي او څه وائي. نو کافر ته به د خپلو وسلو، مالونو او فوج او د خپل طاقت راز نشي ښکاره کولے.

## د بطانه (رازدار نیولو) څه معنیٰ؟

په بطانه کې دا داخلیږي : (۱) اِتِّخَاذُهُمْ وُزَرَاءَ . په خپل ملك کې د کافرانو نه وزیران جوړول (۲) (اِتِّخَاذُهُمْ کَاتِبِیْنَ وَمُحَاسِبِیْنَ. یعنی کافرانو نه کاتبان او محاسبین جوړول او هغوی ته د خپلو کهاتو حسابونه حواله کول لکه پدے باره کې دوه حدیثونه واوره.
سیدنا ابوموسیٰ اشعری ؓ په بصره کې والي وو نو سیدنا عمر فاروق ؓ هغه سره محاسبه کوله، هغه کاغذونه مسجد ته رانویستل، سیدنا عمر فاروق ؓ کاغذونه

وکتـل، دا چا لیکلی دی ؟ وے فرمایل : دا ډیر ښه کاتب لیکلی۔ سیدنا عمر ﷺ وفرمایل : مسـجد تـه دے راشی۔ هغه ووېل : نصرانی دے مسـجد ته نشی راننوتلے۔ نو عمر فاروق ﷺ ورتـه پـه غـصـه شـو او ورتـه ئے ووېـل چـه آیا تـا د الله تـعالیٰ نه نهٔ دی آورېدلی چه (لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ) چه د کافرانو نـه به راز دار نهٔ جوړوئ او ورته ئے وفرمایل :[هَلَّا اتَّخَذْتَ حَنِيْفًا مُّسْلِمًا]۔ تا موحد مسلمان ولے نهٔ نیولو؟۔ هغه ووېل : د بصرے والو پروګرام پـه دهٔ آباد دے۔ امیر المؤمنین وفرمایل : (لَا اُكْرِمُهُمْ اِذَا اَهَانَهُمُ اللّٰهُ وَلَا اُعِزُّهُمْ اِذَا اَذَلَّهُمُ اللّٰهُ وَلَا اُدْنِيْهِمْ اِذَا اَبْعَدَهُمُ اللّٰهُ) ۔ زهٔ د دوی اکرام نهٔ کوم کله چه دوی الله تعالیٰ سپك کړیدی او زهٔ ورتـه عـزت نهٔ ورکوم کله چه دوی ته الله تعالیٰ ذلت ورکړیدے او زهٔ دوی خپل ځان ته نهٔ نـزدے کـوم کـلـه چـه دوی الله تـعالیٰ لرې کړیدی)۔ او بیا ئے ورته دا هم وفرمایل: چه کله دا نـصـرانـی مـړ شـی بیا به تهٔ څه کوے نو هغه کار د هغه د مرګ نه مخکی مخکی وکړه او ددهٔ نه په بل مسلمان باندے ځان مستغنی کړه۔ (تفسیر کبیر والقرطبی)

او دغسے کار خالد بن ولید ﷺ په شام کی کړے وو چه یو نصرانی ئے کاتب جوړ کړے وو نو هغه هم سیدنا عمر فاروق ﷺ منع کړو چه دا خو بطانه ده۔

مِّنْ دُوْنِكُمْ : اَیْ مِنْ غَیْرِ اَهْلِ الْاِیْمَانِ۔ د مسلمانانو نه سوئ۔

لَا يَأْلُوْنَكُمْ : د اَلْوٌ نه دے په معنیٰ د تقصیر او کوتاهی سره۔

خَبَالًا : قاموس لیکی : فَسَادٌ فِی الْعَقْلِ وَالْقَوَائِمِ وَالْاَرْجُلِ)۔ خبال د عقل خرابوالے او د خپو او لاسونو خرابوالے (کوړوالے) دے۔ ځینی اهل لغت وائی :

اَلْخَبَالُ : اَلنُّقْصَانُ وَالْهَلَاكُ (المعجم الوسیط) نقصان او هلاکت ته وائی۔

ځینی وائی : اَلْعَنَاءُ (تاج العروس) (مشقت ته وائی)۔ ځینی وائی : اَلْخَبَالُ : اَلْفَسَادُ فِی الْاَفْعَالِ وَالْاَبْدَانِ وَالْعُقُوْلِ) تاج العروس) خ ب ل) خبال هغه فساد (خرابوالے) چه په کارونو کی وی او بـدنـونـو کی وی او په عقلونو کی۔ بعض ئے داسے تعبیر کوی : اَلْخَبَالُ اَلْفَسَادُ الَّذِیْ یَعْتَرِی الْاِنْسَانَ فَیُوْرِثُهٗ اِضْطِرَابًا كَالْجُنُوْنِ وَالْمُخْبَلُ الْفَاسِدُ الْعَقْلِ) خبـال : هغه فساد (خرابـوالـی) تـه وائی چـه انـسـان تـه راپیښیږی او پـه هغه کی پریشانی راپیدا کوی لکه لیونتوب۔ مخبـل هغه انسان ته وائی چه عقل ئے خراب شوے وی نو حاصل دا شو چه کافران د مسلمانانو په فساد کی هر قسم کوشش کوی چه بی حیاء شی، عقلونه او بدنونه ئے کمزوری شی ددے وجـه نـه پـه کافرانو باندے به ښه ګمان نهٔ لری او څوك چه پرے ښه ګمان کوی هغه به لوی جاهل وی، د الله تعالیٰ په خبره به ئے یقین نهٔ وی۔ د لفظ خبال نه

معلومیږی چه کافران زمونږ د مسلمانانو خپې، لاسونه او عقل جوړیدل نهٔ غواړی۔

مَا عَنِتُّمْ: عنت دیته وائی چه مات شوے هډوکی جوړ شی بیا مات شی نو دا ډیر درد کوی دلته ترے مراد شِدَّةُ الضَّرَرِ وَالْمَشَقَّةُ دے یعنی هر قسم ضرر او مشقت کی اچول غواړی۔

قَدْ بَدَتِ: یعنی کله نا کله د دوی د خولو نه غصه راښکاره کیږی او د مسلمانانو په خلاف د خپل ضد کلمات راوباسی ځکه چه ددے په پټولو باندے قادر نهٔ وی، دومره زیاته کینه لری۔

أَكْبَرُ: اَیْ أَكْبَرُ عَدَاوَةً ۔ په سینو کی ئے ډیره لویه دشمنی ده په نسبت د ښکاره حال د دوی۔

قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْآيَاتِ: یعنی مونږ تاسو ته هغه آیتونه بیانوو چه دلالت کوی پدے خبره چه د کافرانو په رازدار نیولو کی ډیر لوی ضرر دے او دے دپاره چه تاسو دشمن وپیژنئ نو د دوی نه منع شئ او د ایمان والو سره مینه وکړئ۔

دلته د دوی بد صفتونه دا شو (۱) (لا یألونکم خبالا) ۔ (۲) ودوا ما عنتم۔ (ستاسو مشقت خوښوی) (۳) قد بدت البغضاء من افواههم۔ (٤) وما تخفی صدورهم اکبر۔
(۵) پنځم دا راتلونکے دے۔

هَا أَنْتُمْ أُولَاءِ تُحِبُّونَهُمْ وَ

خبردار تاسو اے مؤمنانو! دا کسان یئ چه مینه کوئ تاسو د دوی سره او

لَا يُحِبُّونَكُمْ وَتُؤْمِنُونَ بِالْكِتَابِ كُلِّهِ وَإِذَا لَقُوكُمْ

دوی مینه نکوی تاسو سره او ایمان لرئ تاسو په کتابونو ټولو باندے، او هرکله چه مخامخ شی

قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَوْا عَضُّوا

دوی تاسو سره وائی دوی مونږ ایمان راوړیدے او هرکله چه جدا شی دوی چکونه لګوی

عَلَيْكُمُ الْأَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ قُلْ مُوتُوا

ستاسو په خلاف په سرونو د ګوتو خپلو باندے د وجے د غصے نه، ته ووایه! مړهٔ شئ

بِغَيْظِكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿۱۱۹﴾

په غصے خپلے سره یقیناً الله تعالیٰ پوهه دے په هغه خبرو چه په سینو کی دی۔

**تفسير:** أوس مسلمانان منع کوی د هغوی د مینے کولو نه په ډیر بلیغ انداز سره او ددے منع علتونه بیانوی چه تاسو څنګه خلك يئ چه د هغوی سره مینه کوئ او د هغوی حال دا دے چه هغه تاسو بالکل نهٔ غواړی بلکه د سخت نفرت او سخت بغض او دشمنئ په وجه هغوی خپلو غابنونو سره په خپلو ګوتو چکونه لګوی چه کله به هغوی ته داسے موقعه ملاویږی چه ستاسو د وجود نه خلاصے حاصل کړی۔

تُحِبُّوْنَهُمْ : مسلمان پاك زړهٔ والا وی د یهود او نصارئ او بدعتیانو په باره کی دا مینه لری چه الله تعالیٰ دوی ته هدایت وکړی، دا ایمانی محبت نهٔ وی څکه چه د یهود او نصاراؤ سره ایمانی محبت کولو باندے بنده کافر کیږی۔ بلکه د إِلف او د عادت مینه ده یعنی مسلمان د کافر او د هر بدعتی دپاره خیر خواه وی چه الله تعالیٰ ئے سمے لارے ته راولی نو پدے وجه په عامو حالاتو کی نرمی هم ورسره کوی۔

وَلَا يُحِبُّوْنَكُمْ : هغوی تاسو سره مینه نهٔ لری بلکه دا خوښوی چه تاسو د اُور خشاك شئ۔ نو آیا داسے خلك د رازدارئ لائق دی څهٔ؟!۔

وَتُؤْمِنُوْنَ بِالْكِتَابِ : دا بله وجه بیانوی چه تاسو ټول کتابونه منئ او هغوی په ټولو کتابونو ایمان نهٔ لری، وګوره نهٔ تورات او انجیل او د الله تعالیٰ ټول کتابونه منے او هغوی ستاسو قرآن نهٔ منی نو دا څومره لویه دشمنی ده نو ددے دپاسه هم آیا دوی د رازدار نیولو لائق دی؟!

الْكِتَابِ كُلِّهِ : یعنی ټول کتابونه منئ، یا کتاب د الله تعالیٰ ټول منئ او په ټول باندے عمل کوئ او هغوی په بعض کتاب ایمان راوړی او عمل پرے کوی او بعض نهٔ منی او عمل پرے نهٔ کوی۔

وَإِذَا لَقُوْكُمْ : دا بله وجه ده چه دا هغه خلك دے چه کله تاسو سره ملاؤ شی نو د ایمان دعوه هم کوی، څکه چه دا یهودیان به کله نا کله د ایمان والو سره ملاؤ شو نو اقرار به ئے کولو چه مونږه هم محمد رسول الله (ﷺ) منو او دا قرآن منو، لکه اُوس هم کافران کله دا اقرار کوی چه اسلام هم یو آسمانی او حق دین دے۔

عَضُّوْا عَلَيْكُمُ الْاَنَامِلَ : دا کنایه ده د سختے غصے نه څکه چه کله سړے غصه شی او په بل چا باندے ئے د چك لګولو قدرت نهٔ وی نو بیا خپله ګوته باندے چك لګوی او عض الانامل د پښیمانه، عاجز او غصه انسان کار وی چه کله ترے یو مقصد فوت شی او بیا په هغے باندے سخت غمژن وی۔

عَلَيْكُمْ : یعنی ستاسو په خلاف۔

قُلْ مُوْتُوْا : دې نه روستو الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته اُوفرمايل چه ته اُووايه چه تاسو د خپلې غصې او غضب په وجه زُوندی اُوسيدو سره بار بار مره شئ، الله تعالیٰ خو به خپل نعمت په مسلمانانو باندې پوره کوی او خپل دين به په تمامو دينونو غالبه کوی۔

مُوْتُوْا بِغَيْظِكُمْ: يعنى ستاسو غصه دې دومره ډيره شی تردې چه تاسو د هغې په وجه مره شئ. نو پدې کې مؤمنانو ته تسلی ده چه د دوی نه يره مۀ کوئ ځکه چه دوی به د همدې غصې په حالت کې مره شی او تاسو ته به هيڅ ضرر درنکړی لکه يهوديانو دا کار کولو او بيا هم الله تعالیٰ اسلام ته غلبه ورکړه. (ابن عطية) يا دا دوی ته ښيرې دی چه تاسو دې الله تعالیٰ ددې غصې په حالت کې مره کړی.

**فائده** : مفسر عبد الحق ابن عطية فرمائی: (وَهٰذِهِ الصِّفَةُ قَدْ تَتَرَتَّبُ فِيْ كَثِيْرٍ مِنْ أَهْلِ بِدَعٍ مِنَ النَّاسِ إِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ) ۔ دا صفت په ډيرو بدعتيانو کې هم شته تر د قيامت د ورځې پورې. (المحرر الوجيز) او دا واقعی خبره ده مونږ اهل الحديث والسنة ددې تولو بدعتيانو دپاره خير خواه يو، د دوی سره کينو هم، سلام هم پرې اچوو، ددې دپاره چه الله تعالیٰ ورته هدايت وکړی او د يو خير کار چه کوی په هغې کې ورسره تائيد او ملګرتيا هم کوو او د هغوی په مذهب کې چه کوم صحيح روايتونه دی هغه هم ورله منو ليکن هغوی مونږ سره محبت نۀ لری، مونږ دشمنان ګڼړی تردې چه زمونږ سره په مجلس کې هم نۀ يو ځای کيږی او نۀ سلام اچوی، او هغوی په هغه دين عمل کوی چه د هغوی مشرانو وئيلی وی او د هغوی د مذهب مطابق وی او باقی رد کوی او يا پکې تاويلات کوی او ظاهراً که ملګرتيا وکړی نو په باطن کې کوشش کوی چه دا خلك به څنګه ختميږی.

بِذَاتِ الصُّدُوْرِ: يعنى هغه وسوسې چه په سينو پورې متعلق وی چه د انسان خپل غوږ هم نۀ وی آوريدلی نو په هغې هم الله تعالیٰ پوهه دې نو د دوی کينی ورته معلومی دی۔

| إِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ وَإِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ |
| --- |
| که چرته ورسی تاسو ته ښه حالت خفه کوی دوی لره او که چرته ورسی تاسو ته بد حالت |
| يَفْرَحُوْا بِهَا وَإِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا لَا يَضُرُّكُمْ |
| خوشحاليږی په هغې سره او کچرته صبر وکړو تاسو او تقوىٰ مو وکړه ضرر به درنکړی تاسو ته |
| كَيْدُهُمْ شَيْئًا إِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ ﴿١٢٠﴾ |
| چلونه د دوی هيڅ شے يقيناً الله تعالیٰ په هغه عملونو چه دوی ئې کوی راګيرونکے دے (په علم او قدرت کې). |

**تفسیر**: د کافرانو د مسلمانانو سره د سختې دشمنۍ زیات تفصیل بیانوي، الله تعالیٰ فرمائي چه تاسو ددې کافرانو سره دوستي لرئ حال دا چه تاسو سره د دوی د دشمنۍ حال دا دې چه که یوه نیکي یا ښه حالت تاسو ته اُورسي نو دوی ته تکلیف وي او که تاسو باندې کوم مصیبت راشي نو د خوشحالۍ د دائرې نه بهر شي نو د داسې کسانو دوستان جوړول کومه عقلمندي ده ؟!۔

## د حَسَنے معاني

**حَسَنَةٌ** : ددې ډیرې معاني راځي : (۱) کله حسنه نیك عمل ته وائي ۔

(۲) کله ښائسته ژوند ته وائي۔ ﴿لِلَّذِيْنَ أَحْسَنُوْا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ﴾ (النحل: ۳۰)

(۳) ښه حالت او خوش عیشي۔ او دلته ئې همدا معنیٰ ده۔ یعني چه مسلمانانو ته فتح او نصرت راشي یا غنیمت راشي یا وحي نازله شي نو دوی سخت خفه کیږي۔

نو ددې نه دا فائده راوځي چه څوك د مسلمان په نیکۍ باندې خفه کیږي او د هغه په تکلیف او بدۍ باندې خوشحالیږي نو دهٔ کې د یهودیانو صفت راغلے دې ځکه چه دا بد خواه دې او (اَلدِّيْنُ النَّصِيْحَةُ) دین د خیرخواهۍ نوم دې۔ په چا کې چه بد خواهي وي هغه مؤمن نهٔ وي۔ لکه حدیث کې دي: [لَايَجْتَمِعُ الشُّحُّ وَالْإِيْمَانُ فِيْ قَلْبِ عَبْدٍ أَبَدًا] ۔شح (یعني د بل دپاره د خیر اراده نهٔ ساتل) او ایمان دواړه د یو بنده په زړه کې هیڅکله نهٔ راجمع کیږي۔ (مسند الطیالسي رقم: ۲۵۸۳) واحمد: ۹۶۹۱ بسند صحیح لغیره)

**حکمت** : د حسنة سره ئې د (تمسسکم) لفظ راوړو او د سیئة سره ئې (تصبکم) راوړو، سیئه: تکلیف او شکست او مال ضائع کیدو ته وائي۔ او تمسس لفظ د معمولي رسیدو او لګیدو دپاره استعمالیږي او (تُصِبُ) کې زیاتوالے وي ځکه چه د راړولو معنیٰ پکې پرته ده۔ او په (حَسَنَة) کې تنوین د تقلیل دپاره دې او په (سَيِّئَة) کې د تعظیم او تکثیر دپاره دې۔ نو فائده دا ده چه مؤمن سړی ته چه کله معمولي ښه حالت او خوشحالي ورسي نو د هغې اظهار کوي او خلك ترې زر خبریږي نو دا مجرمان همیشه په خفګان کې وي او هر چه مصیبت دې نو مؤمن ئې پټ ساتي څوك ترې زر نهٔ خبریږي خو چه کله مصیبت سخت او زیات شي نو بیا ترې دا مجرمان خبر شي نو دوی خوشحاله شي۔ نو دا به د مؤمنانو خوئي وي چه واړه واړه نعمتونه به راښکاره کوي او مصیبتونه به زر نهٔ راښکاره کوي مګر هله چه د کنټرول نه بهر شي۔

وَإِنْ تَصْبِرُوا : دے کی الله تعالیٰ مسلمانانو ته د کافرانو د شر او فساد نه د بچ کیدو دا طریقه اُوخودله چه مسلمانانو له د الله تعالیٰ د طرف نه په ازمیښتونو د صبر کولو عادت جوړول پکار دی، په هر حال کی د الله تعالیٰ نه یریدل، د تقویٰ او بندګئ لاره اختیارول پکار دی، او د غیر مسلمو نه مدد نهٔ دی اخستل پکار، که دوی داسے کوی نو د کافرانو مکر او چل به دوی ته نقصان نهٔ رسوی، ځکه چه څوك په الله تعالیٰ توکل کوی، په امتحانانو صبر کوی او صرف د هغه نه مدد غواړی نو هغه به یقیناً په خپلو مقاصدو کی کامیابیږی، الله تعالیٰ به هغه هیڅ کله هم نهٔ ضائع کوی او د دشمن په مقابله کی به هغه ته فتح او نصرت ورکوی او څوك چه د غیرو نه مدد غواړی الله تعالیٰ به هغه لره د هغه نفس ته حواله کړی او د خپل نصرت او مدد نه به ئے محرومه کړی۔

آرمان چه مسلمان نن هم دا نسخه استعمال کړے وے او د الله تعالیٰ پریخودو سره ئے د بل چا په مخ کی عاجزی نهٔ کولے۔ لوی طاقتونه ئے خپل معبود نهٔ جوړولے، د الله تعالیٰ په ځای ئے د هغوی نه مدد نهٔ غوختلے، نو د الله تعالیٰ وعده همیشه دپاره یوه ده۔ فتح او نصرت به د هغوی قدمونه ښکلولے او عزت او سرداری به د هغوی د سرونو تاج وے او نور قومونه به د هغوی مخے ته په ګونډو شوی وے، آیا څوك شته چه پدے آواز باندے غوږ اُوخوزوی ؟۔

نو د کافرانو د مصیبتونو او دشمنانو د تکلیفونو نه د ځان بچ کولو قانون دا شو چه بنده به ځان د الله تعالیٰ کړی، د هغه سره به تعلق جوړ کړی نو بیا به الله تعالیٰ د هغه دشمن وهی او د هغه د طرفنه به مدافعت کوی، او بنده چه د الله تعالیٰ سره تعلق جوړوی نو ددے طریقه مخکی سورة البقره (۱۰۹) آیت کی دا تیره شوے وه (فاعفوا واصفحوا) چه معافی به کوی او د بدو ردو نه به ځان ساتی او دلته وائی چه (تصبروا وتتقوا) د مخالفینو په تکلیفونو باندے صبر او د الله تعالیٰ نه یریدل، د هغه د حدودو لحاظ ساتل۔ او روستو وائی (لَتُبْلَوُنَّ فِيْ أَمْوَالِكُمْ ...... وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا) آل عمران آیت :۱۸۶ ) او په سورة ابراهیم کی ئے دوه خبرے ذکر کریدی (۱) یو توکل علی الله ﴿وَعَلَى اللهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ﴾ آیت : (۱۱) (۲) بل ﴿ذٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِيْ وَخَافَ وَعِيْدِ﴾ آیت : ۱٤ ) یعنی د الله تعالیٰ د پیشئ او د هغه د عذابونو نه یریدل۔ دا پنځه شپږ کارونه چه دے وکړل نو بس الله تعالیٰ به ستا په شا ودریږی او ستا مدد به کوی۔

پدے آیتونو کی شپږ نور بد صفتونه بیان کریدی (۵) لا یحبونکم۔ (۷) وتؤمنون

بالکتاب کله۔ اَیْ وَلَایُؤْمِنُوْنَ بِالْکِتَابِ کُلِّهٖ ۔ (۸) النفاق (واذا لقوکم) (۹) عضوا علیکم الانامل (تاسو ته غصه دی) ۔ (۱۰) یفرحوا بها : ستاسو په مصیبت خوشحاله دی۔

لا یضرکم : ضرر به څکه نهٔ ورکوی چه څوك الله تعالیٰ ته څان وسپاری نو هغه د چا په تکلیفونو دومره پرواه نهٔ کوی او د مخلوق نه تاثر نهٔ اخلی، په خپل مقابل باندے زړه ور وی۔ یا پدے وجه چه څوك په الله توکل وکړی او په مصیبت باندے صبر کوی، او صرف د الله نه مدد غواړی نهٔ د بل چا نه نو دا په خپل طلب کی کامیاب وی، په خپل دشمن باندے غالب وی، د رب په بنائسته حفاظت سره محفوظ وی او څوك چه د بل چا نه مدد طلب کوی هغه خپل څان ته سپارلے شوے وی، د خپل رب د مدد نه محروم وی۔ (قاسمیؒ)

صحیح مطلب دا دے چه د صبر او تقویٰ فائده دا ده چه د کفارو کید او مکر به شنډ شی او ضرر به ایمان والو ته ورنکړی نو دا د صبر او تقویٰ فائده ده او د دغه کارونو نتیجه ده۔

| وَاِذْ غَدَوْتَ مِنْ اَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِيْنَ مَقَاعِدَ |
|---|
| او کله چه تهٔ اوووتلے د خپل کور نه تیارول تا مؤمنانو لره ځایونه د کیناستو (مورچے) |
| لِلْقِتَالِ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۲۱﴾ |
| دپاره د جنګ کولو، او الله تعالیٰ آوریدونکے، پوهه دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت او روستو آیت کی دوه واقعے د اُحد او د بدر راوړی او دا دوه مثالونه دی ددے دپاره چه تاسو په بدر کی د دغه مخکنو قوانینو پابندی کړے وه نو الله تعالیٰ درله فتح درکړه او په اُحد کی په تاسو کی د بعض کسانو نه په دغه قوانینو کی څه کوتاهی وشوه نو الله تعالیٰ شکست درکړو۔ نو د فتح او نصرت او مدد او شکست او ناکامیٔ په باره کی د الله تعالیٰ قانون دا دے چه د صبر او تقویٰ نتیجه نصرت او کامیابی وی او د بی صبریٔ او نهٔ تقویٰ لازمی نتیجه شکست او ناکامی وی۔

**مناسبت** : (۱) مخکی قواعد بیان شو نو اُوس الله تعالیٰ د مؤمنانو تربیت کوی په بله طریقه چه تاسو دا کار وکړو نو داسے مهٔ کویٔ او دا کار مو نهٔ دے کړے نو دا داسے وکړیٔ نو پدے سره د دوی عملی تربیت کول مقصد دے۔(۲)– مخکی قوانین ذکر وو نو اُوس جهاد بیانوی چه دغه قوانین به کافرانو باندے په جهاد کی تطبیق کویٔ۔ (۳) د صبر او تقوی نتیجه کامیابی ده۔ لَایَضُرُّکُمْ کَیْدُهُمْ شَیْئًا کَمَا لَمْ یَضُرَّکُمْ فِیْ بَدْرٍ وَاِنَّمَا ضَرَّکُمْ قَلِیْلًا فِیْ اُحُدٍ لِعَدَمِ الصَّبْرِ کَامِلًا وَالْعِصْیَانُ فِیْ بَعْضِ الْاَوَانِ۔ تاسو ته به د هغوی کید (مکر) هیڅ

ضرور درنکړی لکه څنګه ئے چه په بدر کی درنکړو او لړ شان ئے په اُحد کی درکړو ځکه چه پوره صبر نهٔ وو او په بعض اوقاتو کی مخالفت وو۔
ددے آیت نه د جنګ اُحد د واقعے ابتداء کیږی، او تقریباً په شپیتو آیتونو کی ددے تفصیل بیان شویدے، او په مختلفو اړخونو ئے رڼا اچولے شوے ده مګر د قرآن کریم د بیان طریقه دا ده چه یوه قیصه د قصه خوانانو په شان په ترتیب سره نهٔ ذکر کوی بلکه د هرے قصے نه ځینی نکات راخلی په کوم سره چه د امت تربیت کیږی۔

## واقعه د احد

دا واقعه په شوال (۱۲) تاریخ سنه (۳ هـ) کی واقع شوے وه او رسول الله ﷺ د جُمعے د مانځه نه روستو د مدینے نه وتلے وو۔ او ددے سبب دا وو چه د بدر په جنګ کی کله چه د قریشو سرداران قتل شول او رسوا کن شکست سره مخامخ شول نو د مسلمانانو نه د انتقام او بدلے اخستو دپاره د قریشو کافران د ابوسفیان په قیادت کی درے زره کسان د اُحد غر خواته راغلل، راجمع شول۔ نبی کریم ﷺ د صحابه کرامو سره مشوره اُوکړه چه په مدینه کی پاتے کیدو سره دفاع اُوکړے شی یا بهر وتلو سره مقابله اُوکړے شی، د ځینو کسانو په مدینه کی د پاتے کیدو رایه وه۔ د عبد الله بن ابی ابن سلول رأس المنافقین هم دغه رائے وه۔ ځینی خوانانو او د جذبے والا صحابه کرامو رائے دویمه وه او پدے باندے ئے اصرار اُوکړو۔ نبی کریم ﷺ ددے دویمے رائے مطابق کور ته تشریف یوړو او زغره ئے واغوستله او بهر راغلو۔ د دویمے رائے والا صحابه کرامو ګمان اُوکړو چه کیدے شی مونږ رسول الله ﷺ مجبوره کړو، پدے وجه هغوی نبی کریم ﷺ ته اُووئیل چه که ته غواړے نو په اوله رائے باندے عمل وکړه۔ نو نبی کریم ﷺ وفرمایل: (مَا كَانَ لِنَبِيٍّ إِذَا لَبِسَ لَأْمَتَهُ أَنْ يَضَعَهَا حَتَّى يَحْكُمَ اللَّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ عَدُوِّهِ) یعنی د الله تعالیٰ نبی چه کله زغره واغوندی او د کور نه رابهر شی نو هغه زغره تر هغه وخته پورے نهٔ اُوباسی تر څو چه د هغه او د دشمن په مابین کی الله تعالیٰ فیصله اُونکړی۔ (ددے نه علماؤ دا فائده راویستے ده چه کله جهاد او علم څوك شروع کړی نو د هغے پرېښودل صحیح نهٔ دی بلکه د هغے سر ته رسول فرض کیږی)
نو رسول الله ﷺ د زرو کسانو د لښکر سره د جُمعے نه روستو د اُحد غر طرف ته روان شو، کله چه داسے ځای ته ورسیدل چه دشمن ښکاره شو نو عبد الله بن اُبیّ د ((شوط)) مقام نه د خپلو درے سوه کسانو سره پدے بهانه راواپس شو چه زمونږ خبره اُونهٔ منلے

شوه. او پدے کی ددۀ مقصد کافرانو ته اشاره ورکول وو چه دا صحابه کرام درنه خلاص نۀ شی او زۀ ترے واپس شوم. او بل په ملګرو کی پریشانی پیدا کول وو ځکه چه په داسے موقعه کی ملګری واپس کیدل زړه کمزورے کوی. نو پدے کی عبد الله بن حرام ﷺ دوی ته وویل : راشئ د الله تعالیٰ په لاره کی جنګ وکړئ او که د جهاد نیت مو نۀ وی نو د خپل ملك او د خپل قوم مدافعت خو وکړئ (یعنی ملکی غیرت خو وکړئ) نو هغوی وویل چه جنګ نۀ کیږی او دا رسول الله ﷺ هسے چکر وهی، که جنګ کیدے مونږ به پکی حاضر شوی وے، روستو راځی د مسلمانانو د دوی په باره کی اختلاف شو چا وویل : مؤمنان دی خو ګناه ئے وکړه نو د هغوی د طرفنه ئے دفاع کوله چه دوی خو مونځونه کوی او چا وویل چه دا کافران شویدی، رسول الله ﷺ دشمن ته پریدی او دوی راواپس کیږی نو الله تعالیٰ د سورة النساء (۸۸) آیت نازل کړو : ﴿فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ وَاللَّهُ أَرْكَسَهُم بِمَا كَسَبُوا﴾ . چه پدے کار دا خلك کافران شویدی او د دوی په باره کی اختلاف مۀ کوئ او دے سورت کی هم روستو راځی : ﴿هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْإِيمَانِ﴾ .

کله چه منافقان واپس شو نو پدے کی مسلمانان مخکی روان شو نو په لاره کی د مسلمانانو دوه ډلے (بنی سلمه او بنی حارثه) ؤ په زړه کی دا خبره تیره شوه چه واپس کیږو ځکه چه جنګ ډیر ګران کار دے، لیکن الله تعالیٰ بیرته د ایمان د فائدے د وجه نه را مضبوط کړل او عزم ئے مضبوط شو نو ایمان ورله فائده ورکړه.

رسول الله ﷺ چه اُحد ته نزدے شو نو د ملګرو تفقد ئے وکړو او ماشومان ئے ترے جدا کړل او تکړه تکړه ملګری ئے روان کړل او ملګرو ته ئے وویل چه څوك دے چه مونږ اُحد ته په لنډه لار ورسوی او په کافرانو باندے ورتیر نشو، نو یو صحابی وویل : زۀ، نو روان شو تردے چه په لاره کی رسول الله ﷺ یهودو ته هم دعوت ورکړو چه راشئ مونږ سره ملګرتیا وکړئ یا مونږ ته وسله راکړئ (ځکه چه د دوی خپل مینځ کی صلح کی دا خبره شوے وه). هغوی وویل : دا د خالی ورځ ده پدے کی مونږ باندے جنګ حرام دے، د مُخَیریق په نوم یو یهودی وویل : (لَا سَبْتَ لَكُمْ) د محمد رسول الله ﷺ مدد په تاسو واجب دے او ستاسو د خالی تعظیم ختم دے. او د رسول الله ﷺ په ملګرتیا کی ئے جنګ کی شریك شو او مړ هم شو، څوك وائی مسلمان مړ دے او څوك وائی چه کافر مړ دے او رسول الله ﷺ وفرمایل : (مُخَيْرِيقُ خَيْرُ يَهُودَ) . مخیریق د یهودیانو نه غوره سړے دے. دے نه معلومیږی چه دا مسلمان مړ دے.

تردے چه رسول الله ﷺ احد ته ورسیدو، نو رسول الله ﷺ لاړو احد طرفته ئے شا واړوله

او بل طرفته ئې مخ کړو او جنګ اُوشو تردې چه مسلمانانو ته فتح اُوشوه، لیکن کوم پنځوس غشي ویشتونکي صحابه کرام چه د عبد الله بن جُبیر ﷺ په مشرئ کي رسول الله ﷺ په جبل اُحد باندې مقرر کړي وو او وئیلي ئې وو چه که مونږ مارغان اُوتختوی نو هم به خپل ځای نۀ پریدئ، نو هغوی ملګري ولیدل چه غنیمتونه راټولوی نو د هغوی نه ځلویښت کسان راکوز شو د غنیمت راټولو دپاره او دغه ځای ئې پریخودو نو خالد بن ولید (لا دې وخت پورې په اسلام مشرف نۀ وو) د هغه طرف نه ولیدل چه دا ځای خالي شویدې ځکه چه ده دوه درې کرته پدې طرف د حملې اراده کړې وه لیکن دغه پنځوسو مسلمانانو زغلولے وو لیکن اُوس ئې موقعه پیدا کړه او په دغه باقي لسو کسانو ئې حمله اُوکړه او د هغه طرفنه د اُحد میدان ته رانوتل او مسلمانان ئې په مینځ کي راګیر کړل، نو د مسلمانانو فتح په شکست بدله شوه. څه مسلمانان مدینې طرفته روان شو او څه غرونو طرفته او اویا کسان په میدان کي شهیدان شو او رسول الله ﷺ هم سخت زخمي شو. خوا ته ورته اول ابوبکر صدیقؓ بیا عمرؓ بیا عبد الرحمن بن عوفؓ وغیره نور صحابه کرام راغلل بیا رسول الله ﷺ د غره یو طرفته لاړو چه هلته جنګ نۀ کیدو چه هغه د مِهراس په نوم یادیدو. او مسلمانان زخمیان هم شو او د شهیدانو مُثله هم وکړې شوه او ابوسفیان پکي چغې هم وکړې چه دا تاسو ته د بدر په مقابله کي وشو. او اُوچت ځای ته وختلو او وې ویل : چه آیا په تاسو کي محمد شته؟ آیا ابوبکر شته ؟ آیا عمر شته؟. رسول الله ﷺ وفرمایل : جواب مۀ ورکوئ چه خوشحاله شي چه دا کسان مړۀ دي بیا به خبر ورکړئ نو سخت به خفه شي. په آخر کي ورته عمر فاروق ﷺ جواب ورکړو : دا درې واړه ژوندي دي چه الله تعالیٰ ستا د شرمولو او ذلیله کولو دپاره ساتلي دي. بیا ئې د هُبل د زنده باد نعرې ووهلې (اُعْلُ هُبَلُ، اُعْلُ هُبَلُ) - زمونږ هبل اُوچت شو چه داسې مدد ئې مونږ سره وکړو، نبي کریم ﷺ وفرمایل: جواب ورکړئ. (اَللّٰهُ اَعْلٰی وَاَجَلُّ) - الله اُوچت او لوی ذات دې. هغوی وویل : (لَنَا الْعُزّٰی وَلَا عُزّٰی لَكُمْ) - زمونږ دپاره عزی شته او ستاسو نشته. نبي ﷺ وفرمایل: جواب ورکړئ: (اَللّٰهُ مَوْلٰنَا وَلَا مَوْلٰی لَكُمْ) - زمونږ مولیٰ (مددګار) شته او ستاسو نشته.

دې نه روستو هغوی روان شو، چا وویل چه په مدینه حمله کوی نو رسول الله ﷺ وفرمایل: که دوی په مدینه حمله وکړه نو سخته مقابله به ورسره کوم. بیا ئې یو تن (علی ﷺ) ولیږو چه وګوره چه که په اسونو سوارۀ وی نو دوی به په مدینه حمله کول غواړي او که په اُوښانو سوارۀ وی نو بیرته به واپس کیږي. خبر راغے چه په اُوښانو سوارۀ دي.

ابوسفیان چه حمراء الاسد ته ورسیدو نو فکر ئے وکړو چه دا خو مونږ هیڅ ونکړل او دا خو څه فتح نۀ وه صرف دا وشو چه هغوی زمونږ نه کم کسان قتل کړل او مونږ ترے دیر. پکار دا وه چه مونږ د هغوی نه مالونه نیولی وے او د هغوی ښځے مو راوستے وے، او د هغوی علاقه مو نیولے وے. نو ملګرو ته ئے وویل چه دوباره په مدینه باندے حمله کوو لیکن زړه کی ئے یره هم وه، نو بعض ملګرو ورته وویل چه څه نا څه غلبه مو حاصله کړه که دوباره لاړ شو هسے نۀ چه ختم مو نکړی نو ابوسفیان دا خبره ومنله لیکن جاسوس ئے راولیږو چه په صحابه کرامو باندے رعب واچوی چه ابوسفیان او د هغه فوج دربانده حمله کوی. نو هغه رعب اچولو نو الله تعالیٰ د صحابه کرامو ایمان مضبوط کړو لکه روستو ئے تفصیل راځی او (حسبنا الله ونعم الوکیل) ئے وویل. پدے کی په طریقه د امتحان باندے رسول الله ﷺ ملګری تیار کړل او دا ئے وویل چه څوك په احد کی حاضر وو هغوی به حمراء الاسد ته ځان رسوی او د ابوسفیان او د هغه فوج سره به جنګ کوو. نو پدے موقعه سیدنا جابرؓ اجازه طلب کړه چه زۀ اُحد کی د پلار په وجه نۀ وم حاضر شوے لیکن ما ته اجازه وکړه نو هغه ئے هم ځان سره واخستو نو دوی حمراء الاسد ته د زخمونو سره روان شو، هلته د رسیدو نه مخکی ابوسفیان او د هغه ملګری وتښتیدل نو نبی کریم ﷺ او ملګرو ئے هلته درے ورځے تیرے کړے تجارتونه ئے وکړل او دشمن ئے الله تعالیٰ ذلیله کړو او بیرته روغ رمټ راواپس شول او الله تعالیٰ ترے د خپلے رضا اعلان وکړو. دا واقعه د اُحد وه ددے دیر تفصیلات او ایمانی او علمی فوائد په زاد المعاد د ابن القیم رحمه الله او زمونږ کتاب ((سیرتِ رسول)) (ﷺ) د (۱۵۷) نه تر (۲۳۳) پورے وګوره.

وَإِذْ غَدَوْتَ : یعنی دا خبره رایاده کړه او مطلب ئے دا دے چه ملګرو ته ئے رایاده کړه چه د هغوی تربیت پرے وشی. او مقصد پکی دا هم دے چه کافران تاسو رازدار مۀ نیسئ ځکه چه دوی تاسو په مشکلاتو اچولو کی هیڅ صرفه نۀ کوی، نۀ ګورئ چه په اُحد کی عبد الله بن ابی منافق خپل درے سوه کسان د نیمے لارے نه راستانه کړل او د مجاهدینو په صفونو کی ئے تزلزل او پریشانی واچوله، نزدے وه چه د مسلمانانو دوه ډلے (بنو سلمه او بنو حارثه) ئے ستانه کړی وے لیکن الله تعالیٰ فضل وکړو او هغوی ئے مضبوط کړل. نو دا بل ربط او مناسبت هم شو.

ځینو عالِمانو د ((غدوت)) معنیٰ په صبا وخت کی د وتلو کړیده او بیا ئے دا اشکال پیدا کړیدے چه دا څنګه صحیح ده چه رسول الله ﷺ د جُمعے د مانځه نه روستو اُووتلو.

صاحب د فتح البیان لیکلي دي چه ډیر کرته ((غدوّ)) لفظ د مطلق خروج (وتلو) په معنیٰ استعمالیږي۔ دلته هم ((غَدَوْتَ)) د (خَرَجْتَ) په معنیٰ دے، پدے وجه اشکال باقي نهٔ پاتے کیږي۔ او امام طبريؒ پکښې دا وېلي دي چه د (مَقَاعِدَ لِلْقِتَال) نه مراد د اُحد په لمن کې د مجاهدینو صفونه برابرول مقصد نهٔ دے بلکه مراد ترے د جنګ میدان ټاکل دي چه دننه په مدینه کې به قتال ښه وي او که بهر وتل به بهتر وي چه نتیجه ئې دا شوه چه د اکثرو نظر دا وو چه بهر ووځو نو د اُحد د غر لمن ئې غوره کړه۔ او دا مشوره خو د جنګ د ورځ (خالي) نه دوه ورځے مخکې (د زیارت په ورځ) او یا یوه ورځ وړاندے (د جُمعے په ورځ) شوے وه۔ (تفسیر الطبري ٧١/٤)۔

مِنْ اَهْلِكَ : د عائشے رضي الله عنها د کور نه وتلے وو نو دا دلیل دے په فضیلت د هغے باندے او پدے خبره چه هغه د رسول الله ﷺ اهل دے۔

تُبَوِّءُ : اَيْ تَتَّخِذُ مُعَسْكَرًا ۔ یعني تا مؤمنانو لره معسکر تیارولو۔ رسول الله ﷺ کې الله تعالیٰ ټول صفات راجمع کړي وو، نبي، مُعلم، مُربي، مجاهد وو او دا ملګري ئې خای په خای کول ددے دپاره چه افراتفري نهٔ وي او په یو بل باندے ئې غشي ونهٔ لګي او ملګرو ته د دشمن تلفات هم نهٔ رسیږي۔

| إِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنكُمْ أَن تَفْشَلَا وَاللّٰهُ |
|---|
| کله چه اراده وکړه دواړه ډلو ستاسو نه چه کمزوري ښکاره کړي او الله تعالیٰ |
| وَلِيُّهُمَا وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١٢٢﴾ |
| مددګار د دوي وو او خاص په الله دِے څان وسپاري مؤمنان۔ |

**تفسیر** : دا هم د مسلمانانو یو قسم تربیت وو الله تعالیٰ فرمائي : چه دوه ډلو اراده وکړه چه بزدلي ښکاره کړي او د جنګ نه واپس شي لیکن الله تعالیٰ ورسره د هغوي د ایمان او د نیك عملئ د وجه نه مدد وکړو او بیرته جهاد ته واپس شو۔ چه دا د انصارو دوه ډلے بنو سَلِمه او بنو حارثه وو چه یو د اَوس قبیلے نه وو او بله د خزرجیانو نه وو۔ نو پدے کې تربیت داسے دے چه بیا دپاره تاسو په جهادونو کې بزدلي مهٔ ښکاره کوئ او په الله تعالیٰ توکل کوئ الله تعالیٰ به ستاسو مدد کوي۔ نو پدے کې د دغه دوه ډلو فضیلت هم راغلو چه الله تعالیٰ ورته د خپلے دوستئ اعلان وکړو۔

سیدنا جابر بن عبد الله رضي الله عنهما فرمائي : مونږ دا نهٔ خوښوو چه دا آیت نهٔ وے راغلے بلکه مونږ پدے خوشحاله یو، پدے کی اگرکه زمونږ یو قسم عیب هم دے لیکن مونږ ته الله تعالیٰ د خپل ولایت (دوستیٔ، او مددگاریٔ) اعلان کړے.

فَلْيَتَوَكَّلِ : یعنی اے ایمان والو تاسو په الله تعالیٰ باندے توکل وکړیٔ نو الله تعالیٰ به درسره مدد کوی او فتح به درکوی اگرکه تاسو د سامان او د شمار په اعتبار سره د کافرانو نه ډیر کم یئ او کافران زیات او مضبوط وی.

## توکل څه ته وائی؟

توکل إِظْهَارُ الْعِجْزِ وَالتَّوْكِيْلِ ـ خپل ځان عاجز ښکاره کول او بل چا ته یو شے سپارلو ته وائی. او په اصطلاح کی : (تَفْوِيْضُ الْأُمُوْرِ إِلَى اللهِ تَعَالَى ثِقَةً بِحُسْنِ تَدْبِيْرِهٖ) ته وائی یعنی ټول کارونه الله تعالیٰ سپارل پدے وجه چه د هغه په ښائسته تدبیر (او تصرف) باندے اعتماد وی.

## د توکل د پیدا کیدو طریقه

د توکل د پیدا کیدو دپاره یو څو عقیدے جوړول پکار دی : (۱) (اَلْعِلْمُ بِعِلْمِ اللهِ) بنده پدے پوهه شی چه الله تعالیٰ په هر څه پوهیږی. (۲) (اَلْعِلْمُ بِقُدْرَةِ اللهِ) ـ د الله تعالیٰ په قدرت علم راشی چه هغه په هر څه قادر دے. (۳) (اَلْعِلْمُ بِرَحْمَةِ اللهِ) ـ پدے پوهه شی چه الله تعالیٰ مهربانه دے. ورسره دا عقیده ولره چه الله تعالیٰ په توکل خوشحالیږی نو پدے سره به په تا کی د توکل ماده راشی چه هغه به ما نهٔ ضائع کوی. بیا صوفیه وائی چه توکل ترك الاسباب (اسباب پریښودو) ته وائی. او د دوی برعکس بعض خلکو (جَعَلُوا الْأَسْبَابَ أَرْبَابًا) د اسبابو نه ئے ارباب (معبودان) جوړ کړیدی چه ددے نه بغیر هیڅ کار نهٔ کیږی. نو دا افراط والا دی. او دریم د انبیاء علیهم السلام توکل دے چه هغه شرعی توکل دے (هُوَ اسْتِعْمَالُ الْأَسْبَابِ وَالْاِعْتِمَادُ عَلٰى رَبِّ الْأَرْبَابِ) ـ اسباب استعمالول او په رب العالمین باندے اعتماد کول.

سهل بن عبد الله ؒ وئیلی دی : (مَنْ قَالَ إِنَّ التَّوَكُّلَ فِيْ تَرْكِ الْأَسْبَابِ فَقَدْ طَعَنَ فِيْ سُنَّةِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ) چا چه ووئیل چه توکل د اسبابو په پریښودو کی دے نو هغه د رسول الله ﷺ په سنتو کی طعن وائی ځکه چه رسول الله ﷺ په اُحد کی د وسپنے توپیٔ اچولے وه او دوه زغرے ئے اغوستے وے. او د انسان دپاره اسباب استعمالول امر فطری دے، ضرور بنده

اسبابو ته محتاج کیږي اګرکه ډیر خلك به دا دعوه کوي چه مونږ داسے درجے ته ځان رسولو چه اسباب نهٔ استعمالوو. نو ددے نه ثابته شوه چه امام غزالیؒ چه دا خبره لیکلے ده چه لوی توکل دا دے چه ځان سره اسباب مه اخله او همداسے په صحراء کې سفر شروع کړه او په الله تعالیٰ باندے ځان وسپاره هغه به رزق درکوي نو دا خطاء خبره ده، الله تعالیٰ پداسے خبرو حکم نهٔ دے کړے بلکه په توښه اخستو باندے ئے حکم کړیدے ﴿وَتَزَوَّدُوْا فَإِنَّ خَیْرَ الزَّادِ التَّقْوٰی﴾ (البقرہ:۱۹۷). نو توښه ځان سره واخله او په دے باندے اعتماد مهٔ کوه بلکه الله تعالیٰ ته ځان وسپاره. په خپل علم او مال او وسله او طاقت باندے اعتماد مهٔ کوه او دا څیزونه اختیار کړه او ځان پکې الله تعالیٰ ته وسپاره دا شرعي توکل شو.

توکل د ایمان د مقاماتو نه اعلیٰ مقام دے، چا کې چه توکل راغے نو دا به اعلیٰ مؤمن جوړ شي او توکل په بنده کې نشي راتلے مګر هله چه د بنده د الله تعالیٰ سره تعلق وي. لکه ددے تفصیل به د سورتِ هود په آخر کې راشي ان شاء الله تعالیٰ.

| وَلَقَدْ نَصَرَکُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ وَّاَنْتُمْ اَذِلَّةٌ |
| --- |
| او یقیناً مدد کړے تاسو سره الله تعالیٰ په بدر کې او حال دا چه تاسو لږ (یعني کمزوری) وئ |
| فَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّکُمْ تَشْکُرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾ |
| نو ویریږئ د الله نه دے دپاره چه تاسو شکر ګزار شئ. |

**تفسیر**: اُوس دویمه واقعه د بدر بیانوي چه تاسو سره الله تعالیٰ مدد کړے کله چه تاسو ددے قوانینو پابند وئ. سره ددے نه چه تاسو د سامان او د نفرئ (شمار) په اعتبار سره ډیر کم وئ او دشمن ستاسو نه تقریباً درے چنده زیات وو.

وَاَنْتُمْ اَذِلَّةٌ : اَیْ بِالْعَدَدِ وَالْعُدَدِ). په شمار او سامان کې کم وئ ځکه چه صحابه کرامؓ درے سوه دیارلس کسان وو او یو اس ورسره وو، ځینې وائي اسونه پکې نهٔ وو او اویا اُوښان وو او اته یا لسو پورے تورے ورسره وے.

اذلة : دلته کمزورو ته وائي.

تَشْکُرُوْنَ : دا دلیل دے چه څوك د تقویٰ لاره اختیاروي هغه د الله تعالیٰ شکر ګزار دے او غلبه په دشمن باندے یو نعمت دے نو ددے په مقابله کې د الله شکر پکار دے. او شکر تقویٰ ته وائي او په تقویٰ یعني د الله د حدودو په لحاظ سره په دشمن باندے غلبه راځي.

| إِذْ تَقُوْلُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ أَلَنْ يَّكْفِيَكُمْ أَنْ يُّمِدَّكُمْ |
|---|
| کله چه وویل تا مؤمنانو ته آیا کافي نهٔ ده تاسو لره دا چه زیات به کړي تاسو |
| رَبُّكُم بِثَلَاثَةِ آلَافٍ مِّنَ الْمَلآئِكَةِ مُنْزَلِيْنَ ﴿۱۲۴﴾ |
| رب ستاسو په درې زره د ملائکو نه چه راکوز کړې شوي به وي۔ |

**تفسیر** : یعني دا وخت هم رایاد کړه چه تا مؤمنانو ته دا خبره کوله۔ او ددې رایادولو مقصد دا دې چه الله تعالیٰ تاسو سره دغه شان همیشه مددونه کوي۔

صحابه کرامو رسول الله ﷺ ته د کم والي شکایت وکړو نو رسول الله ﷺ زیرې ورکړو چه الله تعالیٰ ما ته وحی کړېده چه زر ملائك به د مدد دپاره راځي۔ او که نور ضرورت راغې نو درې زره به راشي او د پنځو زرو پورې وعده ده۔ د صحابه کرامو د رسول الله ﷺ په خبره یقین وو نو پدې خبره ډیر خوشحاله شو او زړهٔ ور شو او دشمن طرف ته وړاندې شو۔

مُنْزَلِيْنَ : یعني د آسمان نه راکوز شوي دپاره د وژلو د دشمنانو د الله تعالیٰ۔

د سورة الانفال د (۹) آیت نه معلومیږي چه (بِأَلْفٍ مِنَ الْمَلَآئِكَةِ) یعني زر ملائك به راځي او دلته درې زره وائي او روستو پنځه زره ذکر کوي نو ددې تطبیق دا دې چه في الحال د زرو ملائکو د راکوزیدو وعده وه او درې زره او پنځه په هغه وخت کې وعده وه چه کله ورته ضرورت راشي یعني که کافران زیات شي نو الله به نور زیات ملائك راولیږي۔

جبریل ؑ نبي کریم ﷺ ته وفرمایل: په تاسو کې کوم خلك بهتر دي؟ هغه وفرمایل: کوم صحابه کرام چه بدر ته حاضر شوي دي نو جبریل ؑ وفرمایل: همدغه شان زمونږ په ملائکو کې هغه ملائك بهتر دي چه د بدر غزا ته کوز شوي وو۔

## سوال وجواب

د کافرانو د ختمولو دپاره یو ملائك (جبریل ؑ) هم کافي دې چه ټول ئې پورته کړي وې او زمکې ته به ئې راکوزار کړي وې نو زرو رالیږلو ته څه ضرورت دې ؟

جواب دا دې چه کله الله تعالیٰ ملائك جنګونو ته رالیږي نو د انسان هومره طاقت ورکوي بیا نې د ملائك په مقدار طاقت نهٔ وي۔ لکه پیریانو سره ډیر طاقت وي لیکن کله چه د مار لړم یا بل حیوان په شکل راشي نو بیا په یو ګوزار سره هم مري۔ پدې کې د الله

تعالیٰ حکمت دا دے (والله اعلم) چه دا امتحان شی په مؤمنانو او په کافرانو دواړو باندے، ولے که ملائک راشی بیا به مؤمنان بی غمه شی چه ټول کار به ملائک کوی مونږ به تربے خلاص یو۔ نو بیا په مؤمنانو بیخي امتحان نهٔ راځی او د کافرانو دپاره د جَبرِی ایمان سبب شی ځکه چه کافر به وائی چه زمونږ مقابلے ته داسے مخلوق ولاړ دے چه مونږ د هغے د مقابلے طاقت نهٔ لرو نو مجبوراً به بیا ایمان راوړی او الله تعالیٰ بنده ګان نهٔ مجبوره کوی بلکه خپلے خوښے ته ئے پریښی دی چه ایمان راوړی او که نهٔ، او غالباً دغه ملائک کافرانو او مؤمنانو ته ښکاره کیږی هم نهٔ، بلکه کله نا کله راښکاره شی د مؤمنانو د کرامت دپاره او د کافرانو د متوجه کولو یا ذلیله کولو دپاره۔ او طاقت ئے کم وی دے دپاره چه په مؤمنانو هم امتحان راشی چه هغوی هم یریږی چه مونږ مغلوبه نشو او په کافرانو هم امتحان وی چه د هغوی هم څه نا څه توره چلیږی او که د هغه توره او توپک بند شی نو بیا خو په هغه امتحان نهٔ جوړیږی۔ په غزا د بدر کی صحابه کرامو هم بعض ملائک لیدلی دی، ابو الْیَسَر ﷺ سیدنا عباس ﷺ لره تړلے وو، سره د هغے نه چه د بدن نه کمزورے وو، هغه وویل : دا ما تړلے دے۔عباسؓ وویل : زهٔ دهٔ نهٔ یم تړلے بلکه بل چا تړلے یم۔ رسول الله ﷺ وفرمایل: رشتیا وائی : (لَقَدْ اَيَّدَكَ اللّٰهُ بِمَلَكٍ كَرِيْمٍ)۔ تا سره الله تعالیٰ د عزتمند ملائک په وجه مدد وکړو)۔ او مشرکانو هم ملائک لیدلی وو : (عَلٰى خَيْلٍ بُلْقٍ) په برګ بروګ اسونو باندے وو او پټکی ئے تړلی وو۔

| بَلٰٓى اِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا وَيَاْتُوْكُمْ مِّنْ فَوْرِهِمْ هٰذَا |
|---|
| آؤ، که چرته صبر وکړو تاسو او د الله نه ویریدلئ او راشی دوی تاسو ته د جوش خپل نه دغه دے |
| يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِيْنَ ﴿۱۲۵﴾ |
| زیات به کړی تاسو رب ستاسو په پنځه زرو سره د ملائکو نه چه نخے به ئے لګولی وی (د جنګ) |

**تفسیر** : بَلٰى : دا د الله تعالیٰ قول دے چه د مؤمنانو د طرفنه ئے کړیدے او زیاته مهربانی د الله تعالیٰ ذکر ده دپاره د اکرام د مؤمنانو یعنی آؤ دغه مدد مو بس دے لیکن بیا چه کله دوی ته اطلاع ورکړے شوه چه د دشمن د مدد دپاره نور کافران (یعنی کرز بن جابر المحاربی) د جنګ دپاره د بدر په طرف راروان دی نو په مسلمانانو کی دویم ځل پریشانی پیدا شوه او د خپلے کمزورئ او کموالی احساس ورته پیدا شو نو الله تعالیٰ بیا دوی ته

وعده ورکړه چه اے مؤمنانو ! که تاسو همداسے صابران او متقیان وئ او د دشمن د مدد دپاره نور کافران همدغه شان دستے درشی نو ستاسو رب به تاسو سره په پنځه زره ملائکو باندے مدد وکړی چه هغوی به نښے لری او تاسو به ئے پیژنئ چه دا انسانان نهٔ دی بلکه ملائک دی۔ یا دا چه په هغوی باندے به د جنګ ادات (سامان) وی۔
بیا کرز بن جابر ته خبر ورسیدو چه مشرکانو شکست خوړلے دے نو هغه مدد ته رانغلو۔
إِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا : یعنی دغه شان به مددونه تاسو ته الله تعالیٰ رالیږی که تاسو د صبر نه کار اخلئ او دشمنانو ته مضبوط ودریږئ او تیښته ونکړئ او د خپل نبی د مخالفت نه ځان وساتئ او مشرکان تاسو ته په جوش کی راشی نو دغه دے مدد د الله تعالیٰ به ډیر نزدے راځی چه پنځه زره ملائک به راولیږی۔ نو آیت دا خبره کوی چه د صبر او د تقویٰ سره د الله تعالیٰ مدد تړلے شویدے۔
مِنْ فَوْرِهِمْ : (۱) أَیْ مِنْ غَضَبِهِمْ۔ یعنی په غصه او جوش کی راشی۔ یعنی چه کافران غصه وی نو الله تعالیٰ به د ملائکو د رالیږلو په وجه د هغوی غصه سړهٔ وی۔ (مجاهدؒ، عکرمهؒ، ابو صالح مولی ام هانیؓ– المحرر الوجیز لابن عطیه ۱/۴۹۹)
(۲) فور کله جهت ته وائی۔ أَیْ مِنْ وِجْهَتِهِمْ هٰذِهٖ۔ یعنی د طرفه د دشمن نه راشی۔ (ابن عباسؓ، قتادهؒ، حسنؒ)
(۳) مِنْ فَوْرِهِمْ هٰذَا یَعْنِیْ مِنْ سَاعَتِهِمْ هٰذِهٖ۔ یعنی راشی تاسو ته په دغه ساعت کی یعنی په جلتئ سره راورسی نو د الله تعالیٰ مدد به هم تاسو ته په جلتئ راورسی۔ (تفسیر المنار، والقاسمی)
هٰذَا یُمْدِدْکُمْ : (۱) هٰذا اشاره ده قرب نصرت ته۔ یعنی دا نزدے دے مدد د الله تعالیٰ چه مدد به وکړی تاسو سره۔ (۲) یا اشاره ده ساعت ته یعنی که کافران په غصه کی راشی نو په دغه ساعت کی به تاسو سره ستاسو رب مدد وکړی۔
مُسَوِّمِیْنَ : أَیْ مُعْلِمِیْنَ بِعَلَامَةِ الْحَرْبِ۔ یعنی نشاندار به وی، په ځان به ئے د جنګ نښے لګولی وی چه پتکی به ئے وهلی وی، (مُعْلِمِیْنَ، مَجْزُوْزَةٌ أَذْنَابُ خَیْلِهِمْ وَنَوَاصِیْهَا، فِیْهَا الصُّوْفُ أَوِ الْعِهْنُ) (مجاهد– نقله الطبری)۔ یعنی نښه دار به وی چه د اسونو لکئ او د تندی ویښته به ئے پریکړے شوی وی او په هغوی باندے به وړئ وی)۔
(مُعْلِمِیْنَ عَلَامَةَ الشُّجْعَانِ) (تفسیر السعدی)۔ د بهادرانو نښے به ئے اچولی وی۔
د روایاتو نه معلومیږی چه په بدر کی ملائکو سپین پتکی وهلی وو، یا ئے د اسونو

غوړونو ته سپینے وړیٔ اغوستے وے، د عربو عادت به دا وو چه د ډیرے بهادریٔ خودلو دپاره به ئے په جنګ کی خپلو اسونو ته یا په خپل سر کی څه نښه کیخودله دے دپاره چه خلك ئے وپیژنی پدے کی به اشاره وه چه زهٔ څان دشمنانو ته ښکاره کوم او څان د هغوی نه پټ نهٔ ساتم دے دپاره چه زما مقابلے ته راوړاندے شی په خپله بهادریٔ به ئے ډیر اعتماد وو، یعنی دا ملائك به ډیر قوی او مضبوط او بهادر وی۔ (التحریر والتنویر)

| وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ إِلَّا بُشْرٰی لَکُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ |
|---|
| او نه دے ګرزولے دا (مدد) الله تعالیٰ مګر زیرے تاسو لره او دے دپاره چه مضبوط شی |
| قُلُوْبُکُمْ بِهٖ وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ الْعَزِیْزِ الْحَکِیْمِ ﴿١٢٦﴾ |
| زړونه ستاسو پدے سره او نهٔ دے مدد مګر د طرفه د الله نه دے چه غالبه، حکمتونو والا دے۔ |

**تفسیر**: یعنی د ملائکو رالیږل یا د ملائکو په ذریعه د امداد خبر د دوه مقصدونو دپاره وو (١) یو دا چه تاسو ته د مدد نه مخکی بشارت او زیرے درکړی چه دغه دے نصرت او مدد درروان دے (٢) او بل دا چه ستاسو د زړونو اضطراب او وارخطائی ختمه شی او زړونه مو مطمئن (مضبوط) شی او په داډه زړونو وجنګیږیٔ څکه چه څومره ملګری زیاتیږی د انسان زړه مضبوطیږی۔

ددے نه معلومیږی چه په اسبابو باندے اطمینان کول د توکل او د ایمان منافی نهٔ دی۔

او دا هم معلومه شوه چه: (بِالصَّبْرِ وَالتَّقْوٰی تُنَالُ الْبُشْرٰی) یعنی په صبر او تقویٰ اختیارولو سره زیری به ملاویږی۔

وَمَا النَّصْرُ : اُوس الله تعالیٰ ذهن سازی کوی چه دا مهٔ وایه چه مدد به ملائك کوی او ستا ذهن په ملائکو چرته جوړ نشی نو الله تعالیٰ فرمائی چه حقیقی مدد او فتح خو د الله تعالیٰ د طرفنه وی، الله تعالیٰ د هیڅ سبب محتاج نهٔ دے۔ او مطلب دا دے چه د مؤمن سړی زړه دے غیر الله ته نهٔ متوجه کیږی۔

النصر : نه مراد حقیقی مدد دے او ملائك او انسانان چه مدد کوی نو هغه مجازی او عارضی طریقے سره وی او هغه ظاهری اسباب دی، هغوی ته هم الله تعالیٰ طاقت ورکړے وی پدے وجه ظاهری مدد کوی۔

یا د نصر نه مراد غلبه او فتح ده دا معنیٰ پدے وجه کیږی چه څوك دا سوال ونکړی چه

مدد خو غیر الله هم کولے شی؟ نو جواب دا دے چه یو تن به په ظاهره کی مدد وکړی او لاس به چا سره واړوی او اسباب به استعمال کړی لیکن فتح او غلبه ورکول او په مدد کی تاثیر اچول صرف د الله تعالیٰ کار دے۔ نو هغه ته توجه او التجاء پکار ده ځکه چه هغه غالبه دے او د هغه په هرکار کی حکمتونه وی نو کله خپل نصرت او مدد د ملائکو په نزول سره کوی او کله ئے په نورو دنیاوی اسبابو سره۔

الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ : غالبه په دشمنانو او حکمت والا په غلبه او شکست ورکولو کی۔

| لِيَقْطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَوْ يَكْبِتَهُمْ |
|---|
| دے دپاره چه پریکړی یوه برخه د هغه کسانو نه چه کفرئے کړیدے یا به ذلیله کړی دوی |
| فَيَنقَلِبُوا خَائِبِينَ ﴿١٢٧﴾ |
| نو واپس به شی نا امیده۔ |

**تفسیر** : دا متعلق دے د (يُمْدِدْكُمْ) پورے۔ الله تعالیٰ تاسو سره په پنځه زره ملائکو مدد کوی دے دپاره چه د کافرانو یو طرف یعنی یوه ډله هلاکه کړی یا ئے ذلیله کړی او وے شرموی په قید کولو سره چه نا امیده بیرته ستانه شی ورنه الله تعالیٰ ته هیڅ مشکله نهٔ ده چه ټول په یو ځل هلاك کړی او تندر پرے نازل کړی۔

طَرَفًا : ټول نهٔ هلاکوی بلکه یوه حصه ترے هلاکه کړی دے دپاره چه نورو دپاره عبرت شی، او ایمان ته تیار شی۔

أَوْ يَكْبِتَهُمْ ۔ کبت (ذلیله کول) دلته په قید او جیل ته اچولو سره دے ځکه په دوی کی اویا کسان ونیولے شو او جیل ته واچولے شو۔ یا د شکست نه روستو د ذلت او رسوائی مونډلو سره۔ نو دلته (او) د تنویع دپاره دے یعنی څه کافران قتل کړی او څه شکست خوړلو سره ذلیله واپس شی یا قیدیان شی۔

یعنی الله تعالیٰ غواړی چه کافران د قتل او قید سزا اُوخوری یا د شکست نه روستو ذلت او رسوائی ته ورسیږی۔

فَيَنقَلِبُوا : یعنی دا ژوندی کافران به واپس شی۔

خَائِبِينَ : خائب هغه چا ته وائی چه مراد ته ونهٔ رسیږی، خيبة، نا امیده کیدل او مراد ته نهٔ رسیدل دی۔ ﴿ وَقَدْ خَابَ مَنْ دَسَّاهَا ﴾ لکه ابوجهل وئیلی وو چه مونږ به مسلمانان وژنو

او څه به قیدیان کوو او د دوی شر به ختموو لکه ابو جهل خان سره زنانه راوستې وې چه دا به کډه وو او اوښان به ذبح کوو او په عربو کې به د خپلې پهلوانۍ شهرت کوو. لیکن دې مراد ته ونهٔ رسیدل.

| لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ |
|---|
| نشته تا لره د کار د دوی نه هیڅ اختیار تر دې پورې چه الله به مهربانی وکړی |
| عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ ﴿۱۲۸﴾ |
| په دوی (په ایمان راوړو سره) یا به عذاب ورکړی دوی ته نو یقیناً دوی ظالمان دی. |

**تفسیر**: دا بله ذهن سازی ده چه اختیار د رسول الله ﷺ هم نشته بلکه ټول واک د الله تعالیٰ دې. او دا په طریقه د جمله معترضه سره وئیلې شویده او مقصد پدې کې نبی کریم ﷺ ته دا خبرداری ورکول دی چه چرته د رسول الله ﷺ په دماغو کې دا خبره رانشی چه په بعض کارونو کې به زما تاثیر هم وی نو ددې دپاره چه د هغه په توحید کې فرق رانشی نو وې فرمایل چه ددې بندګانو د کارونو نه ستا اختیار نشته هرڅنګه چه وی، تهٔ خو یو بشر یې، ستا کار صرف د الله تعالیٰ د طرفنه خلك پرول دی او د هغوی د بخښلو یا عذاب ورکولو معامله د الله تعالیٰ په اختیار کې ده. او پدې جمله کې د نبی کریم ﷺ د هغوی په کفر باندې د خفګان آسانول دی چه د دوی په کفر دومره خفګان مهٔ کوه، بلکه د دوی هدایت او عذاب الله تعالیٰ سپارلې شویدې که هغه غواړی هدایت به ورته وکړی او د توبې توفیق به ورکړی او که غواړی عذاب به ورکړی ځکه چه دوی مستحق د عذاب دی ظلم او شرك ئې کړیدې. (قاسمیؒ)

## شان نزولونه

(۱) دا آیت د اُحد د غزا نه روستو نازل شویدې. د بنو لحیان نه څه مشرکان راغلل او وې ویل چه زمونږ قوم ایمان راوړیدې مونږ سره څه کسان ولیږه چه هغوی ته دین بیان کړی نو نبی کریم ﷺ ورته اویا کسه قاریان ورکړل، کله چه بنو لحیان د هذیل قبیلې علاقې ته ورسیدل نو هغوی پسې راووتل (ددوی په اشاره باندې) او ددې صحابه کرامو مقابله ئې شروع کړه او ټول صحابه کرام ئې شهیدان کړل صرف یو تن ترې بچ شو چه هغه اُوښان څرول. نبی کریم ﷺ ته چه د هغوی خبر راورسیدو نو ډیر زیات خفه شو او په پنځه واړه مونځونو کې

به ئې د آخري رکعت د رکوع نه بعد د هغوی پسې قنوت نازله وېل (یعني هغوی ته به ئې ښېرې کولې) (اَللّٰهُمَّ الْعَنْ رِعْلًا وَذَكْوَانَ، وَعُصَيَّةَ عَصَتِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ) - اے الله! په رِعل او ذکوان قبیلو لعنت وکړه او په عصیه قبیلې چه د الله او د رسول مخالفت ئې وکړو- یو میاشت پورې ئې دا ښېرې وکړې نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو چه نورې ښېرې مهٔ کوه، ستا اختیار نشته چه څوك هدایت ته راولې او یا د توبې توفیق ورکړې- نو الله تعالیٰ ذهن سازي کوي چه محمد رسول الله ﷺ صرف مُبلغ دے د هغه په کائناتو کې څه اختیار نشته چه چا ته هدایت وکړي یا څوك گمراه کړي، یا څوك ووژني یا څوك ژوندي کړي-

امام بخاري رحمه الله د ابو هریره ؓ نه روایت کړیدے چه نبي کریم ﷺ په بعض ورځو کې د سحر په مانځه کې وئیل چه اے الله! په فلانئ او فلانئ د عربو په قبیلې باندې لعنت راولیږه، نو دا آیت نازل شو چه ﴿لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ﴾-

(۲) د ابن عمر رضی الله عنهما نه بخاريؒ او احمدؒ روایت کړیدے چه نبي کریم ﷺ د فجر په دویم رکعت کې په حارث بن هشام او سهیل بن عمرو او صفوان بن امیه باندې لعنت لیږلو، نو دا آیت نازل شو- د بخاريؒ په روایت کې دي چه دے خلقو ددے نه روستو توبه اُوویستله او الله تعالیٰ د هغوی توبه قبوله کړه-

(۳) د انس بن مالك ؓ نه امام احمدؒ روایت کړیدے چه کله په جنگ اُحد کې نبي ﷺ زخمي شو نو وے وئیل چه هغه قوم به څنګه کامیاب شي چه هغوی خپل نبي سره داسې اُوکړل نو دا آیت نازل شو-

د امام ابویوسفؒ نه نقل دي چه قنوت نازله منسوخ شویدے پدے آیت سره لیکن دا خبره کمزورې ده، وجه دا ده چه دا منع صرف د دغه خاص قوم په باره کې وه چه الله تعالیٰ ورته د ایمان توفیق ورکولو- څکه چه نبي کریم ﷺ قنوتِ نازله ددے آیت نه روستو هم وئیلے دے، او صحابه کرامو پرې عمل کړیدے تر نن ورځې پورې په مسلمانانو کې راروان دے-

## تبصره:

کیدے شي چه دا آیت بار بار په هره واقعه کې نازل شوے وي یا دا چه په یوه واقعه کې نازل شویدے لیکن په نورو واقعاتو صادقیدو نو صحابه کرامؓ په هره یوه باندې د شان نزول اطلاق کړیدے- (تفسیر القاسمي ۱۳۶/۲)-

اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ : (او) په معنیٰ د (اِلیٰ اَنْ) سره دے- یعني ستا اختیار نشته چه ته دوی ته ښېرې وکړې تردے چه الله تعالیٰ به پرې توبه وباسي- نو مطلب دا شو چه اے زما نبي!

دوی ته بښیرے مهٔ کوه دے دپاره چه ستا ښیرے ضائع لاړے نشي. ځکه چه دوی ته الله تعالیٰ د توبې توفیق ورکوی. او ددے نه دا فائده معلومه شوه چه کله یو مصیبت راشي نو هغه الله تعالیٰ ته سپارل پکار دی ځکه چه په هغے کی د الله تعالیٰ پټ رازونه وی.

أَوْ يَتُوبَ: دا منصوب دے په (أَنْ) مقدر سره او دا عطف دے په (الامر) باندے یا په (شیء) باندے تقدیر د عبارت داسے دے: (لَيْسَ لَكَ مِنْ أَمْرِهِمْ شَيْءٌ أَوْ مِنَ التَّوْبَةِ عَلَيْهِمْ أَوْ مِنْ تَعْذِيبِهِمْ). یعنی نشته ستا دپاره ددوی د کار نه اختیار یا په دوی باندے د توبې ویستلو نه یا د دوی د عذاب ورکولو نه) یا تقدیر داسے دے: (لَيْسَ لَكَ مِنْ أَمْرِهِمْ شَيْءٌ أَوِ التَّوْبَةِ عَلَيْهِمْ أَوْ تَعْذِيبِهِمْ). نشته ستا د دوی کار نه هیڅ اختیار او نشته ستا دپاره اختیار د توبې ویستلو په دوی باندے یا د عذاب ورکول دوی ته).

| وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ |
|---|
| او خاص د الله په اختیار کی دی هغه څه چه په آسمانونو کی دی او هغه څه چه په زمکه کی دی، |
| يَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَشَاءُ وَاللّٰهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٢٩﴾ |
| بخنه کوی چا له چه وغواړی او عذاب ورکوی چا له چه وغواړی او الله بخنه کونکے رحم کونکے دے |

**تفسیر**: اُوس د مخکنی مضمون تائید کوی چه د آسمانونو او د زمکے د هر شی مالك الله تعالیٰ دے، هغه چه چا له غواړی معاف کوی او چا له چه غواړی عذاب ورکوی. هیڅ بنده ته که نبی مرسل وی او که عزتمند ولی وی دا اختیار حاصل نهٔ دے چه د چا د قسمت فیصله اُوکړی او چا لره جنت ته داخل کړی او چا لره جهنم ته.

نو پدے آیت کی د الله تعالیٰ د کائناتو د مالکیت بیان دے او دا چه مغفرت او عذاب د الله په مشیت سره دی او پدے کی د بندگانو هیڅ اختیار نشته، نو دا یو ښکلے عقیدوی تربیت دے.

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا الرِّبَا أَضْعَافًا مُضَاعَفَةً وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ |
|---|
| اے ایمان والو! مهٔ خورئ سود لره دوچنده دوچنده او ویریږئ د الله نه دے دپاره چه تاسو |
| تُفْلِحُونَ ﴿١٣٠﴾ وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ ﴿١٣١﴾ |
| کامیاب شئ. او ویریږئ د اُور نه هغه چه تیار کړے شویدے دپاره د کافرانو. |

**تفسير:** مضمون

ددے آیت نه روستو الله تعالیٰ یو دیرش خبرے بیان کړیدی چه دے ته زمونږ مشائخ اسباب د دفع الهزیمة وائي۔ (یعني د شکست د دفع کیدو اسباب)۔اے مؤمنانو ! دا اسباب اختیار کړئ نو د دشمن په مقابله کې به نهٔ ذلیله کیږئ، پدے اسبابو کې بعض اوامر دي او بعض نواهي دي او بعض صفات دي۔ لکه د مثال په طور (اتقوا الله) (اتقوا النار) (اطيعوا الله) (وسارعوا) دغه شان نور واخله او څه نواهي دي لکه (لا تأكلوا الربا) (ولا تهنوا ولا تحزنوا) او څه صفات دي لکه "(ينفقون في السراء) (الكاظمين الغيظ) (العافين عن الناس) وغيره، دا به تر (١٨٠) پورے بيانيږي۔ ددے نه بل تعبير داسے کولے شي : ددے ځاى نه روستو الله تعالیٰ یو دیرش آداب التربية لهذه الامة بيانوي يعنى ددے امت د تربيت دپاره آداب بيانوي او دا يواځے د جهاد سره نهٔ لګي بلکه دا هغه آداب دي چه بنده پرے جنت ته داخليږي، د الله تعالیٰ ولي پرے جوړيږي، په دشمن باندے د غلبے اسباب هم دي او د اصلاح د معاشرے اسباب هم دي۔ او دا ډير مزيدار اسباب دي او ښائسته ذهن سازياني دي لکه ځاى په ځاى به هغه بيانيږي۔ دا اجمالي حاصل شو۔

د يوے رکوع حاصل دا دے چه اول الله تعالیٰ د سود د خوړلو نه منع کړيده بيا ئے حکم کړيدے د اُور نه په يره کولو باندے، او د الله تعالیٰ او د رسول په اطاعت باندے او په مسارعه الى المغفرة باندے او د مؤمنانو صفات ئے بيان کړيدى چه دا ځان کې پيدا کړئ، دنيا او آخرت به مو کامياب شي۔ (قد خلت) کې مؤمنانو ته زيرے دے او تخويف هم پکې پروت دے۔ او (هذا بيان) کې ترغيب الى القرآن دے۔ او (ولا تهنوا) کې بل قانون دے چه وهن او حزن به ځان کې نهٔ پيدا کوئ ځکه پدے سره بنده د هر خير نه محروميږي بيا به جهاد او نور نيک عملونه نشئ کولے، (ان يمسسکم) کې په احد غزا کې چه مسلمانانو ته کوم تکليف رسيدلے وو په هغے مسلمانان غمژن وو نو الله تعالیٰ د هغے علتونه او حکمتونه بيانوي او ددے حکمتونو نه فائدى راوځي اوله دا چه دشمن هم مغلوبه شويدے او هغه ته هم تکليف رسيدلے۔ (وليعلم) پدے سره مؤمنان راښکاره کول دي او شهداء جوړول دي او تمحيص الذنوب (ګناهونه صفا کول) او کافران هلاکول او امتحان کول۔ (ولقد كنتم) کې وائي تاسو د شهادت تمنى کړيده نو چه اُوس راغے خفګان به نهٔ کوئ۔ دا حکمتونه دي په هزيمت د اُحد کې او تسلياني دي مسلمانانو ته او دننه پکې قواعد هم پراته دي او د امتحانانو فوائد هم پکې ذکر کول دي۔

## ربط او مناسبت :

۱- الله تعالیٰ تربیت بیانوی نو یو د تربیتونو نه دا ده چه اے ایمان والو ! د سود نه به ځان ساتئ. ۲-ابو حیان وائی : ددے (لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً) سره تعلق دے یعنی یهودیان رازدار مهٔ جوړوئ، د هغوی سره تعلقات مهٔ کوئ او یو د تعلقاتو نه سود کول دی ځکه چه سود هم د یهودیانو کار دے. نو دا یو قسم د یهودو سره رازداری ده او لکه څنګه چه په رازدارئ د یهودو کی ضرر دے نو دغه شان په سود کی هم زیات ضرر دے نو د دواړو نه ځان وساتئ (وکذا فی المنار ۱۰۱/٤)

۳- مخکی د نصرت بیان وشو چه هغه په تقویٰ او صبر سره حاصلیږی نو اوس اهم خصلتونه د تقویٰ ذکر کوی چه پدے راتلونکو حکمونو عمل وکړئ او ددے نو اهیو نه ځان وساتئ نو مدد به درته ملاویږی نو اوله نهی ئے د ربا نه وکړه. (تفسیر السعدی).

٤- په غزا د اُحد کی شکست بیان شو نو اوس اسباب د دفع د شکست بیانوی یعنی سود مهٔ کوئ نو شکست به نهٔ راځی او مدد به راځی ځکه چه حرامو سره شکست لازم دے. (قرطبی)

٥- د احد د غزا په بیان کی مسلمانانو ته وویل شو چه بی صبری او د تقویٰ کمزوری سره شکست راځی نو د ټولو مسلمانانو ذهنونه صبر او تقویٰ دپاره ښه اماده شو نو اُوس د بحث په مینځ کی څه اوامر او نواهی ذکر کوی اشاره کوی چه صبر او تقویٰ یواځی په جنګونو کی ضروری نهٔ ده بلکه دا دواړه په هره غزا کی ضروری دی برابره ده که هغه غزا د انسی شیطانانو سره وی او که د جنی نو پکار ده چه په ټولو معاملاتو کی د حرامخورئ نه صبر او تقویٰ وکړئ.

٦- اصل کی انفاق ته ترغیب ورکول دی نو د هغے په مقدمه کی د ربا (سود) نه منع وکړه چه سود مهٔ کوئ او انفاق وکړئ.

## شان نزول

ځینی مفسرین لیکی چه دا آیتونه د یو صحابی (عمرو بن اُقَیش رضی الله عنه) په باره کی نازل شوی وو چه د هغه په جاهلیت زمانه کی په خلکو باندے سودونه وو، مسلمانانو ورته د اسلام دعوت ورکړو نو هغه به ویل چه اسلام نهٔ راوړم ځکه بیا مے سودونه ختمیږی کله چه د اُحد غزا شروع شوه نو دهٔ تپوس وکړو چه زما د ترونو ځامن چرته دی ؟

خلکو ورته وویل : اُحد ته تلی دی، بیائے ویل فلانے څه شو؟ هغه هم په اُحد کی دے، بیائے وویل فلانے څه شو ؟ وویل شو : اُحد کی دے نو دهٔ زغره واغوستنه او په اس باندے سور شو او هغوی طرفته روان شو کله چه مسلمانانو ولیدو ورته ئے وویل : اے عَمْره! زمونږ نه وراندے شه (نهٔ مشرکانو ئے زمونږ سره جنګ مهٔ کوه) نو دهٔ وویل : (اِنِّیْ آمَنْتُ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ) ما په الله او د هغه په رسول ایمان راوړے نو دهٔ جنګ وکړو تردے چه زخمی شو او کورته زخمی راوړے شو او بیا روستو شهید شو نو جنتی شو. ابو هریره ﷺ به تپوس کولو چه دا کوم صحابیؓ دے چه د الله تعالیٰ دپاره ئے یو مونځ هم نهٔ دے کړے او جنت ته داخل شویدے؟ بیا به ئے ویل چه دا عمرو بن اُقَیْش دے چه د بنی عبد الاشهل قبیلے ورور دے. (ابو داود کتاب الجهاد ۳۷، باب فیمن یسلم ویقتل مکانه حدیث رقم : ۲۰۳۷) محاسن التاویل للقاسمی ۲/۱۳۸) . او ددهٔ په شان حالت د اُصَیْرِم رضی الله عنه هم وو.

کیدے شی چه د دغه شخص په باره کی هم نازل وی او حکم ئے عام دے چه الله تعالیٰ پدے کی د معاشرے د صفائی اسباب بیانوی چه سودونه مهٔ کوئ ځکه چه څوك سودونه کوی هغه ظالمان دی او د هغوی سره د الله تعالیٰ مدد نهٔ وی. او ددے شخص دا واقعه سبب د ربط هم شوه.

اَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً : دوچنده دوچنده، یا زیات په چندونو. یا په چندونو چندونو. او دلته د سود په چندونو چندونو خوړلو نه منع وشوه او په اصل کی د نفس سود کولو نه منع دهٔ که لږ وی او که ډیر په چندونو سره وی ځکه چه دا د عربئ قاعده ده چه کله یو نهی راشی نو دا متوجه وی اصل حکم او صفت ته، او قید ته متوجه نهٔ وی لکه عرب وائی : لَا تَزْنِ بِحَلِيْلَةِ جَارِكَ . د خپل ګاونډی د ښځے سره زنا مهٔ کوه، مطلب دا چه بیخی زنا مهٔ کوه که د هرچا سره وی. او دا قید د زیات قباحت دپاره لګیدلے دے او مطلب ئے دا دے چه نفس سود اخستل حرام دی او بیا په چندونو اخستل خو په طریق اولیٰ حرام دی ځکه چه پدے کی زیات ظلم دے.

د حافظ ابن کثیر رحمه الله د وینا مطابق دا د جاهلیت د عربو عادت او رواج مطابق وئیل شویدے چه هغوی به چاته قرض ورکړو نو کله چه به نیټه پوره کیده نو قرض والا به قرض اخستونکی ته وویل چه ما ته قرض راکوے او که په قرض کی زیادت کوے او زهٔ به په نیټه کی زیادت وکړم نو که هغه پدے رضا شو نو څه تاکلے وخت به ئے ورته زیات کړو چه د هغے په اندازه به ئے ترے د خپلے سرمایه نه زیات قرض اخستو او دغه سلسله به نهٔ

ختمیده کله کله به دغه زیاتونو دومره همیشوالے وکړو چه سودونه به د اصلی سود (اولنی سود) نه څو چندونو ته ورسیدل او کله کله به د اصلی سرمایه نه هم څو چنده زیات شو۔ (تفسیر ابن کثیر)۔

صاحب د تفسیر المنار (محمد رشید بن علی رضاؒ) فرمائی : دا قسم سود ډیر لوی ضرر دے او دا د هر عاقل په نیز مذموم دے بلکه دا د هغه امتونو په قوانینو کی هم ممنوع دے چه هغه نور اقسام د سود روا ګڼړی۔

حافظ ابن قیم رحمه الله په «اعلام الموقعین» کی لیکی : سود دوه قسمه دے یو جلی (ښکاره) دے او بل خفی (پټ) دے، ښکاره سود حرام شو ځکه چه پدے کی لوی ضرر دے او خفی پدے وجه حرام دے چه دا وسیله ده حرامو دپاره، اول سود هغه ربا النسیئه وه او دا هغه سود دے چه جاهلیت والو به کولو چه خپل دین (قرض) به ئے روستو کړو او د هغے په بدله کی به ئے مال زیات اخستو او څومره چه به ئے قرض روستو کولو نو په مال کی به ئے زیادت کولو تردے چه د سلو روپو نه به زرګونه روپئ جوړے شوے او دا کار به اکثر غریب سړی کولو چه محتاج به وو کله چه به دهٔ ولیدل چه که مالك ته څه سود ومنی نو ددهٔ نه به مطالبه روستو کړی نو دا کار به ئے کولو او د یو وخت نه به ئے بل وخت ته دیکه کړو نو پدے کی به په دهٔ باندے ضرر او مصیبت سخت شو او قرض به پرے دومره راغلو چه ددهٔ ټول موجود څیزونه به ئے غرق کړل، دهٔ به پکی څه نهٔ کتل او مال به پرے زیات راتلو او سود خور به ددے ورور مال په باطل سره خوړلو نو پدے ورور باندے به ئے سخت ضرر راتلو نو الله ارحم الراحمین په خپل رحمت او حکمت او احسان سره سود حرام کړو او ددے په خوړونکی ئے لعنت وویلو، او دهٔ ته ئے د جنګ اعلان وکړو او داسے وعید په هیڅ یوه کبیره کی نهٔ دے راغلے پدے وجه دا د ټولو کبیره ګناهونو نه لویه ګناه ده۔ (المنار ۳/۹۵)

**أَضْعَافًا** : دا حال دے د (الربا) نه یعنی په داسے حال کی چه دا سود چندونه چندونه وی۔

**مُضَاعَفَةً** : دا یا تاکید د ماقبل (اضعافا) دے، یا مطلب دا دے چه دغه چندونه به داسے وو چه تضعیف (زیادت) به ئے قبلولو یعنی اول کی به قرض څو چندونه شو بیا به دغه چندونو نه نور چندونه جوړ شو۔ (التحریر والتنویر) یعنی کله چه به د قرض وخت پوره شو او ور به ئے نهٔ کړو نو دوچنده به ئے کړو تر یوے نیټے پورے بیا چه به هغه وخت راغلو او قرض به ئے ورنهٔ کړو نو څلور چنده به ئے کړو او نوره نیټه به ئے ورکړه۔

**وَاتَّقُوا اللَّهَ** : یعنی د الله تعالیٰ نه یره وکړئ په هغه کارونو کی چه تاسو ترے منع کیدے

شيۍ.

وَاتَّقُوا النَّارَ : د اُور نه يره يوه دا ده چه بنده اُور رایاد کړي او په زړه کې ئې يره پيدا شي او د ستر کو نه ئې اُوښکے اُوبهيږي چه څه به کوو، دا هم ښه صفت دے خو دا يواځے مقصود نۀ دے ځکه چه دلته د (خوف او خشيت) لفظ نۀ دے ذکر بلکه تقویٰ ذکر ده نو تقوىٰ ځان بچ کول دي د اُور نه په نيك اعمالو او په پرېښودو د ګناهونو سره. يعنې دا راتلونکې اعمال وکړئ او ګناهونه او مخالفتونه پريدئ نو د اُور نه به بچ شئ. او دا دليل دے چه سود کول سبب د اُور دے. او په حديث کې دي : (وَمَنْ نَبَتَ لَحْمُهُ مِنَ السُّحْتِ فَالنَّارُ أَوْلَىٰ بِهِ) (طبرانی فی الکبير: ١١٠٥٣) . د چا غوښه چه د حرامو نه جوړه شي نو اُور په هغه باندے ډير لائق دے.

| وَأَطِيعُوا اللهَ وَالرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿١٣٢﴾ وَسَارِعُوا |
|---|
| او تابعداری کوئ د الله تعالیٰ او د رسول دے دپاره چه په تاسو رحم وکړے شي. او جلتي کوئ |
| إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ |
| بخښنے ته د طرفه د رب ستاسو نه او جنت ته چه پلنوالے د هغے آسمانونه دي او زمکه ده، |
| أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ ﴿١٣٣﴾ الَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ |
| تيار کړے شوے دے دپاره د متقيانو. هغه کسان چه خرچ کوي په خوشحالئ او په تکليف کې |
| وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴿١٣٤﴾ |
| او خوړونکي د غصے دي او معافي کونکي دي خلکو ته او الله تعالیٰ مينه کوي د احسان کونکو سره. |

**تفسير** : اُوس وائي چه د اُور نه د بچ کيدو يو سبب دا دے چه د الله تعالیٰ او د رسول الله ﷺ تابعدارئ وکړئ چه هغه درباندے رحم وکړي.

وَسَارِعُوا : پدے آيت کريمه کې الله تعالیٰ د متقيانو لس صفتونه بيان کړيدي چه دا د کاميابئ صفات دي او پدے سره جنت او فتح او نصرت ملاويږي. او دا ټول د جماعت مسلمه تربيت دے.

وَسَارِعُوا : د مسارعے معنیٰ مخکې ذکر شوه چه تقديم الاهم فالاهم ته وائي. اهم شے په غير اهم باندے مخکې کول. يعنې نور کارونه پريدئ او دا راواخلئ او دا د الله تعالیٰ حکم

دي مونږ ته چه د مغفرت کارونو ته به منډه وهو، اُوس دے هر انسان ځان سره وګوري چه د هغه منډه څو مره ده؟

د الله تعالیٰ مغفرت ته څنګه منډه وهلے شي؟

دلته مراد سبب د مغفرت دے او اسباب د مغفرت ډیر ځیزونه دي نو څه مفسرینو تخصیصات کړي او چا تعمیمات.

(۱) سیدنا انس بن مالك ﷺ فرمائي: تکبیر تحریمه مراد ده یعني دا درنه فوت نهٔ شي ځکه چه دا سبب د مغفرت دے.

(۲) أَدَاءُ الْفَرَائِضِ۔ فرضي حکمونه ادا کړئ۔ (عثمان بن عفان رضی الله عنه)۔

(۳) ځیني وائي، جهاد مراد دے (٤) یا انفاق مراد دے۔ (٥) علامه قاسميؒ لیکي: أَلْإِسْتِغْفَارُ وَالتَّوْبَةُ وَالْأَعْمَالُ الصَّالِحَةُ۔ (استغفار او توبه او نیك عملونو ته منډه وهل مراد دي)۔ دا ټولے خبرے صحیح دي ځکه چه هر نیك عمل د مغفرت سبب دے.

بیا سورة الحدید (۲۱) آیت کی ﴿عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَاءِ﴾ لفظ راغلے دے ځکه چه دلته د ډیرے اُوچتے درجے متقیان بیانیږي نو کاف ئے ترے لرے کړیدے او هلته د عامو مؤمنانو دپاره جنت ذکر دے نو ځکه ئے کاف پکی راوړیدے.

سوال او جواب

که څوك ووائي چه کله جنت دومره پراخه دے نو دوزخ چرته دے سره ددے نه چه هغه هم په عالَم کی موجود دے؟ جواب دا دے چه دا سوال بعینه هرقل بادشاه په کاغذ کی رسول الله ﷺ ته رالیږلے وو چه (إِنَّكَ تَدْعُوْ إِلَى جَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمٰوٰتُ وَالْأَرْضُ فَأَيْنَ النَّارُ؟)۔ ته داسے جنت ته دعوت ورکوے چه د هغے فراخي د آسمانونو او د زمکے د پلنوالی په شان ده نو بیا اُور چرته لاړو؟ معاویه رضی الله عنه دا خط رسول الله ﷺ ته ولوستلو نو نبی کریم ﷺ جواب ورکړو چه ((سُبْحَانَ اللّٰهِ ! فَأَيْنَ اللَّيْلُ إِذَا جَاءَ النَّهَارُ؟)) ۔ تعجب دے (په تا) شپه چرته ځي کله چه ورځ راشي؟! (مسند احمد ٥/٣١٧) رقم (١٦٧٣٩)۔

یعني کله چه د شپے د موجودیدو نه انکار نهٔ کوے سره ددے نه چه کیفیت ئے درته معلوم نهٔ دے چه په کوم ځای کی به وي نو د جنت او جهنم د موجود والی نه به څنګه انکار وشي، یعني یو ځای کی ئے الله تعالیٰ ساتي او بندګانو ته د هغے حقیقت نهٔ دے معلوم خو منل ئے پکار دي۔ مثلاً شپه په یو طرف کی وي او ورځ په بل طرف کی نو دغه شان جنت بره طرفته دے او جهنم اسفل السافلین د زمکے نه لاندے دے۔ او دا د عمر فاروق رضی الله

عنه جواب هم وو چه يو يهودي ته ئې کړے وو نو هغه يهودي ورته وويل چه تا خو د تورات په شان خبره وکړه۔ ددے مثال په خارج کې داسے دے چه زمونږ وړه سترګه ده او لوي آسمانونه او غرونه ټول پکې راځي نو الله تعالیٰ هم پدے قادر دے چه دا فراخه جنت د آسمانونو دپاسه راولي۔

## د جنت د عرض څه معنیٰ ده ؟

دلته د جنت فراخي د آسمانونو او زمکو برابر خودلے شويده۔ ځينو مفسرينو ويلي دي چه دا د جنت حقيقي فراخي ده او ددے ذکر دلته پدے وجه راغلے دے چه معلومه شي چه ددے طول (اُوږدوالے) به ددے د عرض (پلنوالي) نه يقيناً زيات وي چه د هغے علم الله تعالیٰ ته دے۔ دويم قول دا دے چه دلته مقصود صرف دا بيانول دي چه د الله تعالیٰ جنت به زمونږ د ګمان نه ډير زيات فراخه وي۔

د آسمانونو او د زمکے نه د جنت پلنوالے څنګه غټ دے ؟ وجه دا ده چه ددے دپاسه د الله تعالیٰ عرش دے او اوه آسمانونه د کرسئ په مقابله کې داسي دي لکه بنګړے او کرسئ د عرش په مقابله کې داسے ده لکه د بنګړي په مقدار، څکه عرش د جنت چهت دے نو فکر وکړه چه دغه عرش چه د جنت دپاسه پروت وي نو دا به څومره لوي وي؟ او آسمانونه او زمکه ئې په مثال کې څکه راوړيدي چه ددے نه په مخلوقاتو کې لوي شے بل نۀ ښکاره کيږي، نو جنت ډير لوي دے، سل درجې پکې دي، د هرے دواړو درجو په مابين کې دومره مسافه ده لکه د آسمان او د زمکے ترمينځ نو جنت څومره فراخه شو۔ اللهم لا تحرمنا منها برحمتك۔

## السراء والضراء څه معنیٰ؟

مفسرينو ددے ډير تفسيرونه کړيدي (۱) ځيني وائي : السراء والضراء (د خوشحالئ او خفګان) دواړه حالتونه مراد دي۔ (۲) يا صحت او مرض مراد دے (۳) يا سراء هغه حالت دے چه انسان مال په خپلو ملګرو او اولادو باندے لګوي او ضراء دا چه د دشمنانو په مقابله کې ئې لګوي۔ (٤) يا سراء هغه دے چه چا ته مال هديه کړي يا ميلمه له ميلمستيا ورکړي او ضراء هغه دے چه په اهل الضر (تکليف زده خلکو) باندے ئې ولګوي۔(٥) ځيني وائي : سراء د فراخئ او مالدارئ حالت او ضراء د تکليف او غريبئ حالت ته وائي۔

(٦) عبد الله بن عباس رضي الله عنهما جامع تفسير دا کړيدے چه سراء او ضراء د آسانئ

او سختئ دوه حالتونه دي مطلب دا چه متقيان په هيڅ حال کې د الله تعالیٰ دپاره د مال لګولو نه لاس نۀ اخلي که صدقه ئې لږه وي هم څه باك نشته مګر اخلاص به ئې ډير وي۔ او آيت دې ټولو ته شامل دے۔ (تفسير قرطبي ٤/٢٠٦).

پدے کې اشاره وه هغه مؤمنانو ته چه په اُحد کې زخميان شوي وو او مالونه ئې لګيدلي وو، مسکينان شوي وو نو الله فرمائي چه سستي به نۀ کوئ اُوس به هم مال لګوئ۔

وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ : كظم الغيظ۔ غصه تيرولو او خوړلو ته وائي۔ دا صفت ئې دلته راوړو پدے کې حکمت (والله اعلم) دا دے چه په اُحد کې د ځينې ملګرو نه د رسول الله ﷺ د حکم مخالفت وشو نو ګمان دا دے خبرے وو چه رسول الله ﷺ به هم هغوی ته غصه وو او نور مسلمانان به هم غصه وو چه د دوی دلاسه په مونږ شکست راغے نو الله فرمائي چه غصه به خورئ، کنټرول والا به يئ او بيا دا عام قانون دے، مؤمن به هر وخت غصه خوري۔

## د غصي د زغملو فضيلت

رسول الله ﷺ فرمائي : [مَنْ كَظَمَ غَيْظًا وَهُوَ قَادِرٌ عَلَى أَنْ يُنْفِذَهُ دَعَاهُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رُؤُوسِ الْخَلَائِقِ حَتَّى يُخَيِّرَهُ مِنْ أَيِّ الْحُورِ شَاءَ] (سنن ابی داود ٢/٣٠٣)۔ څوك چه غصه تيره کړه او دے قادر وو د هغے په نافذ کولو نو الله تعالیٰ به ئې د قيامت په ورځ د ټولو خلکو مخامخ راوغواړي تردے چه اختيار به ورکړي چه کومه حوره ئې خوښه ده (چه ورئې کړي)۔

او په يو بل روايت کې دي : [وَمَنْ كَظَمَ غَيْظَهُ وَلَوْ شَاءَ أَنْ يُمْضِيَهُ أَمْضَاهُ، مَلَأَ اللَّهُ قَلْبَهُ رَجَاءً يَوْمَ الْقِيَامَةِ] (الطبراني الكبير، الصحيحة: ٩٠٦) ۔ او څوك چه خپله غصه وزغمله او که دا ئې وغواړي چه نافذه ئې کړي نافذه کولے ئې شي، الله تعالیٰ به د قيامت په ورځ ددۀ زړه د اميد (او خيرونو او امن) نه ډك کړي۔

بيا ددے درے واړو (کظم، او عفو او احسان) صفاتو مصداق او معناګاني ديو اثر نه معلوميږي هغه دا چه مَيْمُون بن مهران ته خپلے وينځے د ګرمے ښوروا نه ډکه کاسه راوړه او د هغه سره ميلمانه ناست وو نو هغه وخويده او کاسه په هغه باندے توی شوه نو ميمونؒ غصه شو او اراده ئې وکړه چه هغه ووهي نو هغے ورته دا آيت ولوستو او ورته ئې وويل : [يَا مَوْلَايَ، اِسْتَعْمِلْ قَوْلَ اللَّهِ: وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ] ۔ اے زما مولیٰ! پدے قول د الله تعالیٰ عمل وکړه چه مؤمنان هغه خلك دي چه غصه خوري۔ نو هغه وويل : [قَدْ فَعَلْتُ]۔

پدے مے عمل وکړو، خپله غصه مے وخوړله. بیا هغے وویل : [ اِسْتَعْمِلْ مَا بَعْدَهٗ : وَالْعَافِیْنَ عَنِ النَّاسِ ] په روستو جمله هم عمل کړه چه خلکو ته معافی کوی. هغه وویل : [ قَدْ عَفَوْتُ عَنْكِ ]. ما درته معافی هم وکړه. هغے وویل : ﴿ وَاللّٰهُ یُحِبُّ الْمُحْسِنِیْنَ ﴾ الله د احسان کونکو سره مینه کوی. نو میمون وویل : [ قَدْ اَحْسَنْتُ اِلَیْكِ فَاَنْتِ حُرَّةٌ لِوَجْهِ اللّٰهِ تَعَالٰی ) . ما تا سره احسان وکړو، خه ته د الله دپاره آزاده شوے) او دغه شان قصه د احنف بن قیسؒ سره هم راغلے وه. (القرطبی ٤/٢٠٦).

نو فرق داشو چه اول به غصه وزغمی خه به ورته نهٔ وائی، سزا به نهٔ ورکوی. او عفو دیته وائی چه په زړه کی به ورسره کینه نهٔ ساتی، بلکه زړه به ورته سپین کړی او (وَاللّٰهُ یُحِبُّ الْمُحْسِنِیْنَ) دا چه روستو پسے احسان وکړه. او دا خبرے په خولے آسانی دی لیکن په عمل کی راوستل ئے ډیر زور غواړی، په سړی باندے چه کله دا حالت راشی نو بیا ډیر تاویلات کوی، او خپله دشمنی دین طرفته اړوی وائی چه فلانی مونځ نهٔ کوی، یا دوکه کوی یا دروغ وائی نو زما ورسره د دین د وجه نه دشمنی ده. اُوسه پورے ئے ورسره د دین د وجه نه دشمنی نهٔ کوله خو چه کله ئے دهٔ ته نقصان ورسولو نو بیا په مینځ کی دین راننباسی او حال دا چه مقصد ئے خپل زړه یخول وی. او دا کار د آخرت په ډیر استحضار سره کیږی.

بیا انفاق ئے مخکی راوړو ځکه چه دا بل ته فائده ورکول دی او په کظم الغیظ او عفو عن الناس کی د بل نه ضرر دفع کول دی او (وَاللّٰهُ یُحِبُّ الْمُحْسِنِیْنَ) دواړو سره لګی.

| وَالَّذِیْنَ اِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً اَوْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا |
|---|
| او هغه کسان دی چه کله وکړی بی حیائی یا ظلم وکړی په ځانونو خپلو باندے یاد کړی |
| اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ وَمَنْ یَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ |
| الله لره نو بخنه غواړی دپاره د ګناهونو خپلو او څوك دے چه وبخی ګناهونه سوا د الله نه |
| وَلَمْ یُصِرُّوْا عَلٰی مَا فَعَلُوْا وَهُمْ یَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳۵﴾ |
| او همیشوالے نکوی دوی په هغه ګناه چه وکړی دوی او دوی پو هیږی. |

**تفسیر** : بعض اهل علم وائی دا دویمے درجے والا متقیان دی ځکه چه د دوی په کارونو کی فاحشه او ظلم ذکر دے لیکن حقه دا ده چه دا صفات هم د مخکنو متقیانو دی او متقیان دیته نهٔ وائی چه هیڅکله به ترے ګناه نهٔ کیږی بلکه د متقیانو په صفاتو کی الله

تعالیٰ فرمائي: ﴿وَيَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ﴾ - دوی دفعه کوی په نیکئ سره بدی لره. یعنی د گناه نه روستو نیکی کوی. لوی متقی به وی، د خولے نه به ئے بی خایه خبره راوخی او داسے عمل به وکړی چه د هغه د شان سره به لائق نهٔ وی او کله به پرے خواهش غالبه شی، د عبادت نه به وران شی نو الله تعالیٰ دغه متقی ته طریقه او علاج ښائی چه الله تعالیٰ ته توبه اوباسه او استغفار وکړه نو بیرته به تقویٰ ته راواپس شے.

## فاحشه او ظلم علی النفس څه ته وائی ؟

په یو شی کی د حد نه تجاوز کولو ته فحش او فاحشه ونیلے شی نو فاحشه هغه گناه ده چه د حد نه په کی تجاوز کړے شوے وی، مفسرینو ددے ډیرے معانی کړیدی :

(۱) څینی وائی چه فاحشه کبیره گناهونو ته وائی او ظلم علی النفس واړه گناهونو ته وائی (قاسمیؒ) (۲) څینی وائی چه فاحشه هغه گناه ته وائی چه بل ته ئے ضرر وی او (ظلموا انفسهم) هغه گناه ده چه ذاتی وی بل ته ئے ضرر نهٔ وی.

(۳) ظاهر د قرآن دا دے چه فاحشه بی حیانی ته وائی (او بد نظری کول، پردئ زنانه ته لاس ورکول، بد الفاظ ونیل، کانی بجانی آوریدل، غلط سو چونه کول، عورت ښکاره کول، زنا کول، عمل د قوم لوط کول داتول په فاحشه کی داخل دی نو د فحشاء لارے زیاتی دی څکه ئے ددے تخصیص وکړو) او (ظلموا انفسهم) کی عام گناهونه مراد دی.

## د الله تعالیٰ یادول څنګه وی؟

ذَكَرُوا اللّٰهَ: (۱) د الله تعالیٰ د یادولو یو صورت دا دے [ذَكَرُوْا عِقَابَ اللّٰهِ] د الله عذاب رایاد کړی چه جهنم ته به لاړ شم او ددے گناه سزا شته هغه به راته ورسیږی او په دنیا کی به الله سزا راکړی. (۲) د الله احسانات رایاد کړی نو مؤمن له حیاء ورشی او د گناه نه منع شی.

(۳) د الله عظمت او لوی والے او محبت او د هغه تعلق رایاد کړی لکه دا د خواصو مؤمنانو طریقه ده چه همت ئے اُوچت وی چه زهٔ ددے کارونو دپاره پیدا نهٔ یم نو الله ته بیرته راواپس شی. او د هر مؤمن په زړه کی یو واعظ ناست وی چه هغه ئے ملامته کوی.

فَاسْتَغْفَرُوْا : استغفار اصل کی گناه پټولو ته وائی یعنی اے الله ! زمونږ گناهونه پټ کړه او پرده پرے واچوه، دلته ترے بخښنه او توبه مراد ده. استغفار په ژبه وی او زړه ورسره ملګرے وی او توبه په زړه باندے وی. استغفار او توبه لوی نعمت دے، الله تعالیٰ ته د

بندګانو توبه او استغفار ډېر خوښ دي پدې وجه د بندګانو نه ګناهونه هم صادروي. په حديث کې دي: (طُوبٰى لِمَنْ وَجَدَ فِيْ صَحِيْفَتِهِ اسْتِغْفَارًا كَثِيْرًا). (خوشحالي ده هغه چا لره چه په خپله عملنامه کې ډېر استغفار ومومي) (ابن ماجه : ۳۸۱۸ بسند صحيح)

د ابليس نه دا خبر نقل ده: (أَهْلَكُوْنِيْ بِالْاِسْتِغْفَارِ وَأَهْلَكْتُهُمْ بِالْأَهْوَاءِ) (ابن كثير ۲/۱۲۲). زهٔ بندګانو په استغفار سره هلاك كړم او ما هغوی په خواهشاتو او بدعاتو سره تباه كړل.

يو ضعيف روايت كې دي چه دا آيت كله نازل شو نو ابليس چغه كړه او وې ژړل بچي ورته راجمع شو چه ولې ؟ هغه وويل : الله تعالىٰ داسې آيت نازل كړو چه زمونږ خوارې ضائع كوي، بچو تسلي وركړه چه بدعت به پرې كوو او هغه به ورته ښائسته ښكاره كوو نو توبه به ترې نهٔ وباسي (تفسير الطبري ٦/٦٢)

پدې وجه سفيان بن عيينة وئيلي دي : ابليس ته د ګناه نه بدعت ډېر خوښ دې ځكه چه د بدعت نه توبه نهٔ ويستلې كيږي او د ګناه نه خلك توبه وباسي.

وَمَنْ يَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ إِلَّا اللّٰهُ : دا د الله تعالىٰ قول دې او پدې كې په خپل بنده باندې امتنان (او احسان) بيانول مقصد دې چه ستا دومره مهربانه رب شته چه ټول ګناهونه معاف كولې شي چه داسې څوك نشته. لكه حديث قدسي كې دي : [ يَا ابْنَ آدَمَ ! لَوْ بَلَغَتْ ذُنُوْبُكَ عَنَانَ السَّمَاءِ ثُمَّ اسْتَغْفَرْتَنِيْ غَفَرْتُ لَكَ وَلَا أُبَالِيْ ]. (ترمذي : ٣٥٤٠ باسناد صحيح)

اې بنيادمه ! كه ستا ګناهونه (په ډېر والي كې) وريځې ته ورسيږي بيا تهٔ ما نه بخنه وغواړې زهٔ به تا ته بخنه وكړم او پدې به هيڅ باك نهٔ كوم. د بنده نه چه كله نافرماني وشي نو يو يا دوه يا درې كرته بخنه كوي ليكن روستو ئې په خپل ځان وس نهٔ وي نو معافي نهٔ كوي او الله تعالىٰ واسع المغفرة دې، په زرګونو ګناهونه معاف كوي فسبحان من وسعت مغفرته واحسانه، اللهم ادخلنا في رحمتك ومغفرتك.

بعض اهل علم وائي (ومن يغفر الذنوب) دا وينا ددې مؤمنانو ده يعني دوى الله رایاد كړي او په زړه وائي چه اې الله ! ټول ګناهونه تهٔ معاف كونكې ئې، ستا نه سوئ څوك دې چه بخنه وكړي. او دا د خپل ذهن جوړولو دپاره وائي چه كه مونږ هرڅومره ګناهونه كړي وي نو الله تعالىٰ به مو معاف كوي نو ځكه الله تعالىٰ ته رجوع كوي او د هغه نه نهٔ نا اميده كيږي. ظاهر دا ده چه دا قول د الله تعالىٰ دې لكه روستو قول هم د الله تعالىٰ دې ليكن مؤمن ئې هم استعمالوي.

وَلَمْ يُصِرُّوْا : يعني د مؤمنانو بل صفت دا دې چه دوى په ګناه باندې هميشوالې نهٔ

کوی۔
او د اصرار او عدم اصرار دوه صورتونه دی (۱) یو دا چه گناه پریدی او بیرته ورته نهٔ راواپس کیږی۔ (یعنی تَرْكُ الذَّنْبِ بِلَا مُعَاوَدَةٍ) دا د علماؤ تفسیر دے (۲) راجح هغه تفسیر دے چه په حدیث کی راغلے دے چه هغه روایت د ابوداود او ترمذی دے او حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری کی نقل کړیدے:
[مَا أَصَرَّ مَنِ اسْتَغْفَرَ وَلَوْ عَادَ فِي الْيَوْمِ سَبْعِينَ مَرَّةً] (واسناده حَسَن عند ابن كثير، ضعيف عند الالباني في الضعيفة : ٤٤٧٤) وحسنه الحافظ في الفتح (١١٢/١ الايمان، طبع دار المعرفة)۔
هغه انسان په گناه اصرار (همیشوالے) نهٔ دے کړے چه بخنه غواړی اگرکه په ورځ کی اویا کرته راواپس کیږی۔ گویا که اصرار دے ته وائی چه گناه کوی او توبه نهٔ وباسی او که یو بنده گناه وکړه او یوه گینته بعد توبه وباسی بنه په اخلاص سره او بیا تر بے وشی بیا توبه وباسی بنه په اخلاص سره نو دا په گناه همیشوالے کونکے نهٔ دے۔ ددے وجه نه تر مرگه پورے به بنده د توبی نه مخ نهٔ اړوی اگرکه سل کرته او زر کرته تر بے دغه گناه کیږی۔ او کللك عزم به کوی چه دا گناه به بیا نهٔ کوم لیکن انسانان کمزوری دی، که بیا تر بے وشی نو هم الله تعالیٰ ته دے توبه وباسی او نا امیدی دے نهٔ کوی، الله تعالیٰ ئے توبه قبلوی۔ نو پدے حدیث کی ډیره سخته آسانی ده۔
علماء لیکی: (اَلْاِصْرَارُ عَلَى الصَّغِيرَةِ كَبِيرَةٌ) ځوك چه په واړه گناهونو همیشوالے کوی نو دا کبیره گناه جوړیږی ځکه چه دا دلیل دے په بی باکئ باندے او ځوك چه په بی باکئ او زړه ورتیا سره گناه کوی نو دا لویه گناه گرځی۔
وَهُمْ يَعْلَمُونَ : دلته نفی متوجه ده مقید ته نهٔ قید ته، یعنی مؤمنان په گناه باندے اصرار (همیشوالے) نهٔ کوی برابره ده که د هغه گناه په قباحت باندے پوهیږی او که نهٔ، او بیا چه کله پوهیږی نو په طریق اولیٰ باندے همیشوالے پرے نهٔ کوی۔ نو دا قید د زیات تاکید دپاره وئیلے شویدے۔
یا د (وهم یعلمون) مطلب امام مجاهدؒ داسے بیانوی چه دا مؤمنان پدے پوهیږی چه الله تعالیٰ بخنه کوی هغه چاته چه بخنه غواړی او توبه قبلوی د هغه چا چه توبه وباسی۔ (تفسير ابن ابي حاتم ٧٦٧/٣)
یا (وَهُمْ يَعْلَمُونَ أَنَّ لَهُمْ رَبًّا يَغْفِرُ الذَّنْبَ) (حسن بن الفضلؒ) (یعنی په گناه باندے همیشوالے ځکه نهٔ کوی چه دوی پوهیږی چه د دوی رب شته چه گناهونه بخښی نو

هغه ته توبه ویاسی) (القرطبی)

| أُولَـٰئِكَ جَزَآؤُهُم مَّغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَجَنَّاتٌ تَجْرِي |
|---|
| دا کسان بدله د دوی بخنه ده د طرفه د رب د دوی نه او جنتو نه دی چه بهیږی به |
| مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ ﴿۱۳۶﴾ |
| لاندې د هغې نه ولې، همیشه به وی په هغې کې او ښه دې اجر د عمل کونکو. |

**تفسیر**: أُولَـٰئِكَ : یعنی د دغه صفتونو والا بدله بخنه ده ددې نیکو صفتونو د وجه نه.

وَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ : ددې مخصوص بالمدح حذف دې أَيِ الْجَنَّةُ ۔ یعنی د عمل کونکو ښه اجر او بدله جنت دې. مغفرت ئې مخکې کړو ځکه چه د الله تعالیٰ بخنه کول د جنت نه هم لوی نعمت دې. دویمه وجه دا ده چه بنده ته بخنه ونشی نو جنت ته نشی داخلیدې۔ د ګناه سره جنت ته داخلیدل ممکن نۀ دی، جنت دار الطیبین دې۔

| قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِكُمْ سُنَنٌ فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ |
|---|
| یقیناً تیر شویدی مخکې ستاسو نه طریقې (واقعات) نو وګرځئ په زمکه کې |
| فَانظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴿۱۳۷﴾ |
| نو ګورئ چه څنګه شو انجام د دروغژن ګنړونکو. |

**تفسیر**: دا او راتلونکې آیت د اُحد د قصې دپاره مقدمه ده. مخکې الله تعالیٰ څه صفات بیان کړل چه دا ځان کې پیدا کړئ الله تعالیٰ به په دشمنانو غلبه درکړی او جنت به هم درکړی نو اُوس داسې آیت راوړی چه د مخکنو واقعو سره ئې هم مناسبت دې نو پدې آیت کې دوه مقصده بیانوی (۱) اَلتَّسَلِّیْ لِأَهْلِ الْإِیْمَانِ ۔ (۲) وَالتَّهْدِيْدُ لِأَهْلِ التَّكْذِيْبِ ۔ یعنی ایمان والو ته تسلی ورکوی چه تاسو ته به الله تعالیٰ غلبه درکوی او تکذیب والو ته وائی چه که تاسو نۀ سمیږئ او د مؤمنانو مقابلې کوئ نو الله تعالیٰ به سزا درکړی، انجام به مو خراب کړی. نو کافران دې نۀ خوشحالیږی چه دوی ته عارضی فتح ملاؤ شوه بلکه د دوی انجام خرابیدونکې دې.

پدې آیت کې بیا دوه تفسیرونه دی یو راجح او بل مرجوح (۱) راجح دا دې چه الله تعالیٰ

کافرانو ته وائی چه الله تعالیٰ پخوانی کافران په مختلفو طریقو هلاك کړیدی که تاسو نهٔ سمیږئ نو تاسو سره به هم دغه شان کار وکړی۔
سُنَنٌ : طریقو ته وائی دلته ترے مراد وَقَائِع وَاَنْوَاعُ الْمُؤَاخذَاتِ لِلْمُكَذِّبِيْن دی یعنی واقعے او د مکذبینو په مختلفو طریقو سره رانیول دی۔ (فَانْظُرُوْا اِلَى عَاقِبَتِهِمُ السَّيِّئَةِ بِسَبَبِ التَّكْذِيْبِ) یعنی الله تعالیٰ په مخکنو کافرانو باندے مختلف واقعات راوستی دی او په قسم قسم طریقو سره ئے هغوی رانیولی دی نو تاسو د هغوی بد انجام ته وګورئ چه څه شو کله چه هغوی تکذیب کولو نو دغه شان کار به تاسو سره هم وشی۔ نو دا خطاب به کافرانو ته شی۔
(۲) د عطاءؒ نه نقل دی چه دلته سُنَن شرائعو ته وائی یعنی ستاسو نه مخکی ډیر شریعتونه تیر شویدی چا چه نهٔ دی منلی نو هلاك شویدی نو تاسو ته هم شریعت راغلے دے که وه مو نهٔ منلو نو د هغوی په شان به هلاك شئ۔ (معالم التنزیل)
لیکن دا تفسیر نورو علماؤ ضعیف ګنړلے۔ اول تفسیر ظاهر دے۔
فَسِيْرُوْا : سیر (ګرځیدل) په دوه قسمه دی (۱) سَيْر عَلَى الْأَقْدَام۔ په خپو باندے ګرځیدل۔
(۲) دویم سیر په مطالعه د کتابونو او تاریخ سره۔ یعنی د مخکنو خلکو تاریخ وګورئ چه د زمکے په مختلفو علاقو کی هلاك شویدی۔ او په سیر او نظر باندے ئے حکم وکړو څکه چه د مخکنو خلکو آثارو ته کتلو سره په عبرت او یره پیدا کیدو کی ډیر لوی اثر وی۔

| هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۳۸﴾ |
| --- |
| دا (قرآن) وضاحت دے دپاره د خلکو او لار ښودونکے دے او نصیحت دے دپاره د تقویٰ والو۔ |

**تفسیر** : اُوس قرآن کریم ته ترغیب ورکوی نو (هذا) کی به قرآن ته اشاره وی۔ او مناسبت ئے دا دے چه تاسو سیر وکړئ یعنی تاریخ وګورئ او بعض د حقیقی تاریخ بیانونکو نه دا قرآن دے چه خلکو ته صفا او صحیح صحیح بیان کوی چه حق او باطل ئے ښکاره کړیدی او صحیح واقعات ئے بیان کړیدی۔
(۲) یا (هذا) کی د اقوام مکذبو هلاکت ته اشاره ده، (قاسمی، روح المعانی)
مګر اوله معنیٰ زیاته غوره ده څکه چه قرآن کریم کی د اقوام مکذبو د هلاکت خبره هم صحیح بیان شویده نو دا په هغے کی داخله شوه۔
او قرآن کریم کی دا خبره زیاته بیان شویده چه پخوانی قومونه سره د ډیرو طاقتونو او

هنرونو نه هلاك شو دا ولے؟ نو ددے نه عبرت ډير په آسانئ سره اخستل کيږی، معلومیږی چه الله تعالیٰ حق دے، د هغه رسولان حق دی، د رسولانو تابعداری د هلاکت نه د بچاؤ سبب دے او د هغوی مخالفت سراسر هلاکت دے. پدے وجه ئے دا ذکر کړل.

وَّمَوْعِظَةٌ : په معنیٰ د زجر (منع کونکے) دے متقیانو لره د هغوی د کار په شان کارونو کولو نه. [اَیْ تَخْوِیْفٌ نَافِعٌ]. یعنی داسے یره ده چه متقیانو ته فائده ورکوی.

**فائده** : پدے آیت کی د قرآن کریم درے لوی صفتونه بیان شو (۱) بیان کی اشاره ده چه قرآن وضاحت کوی یعنی حق او باطل دواړه بیانوی. (۲) او (هدی) کی بیا نیغه لاره ښائی چه پدے روان شه (۳) او موعظة کی اشاره ده چه دا کتاب د بدو او د هلاکت لارو نه منع کوی. او د دغه باطل نه منع کول کوی، ګویا که قرآن تا ته دوه لارے صحیح او غلطه بیان کړه بیا په صحیح لاره ئے حکم وکړو او طریقه ئے دروخودله او د بد او باطل نه ئے منع کړے نو څومره کمالی کتاب شو؟!.

یا بیان هغے ته وائی چه د خلکو شبهات او اشتباهات پرے زائله کیږی. او هدایت هغه ته وائی چه د وضاحت نه روستو ئے څوك د خپل ځان دپاره د تګ لاره جوړه کړی او عمل پرے وکړی او موعظه هغه ده چه خلك د هغه کار نه منع کوی چه په دین کی مناسب نهٔ وی. نو د معنیٰ حاصل دا شو چه ذکر شوی مضامین (یا قرآن کریم) د ټولو خلکو اشتباهات او شبهات ختموی خو عمل پرے یوازی متقیان کوی او هم دوی پرے د هغه څه نه منع کیږی چه په دین کی غیر مناسب وی.

وَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۳۹﴾

او سستی مهٔ کوئ (د جهاد نه) او مهٔ غمژن کیږئ او تاسو اُوچت یئ که یئ تاسو ایمان والا.

**تفسیر** : پدے آیت کی په ظاهره کی تسلی ده ایمان والو ته چه په غزا د اُحد کی هغوی ته تکلیف رسیدلے وو، اویا کسان ترے شهیدان شول نو هغوی پریشانه وو چه دا په مونږ څه وشو نو الله تعالیٰ ورته تسلی ورکوی چه مه خفه کیږئ او ددے په وجه په ځان کی سستی مهٔ پیدا کوئ، آخری غلبه به ستاسو وی او د اسلام کلمه به اُوچته وی، د ایمان تقاضا دا ده چه تاسو خپل زړونه مضبوط کړئ او په الله تعالیٰ باندے بهروسه وکړئ او د دشمنان پرواه مه ساتئ.

دویمه فائده : پدے آیت کی عامه قاعده ده ټول امت دپاره یعنی [اَلنَّهْیُ عَنِ الْوَهْنِ وَالْحُزْنِ

لِأَنَّهُمَا سَبَبَانِ لِلْهَزِيْمَةِ] ـ الله تعالیٰ منع کوی د وهن او حزن نه چه ددے نه ځان وساتیٔ ځکه چه دا سبب د هزیمت (شکست) دے، هزیمت نفسی هم دے او هزیمت ظاهری هم۔ او پدے کی نور نقصانات هم شته چه سوء الظن بالله۔ په الله تعالیٰ باندے بدګمانی پیدا کیږی او په انسان کی کسل (سستوالے) د خیر نه پیدا کیږی او دا د جهاد سره هم لګی او د غیر جهاد سره هم۔

وَلَا تَهِنُوا : یعنی مهٔ سستیږئ۔ د وهن معنیٰ په حدیث کی راغلے ده : [حُبُّ الدُّنْيَا وَكَرَاهِيَةُ الْمَوْتِ] (ابوداود ۲/۲۳٤)۔ دنیا سره مینه او مرګ بد ګنړل۔ کله چه په بنده کی دا پیدا شی نو بیا دعوت، جهاد او نور اعمال نشی کولے۔ دا دواړه د سړی د کمزوریٔ او سستیٔ باعث ګرځی۔

وَلَا تَحْزَنُوا : یعنی کوم شے چه درنه فوت شویدے په هغے پسے غم مهٔ کویٔ ځکه غم انسان ته فائده نهٔ ورکوی بلکه کار جاری ساته بیا به ئے الله تعالیٰ درکړی۔ په الله تعالیٰ باندے توکل کول او عمل جاری ساتل دا د کامیابیٔ لاره ده۔ نو پدے آیت کی الله تعالیٰ د بندګانو دغه ذهن سازی کوی۔

بیا نهی د حزن نه وشوه حال دا چه حزن غیر اختیاری امر دے؟ نو جواب دا دے چه حزن په دوه قسمه دے، اختیاری وَهُوَ تَرْكُ الْعَمَلِ النَّافِعِ ـ (یعنی فائده مند عمل پریخوستل) دویم غیر اختیاری (وَهُوَ مَا يَكُوْنُ فِي الْقَلْبِ) چه په زړه کی وی نو دلته د اول قسم نه منع شویده۔

وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ : یعنی په دنیا او په آخرت کی اُوچت او غالبه یئ۔ پدے آیت کی دا دی چه د ایمان د فوائدو نه یو [حُصُوْلُ الْغَلَبَةِ وَحُصُوْلُ الْعُلُوِّ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ] ـ (غلبه حاصلیدل او په دنیا او آخرت کی اُوچت والے حاصلیدل دی)۔ نو پدے کی وعده د مدد ده د الله تعالیٰ د طرفنه خو شرط دا دے چه بنده کی صحیح ایمان وی۔ نو څومره چه ایمان مضبوط وی غلبه به زر او همیشه راځی او که ایمان کی نقصان راتلو نو غلبه به هم روستو وی۔

الْأَعْلَوْنَ: یعنی ستاسو شان هم لوی دے او ستاسو شهیدان په جنت کی دی او د هغوی وژل شوی په دوزخ کی دی۔ او ستاسو عاقبت غلبه او د هغوی عاقبت هلاکت دے۔

| إِنْ يَّمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ |
| --- |
| که ورسیږی تاسو ته زخم (نو صبر کویٔ) نو یقیناً رسیدلے دے قوم کافرانو ته زخم |

مِّثْلُهُ وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ

په شان ددې، او دا ورځې دي چه موږ ئې اړه وو راړه وو په مینځ د خلکو کې (دپاره د حکمتونو)

وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا

او دې دپاره چه راښکاره کړي الله تعالیٰ هغه کسان چه ایمان ئې راوړیدې

وَيَتَّخِذَ مِنكُمْ شُهَدَاءَ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ﴿١٤٠﴾

او ونیسي ستاسو نه شهیدان او الله نهٔ خوښوي ظالمان۔

**تفسیر** : اُوس بیا د اُحد په باره کې تسلیاني بیانوي چه دیته د اُحد د غزا د شکست خوړولو حکمتونه هم وائي۔ یعنې که تاسو په اُحد کې زخمیان شوئ او ډیر مجاهدین مو شهیدان شول مګر پدې باندې د جهاد نه مهٔ ستړي کیږئ او دومره غم پرې مهٔ کوئ ځکه چه تاسو په مخکې کال کې په بدر کې کافرانو ته دغه شان تکلیفونه رسولي وو۔

قَرْحٌ مِّثْلُهُ : یعنې کافر قوم ته هم دغه شان زخمونه رسیدلي وو په بدر کې لیکن هغوی ضعیفان او بزدله نشو نو تاسو ډیر لائق یئ چه بزدلي به نهٔ کوئ او کار به نهٔ پریدئ او حال دا چه صرف تاسو سره د مدد وعده شویده نهٔ د هغوی سره۔ یعنې تاسو په دردونو کې خو یو شان یئ لیکن امید او ثواب کې جدا یئ۔

الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا : اَیْ نُدِیْلُ تَارَةً لِهٰؤُلَاءِ وَتَارَةً لِهٰؤُلَاءِ۔ (قاسمیؒ) کله ایمان والا په کافرانو غالبه شي او کله کافران په مؤمنانو غالبه شي۔ دا کار الله تعالیٰ د امتحان دپاره کوي ځکه که همیشه مؤمنان غالبه کیدې نو په کافرانو به امتحان نهٔ وې، کافران به په دین کې مجبوراً داخلیدلې۔ او که همیشه کافران غالبه وې نو بیا فائده نهٔ حاصلیدله، د اسلام غلبه به هیڅکله نهٔ راتللې، لیکن انجام الله تعالیٰ مؤمنانو ته ورکوي۔

وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ : ددې متعلق پټ دې : (اَیْ فَعَلْنَا ذٰلِكَ) ۔ موږ دا کار وکړو دې دپاره چه راښکاره کړي الله تعالیٰ مؤمنانو لره او منافقان جدا کړي۔ داسې امتحانات الله تعالیٰ راولي چه پدې کې مخلص او غیر مخلص، منافق او مؤمن سره جدا جدا شي، منافقان به غلطې خبرې او عملونه شروع کړي، په رسول الله ﷺ به اعتراضونه شروع کړي نو خلکو ته به د هغوی منافقت معلوم شي۔

لیعلم : علم دلته په معنیٰ د اظهار سره دې ځکه چه الله تعالیٰ ته هر څه د مخکې نه

معلوم دی. ددې لفظ تشریح په سورة البقره دویمه پاره آیت (لنعلم من یتبع الرسول) کی تیره شویده.

او بل حکمت دا دے : (ویتخذ منکم شهداء) چه الله تعالیٰ په تاسو کی شهیدان جوړ کړی ځکه چه شهادت ډیره اُوچته مرتبه ده نو که داسے مغلوبیت نهٔ راتللے نو بیا به شهادت څنګه حاصلیدلے. او په شهادت سره ستاسو دپاره فائده ده چه دا شهیدان به د قیامت په ورځ ستاسو دپاره سفارش کوی نو هلته به پرے ډیر خوشحاله شئ. دارنګه مؤمنان د الله تعالیٰ محبوب دی، ډیر ورته ګران دی نو محبوب شے ورله ورکوی هغه دا چه اُوچتے درجے ته ئے رسوی او ګناهونه ترے رژوی.

وَاللّٰهُ لَا یُحِبُّ الظّٰلِمِیْنَ : دے جمله کی دوه فائدے دی. (۱) مفسرین وائی : [اَلْمُنَافِقُوْنَ لَا یَتَّخِذُ مِنْهُمُ الشُّهَدَاءَ]. الله تعالیٰ په منافقانو کی شهداء نهٔ راولی ځکه چه دوی ظالمان دی. شهادت باندے اکثر هغه خلك رسیږی چه هغه اُوچت مؤمنان وی، اُوچتو اخلاقو والا وی، ډیر خدمتګار او نرم خلك وی. او منافقان هسے مری لیکن شهادت مرتبه ورته نهٔ ورکوی. (۲) دویم دا دفع د وهم ده چه کافران راځی او مسلمانان په سر باندے ولی او اُوچت اُوچت مؤمنان ختموی دا ولے الله تعالیٰ دوی له دومره زور او طاقت ورکوی؟ نو الله فرمائی چه کافر د الله تعالیٰ خوښ نهٔ دی نو هغوی باندے خپل محبوبان وژنی دے دپاره چه د دوی ظلم نور هم زیات شی نو الله تعالیٰ به ورته عذاب ورکړی ځکه چه کوم انسان د الله تعالیٰ خوښ نهٔ وی نو د هغه د لاس نه بد عمل راوباسی چه عذاب ئے نور هم زیات شی.

| وَلِیُمَحِّصَ اللّٰهُ الَّذِیْنَ آمَنُوْا وَیَمْحَقَ الْکَافِرِیْنَ﴿۱۴۱﴾ |
|---|
| او دے دپاره چه صفا کړی الله تعالیٰ هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او هلاك کړی کافرانو لره. |

**تفسیر** : وَلِیُمَحِّصَ : [اَیْ لِیُطَهِّرَ الْمُؤْمِنِیْنَ مِنَ الذُّنُوْبِ]. یعنی دے دپاره ئے دا کارونه وکړل چه مؤمنان د ګناهونو نه پاك کړی. په شهادت او جهاد سره صفائی راځی. لکه ماشوم ته چه مور غسل ورکوی اګرکه هغه ژاړی هم.

یا د تمحیص نه مراد دا دے چه د مؤمنانو صفونه د منافقانو نه راجدا کیږی. لیکن اوله معنیٰ زیاته راجحه ده ځکه چه تمحیص د ګناهونو د مغفرت دپاره استعمالیږی.

وَیَمْحَقَ : محق بی برکته کول او هلاکولو ته وائی. یعنی کافران الله تعالیٰ د مؤمنانو په شهادتونو سره هلاکوی (۱) یو په دے طریقه چه محق ابطال العمل ته وائی چه د هغوی

عمل برباد کړي. (۲) او دویم دا چه کله دوی مؤمنانو ته چه د الله تعالیٰ اولیاء دي تکلیف ورکړو نو دوی د الله تعالیٰ د هلاکت مستحق وګرزیدل، الله تعالیٰ ورسره دشمنی شروع کړي او د دوی بدله ترې اخلي لکه حدیث قدسي کې دي: [مَنْ عَادٰی لِیْ وَلِیًّا فَقَدْ آذَنْتُهٗ بِالْحَرْبِ) .(صحیح بخاري: ۶۵۰۲) چا چه زما د یو ولي سره دشمني وکړه نو هغه ته ما د جنګ اعلان وکړو. الله تعالیٰ فرمائي: ﴿اِنَّمَا نُمْلِیْ لَهُمْ لِیَزْدَادُوْا اِثْمًا﴾. (آلعمران:۱۷۸) مونږ کافرانو ته مهلت ورکوو دې دپاره چه ګناهونه ئې نور هم زیات شي.

دا قانون دے چه څوك د الله تعالیٰ سخت دشمن وي نو د هغه لاسه به مؤمنانو ته سخت ضرر رسیږي لکه ابوجهل سمیه رضي الله عنها په برچه ووهله او فرعون آسیه رضي الله عنها ووهله. په مظلومانو ئې ظلم وکړو، په ظاهر کې به تا ته دا خبره ناشنا ښکاري چه څنګه یو کافر په مسلمان بانديے مسلط شي او هغه ته تکلیفونه ورکوي او الله ورته څه نۀ وائي نو الله د کافرانو د هلاکولو اراده کړي وي اګرکه في الحال ئې ورته صبر کړے دے.

یا په دے طریقه چه که بالفرض دا شکست نۀ وے راغلے نو دوی به بیا د مؤمنانو جنګ ته زړه نۀ وے ښه کړے او مقابلے ته به نۀ راتلے، کله چه دا کار واقع شو نو کافرانو ته د کامیابۍ امیدونه ښکاره شو چه د نورو جنګونو اُورونه ئې بل کړل او په نتیجه کې دوی تول کمزوري او آخر کې ختم شول. همدغه شان اُوشوه چه په اُحد کې کومو کافرانو په جنګ کې حصه اخستے وه او بیا ئې ایمان رانۀ وړو نو دوی روستو ټول قتل شول یا ذلیل او خوار شول او در په در به ئې تندګونه خوړل، دا وعده ورسره الله تعالیٰ پوره کړله.

| أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ |
| --- |
| آیا ګمان کوئ تاسو چه داخل به شئ جنت ته او تر اُوسه پورے نۀ دي ښکاره کړي الله تعالیٰ |
| الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنْكُمْ وَيَعْلَمَ الصَّابِرِينَ ﴿۱۴۲﴾ |
| هغه کسان چه جهاد ئې کړیدے ستاسو نه او نۀ ئې دي ښکاره کړي صبرناکو لره. |

**تفسیر**: د اُحد د شکست دپاره دا بل حکمت دے. او تسلي ده چه الله تعالیٰ بنده جنت ته بغیر د امتحان نه نۀ پریدي نو تاسو په دے خفګان مۀ کوئ، دغه شان ابتلاء ات به راځي. اول به امتحان راشي نو د مجاهد او غیر مجاهد او د صابر او د غیر صابر تمییز به وشي نو مجاهدین او صبرناك به جنت ته بوځي او نور به د خپلے سزا مستحق شي لکه

څنګه چه زرګر سرۀ زر اُور ته ګوزار کړی ګند بلا (رلے) ترے جدا شی او اصلی سرۀ باقی پاتې شی، که دغه ګندونه ددے اصلی سرو سره تلی وے نو ډیر نقصان وو نو کله چه د مؤمن دا عقیده جوړه شی چه جنت ته بغیر د تکلیف او مصیبتونو نه داخلیدل ممکن نهٔ دی نو بیا ورته تکلیف دومره زور نهٔ ورکوی او غاړه ئے ورته ایښې وی۔

وَيَعْلَمَ الصَّابِرِيْنَ : دے سره هم (لَمَّا) مراد دے۔ اَیْ وَلَمَّا يَعْلَمِ الصَّابِرِيْنَ۔ لیکن د جزم نه نصب ته د تخفیف طلب کولو دپاره نقل شو۔ او خلیل بن احمد وائی چه دا منصوب دے په تقدیر د (اَنْ) سره۔ زجاج وائی : واو دلته په معنیٰ د (حتی) سره دے۔ اَیْ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جَاهَدُوْا مِنْكُمْ حَتّٰى يَعْلَمَ صَبْرَهُمْ۔ (القرطبی ٤/ ٢٢٠)

یعنی لا تر اوسه الله تعالیٰ نهٔ دی ښکاره کړی مجاهدین ستاسو نه تردے چه د هغوی صبر را ښکاره کړی۔

څینی وائی : واو د جمع دپاره دے لکه د لاتاکل السمك وتشرب اللبن) په شان۔ نو معنیٰ به دا وی : أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَالْحَالُ أَنَّهُ لَمْ يَتَحَقَّقْ مِنْكُمُ الْجَمْعُ بَيْنَ الْجِهَادِ وَالصَّبْرِ)۔ (المنار) آیا ستاسو ګمان دے چه جنت ته به داخل شئ حال دا چه ستاسو نه د جهاد او د صبر جمع کیدل لا نهٔ دی موجود شوی۔

بل پدے آیت کی دا قانون دے ١ – چه جنت ته داخلیدل د تکلیفونو نه تاؤ دی لکه په حدیث کی دی: (حُفَّتِ الْجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ) (صحیح مسلم) د جنت نه تکلیفونه تاو کړے شویدی۔ ٢ – دارنګه جهاد او صبر د جنت د داخلیدو ډیر لوی سببونه دی۔ ٣ – الله تعالیٰ جهاد او صبر ډیر خوښوی۔

| وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَلْقَوْهُ |
| --- |
| او یقیناً تاسو آرمان کولو د مرګ (د شهادت) مخکی ددے نه چه مخامخ شئ تاسو د هغے سره |
| فَقَدْ رَأَيْتُمُوْهُ وَأَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ﴿١٤٣﴾ |
| نو یقیناً ولیدو تاسو هغه او تاسو کتل۔ |

**تفسیر** : دا بل حکمت دے چه تاسو د شهادت ارمان کړے وو (لکه د هر مؤمن دا ارمان وی چه ما ته شهادت راکړے شی) خو کله چه راشی نو بیا بنده حیران وی نو الله تعالیٰ فرمائی حیرانیدل نهٔ دی پکار دا هغه مرتبه وه چه تاسو غوښتے وه نو ولے خفه کیږئ، تاسو

ته خو اُوچته مرتبه ملاؤ شوه.

د رواياتو نه معلوميږي چه څه صحابه کرام د بدر نه پاتې شوي وو نو هغوی دا ارمان کولو چه الله تعالیٰ داسې جنګ راولي لکه د بدر په شان مونږ به پکې په ډيره ميړانه سره جهاد وکړو او تر مرګه پورې به تيښته نۀ کوو نو الله تعالیٰ ورته دغه وعده يادوی.

**اَلْمَوْتَ** : ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي: دلته د موت نه مراد شهادت دے. څکه چه هسے د مرګ تمنیٰ کول صحيح نۀ دي، په حديث د صحيحينو کې ترے منع راغلې ده. لکه دا تفصيل په سورة البقره (۹٤) آيت تير شويدے. او هرچه د شهادت غوښتل دي نو دا بهتر عمل دے حديث کې دي: (مَنْ سَأَلَ اللّٰهَ الشَّهَادَةَ بِصِدْقٍ بَلَّغَهُ اللّٰهُ مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ وَإِنْ مَاتَ عَلٰى فِرَاشِهٖ). (چا چه د الله نه په رشتيا سره شهادت وغوښتو الله تعالیٰ به ئے د شهيدانو مرتبو ته ورسوی اګرکه په خپله بستره وفات شي). (مسلم: ۵۰۳۹).

**فَقَدْ رَاَيْتُمُوْهُ** : يعني تاسو مرګ وليدو چه ستاسو وړونه پرے مړه کيدل او تاسو دغه حال ته کتل. يا دا چه تاسو اسباب د مرګ وليدل چه دغه جنګ دے.

يا رؤية د زړه په سترګو ليدل او محسوس کول او علم په هغے راوستل دي او (تنظرون) معنیٰ دا ده چه تاسو په سترګو هم وليدو.

**فائده**: د رَاَيْتُمُوْهُ او وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ فرق دا دے (۱) چه رؤية په زړه سره وي او نظر په سترګو. (۲) او دواړه ئے جمع کړل څکه چه انسان کله يو شی ته ګوری ليکن نۀ ئے وينی څکه چه په بل شی باندے مشغوله وی نو دواړه ئے جمع کړل پدے کې اشاره ده د هغے تحقق او يقيني کيدو ته.

## خبرداری

د اُحد د شکست ډير حکمتونه او علتونه دي چه حافظ ابن قيم رحمه الله په زاد المعاد کې بيان کړيدی او زمونږ په کتاب «سيرتِ رسول (ﷺ) ۲/۲۳۰» کې تفصيلا بيان شويدی، هغه هم د کتلو لائق دی.

| وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ اَفَاِنْ مَّاتَ |
|---|
| او نۀ دے محمد مګر رسول دے يقيناً تير شويدی مخکې ددهٔ نه رسولان آيا نو که وفات شي دے |
| اَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلٰى اَعْقَابِكُمْ وَمَنْ يَّنْقَلِبْ عَلٰى عَقِبَيْهِ |
| يا ووژلے شي، اوړئ به تاسو په پوندو خپلو باندے او څوک چه واوړيدو په پوندو خپلو باندے |

فَلَنْ يَّضُرَّ اللّٰهَ شَيْـًٔا وَسَيَجْزِى اللّٰهُ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۴۴﴾

نو هیڅرې ضرر نشي ورکولې الله ته هیڅ شې او زر دې چه بدله به ورکړي الله تعالیٰ شکر گزاروته.

**تفسیر**: پدې آیت کې بل قانون دې. او په ظاهر کې یوه قصه بیانول دي چه نبي کریم ﷺ په غزا د اُحد کې حاضر وو نو عبد الله بن قمئه کافر په مصعب بن عمیر ؓ باندې گوزار وکړو چه هغه د رسول الله ﷺ مدافعت کولو نو هغه شهید کړې شو نو مشرك ووېل چه ما محمد (ﷺ) قتل کړو، پدې کې شیطان تیزه چغه کړه (اَلَا اِنَّ مُحَمَّدًا قَدْ قُتِلَ). خبر شئ محمد (ﷺ) قتل شو) دې دپاره چه مسلمانانو باندې هیبت زیات شي نو په رشتیا دغه شان وشوه چه ډیر مسلمانان په رعب کې شو او ضعف پیدا شو او جنگ څه وخت پورې بند شو، نبي کریم ﷺ خپله آوازونه وکړل چه (اِلَیَّ عِبَادَ اللّٰهِ). ما طرفته راشئ اې د الله بندگانو!) بیا ملگري راجمع شو او جنگ شروع شو.

نو د مسلمانانو د تربیت او ذهن سازئ دپاره الله تعالیٰ د اُحد د غزا نه روستو دا آیتونه نازل کړل چه محمد ﷺ د الله تعالیٰ یو رسول دې دهٔ باندې وفات هم راځي او شهادت به هم پرې راځي نو آیا تاسو به دین پریدئ، حال دا چه دین خو د رسول الله ﷺ د وجود پورې تعلق نهٔ لري چه هغه ژوندې وي نو دین به وي او که وفات شي نو دین به ختمیږي، بلکه دین خو د هر بنده صفت دې ترڅو چه انسانان وي دین به وي.

او عام قانون پکې دا دې چه (اَلثَّبَاتُ عَلَى الدِّيْنِ وَاِنْ مَاتَ الْاَمِيْرُ اَوِ الْكَبِيْرُ). په دین باندې به مضبوط پاتې کیږئ اگرکه امیر یا مشر مړ شي. (علماء او مشران به ځي لیکن دین به نهٔ پریدئ) او دا هغه آیت دې چه ابوبکر صدیق ؓ د رسول الله ﷺ د وفات په وخت کې لوستلې وو چه رسول الله ﷺ په ربیع الاول په یولسم هجري کې د (۶۳) کالو په عمر وفات شو، د عمر فاروق ؓ او د بعض ملگرو رایه دا وه چه رسول الله ﷺ لا نهٔ دې وفات ځکه چه منافقان خو لا موجود دي چه هغه ئې نهٔ وي ختم کړي هغه به نهٔ مري او دا ئې ووېل چه چا دا خبره وکړه چه نبي کریم ﷺ وفات دې نو زهٔ ئې په توره وهم. نو ابوبکر صدیق ؓ سُنح علاقې ته د خپلې بي بي ملاقات ته تلې وو، خبر شو راغې نو سیده د رسول الله ﷺ کوټې ته ئې تشریف راوړو او تحقیق ئې وکړو او رسول الله ﷺ ئې د دواړو سترگو ترمینځ په تندي ښکل کړو او دا ئې وفرمایل: (يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ (ﷺ) اَمَّا الْمَوْتَةُ الَّتِىْ كُتِبَتْ عَلَيْكَ فَقَدْ مُتَّهَا، وَاللّٰهِ لَا يَجْمَعُ اللّٰهُ عَلَيْكَ مَوْتَتَيْنِ). اې د الله رسوله! هر چه هغه مرگ وو چه

په تا لیکلې شوې وو نو هغه تا ته ورسیدو او قسم په الله چه په تا باندې الله تعالیٰ دوه مرګونه نۀ راجمع کوي (څکه چه دا خو تکلیف دے) بیا مسجد ته لاړو هلته عمر فاروق ﷛ ولاړ وو هغه ئې کینولو، هغه نۀ کیناستو بیا د مسجد بل طرفته لاړو نو ملګري ورجمع شو، د ابوبکر صدیق ﷛ د تهولو نه زړه ډیر نرم وو لیکن په داسې وخت کې ډیر مضبوط وو او دا کمال دے نو هغه د خطبې نه بعد دا آیتونه ولوستل سیدنا عمر فاروق ﷛ فرمائي : ما چه دا آیتونه واوریدل نو زما د خپو نه ساه وختله چه نبي خو په رشتیا وفات شو. نو صدیق اکبر ﷛ ورسره دا هم وفرمایل : (مَنْ كَانَ يَعْبُدُ مُحَمَّدًا فَإِنَّ مُحَمَّدًا قَدْ مَاتَ وَمَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللّٰهَ فَإِنَّ اللّٰهَ حَيٌّ لَا يَمُوْتُ) . څوك چه د محمد (ﷺ) بندګي كوي نو هغه خو وفات شو (معبود ئې ختم شو) او څوك چه د الله بندګي كوي نو هغه همیشه ژوندے دے چه مرګ پرې نۀ راځي. دا ئې ډیره مزیداره خبره وکړه چه د موقعې او د محل بیخي مناسب ده. مطلب دا چه رسول الله ﷺ خو خپله فریضه ادا کړه چه مونږ ته ئې د بندګۍ چلونه وخودل نور مونږ د الله تعالیٰ بندګۍ له پیدا یو.

نو هر انسان چه به دا آیت آوریدو نو دا به ئې ځان سره لوستلو. ګویا که دا آیت اُوس نازل شو، دے ته عدم توجه وائي او دا هم یوه فائده منه خبره ده، په دے سره په علماؤ باندې بدګماني ختمیږي هغه دا چه کله به یو لوی عالم او شیخ وي په حدیث به پوهه وي لیکن د حدیث خلاف فتویٰ به ورکوي یا به پرې عمل نۀ کوي څکه چه توجه او سوچ به ئې نۀ وي، خلك به پرې بد ګمان کوي حال دا چه هغه به قصداً د حدیث خلاف نۀ کوي لیکن متوجه به ورته نۀ وي. دا آیت صحابه کرامو ته یاد وو لیکن ددے مسئلې راویستلو ته ئې توجه نۀ وه چه رسول الله ﷺ وفات دے. د ابوبکر صدیق ﷛ په لوستلو سره د تولو توجه پیدا شوه.

دا آیت دلیل دے چه رسول الله ﷺ وفات شویدے او څوك چه هغه په دنیاوي ژوند سره ژوندے ګنړي دا غلط وائي. او ددے نه د ابوبکر صدیق ﷛ فضیلت ثابت شو.

وَمَا مُحَمَّدٌ : محمد نوم قرآن کریم کې څلور کرته راغلے دے او دوه معاني ئې دي : (۱) كَثِيْرُ الْمَحَامِدِ لِرَبِّهٖ (هغه شخص د خپل رب ډیر صفتونه ئې کړیدي) (۲) هغه شخص چه د هغه ډیر صفتونه شویدي او نور نومونه ئې هم شته.

**فائده** : الله تعالیٰ محمد رسول الله ﷺ ته په نوم باندې په قرآن کریم کې خطاب نۀ دے کړے دپاره د تعظیم د شان د هغه.

اِلَّا رَسُوۡلٌ : ددې حصر مطلب دا دې چه محمد (ﷺ) صرف د الله رسول دې (اَیْ غَیْرُ مَاۡمُوۡنٍ مِنَ الْمَوْتِ) ـ یعنې د مرګ نه مامون او محفوظ نهٔ دې۔ یعنې اله نهٔ دې چه د مرګ نه خلاص وي بلکه مرګ به پرې راځي۔

قَدْ خَلَتْ : یعنې ددهٔ نه مخکې ډیر رسولان تیر شویدي (وَقَدْ مَاتُوۡا) او هغوی مړه شویدي سیوئ د عیسیٰ علیه السلام نه نو دغه شان په دهٔ باندې به هم مرګ راځي۔ دارنګه د هغوی دین نهٔ دې ختم شوې نو ددې نبي په مرګ به هم ددهٔ دین نهٔ ختمیږي نو منافقان دې نهٔ خوشحالیږي چه محمد (ﷺ) وفات شو بس دین به ئې ختم شي۔ دارنګه د هغوی د مرګ نه روستو نیکان خلک په دین باندې قائم پاتې شویدي نو تاسو به هم په دین باندې قائم پاتې کیږئ۔

اَفَاۡئِنْ مَّاتَ : یعنې که په دهٔ باندې مرګ راشي یا د چا د لاسه ووژل شي نو تاسو به په خپلو پوندو اوړئ، (د پوندو اوړیدل کنایه ده د مرتد کیدو نه)۔

اَوْ قُتِلَ : نبي کریم ﷺ نهٔ قتل کیدو الله تعالیٰ ورسره وعده کړې وه ﴿وَاللّٰهُ یَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾۔ (المائده :٦٧) الله به تا د خلکو د وژلو نه محفوظ ساتي۔

خو دلته ئې قتل په طریقه د فرض باندې ذکر کړیدې او اشاره ده چه انبیاؤ علیهم السلام باندې قتل راتلې شي که نهٔ وې دې فرض محال ذکر کولو کې بیا فائده نهٔ ښکاره کیده او بل پدې وجه په واقعه د اُحد کې د هغه د قتل کیدو پروپیګنډه کړې شوې وه۔

اِنْقَلَبْتُمْ عَلٰۤی اَعْقَابِکُمْ : **سوال** : صحابه کرامؓ خو د ارتداد نه بچ دي نو دا لفظ ئې ولې ذکر کړو؟ جواب (١) همزه د انکار او (اِنْ) دلالت کوي چه ارتداد واقع شوې نهٔ دې بلکه دا په طریقه د زورنې سره وئیلې شویدې۔ او پدې کې پټې اشارې دي منافقانو ته۔

**فائده** : حافظ ابن القیمؒ لیکي : د اُحد واقعه د رسول الله ﷺ د مرګ دپاره مقدمه وه نو الله تعالیٰ د مخکې نه امت ته زورنه ورکړه چه که رسول الله ﷺ وفات شي یا قتل شي نو آیا دوی به د دین نه اوړي بلکه په دوی باندې واجب ده چه د هغه په دین او په توحید به مضبوط پاتې کیږي او پدې باندې به مړه کیږي ځکه چه دوی خو د محمد (ﷺ) د رب بندګي کوي او هغه ژوندې دې۔ بیا وائي ددې عتاب (ملامتیا او زورنې) اثر په هغه وخت راښکاره شو چه رسول الله ﷺ وفات شو او بعض نوي دنیا پرست کسان چه حق ئې زړه ته نهٔ وو ننوتې مرتد شو او شاکرین (موحدین) خلک چه هغوی د نعمت قدر پیژندلو هغوی په دین باندې مضبوط پاتې شو نو الله تعالیٰ د دوی سره مدد وکړو او عزت ئې ورکړو او په

خپلو دشمنانو ئې کامیاب کړل او انجام ئې د دوی دپاره وګرزولو۔ انتهیٰ۔ (قاسمیؒ)
فَلَنْ يَضُرَّ اللهَ شَيْئًا : یعني هیڅ قسم ضرر به الله تعالیٰ ته ورنکړي نۀ لږ او نۀ ډیر بلکه خپل ځان ته به ضرر ورکړي چه دنیا او آخرت به برباد کړي۔ ورنه الله تعالیٰ خو به خپل دین ته غلبه ورکوي۔
وَسَيَجْزِي اللهُ : دلته مفعول پټ دے۔ اَيْ جَزَاءً حَسَنًا۔ الله به بدله ورکړي نیکه او ښائسته بدله شاکرینو ته چه دنیا کې به ورسره مدد وکړي او غلبه به ورکړي او په آخرت کې به ثواب او د الله رضا ورته ورکړي۔ نو (ومن ینقلب) کې ترهیب او زرونه ده او په (سیجزی الله) کې ترغیب دے۔ (قرطبی ٤/٢٢٦)
الشَّاكِرِينَ : د سیدنا علی ﷺ نه نقل دي اَيِ الثَّابِتِيْنَ عَلَى الدِّيْنِ وَاَبُوْبَكْرٍ سَيِّدُ الشَّاكِرِيْنَ) ۔یعني هغه کسان چه په دین باندے کلك پاتې وي چه ددے شاکرینو سردار ابوبکر صدیق ﷺ دے۔ (رواه ابن جریر)
دوی ته ئې ځکه شاکرین ووئیل چه د شکر معنیٰ ده د نعمت قدردانی کول نو دا هغه خلك دي چه دوی ددے نعمت د اسلام قدر وپیژندو نو ځکه پرے کلك پاتے شو او پدے کې اشاره ده چه دا دین یو نعمت دے نو پدے باندے شکر پکار دے او بیا ددے ډیره ښائسته بدله ده۔ نو ترغیب ورکوی چه دین یو نعمت وګنړه نو بیا به ئې نۀ پریدے او شکر به ئې کوے او دین خلك په هغه وخت کې پریدی (والعیاذ بالله) چه مصیبت ئې وګنړي۔

| وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوْتَ إِلَّا بِإِذْنِ اللهِ كِتَابًا مُّؤَجَّلًا |
|---|
| او نۀ شي کیدے دپاره د یو نفس چه مړ شي مګر په اجازت د الله سره، دا لیکل دي مقرر، |
| وَمَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهٖ مِنْهَا وَمَنْ |
| او څوك چه غواړي (په عمل خپل سره) بدله د دنیا مونږ به ورکړو هغه ته د هغې نه او څوك |
| يُّرِدْ ثَوَابَ الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَا وَسَنَجْزِي الشّٰكِرِيْنَ ﴿١٤٥﴾ |
| چه غواړي بدله د آخرت ورته کړو هغه ته د هغې نه او خامخا بدله به ورکړو شکر ګزارو ته۔ |

**تفسیر** : دا بل قانون او ذهن سازي او نظریه او عقیده ده چه الله تعالیٰ ایمان والو ته دا عقیده ورکوي چه (اَلْمَوْتُ بِقَدَرِ اللهِ لَا بِالْاَسْبَابِ)۔ هر چا دپاره الله تعالیٰ مرګ په تقدیر کې لیکلے دے دا په اسبابو باندے نۀ دے بلکه دا به خامخا راځي، کله انسان بغیر د څه

سبب نه وفات شي او کله يو سبب ورته برابر شي۔ نو پواځې جهادونه سبب د مرګ نهٔ دي، د عامو خلکو دا عقيده ده چه جهاد مرادف د مرګ ګنړي يعني جهاد ته وتل او سمدست مړ کيدل نو الله فرمائي چه داسې نهٔ ده۔ او پدې ذهن سازئ کې فائدې دا دي :
(۱) ترغيب دې جهاد ته چه د جهاد سره مينه ولرئ (۲) او ترهيب دې د جبن (بزدلۍ) نه چه بزدلي مهٔ اختياروئ، مرګ په نيټه دې۔ (۳) او د دين نورو کارونو ته ترغيب دې امر بالمعروف او نهي عن المنکر ته چه دا کوئ څکه چه پدې سره د چا نيټه نهٔ رانزدې کيږي او نه رزق دفع کوي څکه چه د هر چا خپل وخت مقرر دې۔
بِإِذۡنِ ٱللَّهِ : يعني د الله په امر او د هغه په اراده باندې۔
كِتَٰبٗا مُّؤَجَّلٗا : فعل ئې پټ دې (اَیْ كَتَبَ كِتَابًا مُّؤَجَّلًا) ۔ الله ليکلي دي د هر نفس دپاره د هغه عمر ليکل د نيټې والا۔ يا ليکل دي مقرر په يو وخت معين باندې چه نهٔ مخکې کيږي او نهٔ روستو کيږي۔
وَمَن يُرِدۡ : ددې دوه معانې دي (۱) (وَمَنْ يُرِدْ بِعَمَلِهٖ) ۔يعني څوك چه د دين عمل کوي او غرض ئې دنيا، مال، رياء او مدح او شهرت وي نو هغه به ورته ورکړو خو سورت بني اسرائيل (۱۸) آيت کې ورله شرط ونيلې دې : ﴿ مَا نَشَاءُ لِمَنْ نُرِيدُ﴾ څه چه مونږ غواړو او چا له ئې چه غواړو۔ يعنې دنيا کې به ورته دغه څيزونه خو ملاؤ شي غالباً ليکن په آخرت کې به ورله هيڅ برخه نهٔ وي۔ او څوك چه په خپلو عملونو سره د آخرت اراده لري چه الله تعالیٰ به هلته اجرونه راکوي نو مونږ به ئې ورته ورکړو۔
پدې کې اشاره ده دې ته چه کوم انسانان په دين باندې باقي پاتې نهٔ دي هغه دنيا پرست دي او کوم چه د الله تعالیٰ په دين کلك ودريږي نو دا آخرت والا دي او دا ترغيب دې چه اې بنده! تهٔ د آخرت اراده وکړه نو خپله به په دين باندې کلك پاتې شې۔او اشاره ده چه څوك د دنيا دپاره نيك عمل کوي نو هغه به غالباً مرتد کيږي۔
(۲) دويم تفسير : يا پدې کې عموم دې يعني څوك چه د دنيا اراده لري تول نصب العين ئې د دنيا ښه کول وي نو د الله تعالیٰ عادت دا دې چه هغه ته هم دنيا ورکوي، کافران د دنيا د ښه کولو دپاره لګيا دي، نو ډير حده پورې ئې ښه کړيده او د چا نصب العين چه آخرت وي نو هغه ته به آخرت ورکړي او په آخرت کې د الله تعالیٰ ښائسته بدلې صرف د هغه خلکو دپاره دي چه په دين کلك ولاړ وي۔او صرف د آخرت په نيت سره عملونه کوي چه دوی ته شاکرين وائي۔

## ربط او تعلق

ددے تعلق د (ماکان لنفس) سره داسے شو چه اے انسانه ! ستا مرگ په نیته دے نو عملونه د آخرت کوه او ددے نه مهٔ یریږه چه ددے عمل په وجه به په تا مرگ راشی لکه جهاد کول د الله په لاره کې او دعوت کول د الله دپاره او مال لګول نو دا مهٔ وایه چه که دا کارونه وکړم هسے نهٔ چه مړ شم بلکه مرگ په خپله نیټه دے۔ کله چه د بنده دا یقین شی چه مرگ په خپله نیټه دے نو هغه به د جهاد او دعوت کار نهٔ پریدی او د حرام خوری نه به ځان ساتی۔

**حکمة** : مخکی ئے (سیجز الله الشاکرین) وویل او دلته (سنجزی الشاکرین) (۱) مخکی په بندګئ باقی پاتے کیدل وو نو لفظ د الله ورسره مناسب دے او دلته بدله او جزاء د عامل مقصود ده نو صیغه د متکلم ئے راوړه کثرتِ جزاء ته اشاره ده۔

| وَكَأَيِّن مِّن نَّبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ |
|---|
| او ډیر د پیغمبرانو نه جنگونه کړیدی د هغوی په ملګرتیا کی الله والا خلکو ډیرو |
| فَمَا وَهَنُوا لِمَا أَصَابَهُمْ |
| نو سستی نهٔ وه کړے هغوی (د جهادکولونه) دوجے د هغه تکلیفونو نه چه رسیدلی وو هغوی ته |
| فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَمَا ضَعُفُوا |
| په لاره د الله کی او نه وو کمزوری شوی (په مقابله دشمن کی) |
| وَمَا اسْتَكَانُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الصَّابِرِينَ ﴿١٤٦﴾ |
| او عاجزی ئے نهٔ وه کړے (دشمن ته) او الله مینه کوی د صبرناکو سره۔ |

**تفسیر** : ددے ځای نه تر (۱٤۸) پورے الله تعالیٰ د پخوانو پیغمبرانو او د هغوی د تابعدارو اجمالی قصه بیان کړیده، مقصود پدے کی (۱) [اِقْتِدَاءُ الْمُؤْمِنِيْنَ بِهٰؤُلَاءِ الصَّالِحِيْنَ الْقُدَامٰى]۔ چه مؤمنان د دغه نیکانو تابعداری وکړی۔ (۲) او دا هغه نور صفات دی چه پدے سره شکست دفع کیږی او د امت تربیت پرے کیږی هغه دا دی :

(۱) اول دا چه الله والا ځان جوړ کړه، (رِبِّيُّوْنَ) یعنی اخلاص ځان کی پیدا کړه

(۲) فَمَا وَهَنُوْا : او د وهن او ضعف او استکانت نه ځان وساتئ۔ (۳) د صبر ماده ځان کی پیدا کړئ۔ (٤) وَمَا كَانَ قَوْلَهُم : د الله نه دعاګانی طلب کړئ۔ (٥) او د احسان صفت ځان

کی راولیٔ۔ یعنی د پخوانو نیکانو پہ شان صفات خان کی پیدا کړیٔ۔
او دا آیتونہ د غزا د اُحد سرہ هم لګیږی چہ کلہ مسلمانانو تہ تکلیف ورسیدو نو هغوی پریشانہ شو چہ مونږ مسلمانان یو او مونږ سرہ نبی موجود دے او مونږ تہ تکلیف رارسیږی او دغسے کہ هرُ څل مونږ وهلے کیږو نو دا خو بہ مونږ ختم شو او دین بہ ختم شی؟، مؤمنانو تہ داسے قسم وسوسے راځی نو الله تعالیٰ پدے آیتونو سرہ د مؤمنانو دغہ وسوسے ختمے کړیدی چہ ددے خبرو نہ مهٔ یریږیٔ، پخوانو نیکانو تہ دا قسم مصیبتونہ رسیدلی وو لیکن هغوی کلک ولاړ وو نو آیا تاسو بہ کلک نهٔ ودریږیٔ بلکہ د هغوی اقتداء وکړیٔ۔ یا پہ بل تعبیر سرہ : الله تعالیٰ مؤمنانو تہ وائی چہ تاسو خو د ټولو امتونو نہ غورہ امت یئ نو تاسو د نبی کریم ﷺ د مرګ پہ دروغژنہ آوازہ باندے پہ تاسو کی ولے کمزوری او سستی موجودہ شوہ تردے چہ ستاسو ځینی کسانو وغوښتل چہ د کافرانو اطاعت تہ سرونہ ټیټ کړی نو پکار دہ چہ ستاسو مقاومت او مقابلہ د نورو امتونو پہ نسبت ډیرہ قوی او کلکہ وی حال دا چہ پہ پخوانو امتونو کی داسے ډیر خلک تیر شویدی چہ د خپلو پیغمبرانو پہ ملګرتیا کی ستاسو پہ شان ډیرو مشکلاتو سرہ مخامخ شویدی خو هغوی دغہ درے کارونہ نهٔ دی کړی۔
وَكَأَيِّن : دا پہ معنیٰ د کم خبری (تکثیر) سرہ دے۔ یعنی ډیرو۔
رِبِّيُّونَ : منسوب دے رب تہ، ربانیون او ربیون دواړہ پہ یوہ معنیٰ دی یعنی الله والا خلک چہ د رب بندګی کوی۔ او دا قول د اخفشؒ دے، پہ عربیٔ ژبہ کی چہ یاء نسبتی د پیوستہ کیدو پہ وجہ کلہ نا کلہ پہ کلماتو کی تغیر واقع کیږی، کلہ پہ راء باندے زیر راځی او کلہ پہ کی الف او نون زیاتیږی ربانی وئیلے کیږی۔ (۲) یادا جمع د رُبَّةٌ دہ پہ معنیٰ د جَمَاعَة سرہ۔ یعنی ډیر پیغمبران وو چہ د هغوی پہ ملګرتیا کی ډیرو جماعتونو (ډلو) د کفارو پہ مقابلہ کی جنګونہ کړی وو نو تاسو بہ ئے هم کویٔ۔ (ابن عباسؓ، مجاهدؒ، عکرمہؒ وغیرہ)
(۳) د ابن مسعود ﷺ قول دے چہ د ربیون نہ زرګونہ خلک مراد دی۔ (ابن کثیر، بغوی)
(٤) ابن زیدؒ وائی : ربیون اتباع (یعنی تابعدارو) او رعیت تہ او ربابیون والیانو (مشرانو) تہ وائی۔ (ابن کثیر)
فَمَا وَهَنُوا : وهن ئے ونکړو یعنی چہ دنیا سرہ ئے محبت پیدا شی او د مرګ نہ ویریږی یعنی سست شی۔ او ضعف وائی : (نُقْصَانُ الْقُوَّةِ فِي مُقَابَلَةِ الْعَدُوِّ) ۔ یعنی د دشمن پہ مقابلہ کی خپل قوت کم ښکارہ کول چہ مونږ کمزوری یو، د دشمن د مقابلے نهٔ یو۔ او

کله ضعف د رائی او عقل کی هم استعمالیږی، دلته مراد دا دے چه همت ئے نهٔ وو کمزورے شوے چه قتال پریدی او (وَمَا اسْتَكَانُوْا) استکانت دے ته وائی چه دشمن ته عاجزی وکړی او هر څه ورته تسلیم کړی، یا مرتد شی یا ورته د صلح دعوت ورکړی، نهٔ بلکه هغوی په میدان کی کلك ولاړ وو۔ استکانة ډیرے عاجزئ ته وائی د کینٌ نه دے او دا د زنانه د رَحِم په خوا کی غوښه ده او هغه ذلیله ده نو استکانة کی معنیٰ د ذلت پرته ده۔

نو مجاهدین به ددے درے واړو کارونو نه ځان ساتی او ددے علاج صبر دے نو څکه وریسے وائی (والله یحب الصابرین)۔ یعنی ځان کی د صبر ماده پیدا کړئ الله تعالیٰ به درسره محبت شروع کړی۔

| وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ إِلَّا أَنْ قَالُوْا رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا |
|---|
| او نهٔ وه وینا (دعا) د هغوی مگر دا چه وئیل به ئے : اے ربه زمونږ ! وبخه مونږ ته |
| ذُنُوْبَنَا وَإِسْرَافَنَا فِيْ أَمْرِنَا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا |
| گناهونه زمونږ او زیاتے زمونږ په کار (د دین) زمونږ کی او مضبوط کړه قدمونه زمونږ |
| وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِيْنَ ﴿١٤٧﴾ |
| او مدد راکړه مونږ ته په قوم کافرانو۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی الله تعالیٰ مونږ ته دا تعلیم راکوی چه د هغه نه به څنگه دعا غواړو دا په جهاد کی هم په کار راځی او په عامو حالاتو کی هم۔ (القرطبی)

قَوْلَهُمْ : د قول نه مراد دلته دعاگانی دی یعنی جهاد کی به ئے صرف دعاگانی کولے نورے د وسلے د کمئ او د الله تعالیٰ نه د نا امیدئ خبرے نهٔ وے۔ او خپلو گناهونو ته متوجه وو د هغے د مغفرت سوال ئے کولو۔ پدے وجه د کان اسم او خبر دواړه ئے د قول لفظ ذکر کړیدے۔

## د ذنوب او اسراف فرق

۱- ذنوب هغه دی چه د هغے جنس حرام وی لکه شراب، او اسراف هغه دے چه زیادت پکی حرام وی۔ ۲- ذنوب گناهونو او معاصیو ته وائی او اسراف د نبی د اطاعت نه تجاوز کول او بدعت پیدا کولو ته وائی۔

۳- ذنوب واړه گناهونه دی او اسراف غټ گناهونه دی۔ (قرطبی)

او پدے کی اشاره وه چه اے مسلمانانو! په تاسو باندے په اُحد کی څه معمولی شان شکست راغلو نو دا د امیر د معمولی شان مخالفت د وجه نه نو آینده کی متوجه وسیږئ۔
وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا : د گناهونو د مغفرت سوال ئے مخکی کړو ځکه چه گناهونه هغه څیزونه دی چه انسان باندے په سخت وخت کی حمله کوی او ددے په وجه بنده نه د الله تعالیٰ مدد اوړی او په انسان باندے د جهاد نه سستی راولی او نا امیدی پیدا کوی۔ نو په هرحالت کی دا دعا کول ضروری دی حتی چه په دعوت او درس کی هم ضروری ده چه د گناه د وجه نه په بیان او درس او تدریس کی بند نشی۔

| فَآتَاهُمُ اللَّهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا وَحُسْنَ ثَوَابِ الْآخِرَةِ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴿١٤٨﴾ |
| --- |
| نو ورکړه الله دوی ته بدله د دنیا او ښائسته بدله د آخرت او الله مینه کوی د احسان کونکو سره۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی دا بیان دے چه الله تعالیٰ دغه نیکانو بندگانو ته د هغوی د توحید او په الله تعالیٰ باندے د کامل توکل او د گناهونو نه د معافی غوختلو په وجه په دنیا کی هم کامیابی ورکړه، فتح او نصرتونه او غنیمتونه ورته ملاؤ شو او ښائسته نوم ئے وګټلو او د ایمان رڼا د هغوی په زړونو کی زیاته شوه۔ او په آخرت کی به ئے په خپل فضل او کرم سره جنت ته داخلوی۔ د آیت په آخر کی الله د دوی ښائسته نوم ذکر کړو نو پدے سره ئے د دوی سره د محبت اظهار اُوکړو۔
د آخرت د بدلو سره ئے (حُسن) ذکر کړو ځکه چه د دنیا د عوض سره تکلیف هم وی او امتحان پکی وی او د آخرت نعمتونو کی تکلیف هم نشته او امتحان هم نشته۔ بیا ئے د آخرت د بدلو سره هم (آتی) ماضی صیغه ذکر کړه دپاره د تحقق الوقوع یعنی چه دا نعمتونه ورکول دوی ته یقینی دی۔ او دوی دپاره ئے د دنیا او د آخرت بدلے جمع کړے ځکه چه دوی په خپلو عملونو سره د دنیا او د آخرت سعادت اراده کړے وو او جزاء د نیت مطابق وی او پدے کی رد دے په هغه خلکو چه هغوی په زهد کی غلو کوی۔ (المنار)

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تُطِيعُوا الَّذِينَ كَفَرُوا يَرُدُّوكُمْ |
| --- |
| اے مؤمنانو! که تاسو خبره منئ د هغه کسانو چه کفرئے کړے دے واپس به کړی تاسو لره |
| عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ فَتَنْقَلِبُوا خَاسِرِينَ ﴿١٤٩﴾ |
| په پوندو ستاسو باندے نو اُوبه ګرځئ تاوانیان۔ |

بَلِ اللّٰهُ مَوْلٰكُمْ وَهُوَ خَيْرُ النّٰصِرِيْنَ ﴿١٥٠﴾

بلکه الله تعالیٰ مددګار ستاسو دے، او هغه غوره دے د مددګارانو نه۔

**تفسیر** : ربط : مخکې ذکر شو چه د نیکانو تابعداری وکړئ نو اُوس وائی چه د کافرانو د تابعدارئ نه ځان وساتئ۔

**مضمون** : او ددے ځای نه نور قوانین بیانیږی، پدے آیت کی دا قانون بیانوی : (اَلنَّهْیُ عَنْ اِطَاعَةِ الْکُفَّارِ) ۔ الله تعالیٰ مؤمنان منع کوی د کافرانو د تابعدارئ نه او د هغے وجه بیانوی چه دوی تاسو مرتد کوی۔ دغه شان خبره روستو آیت (۱۵۶) کی بیا بیان شویده فرق دا دے چه دا آیت د یهودو او نورو کافرو په باره کی دے او هغه آیت د منافقانو په باره کی وو چه منافقانو هم دا کوشش کولو چه مؤمنان د جهادونو نه بند کړی او د یهودو هم دغه کوشش وو۔ نو الله تعالیٰ فرمائی چه معاشره د مسلمانانو به هله جوړیږی او جهادونه به هله کامیابیږی او اسلام به هله ترقی کوی چه مؤمنان د کافرانو خبره ونهٔ منی۔

### شان نزول

ددے آیت د نزول وجه هم دا وه چه بعض کسانو به د یهودو طاعت کولو او هغوی چه به ورته څه وئیل هغه به ئے منل او دا به ئے ویل چه یهود مونږ سره مدد کوی، مونږ له مال راکوی نو الله فرمائی : چه زهٔ به درسره مدد کوم او کافران به درته راځملوم او د هغوی په زړونو کی به رعب واچوم نو د هغوی تابعدارئ ته ضرورت نشته۔

ځینو مفسرینو وئیلی دی چه پدے جنګ کی چه د کومو مسلمانانو زړونه مات شول او شیطان مشهوره کړه چه محمد (ﷺ) قتل شو نو منافقانو بعض مسلمانانو ته اُووئیل چه که محمد (ﷺ) نبی وے نو نهٔ به قتل کیدے، پدے وجه تاسو د خپلو پلارانو او نیکونو دین طرف ته راواپس شئ۔ چونکه دا خبره د اسلام او د مسلمانانو په خلاف یو لوئی سازش وو، پدے وجه الله تعالیٰ هغوی ته خبردارے ورکړو چه که تاسو ددے کافرانو اطاعت کوئ او د دوی په دوکه کی راشئ نو دوی به تاسو د اسلام نه واړوی او هر قسمه تاوان به ستاسو په نصیب کیږی۔

بیا روستو الله تعالیٰ د بعض مسلمانانو په زړونو کی د یو سوال پیدا کیدو جواب کوی چه الله تعالیٰ وئیلی وو زهٔ درسره مدد کوم نو په اُحد کی خو مونږ سره مدد ونشو ؟ نو الله فرمائی چه ولے ئے درسره نهٔ دے کړے خو دا ستاسو د بعض ملګرو نقصان وو چه هغوی

حکم مات کړو نو شکست سره مخامخ شوئ او بیا به د اُحد د غزا تصویر بیان کړی ددے دپاره چه تربیت وکړے شی چه دا کار مو صحیح وو او دا کار خطاء وو. تر راتلونکی رکوع پورے، بیا الله تعالیٰ د منافقانو د طاعت نه منع کړیده، او د هغے تفصیلات ئے تر (۱۵۷ او ۱۵۸) آیت پورے بیان کړیدی بیا ئے د رسول الله ﷺ صفات بیان کړیدی چه زمونږ د مشائخو په اصطلاح کی ورته (بیان شرائط الامیر) وائی. یعنی د امیر د شرطونو بیان چه امیر به دا صفات ځان کی پیدا کوی. بیا الله تعالیٰ د خپل توحید او توکل په باره کی خبره کړیده چه صرف اعتماد په الله وکړئ، بیا بل قانون د غلول دے چه په غنیمتونو کی به خیانت نۀ کوئ بیا تقسیم د انسانانو دوه ډلو ته یو د الله د رضا والا او بل د الله د غصی والا، بیا ترغیب دے رسول الله ﷺ ته او د هغه تذکره ئے د یو خاص حکمت دپاره کړیده. بیا به په منافقانو ردونه کیږی.

إِنْ تُطِيعُوا : مطلب دا دے چه که تاسو د کافرانو خبره ومنله نو د تاوان نه علاوه به بل هیڅ درته ملاؤ نشی ځکه چه یو طرفته به مو ایمان په کفر بدل شی او بل طرفته هغوی تاسو ته نۀ په دنیا کی خیر رسولے شی او نۀ په آخرت کی، د هغوی دا وَس نشته چه تاسو ته د الله تعالیٰ د غضب نه نجات درکړی او یا مو څه مشکل حل کړی بلکه هغوی خپله د الله د دشمنئ او هلاکت سره اخته شویدی. بلکه د ټولو کارونو کونکے او مشکلات حل کونکے خو صرف الله تعالیٰ دے او دا تاسو ته چه نن کوم مصیبتونه در ورسیدل ددے مطلب دا نۀ دے چه ګنے الله تعالیٰ ستاسو کار ساز نۀ دے بلکه دا د څه حکمتونو په وجه راغلل، الله تعالیٰ ستاسو غوره مددګار دے ستاسو هیڅ ته ضرورت نشته چه مدد ترے وغواړئ، دا کار خو به هغه څوك کوی چه الله تعالیٰ خپل مددګار نۀ ګنړی او د الله نه غافله شوی وی.

إِنْ تُطِيعُوا : ابوحیانؒ وئیلی دی چه د هیڅ کافر خبره منل جائز نۀ دی البته ددے نه په اجماع سره مسلمانانو ته لاره خودونکے او د داسے رای والا چه مصلحت پکی ښکاره وی او کتابیه ښځه (چه منکوحه وی) چه د خیر مشوره ورکوی- هغه مستثنیٰ دی.

خَاسِرِيْنَ : ددے نه د دنیا او د آخرت دواړو تاوان مراد دے، د دنیا تاوان خو دا دے چه دشمن ته غاړه کیخودل او هغه ته محتاج کیدل دی او دا سراسر ذلت دے او د آخرت تاوان دا چه د همیشه ثواب نه محروم کیدل او د عذابونو سره مخامخ کیدل دی. او (فتنقلبوا) (انقلاب) نه معلومه شوه چه دین اسلام کی عزت د دنیا او د آخرت دے او په کفر سره هغه

بیخي بدلیږي۔
بَلِ اللّٰهُ : یعني کافران په هیڅ حالت کې د طاعت لائق نهٔ دي ځکه چه هغوی کې د ولایت (مددګارۍ) صفت نشته۔

خَیْرُ النّٰصِرِیْنَ : الله تعالیٰ ولې غوره دے د مددګارانو نه؟

ددے ډیرے وجے دي (۱) د الله تعالیٰ نصرت سره د بل چا نصرت ته حاجت نشته نو هغه کافي او کامل مدد کوي۔ (۲) د هغه نصرت په دنیا او آخرت کې دے۔ (۳) الله تعالیٰ د مدد غوښتلو نه مخکې هم مدد کوي او د هغه علم او قدرت عام دے نو د نصرت وخت او د انسان حاجت بانده پوره خبردار دے نو د هغے مطابق نصرت کوي، چه په هغے کې څه ظلم په چا نهٔ وي۔ (اللباب لابن عادل الدمشقي ۵۹۲/۱)

| سَنُلْقِیْ فِیْ قُلُوْبِ الَّذِیْنَ کَفَرُوا الرُّعْبَ بِمَا |
|---|
| زر دے چه مونږ به واچوو په زړونو د هغه کسانو کې چه کفرئے کړیدے یره پدے وجه |
| اَشْرَکُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ یُنَزِّلْ بِهٖ |
| چه دوی برخه داران جوړ کړیدي د الله سره هغه څوك چه نهٔ دے رالیږلے الله د هغے په شرکت |
| سُلْطٰنًا وَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ وَبِئْسَ مَثْوَى الظّٰلِمِیْنَ ﴿۱۵۱﴾ |
| هیڅ دلیل او ځای د ورتللو ددوی اُور دے او بد دے ځای د وسیدو د ظالمانو۔ |

**تفسیر** : پدے کې د مدد دیو بے طریقے بیان دے چه اُوګوری نقد مدد خو دا واخلئ چه د کافرانو په زړونو کې به رعب واچوم۔ او دا وعده د اُحد په ورځ باندے رشتینې شوه چه کافران سره د غلبے نه په غیر د څه سبب نه واپس شول او بیائے په نیمه لاره کې د دوباره حملے اراده وکړه خو بیا هم ویریدل چه ختم نشو۔

او دا وعده په هر وخت کې د مسلمانانو سره ده چه الله تعالیٰ په هر جنګ کې کافرانو باندے رعب راوستے دے او اسلام ئے غالبه کړیدے او بعض علماؤ وئیلي دي چه د هر کافر په زړه کې د دین اسلام یو قسم رعب پروت دے پدے وجه د اسلام د مغلوبیت دپاره هر وخت کوششونه کوي او د اسلام د غلبے نه یریږي۔

او ددے رعب اچولو دپاره دوه سببونه بیان شویدي۔ (۱) بما اشرکوا: یعني یو خو دوی د

الله تعالیٰ سره شریکان جوړ کړیدی هغه باطل معبودان چه الله تعالیٰ د هغې په بندګئ او شرکت باندې هیڅ یقینی او قطعی دلیل نهٔ دې رالیږلې، نو شرك سبب د رعب دې ځکه چه مشرك د مخلوق نه یره کوی چه هغه عاجز دی او د هغوی نه د مدد امید لری نو مشرك هسې خیالات اسباب ګڼړی او پدې باندې عادت دې چه د هغه شی نه یره کوی چه د هغې د ضرر نه یره نشی کیدې او د هغه شی امید لری چه د هغه نه د خیر امید نشی کیدې۔ نو زړهٔ ئې همیشه پریشانه وی او کمزورې او یره کی وی۔ (المنار)

(۲) دویم سبب د رعب په سورة الحشر کی راغلې دې ﴿وَقَذَفَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ﴾ - الی قوله - ﴿ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَآقُّوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ یعنی د الله او د رسول مخالفت، نو معلومه شوه چه معاصی او ګناهونه سبب د رعب دې۔

## سوال وجواب

دلته الله تعالیٰ وفرمایل چه کافرانو باندې به رعب اچوم او ډیر کرته په جنګ کی کافران زړه ور وی او مؤمنان کمزوری وی لکه په غزوه د حنین کی واخله چه مسلمانان تس نس شو او کافران په خپلو ځایونو ولاړ وو؟۔

جواب (۱) ځینی وائی چه دلته د کافرانو نه مراد مشرکان دی ځکه چه مشرك د بعض مخلوقاتو دپاره بغیر د اسبابو نه غیبی تاثیر ګڼړی او هرچه کفر دې نو هغه په خپل طبیعت سره سبب د رعب نهٔ دې۔ (المنار) مګر دا جواب ضعیف دې۔

(۲) جواب: ځینو علماؤ دا وعده صرف د واقعې د اُحد پورې خاص کړې وه (دا په هغه وخت کی چه دا آیت د واقعې د اُحد نه مخکی نازل شوې وی) چه په اُحد کی الله تعالیٰ د مشرکانو په زړونو کی رعب واچولو او کافران بغیر د څه سبب نه وتختیدل او مؤمنان ئې په ځای پریخودل۔ مګر دا قول هم ضعیف دې ځکه چه دا آیت د اُحد نه روستو نازل دې۔ او ځینی وائی چه دا وعده په حمراء الاسد کی پوره شوه چه ابو سفیان بیرته راستون نشو چه د صحابه کرامؓ بیخکندی وکړی۔

(۳) صاحب المنار د خپل شیخ نه نقل کړیدی چه آیت عام دې او مقصد دا دې چه کله د صحابه کرامؓ په شان مسلمانان وی او د قریشو او د هغه زمانې د کافرانو په شان ضدیان او عنادیان وی چه حق بنه وینی لیکن نهٔ ئې منی خو کله چه د دوی جنګ راشی او مؤمنان کلك ودریږی او تیښته ونکړی نو د دغه باطل پرستو شلك زیات شی او زړهٔ ئې د رعب نه

ډك شي چه دا خو په حقه دي او مونږ چرته شکست ونهٔ خورو ځکه چه د چا زړه ته حق ورسیږي نو د هغه په زړه کې باطل خامخا کمزوری کیږي. نو حاصل دا شو چه څومره ایمان مضبوط وي هغومره به په کافرانو باندې رعب زیات وي نو کومو مسلمانانو ته چه کافران نهٔ یریږي نو هغه پدې وجه چه دوی پوره تول په توله په اسلام باندې راجمع نهٔ وي، بعض مخالفتونه پکې وي، دغه شان حالت باندې نهٔ وي کوم باندې چه سلف صالحین وو. او ددې تائید هغه حدیث کوي : (يُوْشِكُ اَنْ تَدَاعٰى عَلَيْكُمُ الْاُمَمُ – په هغې کې دا دي : (وَلَيَنْزِعَنَّ اللّٰهُ مِنْ قُلُوْبِ عَدُوِّكُمُ الْمَهَابَةَ مِنْكُمْ) . الحديث. (ابوداود) یعنی ستاسو د دشمنانو د زړونو نه به ستاسو رعب وباسي. (ځکه چه تاسو به په خپل دین کلك نهٔ یئ).

یعنی پدې کې هیڅ شك نشته چه دې امت محمدیه ته رعب ورکړے شویدے لیکن په ځینو ځایونو کې چه د هغې آثار نهٔ لیدل کیږي نو هلته به څه مانع موجود وي لکه چه د اُحد په غزا کې د کنډو د مجاهدینو اختلاف سبب شو چه د دوی په زړونو کې په موقت ډول رعب واقع شو. (عزیز التفاسیر)

مګر ډیره راجح دا ده چه الله تعالیٰ د هر کافر په زړه کې د مسلمانانو او اسلام نه یره اچولې ده لکه چه مخکې بیان شو او که په یو وخت کې مسلمان د امتحان په طور شکست وخوري خو عاقبت د اسلام او د مسلمانانو دپاره دے. او کافران سره د غالبه کیدو نه بیا هم په رعب کې وي، پریشانه وي چه مسلمانان راباندې بیرته غالبه نشي.

مَا لَمْ يُنَزِّلْ : دا قید د مزید قباحت دپاره دے، شرك هسې هم حرام دے او بیا پرے الله تعالیٰ دلیل هم نهٔ دے رالیږلے. بلکه شرك تول وهمیات او غلط خیالات دي.

قرطبیؒ لیکلي : معنیٰ دا ده چه د بتانو عبادت (یعنی شرك) په هیڅ ملت کې د شرعي ملتونو نه ثابت نهٔ دے او د عقل هم خلاف دے.

**فائده** : ابو السعودؒ او د هغه نه مخکې امام رازيؒ لیکلي دي د شرك د ابطال (باطلوالي) دپاره علت دلیل منزله نهٔ موجودیدل دي نو ددې علت د وجه نه تقلید هم باطل دے ځکه چه په تقلید کې هم دلیل منزله نهٔ وي.

علامه آلوسيؒ او ابوالسعودؒ وائي : دا آیت دلالت کوي په دې خبره چه د توحید په باب کې د اتباع قابل شے آسماني برهان (دلیل) دے، آراء او خواهشاتِ باطله ته هیڅ اعتبار نشته. او ابوحیانؒ وئیلي دي چه پدې کې د تقلید ابطال (باطل والي) ته اشاره ده ځکه چه مقلد سره دلیل نهٔ وي. او صاحب اللبابؒ ویلي دي چه دا آیت دلیل دے چه تقلید یو فاسد

شي دي ځکه هر کله چه په شرك باندې دلیل نشته نو ضرور باطل دې نو دغه شان هر قول چه په هغې باندې دلیل منزل نۀ وي نو باطل دې۔ (قاسمیؒ)

وَمَاْوٰهُمُ النَّارُ : ماوی ځای د پناهۍ ته وائي او هغه ځای چه هغې ته رجوع کیږي۔ قرطبيؒ نو د کافرانو سره دا د الله تعالیٰ وعده ده چه دنیا کې به مرعوبه شي او په آخرت کې به اُور ته داخل شي۔

مَثْوٰی : ځای د وسیدو ته وائي (ثَوٰی بِالْمَكَانِ اَیْ اَقَامَ بِهٖ) په یو ځای کې وسیدل۔

الظّٰلِمِيْنَ : ظالمان ئې دلته مشرکانو ته وئیلي دي ځکه چه دوی غټ ظالمان دي۔

| |
|---|
| وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللّٰهُ وَعْدَهٗٓ اِذْ تَحُسُّوْنَهُمْ بِاِذْنِهٖ |
| او یقیناً رشتینې کړې الله تاسو سره وعده خپله کله چه وژل تاسو هغوی لره په مدد د الله سره |
| حَتّٰٓى اِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَازَعْتُمْ فِى الْاَمْرِ وَعَصَيْتُمْ |
| تردې چه کله کمزوري شوئ او جګړه وکړه تاسو په حکم د رسول کې او خلاف وکړو تاسو |
| مِّنْۢ بَعْدِ مَآ اَرٰىكُمْ مَّا تُحِبُّوْنَ ۭ مِنْكُمْ |
| (د حکم د نبي نه) پس د هغې نه چه وخودل الله تاسو ته هغه څه چه خوښول تاسو بعضې ستاسو نه |
| مَّنْ يُّرِيْدُ الدُّنْيَا وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ۚ ثُمَّ |
| هغه وو چه اراده ئې لرله د دنیا او بعضې ستاسو نه هغه وو چه اراده ئې لرله د آخرت بیا |
| صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ ۚ وَلَقَدْ عَفَا |
| الله واړولئ تاسو د دوی نه دې دپاره چه امتحان وکړي په تاسو او یقیناً الله معافي کړېده |
| عَنْكُمْ ۭ وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۵۲﴾ |
| تاسو ته او الله خاوند د مهربانۍ دې په ایمان والو باندې۔ |

**تفسیر** : پدې رکوع کې د غزوۀ احد تصویر بیانوي دپاره د تربیت۔

ربط او شان نزول : دا متعلق دې د (خَيْرُ النّٰصِرِيْنَ) او (سَنُلْقِيْ) پورې۔ کله چه صحابه کرام د اُحد غزا نه مدینې ته ورسیدل نو هلته دا خبره خوره شوه چه مونږ سره خو الله تعالیٰ د نصرت وعده کړې وه نو دا ماتې مو ولې وخوړله ؟ او کیدې شي چه دا خبره منافقانو خوره کړي وي نو ګویا که دا سوال پیدا شو (كَيْفَ يُلْقِي الرُّعْبَ فِيْ قُلُوْبِ الْكُفَّارِ وَقَدْ قَتَلُوْنَا فِيْ

اُحُدِ)۔ الله تعالىٰ څنګه د كافرانو په زړونو كې رعب اچوى حال دا چه هغوى مونږ په اُحد كې قتل كړو، نو مدد به كله راځى؟ نو جوب وشو چه الله تعالىٰ تاسو سره وعده د مدد رښتينى كړيده چه په اوله حمله كې تاسو دوه ويشت كافران ووژل او باقي وتختيدل او غنيمتونه ترې پاتې شول او بيا تاسو هغه راغونډول۔ (تفسير مدارك ١/١٤٦)

وَعْدَهُ : د وعدې نه مراد وعد النصرة (د مدد وعده) ده۔

إِذْ تَحُسُّونَهُمْ : حس په معنىٰ د قتل سره او بيخكندى كولو سره دے۔

بِإِذْنِهِ : اذن په معنىٰ د قضاء او قدر يا په معنىٰ د توفيق سره دے۔ يا په معنىٰ د حكم سره۔

حَتَّى إِذَا فَشِلْتُمْ : ددے ځاى نه اُوس د شكست اصل وجه بيانوى چه نبي ﷺ د عبد الله بن جُبير رضي الله عنه په مشرئ كې د پنځوسو غشو ويشتونكو يوه ډله په يو كنډو كې مقرر كړے وه چه كله مسلمانانو فتح وموندله نو ددے غشو ويشتونكو اختلاف رائے پيدا شوه، اكثرو وويل چه اُوس دلته زمونږ پاتے كيدل ضرورى نهٔ دى ځكه چه مونږ فتح حاصله كړيده، د جماعت امير او تقريباً لسو نورو كسانو وويل چه مونږ ته په هر حال كې دلته د پاتې كيدو حكم دے پدے وجه خپله مورچه مه پريږدئ ليكن هغوى اُونهٔ منله او د نبي ﷺ حكم او دغه شان د خپل امير د حكم نه ئے خلاف اوكړو او كنډو (مورچه) ئے پريښوده او په مالِ غنيمت جمع كولو كې مصروف شو۔

فَشِلْتُمْ : اَىْ ضَعُفْتُمْ وَتَرَاخَيْتُمْ بِالْمَيْلِ اِلَى الْغَنِيمَةِ) يعنى تاسو كمزورى شوئ او روستو شوئ په سبب د مائله كيدو غنيمتو ته)۔ (قاسمىؒ)

جواب د اذا فشلتم : پټ دے اَىْ اُمْتُحِنْتُمْ ۔ كله چه تاسو دغه كارونه وكړل نو په تاسو امتحان وكړے شو۔ (قرطبىؒ)

وَتَنَازَعْتُمْ : دا د فشل بيان دے۔

فِي الْأَمْرِ : يعنى په امر د امير او په امر د نبي كريم ﷺ كې مو اختلاف وكړو۔

مَا تُحِبُّونَ : ددے نه مراد د الله تعالىٰ نصرت، د مسلمانانو فتح او غنيمت او د كافرانو شكست دے۔ مطلب دا دے چه الله تعالىٰ خپله وعده پوره كړه تردے چه تاسو خپل محبوب مقصد يعنى فتح او كاميابى وموندله ليكن د هغے نه روستو تاسو د همت د كمزورئ ثبوت وركړو او اختلافات مو وكړل نو شكست سره مخامخ شوئ نو دا ستاسو د خپل عمل په وجه شو او د الله تعالىٰ د نصرت په وعده كې هيڅ تاخير ونشو۔

مَنْ يُرِيدُ الدُّنْيَا : ددے كسانو نه مراد هغه صحابه كرامؓ دى چه مُورچه ئے پريښے وه ليكن

د دنیا اراده دوه قسمه ده (۱) یوه اراده عارضه ده او دویم دا چه په خپل عمل سره د ابتداء نه د دنیا اراده لری، او دواړو کی فرق دے، دویمه ناجائز ده او د دنیا اراده په مینځ کی عارض کیدل جائز دی. مثلاً چه بنده اول نه د الله تعالیٰ دپاره عمل شروع کړے وی مینځ کی پکی دنیا هم ورته ملاویږی او هغه هم خوښوی نو دا جائز ده لکه یو تن د الله تعالیٰ دپاره جهاد کوی مینځ کی ورته غنیمت هم ملاؤ شی او کوشش کوی چه غنیمت هم حاصل کړی، دغه شان رسول الله ﷺ په جنګ کی وفرمایل: (مَنْ قَتَلَ قَتِيْلًا فَلَهُ سَلَبُهُ). چا چه څوك قتل کړو نو د هغه غنیمت به د وژونکی وی) نو دلته ئے د مال دپاره وژل د کافرو اعلان کړیدی دا جائز دی ځکه چه مجاهد د الله تعالیٰ کافر دپاره وژنی لیکن عارضی طریقے سره پکی مال هم راغلو او مؤمن له مال هم څه بد نهٔ دے. نو دلته هم دا اراده عارضه وه چه دوی ووېل چه هسے هم فتح وشوه او غنیمتونه راجمع کیږی داسے ونهٔ شی چه مونږ بره ناست یو او غنیمتونه تقسیم شی او مونږ ته به پکی برخه ملاؤ نشی ځکه چه مخکی د غنیمت متعلق څه حکم نازل نهٔ وو. نو د هغوی ګمان دا شو چه دغه ملګری به ئے ځان له راجمع کړی او مونږ به ترے محروم شو او هر بنده اګرکه ډیر اُوچت مسلمان وی دا غواړی چه مال ورته ملاؤ شی او پیسے ئے ډیری شی نو دا څه د قباحت خبره نهٔ ده خو دلته عتاب (ملامتیا) او زړونه پدے وجه ده چه په دوی کی د بعضو ملګرو نه د رسول الله ﷺ او د امیر د امر مخالفت وشو، که صرف ئے د غنیمت اراده کړے وے او امر ماتیدو خبره پکی نهٔ وے نو دا کار بیخی جائز وو. لیکن ددے ملګرو ددے ارادے په وجه نورو ته تکلیف ورسیدو نو د داسے دنیا او مال اراده لرل چه نورو ته د هغے په وجه مصیبت ورسیږی، صحیح نهٔ وی.

صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ : اَیْ بِطَرِیْقَةِ الْاِنْهِزَامِ . ۱– یعنی تاسو ئے واړولئ د هغوی نه پدے طریقه چه تاسو ترے تیښته وکړه ځکه چه په بعض موقعو کی تیښته هم کمال وی، که نهٔ وی نو ټول به په یو ځای شهیدان شوی وے. ۲– یا مطلب دا چه بیا تاسو الله تعالیٰ د هغوی نه واړولئ یعنی ستاسو مخونه هغوی ته متوجه نهٔ شو او په غنیمتونو باندے مشغول شوئ نو الله تعالیٰ درباندے امتحان راوستو.

وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ : مخکی نه معلومه شوه چه بعض ملګرو نه دا سهوه وشوه چه د هغے په وجه شکست راغلو نو منافقان به د صحابه کرامؓ پسے خبرے کوی چه د ابوبکر او د عمر وغیره رضی الله عنهم دلاسه مونږ ته دا مصیبت راورسیدو نو د دوی د خولونه به ئے

څوك خلاصوي نو الله تعالیٰ د صحابه کرامو د طرفنه مدافعت کوي چه خامخا الله تعالیٰ تاسو ته معافي کړېده اے مؤمنانو ! خو آینده کې احتیاط کوئ۔
بله دا چه دوي خو مسلمانان دي او مسلمان ته چه کله د الله تعالیٰ د طرفنه ووېل شي چه تا کمزوري وکړه او تا د حکم مخالفت وکړو نو دا خو د هغه دپاره تباهي ده، په هغه به څو مره خفګان راجمع شي او زړونه به ئې مړئ ته ورسېږي نو الله تعالیٰ وفرمایل: چه مهٔ خفه کېږئ د انسان نه غلطي کېږي، اوس تاسو معاف شوئ، آینده کې احتیاط کوئ او د صحابه کرامو د مخالفینو خوله ئې بنده کړه چه دا زما بندګان وو او غلطي ترے وشوه ما معاف کړېدی، ستاسو په دوي باندے د اعتراض هیڅ حق نشته. نو هغه کسان ډېرلوی مجرمان دي چه ددے نه روستو هم صحابه کرامؓ مجرم ګڼړي او هغوي پسے سپکے سپورے وائی، همدغه خلك د دین دشمنان دي. قالی الله المشتکیٰ۔
د صحابه کرامؓ واقعات او تاریخ به هم پداسے طریقه پیش کولے شي چه د خلکو د زړونو نه د هغوي عظمت او کرامت ونهٔ وځي ځکه چه د هغوي توله زندګي د طاعت وه، په ټول عمر کې به د بعضو نه چرته یوه سهوه نیمه شوې وي هغه هم الله تعالیٰ معاف کړېده او د (رضی الله عنهم ورضوا عنهم) تاپه ورته لګېدلے ده۔
او صحابه کرامؓ ددے واقعے نه روستو ډېرے دعاګانې کړي او الله تعالیٰ ته ئې ډېرے توبې وېستلې دي او په خپل دے کار باندے سخت پښېمانه شوېدي نو د الله خپل فضل او رحم په وجه د هغوي دعاګانے قبولے کړېدي۔
وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ : یعني الله تعالیٰ په هر حال کې په مسلمانانو باندے فضل کونکے او مهربان دے که دوي ته شکست ورکوي نو دے دپاره چه په امتحان کې د ثابت قدم پاتے کېدو جذبه ئې پیدا شي او په امتحان کې د ثابت قدم پاتے کېدو سره د دوي په ایمان کې پوخوالے راځي او د دوي زړونه د شکوك او شبهاتو د خېرې نه پاك صفا شي۔ نودا هم د دوي دپاره رحمت دے لکه څنګه چه نصرت او فتح ورکول رحمت دے۔
یا ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ عَفَا عَنْهُمْ ۔ الله په مؤمنانو مهربانه دے ځکه ئې دوي ته معافي وکړه۔ یا ئې ترے دشمنان واړول او ټول ئې ختم نهٔ کړل۔

اِذْ تُصْعِدُوْنَ وَلَا تَلْوٗنَ عَلٰٓى اَحَدٍ وَّالرَّسُوْلُ يَدْعُوْكُمْ

کله چه تاسو روان وئ او شا ته مو نهٔ کتل هیڅ یو تن ته او رسول آواز کولو تاسو ته

| فِيْٓ اُخْرٰىكُمْ فَاَثَابَكُمْ غَمًّاۢ بِغَمٍّ لِّكَيْلَا تَحْزَنُوْا |
|---|
| د روستو ستاسو نه نو الله ورسولو تاسو ته غم دپاسه د غم نه، دے دپاره چه غمژن نشئ |
| عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَلَا مَآ اَصَابَكُمْ وَاللّٰهُ |
| په هغه څه پسے چه فوت شو ستاسو نه او نهٔ په هغه څه چه ورسیدو تاسو ته او الله |
| خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۵۳﴾ |
| خبردار دے په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ۔ |

**تفسیر**: دا متعلق دے د (صَرَفَكُمْ) پورے او دا هم تصویر دے د جنګ اُحد۔

تُصْعِدُوْنَ : د اِصْعَاد نه په مخ د زمکه او په کندو او درو کی تللو ته وائی (قرطبیؒ) او اصعاد د صعید نه دے هوار میدان ته وائی۔ اَیْ تَذْهَبُوْنَ هَارِبِیْنَ اِلَی الْمَدِیْنَةِ ۔ تاسو روان وئ چه مدینے طرفته په تیښته وئ۔ او په بل قراءت کی (تَصْعَدُوْنَ) دے هغه د صعود نه دے، غره ته ختلو دپاره استعمالیږی او دواړه حالتونه په صحابه کرامؓ راغلی وو، څه کسانو مدینے ته منډے کړے او څه کسان دړو او غرونو ته وختل او داسے وارخطاء وو چه هیچا ته ئے یو خوا بل خوا نهٔ کتل چه د هغوی حال معلوم کړی ځکه خپله پریشانه او هیبت والا وو او په عین دغه وخت کی رسول الله ﷺ تاسو ته ناری وهلے چه (اِلَیَّ عِبَادَ اللّٰهِ ! اِلَیَّ عِبَادَ اللّٰهِ!)۔ اے د الله بندګانو! ما طرفته راشئ او منډے مهٔ وهئ مګر تاسو په دومره اندازه وارخطا وئ چه دده (ﷺ) آواز ته مو فکر هم نهٔ وو۔

وَلَا تَلْوٗنَ : د لَیٌّ نه اخستے شویدے چه ددے معنیٰ ده د شا اړولو سره اخوا دیخوا کتل۔

فِیْٓ اُخْرٰىكُمْ : ۱- یعنی په بل طرف کی۔ ۲- یا د روستو نه۔ (روح المعانی ۹۱/٤)

۳- یا په هغه ډله کی چه روستو پاتی وه او میدان نه نهٔ وو تښتیدلی او پدے کی د رسول الله ﷺ سخته بهادری ته اشاره ده ځکه آواز سره دشمن ته ښکاره شو۔

فَاَثَابَكُمْ : یعنی تاسو ته ئے ورسولو غم۔ اثاب اکثر په خیر کی استعمالیږی او کله کله په شر کی هم۔ ځکه چه دا د ثواب نه دے او ثواب رجوع ته وائی نو ثواب هغه بدلے ته وائی چه کونکی ته راواپس کیږی که هغه د خیر بدله وی او که د شر۔ (رازیؒ، قاسمیؒ)

غَمًّاۢ بِغَمٍّ : (۱) د اول غم نه مراد قتل او د شکست غم دے۔ او د دویم غم نه مراد د رسول الله ﷺ د وفات آوریدو غم وو۔ او باء په معنیٰ د (عَلٰی) یا په معنی د (مَعَ) سره ده۔ یعنی الله

تعالیٰ تاسو ته د قتل او شکست غم در ورسولو لیکن دے پسے ئے بل غم یو ځای کړو دے دپاره چه اول غم درنه هیر شی ځکه چه د رسول الله ﷺ د وفات آوریدو غم ډیر سخت وو او دا قانون دے چه کله یو غم راشی او روستو پسے لوی غم راشی نو اول غم د انسان نه هیر شی لکه صحابه کرامؓ چه کله د رسول الله ﷺ د وفات خبر واوریدو نو سخت پریشانه شو بیا ئے چه د هغه د ژوند خبر واوریدو نو د شکست غم ترے هیر شو لکه یوے زنانه چه رسول الله ﷺ ولیدو نو وے ویل : (كُلُّ مُصِيْبَةٍ بَعْدَكَ جَلَلٌ).

ستا د ژوند نه روستو هر مصیبت وړوکے دے.

(۲) یا (أَثَابَكُمْ غَمًّا بِسَبَبِ غَمٍ أَذَقْتُمُوْهُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ بِعِصْيَانِكُمْ لَهُ وَمُخَالَفَتِكُمْ أَمْرَهُ) (روح المعانی ٤/٩٢). یعنی وے رسولو تاسو ته غم په سبب د غمژن کولو ستاسو رسول الله ﷺ لره چه د هغه مخالفت مو وکړو او د هغه نه وتښتیدلئ او هغه مو دشمن ته پریښودو (ابن القیمؒ) (قاسمیؒ) اول تفسیر ډیر واضح دے.

(۳) حافظ ابن قیمؒ په «زاد المعاد» کی لیکی چه دلته ډیر غمونه مراد دی نهٔ دوه غمه او د هغے اسباب هم زیات وو لکه یو غم د غنیمت فوت کیدل، بیا وریسے د شکست غم، بیا د هغه زخمونو غم چه دوی ته ورسیدل بیا د قتل غم، بیا د رسول الله ﷺ د قتل آواز آوریدو غم، بیا د دشمنانو د دوی دپاسه غر ته ختلو غم او دا غمونه ئے پرے پدے وجه راوستل چه ابتلاء او امتحان ئے ښه سخت شی چه بدله ورته ښه ملاؤ شی.

او ددے غمونو اسباب دا دی چه تاسو د رسول الله ﷺ نه وتښتیدئ او د الله نبی او د هغه ملګری مو دشمن ته پریښودل، او د هغه خبره مو نهٔ آوریدله چه هغه تاسو ته آوازونه کول د ډیرے وراخطائی ستاسو نه او د هغه د حکم د مخالفت د وجه نه چه تاسو ته ئے وئیلی وو چه مرکز (مورچه) به نهٔ پریدئ او ستاسو د اختلاف او د فشل (کمزورتیا) په وجه او دا ټول داسے څیزونه دی چه هر یو د خاص خاص غم لائق دے نو بس په دوی باندے غمونه راپنډ شو لکه چه اسباب ئے راپنډ شو او که ددے سره د الله تعالیٰ عفوه ملګرے نهٔ وے نو دا به بیا غټ مصیبت وے، خو د الله لطف او مهربانی او رحمت په هغوی باندے دا وو چه دا کارونه چه د دوی نه صادر شو دا طبعی کارونه دی چه په نفسونو کی باقی پاتی وی او پدے سره همیشه مدد بندیږی خو لیکن الله تعالیٰ په خپلے مهربانئ سره دوی دپاره داسے اسباب تیار کړل چه بیرته دوی ته دغه نصرت راواپس کوی او ددے بد آثار ختموی هغه دا چه دوی پوهه شو چه ددے کارونو نه توبه وستل او په آینده کی ددے په شان

کارونو نه ځان ساتل او هغه په خپلو اضدادو سره دفع کول یو متعین کار دے چه دوی ته کامیابی او همیشه نصرت نهٔ حاصلیږی مګر صرف په همدے سره نو دد ے نه روستو به دوی ډیره سخته یره او احتیاط کولو او هغه دروازے به ئے ډیرے ښے پیژندلے چه د هغے په وجه شکست ملاویږی او ډیر کرته جسمونه په بیماریانو سره ښه کیږی۔ (قاسمی ۲/۱۵۵)

لِكَيْلَا تَحْزَنُوْا : علامه جمال الدین القاسمیؒ وائی : دا د (اَثَابَكُمْ) پورے متعلق دے او د نه غمژن کیدو نه مراد دا دے چه تاسو په غمونو باندے عادت او اموخته شئ او په آینده زمانه کی تاسو په تکلیفونو دومره خفه نهٔ شئ۔

عَلٰى مَا فَاتَكُمْ : (اَیْ مِنَ الْغَنِیْمَةِ وَلَا مَا اَصَابَكُمْ مِنَ الْهَزِیْمَةِ مِنَ الْجِرَاحِ) ۔ یعنی دا غمونه ئے دے دپاره درورسول چه تاسو خفه نهٔ شی په هغه غنیمتونو پسے چه تاسو نه فوت شو او نهٔ په هغه زخمونو چه تاسو ته ورسیدل۔

| ثُمَّ أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ بَعْدِ الْغَمِّ أَمَنَةً نُعَاسًا يَغْشَى طَائِفَةً مِنْكُمْ |
|---|
| بیا راولیږلو الله په تاسو روستو د غم نه امن، چه خوب وو، پټولو هغے یوه ډله ستاسو نه |
| وَطَائِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنْفُسُهُمْ يَظُنُّونَ بِاللَّهِ |
| او بله ډله فکر کی اچولی وو هغوی لره نفسونو د هغوی، ګمان ئے کولو په الله باندے |
| غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ يَقُولُونَ هَلْ لَنَا مِنَ الْأَمْرِ مِنْ شَيْءٍ |
| ناحقه ګمان په شان د ګمان د جاهلیت والو، ویل دوی آیا شته مونږ لره د اختیار نه څه شے، |
| قُلْ إِنَّ الْأَمْرَ كُلَّهُ لِلَّهِ يُخْفُونَ فِي أَنْفُسِهِمْ مَا |
| ورته ووایه یقیناً کارونه ټول د الله په اختیار کی دی، پټوی دوی په زړونو خپلو کی هغه څه |
| لَا يُبْدُونَ لَكَ يَقُولُونَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ مَا |
| چه نهٔ ئے ښکاره کوی تاته، وائی دوی که چرته وے مونږ لره د اختیار نه څه شے نهٔ به وے |
| قُتِلْنَا هَاهُنَا قُلْ لَوْ كُنْتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ |
| وژلے شوی مونږ (یعنی ملګری زمونږ) دلته، ته ووایه که وے تاسو په کورونو خپلو کی |
| لَبَرَزَ الَّذِينَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ إِلَى مَضَاجِعِهِمْ |
| خامخا راوتلی به وو هغه کسان چه لیکلے شویدے په هغوی باندے قتل (مرګ) ځایونو د پریوتلو خپلو ته |

| وَلِيَبْتَلِيَ اللَّهُ مَا فِي صُدُورِكُمْ |
| --- |
| او (دا کارئے وکړو) دے دپاره چه امتحان وکړی الله د هغه (ایمان) چه په سینو ستاسو کی دے |
| وَلِيُمَحِّصَ مَا فِي قُلُوبِكُمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ |
| او دے دپاره چه صفا کړی هغه (ایمان) چه په زړونو ستاسو کی دے او الله پوهه دے |
| بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿١٥٤﴾ |
| په هغه خبرو چه په سینو کی دی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی د اُحد د غزا نور احوال بیانوی او پدے کی مؤمنانو ته تسلی او په هغوی باندے سره د بعض خطاګانو نه د الله تعالیٰ رحمت ذکر کیږی او منافقانو ته زورنه ورکوی۔

ثُمَّ : یعنی سره ددے مخکنو کارونو نه بیا هم الله تعالیٰ تاسو سره دا احسان وکړو چه د جنګ په میدان کی ئے په تاسو باندے خوب راوستو۔ امام بخاریؒ د ابو طلحه ﷺ نه نقل کړیدی چه په مونږ باندے خوب راغے او مونږ د قتال په صف کی ولاړ وو نو توره به زما د لاس نه غورزیدله او ما به بیا راخستله (درے کرته پریوته) او په روایت د ترمذیؒ کی دی : ابو طلحهؓ وائی چه ما سر اُوچت کړو نو ما نه لیدل هیڅوك مګر د خپلے د سر توپئ لاندے ئے سرخکته کوو د وجه د خوب نه۔ او ددے خوب فائده دا شوه چه د ستړی ستو مانه او د زخمونو نه ذرے ذرے او یروه ولے شوی مجاهدینو د زړونو نه د ویرے او انا امیدئ اثر ختم شو او هغوی ترو تازه او خوشحاله شو او د دشمن سره د بیا مقابلے دپاره تیار شو۔

دویم پدے خوب راوستو سره د نبی کریم ﷺ معجزه ښکاره شوه چه ددے په لیدو سره د دوی ایمان کی نور هم زیاتوالے راغے۔

فخر الدین رازیؒ لیکلی دی چه د خوب ډیر فوائد وو۔ یوه اَهمه فائده دا شوه چه د اسلام دشمنانو مسلمانان په یو خل ختمولو پسے لګیدلی وو پدے وجه د خوب په حالت کی محفوظ او په امن کی پاتے کیدل ددے خبرے لوئی دلیل وو چه الله تعالیٰ په هغه حال کی هم د دوی حامی او ناصر وو۔ او ددے لازمی نتیجه دا شوه چه د الله په وعدو باندے د دوی یقین زیات شو او د دشمن خوف او یره د هغوی د زړونو نه اُووتله۔ (تفسیر کبیر)

اُمَنَةً :
## امن او امنة کی فرق

امنه هغه څای کی استعمالیږی چه یره زائل شی او سبب ئې باقی وی او امن دے ته وائی چه یره او د هغې سبب دواړه زائل شی۔ دلته د یرې سبب موجود وو چه میدان د جنګ دے لیکن بیا هم الله تعالیٰ اطمینان ورکړو دا د صحابه کرامو کرامت وو او د الله تعالیٰ مدد وو۔ او د جنګ په میدان کی خوب راتلل سره ددے نه چه مخامخ کافران دی او دوی نه الله تعالیٰ محفوظ ساتلی دی دا دلیل دے چه الله تعالیٰ مددګار دے او هغه اسبابو ته محتاج نهٔ دے او د صحابه کرامو کرامت دے او د نبی کریم ﷺ برکت دے۔

نُعَاسًا : دا د (اَمَنَةً) نه بدل اشتمال دے یا عطف بیان دے۔ نعاس پرکالی (لږ خوب) ته وائی چه سر کی ئې اثر راشی۔

يَّغْشٰى طَآئِفَةً : ددے ډلے نه مراد عام مؤمنان دی او (يَغْشٰى) پټولو معنیٰ دا چه په دماغو ئې راتللو۔

وَطَآئِفَةٌ قَدْ اَهَمَّتْهُمْ اَنْفُسُهُمْ : پدے کی اختلاف دے چه ددے طائفے نه څوك مراد دی (۱) یو قول دا دے چه ددے نه منافقان مراد دی او د خبرونه ئې معلومیږی څکه چه د خپل ځان فکر ورسره وی او د رسول الله ﷺ غم نهٔ کوی او (يَقُوْلُوْنَ هَلْ لَّنَا مِنَ الْاَمْرِ مِنْ شَيْءٍ) او (مَا قُتِلْنَا هٰهُنَا) نه معلومیږی چه دا منافقان دی۔ د سیدنا زبیر بن العوام ﷺ نه روایت دے چه زهٔ د جنګ په میدان کی نعاس (پرکالیٰ) نیولے وم چه نیم اُوده وم او نیم ویښ وم او د معتب بن قُشَیر نه مے دغه ذکر شوے خبرے واوریدے (هَلْ لَنَا مِنَ الْاَمْرِ مِنْ شَيْءٍ) او هغه خو د منافقانو نه وو۔ (تفسیر القرطبی۲٤۲/٤) نو منافقانو کی اکثر ددے جنګ نه د نیمائی لارے نه واپس شوی وو لیکن یو نیم پکی بیا هم شریك شوے وو او کیدے شی چه د غنیمت په غرض روستو راغلی وی۔

(۲) دویم قول دا دے چه ددے طائفے نه مراد کمزوری مؤمنان هم کیدے شی څکه چه ضعیف مؤمنانو باندے هم د امتحان په وخت کی دغه شان حالت راځی چه د ځان فکر ورسره وی او سینه ئې تنګه شی او په زړه کی ئې په الله تعالیٰ او په دین باندے شکونه او شبهات پیدا شی که مونږ خپل ځان ته وګورو نو دغه شان حالت په مونږ هم راځی چه کله په بنده باندے لږ شان تکلیف زیات شی او مدد روستو شی نو په الله باندے بدګمانه شی اګرکه بنه مؤمن به وی لیکن غیر اختیاری دا حالت راپیښیدے شی چه د خولے نه ئې ورانے خبرے وځی۔ او دا هم کیدے شی چه دا خبرے اصل کی منافقانو کړی وی خو ځینی په

اسلام باندے مشرف نوی ساده لوح خلك به هم ورسره ددے خبرو نه متأثره شوی وی او د هغوی په خبرو کی به راغلی وی ځکه چه وسوسه خو تاثیر لری لکه د عائشے رضی الله عنها په بهتان کی اصل برخه منافقانو اخستے وه لیکن بعض مسلمانان د خپلے سادګئ په بناء د هغوی د تاثیر لاندے راغلی وو۔ اول قول غوره دے۔

أَهَمَّتْهُمْ أَنْفُسُهُمْ : ددے نه دا معلومیږی چه (مَنْ لَمْ يَهْتَمَّ بِالدِّيْنِ وَاهْتَمَّ بِنَفْسِهِ فَهُوَ مُنَافِقٌ اَوْ فِيْهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ)۔ چا سره چه صرف د خپل ځان غم وی او د دین او د رسول الله ﷺ د سنتو او د دین والو غم ورسره نهٔ وی په تولو کارونو کی نو په دهٔ کی د منافقت خوئی راغلی دے۔ او په یو ضعیف روایت کی دی : (مَنْ لَمْ يَهْتَمَّ بِأَمْرِ الْمُسْلِمِيْنَ فَلَيْسَ مِنْهُمْ) څوك چه د مسلمانانو په کارونو غمژن نشو (او د هغے اهتمام ئے ونکړو) هغه د مسلمانانو نه نهٔ دے۔ (رواه الحاكم والطبراني في الاوسط وسنده ضعيف- المقاصد الحسنة للسخاوي رقم : ۱۱۸۲)

ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ : یعنی په الله باندے داسے بد ګمانونه کوی لکه چه د جاهلیت په زمانه کی به جاهلیت والو کولو او دا تجربه ده چه ټول نقصانات د بدګمانئ نه پیدا کیږی۔

امام ابن القیم رحمه الله په ((بدائع التفسیر)) کی د بد ګمانئ ډیر اقسام بیان کړیدی چه عامے ډلے د بدګمانئ نه ګمراه شویدی (۱) مشرکان په الله بدګمانه دی نو وائی چه بابا له به ورځو او هغه به ئے الله تعالیٰ ته وائی ځکه زمونږ خبره سمه نهٔ آوری، نو وګوره دے بدګمانئ ته۔ (۲) او جُهمیه په الله بدګمانه دی د هغه صفات نهٔ منی او وائی چه تعدد د قدماؤ به راشی نو د الله د صفاتو نه ئے شرك جوړ کړو۔ (۳) قدریه په الله باندے بدګمانه دی وائی که الله تعالیٰ د مخکی نه تقدیر ولیکی بیا خو ظلم راځی۔

(٤) جبریه په الله بدګمانه دی وائی چه انسان نه چه ګناه کیږی نو الله ئے پرے کوی پدے کی د انسان څه واك نشته او بیا انسان ته په ګناه باندے سزا ورکوی نو دا ظلم دے۔ (والعیاذ بالله) (٥) عام فاسقان په الله بدګمانه دی د الله تعالیٰ امرونه ځکه ماتوی چه وائی الله تعالیٰ په مونږ باندے سختے پابندیانی لګولی دی پکار دا وه چه دا ئے نهٔ وے لګولی نو ځکه نافرمانی کوی۔ هر کفر او شرك د بدګمانئ نه پیدا کیږی۔

ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ : د منافقانو ددے بد ګمانئ ډیر صورتونه دی (۱) یو دا چه (أَفَلَا يَنْصُرُ رَسُوْلَهٗ) ۔الله د خپل رسول سره ولے مدد نهٔ کوی؟ نو معلومیږی چه دا به د الله رسول نهٔ وی۔ (۲) کله به ئے دا وئیل : (لَاحِكْمَةَ لِلّٰهِ فِيْ هٰذَا) ۔ پدے کی د الله هیڅ حکمت نشته چه مؤمن وژنی او رسول باندے حملے کیږی نو د تقدیر او د حکمت نه ئے انکار کولو۔

(۳) کله به ئے دا گمان کولو چه الله د چا سره د نصرت او کامیابۍ وعده وکړې او بیا هغه نهٔ پوره کوی۔ (روح المعانی ٤/٩٤) چونکه د منافقانو بزدلی او خوف (یره) په خپل حال باقی پاتے وه پدے وجه ئے داسے غلط گمانونه شروع کړل۔ (٤) منافقانو دا گمان هم کولو چه مشرکان غالبه شو او اسلام او مسلمانان به ختم شی۔ (قاسمی)

او دے ته ئے ناحقه او د جاهلیت گمانونه وویل وجه دا وه چه دا د الله تعالیٰ د ذات او د هغه ښکلے صفاتو خلاف گمانونه وو او د داسے گمانونو نه د الله په توفیق او د هغه په رحمت سره ډیر کم خلق بچ کیږی کله چه پرے داسے حالات راشی، او هغه خلك بچ کیږی چه الله تعالیٰ او د هغه اسماء او صفات ئے په صحیح طریقه پیژندلی وی او د هغه په هر کار کی د حکمت یقین لرونکے وی، نو څوك چه د الله د رحمت نه نا امیده شو نو دهٔ په الله باندے بد گمانی وکړه، او چا چه دا خبره زړه ته راوسته چه الله تعالیٰ به خپلو اولیاؤ (نیکانو بندگانو) ته سره د نیکۍ او اخلاص د هغوی نه عذاب ورکوی او هغوی او د هغوی دشمنان به یو شان کوی نو دهٔ هم په الله باندے بدگمانی وکړه او که دا گمان وکړی چه الله تعالیٰ به بندگان مهمل پریدی او هیڅ امر او نهی به ورته نهٔ کوی او رسولان به ورته نهٔ رالیږی او کتابونه به ورته نهٔ رالیږی بلکه د چارپیانو په شان به ئے پریدی نو دهٔ هم په الله باندے بدگمانی وکړه چه ددے تفصیل علامه قاسمیؒ د حافظ ابن قیمؒ نه نقل کړیدے (محاسن التاویل للقاسمی ٢/١٥٨)۔

هَلْ لَّنَا مِنَ الْأَمْرِ مِنْ شَيْءٍ : (۱) امر یا په معنیٰ د فتح او نصرت سره دے یعنی آیا زمونږ دپاره د نصرت او فتح نه څه شته یعنی نشته، یعنی دا رسول وائی چه نصرت او فتح به رازی کومه ده چه فتح او نصرت راغلل؟ دا په نورو الفاظو کی د نبی علیه السلام تکذیب وو۔ (بغوی) (۲) یا امر اختیار ته وائی یعنی مونږ ئے بی اختیاره جهاد ته راویستلی یو، که زمونږ اختیار وے مونږ به نهٔ وے راوتلی۔

(۳) یا (هَلْ لَنَا مِنْ أَمْرِ التَّدْبِيرِ وَالرَّأْيِ مِنْ شَيْءٍ)۔ آیا زمونږ دپاره د تدبیر او رائے نه څه شے شته یعنی زمونږ څه رایه نشته چه هغه ومنلے شی لکهٔ ددے نظیر روستو (لَوْ أَطَاعُونَا مَا قُتِلُوا) دے۔ یعنی عبد الله بن ابی ابن سلول منافق وئیلی وو چه زمونږ مشوره ونهٔ منلے شوه چه مونږ وئیلی وو چه مدینے نه بهر نهٔ ووځو او دا نبی ووتلو ځکه مونږ ووژلے شو۔ (قاسمی ٢/١٦٠)

إِنَّ الْأَمْرَ كُلَّهُ لِلَّهِ : (أَيِ التَّدْبِيرُ كُلُّهُ لِلَّهِ) یعنی تدبیر ټول د الله تعالیٰ دے نو هغه دغه شان

تدبیر جوړ کړے لکه څنګه چه د هغه په تقدیر کې لیکلے شوے وو۔ او د هغه د حکمت مطابق کار وشو۔ مقصد دا چه دوی د الله تعالیٰ د تقدیر نه انکار کولو پس د هغې نه چه هغه واقع شو نو پدے وجه الله تعالیٰ پرے رد وکړو چه دا ټول کارونه د الله په اختیار کې دی او د هغه په تقدیر سره د هغه د حکمت مطابق کیږی نو د تقدیر نه انکار نهٔ دے پکار بلکه دے ته تسلیمیدل پکار دی۔ (قاسمیؒ عن ابن القیمؒ)

یا د (الامر کله) نه مراد د مدد او کامیابئ معامله ده چه دا په مکمل طور باندے د الله په اختیار کې ده، کله چه هغه د خپل رسول سره وعده وکړه نو هغه به ضرور ددهٔ مدد کوی او هغه په خپل مناسب وخت کې مدد کوی۔

يُخْفُوْنَ فِيْ اَنْفُسِهِمْ: یعنی دوی په زړونو کې هغه خبرے پټوی چه تا ته ئے نهٔ راښکاره کوی۔ یا خپل مابین کې هغه پټے خبرے کوی چه هغه تا ته نهٔ راښکاره کوی۔

يَقُوْلُوْنَ لَوْ كَانَ : دا د (يُخْفُوْنَ) نه بدل دے یعنی دوی په زړونو کې دا خبره پټوی چه وائی الخ۔

لَنَا مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا : یعنی که زمونږ خپل اختیار وے نو مونږ به د مدینے نه بهر نهٔ وے راوتلی او دلته به نهٔ وے وژلے شوی یعنی زمونږ ملګری۔ دا معنیٰ ظاهره ده څکه چه روستو جمله پرے دلیل دے۔

قُلْ : یعنی که الله تعالیٰ د چا قتل په کوم ځای کې لیکلے وی نو هم هلته به مړ کیدلے، د بل یو کار پسے به ئے راوستلی وے او په هم‌دغه ځای کې به ئے وژلی وے، یا دا چه خپل مینځ کې به دغه ځای ته راوتی وے او یو بل به ئے وژلی وے، یا به پرے زلزله راغلے وے یا سیلاب وغیره۔ څکه چه الله تعالیٰ د چا دپاره مرګ ولیکی نو یو سبب ورله جوړ کړی نو که هغه نهٔ وی نو بل سبب به پیدا کړی۔ نو دا د الله د معرفت لویه نښه ده چه الله تعالیٰ د مرګ دپاره کوم ځای مقرر کړی نو هلته ورله اسباب پیدا کړی۔

لَبَرَزَ : بروز میدان ته راوتلو ته وائی۔

الَّذِيْنَ : دا فاعل د (بَرَزَ) دے۔ کتب : یعنی چه د الله په علم کې لیکلے شوے وی۔

كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ : دا نائب فاعل د (كُتِبَ) دے۔

اِلٰى مَضَاجِعِهِمْ : جمع د مَضْجَعٌ ده، ځای د ډډے لګولو، مراد ترے نه د مقتولینو ځایونه د پریوتلو دی۔

وَلِيَبْتَلِيَ : دا د محذوف پورے متعلق دے اَیْ فَعَلَ ذٰلِكَ لِمَصَالِحَ جُمَّةٍ وَلِلْاِبْتِلَاءِ وَالتَّمْحِيْصِ)

(مدارك ۱/۱٤۷)۔ الله تعالیٰ دا کارونه وکړل د ډیرو مصلحتونو او فائدو دپاره او د امتحان او د صفائي راوستو دپاره۔

(لِيَبْتَلِيَ) د منافقانو سره لګي او (لِيُمَحِّصَ) د مؤمنانو سره۔ په منافقانو امتحان کوي چه د دوی په سینو کی ایمان شته او که نهٔ او د مؤمنانو زړونه او ګناهونه صفا کوي یعنی دے دپاره چه د مخلصینو اخلاص او د منافقانو نفاق ظاهر کړے شي۔ (روح المعانی)

زړونو باندے کله غفلت، او شهواتو ته میلان او د شیطان وسوسے راځي کوم چه د ایمان، اسلام، بر او تقویٰ ضد دي نو د امتحان په ذریعه د هغے صفائي وشي او صرف الله تعالیٰ طرفته بنده متوجه شي نو صفا شي۔ نو ابتلاء د دوائي په شان ده۔ که ابتلاء نهٔ وي او زړونه همیشه په یوه طریقه پاتي شي نو دا خیزونه ورسره ګډوډ کیږي او ددے نه نهٔ صفا کیږي نو د الله د حکمت تقاضا دا شوه چه زړونو دپاره ئے امتحان مقرر کړو لکه د ترخه دوائي په شان چه مریض ئے بد ګنړي لیکن د هغه دپاره پکی فائده وي۔ نو دا هزیمت او شکست هم په دوی باندے د الله تعالیٰ نعمت شو لکه څنګه چه دوی ته نصرت او کامیابي ورکول او په دشمن باندے غالبه کول نعمت وو۔ (افاده ابن القیمؒ – قاسمیؒ)

| إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ يَوْمَ الْتَقَى |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه واوړیدل ستاسو نه (د میدان جنګ نه) په هغه ورځ چه مخامخ شوے |
| الْجَمْعَانِ إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا |
| دوه ډلے۔ یقیناً وخویول دوی لره شیطان په سبب د بعض هغه ګناهونو چه دوی کړي وو |
| وَلَقَدْ عَفَا اللَّهُ عَنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٥٥﴾ |
| او یقیناً معافي کړیده الله تعالیٰ دوی ته، یقیناً الله بخنه کونکے صبرناك دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی په اُحد کی د شکست دپاره سبب بیانوي۔ او د جنګ یو بل تصویر ذکر کوي چه د اُحد په ورځ کله چه دواړه ډلے یو بل سره ملاؤ شوے او حالات بدل شو نو څه مسلمانان وتبنتیدل، څه غرونو ته وختل او څه مدینے ته لاړل نو دا د شیطان د وسوسے په وجه وشو سره ددے نه چه الله تعالیٰ دوی سره د مدد وعده کړے وه۔ او مفسرین لیکي چه د رسول الله ﷺ سره صرف دیارلس کسان پاتي شو۔ او په روایت د مسلم کی دي چه (۹) کسان پاتي شول۔

إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمْ : د زَلَلْ نه دے د خپے خویدو ته وائی مراد ترے نه شکست خوړل دی۔
بِبَعْضِ مَا كَسَبُوْا : په سبب د سپیرهٔ والی د بعض عملونو چه دوی کړی وو۔ یعنی د دوی نه بعض گناهونه او خطاگانے شوے وے چه هغه مرکز پریخودل وو (قاسمیؒ) ځکه چه یوه گناه بلے گناه ته راخکل کوی او دا د گناهونو نحوست دے چه په وخت د مصیبت کی سرے راگیروی، په بوډاوالی او زنکدن وخت کی راگیروی بیا به ئے دعا هم نهٔ قبلیږی پدے وجه گناه ډیر لوی ضرر لری، کله سری باندے زاړه گناهونه اثر وکړی پدے وجه الله تعالیٰ ته هر وخت توبه ویستل لازم دی۔
دویم دا چه دوی ته شیطان دا وسوسه واچوله چه تاسو خو گناهگار یئ او ستاسو په اوګو باندے زاړه گناهونه پراته دی لا توبه مو نهٔ ده ویستلے که پدے حالت کی مړهٔ شوئ نو د گناه سره به د دنیا نه لاړ شئ او دا وسوسه مؤمنانو ته شیطان په جهادونو کی اچوی چه اوس وتښتئ او نیک عمل به وکړے او په آخره کی به شهادت نصیب شی۔ مگر پدے وخت کی بهادری کول او په دشمن باندے ورتلل دا کمال دے اگر که انسان گناهگار وی پدے سره د هغه گناهونه معاف کیږی۔
حافظ ابن القیم رحمه الله لیکلی دی چه د انسان اعمال د لښکر په شان دی، که ښه وی نو په هغے سره د دشمن په خلاف تقویت او قوت ملاویږی او که بد وی نو دشمن ته قوت ملاویږی۔
وَلَقَدْ عَفَا اللّٰهُ عَنْهُمْ : اوس به ځوك ووائی چه صحابه کرامؓ گناهگاران دی او د هغوی گناه به نیغه نیغه کوی نو الله فرمائی چه ما دوی ته معافی وکړه د هیچا دا حق نشته چه صحابه کرامو باندے طعن او ملامتیا ووائی۔ دا د الله تعالیٰ او د دوی ترمینځ معامله وه۔ ځکه چه د دوی دا تیخته د منافقت نتیجه نهٔ وه بلکه دا یو عارضی غلطی وه۔
عبد الله بن عمر رضی الله عنهما یو خارجی ته وویل چه زهٔ دا گواهی ورکوم چه الله تعالیٰ عثمان ﷺ ته معافی کړیده (وَلَقَدْ عَفَا اللّٰهُ عَنْهُمْ) نو تهٔ وریسے ولے خبرے کوے، الله ئے معاف کوی او دغه مجرم بنده ئے نهٔ معاف کوی نو دے د الله تعالیٰ نه ځان مخکی کوی۔
وَلَقَدْ : کی ډیر تاکید دے چه لام د قسم دپاره دے او (قَدْ) د تاکید دپاره دے او فعل ماضی ئے راوړه چه دوی د مخکی نه معاف دی۔
**فائده** : ذلته بعض کسان غلو کوی او وائی چه معافی گناه لره مستلزم نهٔ ده او صحابه کرامو هیڅ گناه نهٔ ده کړے او دا خبره د کتاب المسامره د ابن الهمامؒ نه نقل کوی نو دا خبره

غلو ده. صحیح دا ده چه اصحاب د رسول الله ﷺ نه کله کله ګناهونه شویدی لیکن الله تعالیٰ معاف کړیدی، د هغوی د نیك عمل او د مجاهده او د الله تعالیٰ رحمت د وجه نه لکه دا خبره حافظ ابن تیمیة په «العقیدة الواسطیه» کی ذکر کړیده.

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ كَفَرُوا وَقَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ |
| اے ایمان والو! مهٔ کیږئ د هغه کسانو په شان چه کفرئے کړیدے او وائی په باره د ورونو خپلو کی |
| إِذَا ضَرَبُوا فِي الْأَرْضِ أَوْ كَانُوا غُزًّى لَّوْ كَانُوا عِندَنَا مَا |
| کله چه هغوی سفر کوی په زمکه کی یا وی غزا کونکی، کچرته وے دوی زمونږ سره نهٔ به |
| مَاتُوا وَمَا قُتِلُوا لِيَجْعَلَ اللَّهُ ذَٰلِكَ حَسْرَةً فِي قُلُوبِهِمْ |
| مړه کیدے او نهٔ به وژلے کیدے، دے دپاره چه وګرځوی الله دا خبره افسوس په زړونو د دوی کی |
| وَاللَّهُ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١٥٦﴾ |
| او الله ژوندی کول کوی او مړه کول کوی او الله په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ لیدونکے دے. |

**تفسیر** : پدے آیت کی الله تعالیٰ د تشبه بالمنافقین او د هغوی د تابعدارئ نه منع کړیده. او پدے کی یو قانون او ادب هم دے چه الله تعالیٰ ئے ایمان والو ته ورکوی (لَا تَكُونُوا مِثْلَ الْمُنَافِقِينَ فِي أَقْوَالِهِمْ وَآرَائِهِمْ) چه د منافقانو په شان مهٔ کیږئ د هغو په خبرو کی او د هغوی په رایه کی.

د منافقانو طریقه دا ده چه د تقدیر په مقابله کی کلمه د (لَوْ) استعمالوی، دارنګه د الله تعالیٰ امر ماتوی، او نورو خلکو ته وسوسے اچوی او ګمان ئے دا دے چه دا زمونږ هوښیارتیا ده او په مینځ کی د دوی کم عقلتوب دے.

وَقَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ : ددے نه نسبی ورونه مراد دی ځکه چه صحابه کرامؓ او منافقان دواړه قسمه انصار وو اګرکه اسلام کی ورسره شریك نهٔ وو.

أَوْ كَانُوا غُزًّى : ددے سره دا مراد دے (فَمَاتُوا أَوْ قُتِلُوا). یعنی مړه شی یا قتل شی.

غُزًّى : جمع د غازی ده.

لَوْ كَانُوا عِندَنَا : یعنی که دوی مونږ سره په مدینه کی د جهاد نه پاتی شوی وے نو مړه به نهٔ وے. (لَوْ) کلمه د شیطان عمل راکولاووی کما فی الحدیث. دا د منافقانو کلمه ده چه د

تقدیر په مقابله کې ئې استعمالوي وائي ارمان دے که فلاني ځاي ته تلے نهٔ وے مړ به نهٔ وے وغیره وغیره۔ څکه چه منافقانو ته الله تعالیٰ دا سزا ورکوي نو تهٔ داسے کلمه مهٔ استعمالوه چه تا ته دا سزا ونهٔ رسی او هغه سزا داده:

لِيَجْعَلَ اللَّهُ : لام د عاقبت دپاره دے یعنی دد بے خبرے انجام دا شو چه الله تعالیٰ دا کلمه او عمل د منافقانو په زړونو افسوس ګرزوي پدے سره د دوي مړي خو راژوندي کیدے نهٔ شی بلکه خپل زړونه ئے ځان له خراب کړل، دا قانون دے چه په تقدیر یقین وي نو پریشاني به ختمه شي او چه په تقدیر ایمان کمزورے شي نو سخت پریشانه وي لکه کافرو خلکو ته چه مصیبت ورسیږي ډیر سخت پریشانه وي، او مؤمن وائي چه الله تعالیٰ داسے لیکلي دي نو خفګان پرے نهٔ کوي۔

لِيَجْعَلَ : یا دا متعلق دے د محذوف پورے (اَیْ اَلْقَی اللّٰهُ ذٰلِكَ فِیْ قُلُوْبِهِمْ لِیَجْعَلَ)۔ یعنی الله تعالیٰ د دوي په زړونو کې دغه د (لَوْ) کلمه واچوله دے دپاره چه د دوي افسوسونه زیات شي۔ او دا عقوبت دے د دوي دپاره، په دنیا کې الله تعالیٰ دغه شان خلکو ته سزا ورکوي۔

یا د حَسْرَةً نه مراد په آخرت کې شرمندګي او افسوس دے په سبب دد بے وینا د دوي سره دواړه کیدے شي لیکن اول ډیر ظاهر دے۔

وَاللَّهُ يُحْيِي وَيُمِيتُ : نو الله تعالیٰ ذهن سازي کوي چه مرګ او ژوند د الله تعالیٰ په لاس کې دے، دا د سفر او کور کې کیناستو سره تعلق نهٔ لري بلکه دا د الله تعالیٰ د ارادے او مقرر وخت سره تعلق لري۔

| وَلَئِنْ قُتِلْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللَّهِ |
|---|
| او که چرته ووژل شوئ تاسو په لاره د الله کې یا مړه شوئ خامخا بخنه د طرفه د الله نه |
| وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ ﴿۱۵۷﴾ وَلَئِنْ مُّتُّمْ |
| او مهرباني غوره ده د هغه (مالونو) نه چه دوي ئے راجمع کوي۔ او که چرته مړه شوئ تاسو |
| أَوْ قُتِلْتُمْ لَإِلَى اللَّهِ تُحْشَرُونَ ﴿۱۵۸﴾ |
| یا ووژلے شوئ خامخا الله ته به ورجمع کړے شئ۔ |

**تفسیر** : اُوس دوه خبرے بیانوي (۱) اول د دنیا او د آخرت فرق بیانوي چه آخرت غوره دے د دنیا نه نو که څوك د دنیا نه د ایمان سره لاړ شي نو څه پرواه ده!۔ (۲) دویمه خبره

انسان علی کل حال الله تعالیٰ ته ورتللو والا دے۔ که انسان په هر حالت کې وي خو الله تعالیٰ ته ددهٔ ورګرزیدل دي که انسان په کور کې وي هم مرګ به پرے راځي او که په سفر کې وي هم مرګ به پرے راځي او الله له به ورځي نو دا ګنے غوره نهٔ ده چه سرے د الله په لاره کې ووژلے شي په نسبت ددے چه په کور کې مړ شي، مرګ خو حق دے او لیکلے شویدے نو آیا د شهادت مرګ غوره نهٔ دے ؟! نو ولے خفه کیږئ!۔

ځینې مفسرین وائي چه پدے دوه آیتونو کې غرض دا دے چه نکول عن القتال (د جهاد نه روستو پاتي کیدل) مهٔ کوئ ځکه چه مرګ او قتل د الله په اختیار کې دے۔

لیکن ظاهره دا ده چه پدے کې الله تعالیٰ یو ناشنا طریقے سره د مؤمنانو ذهن سازي کوي هغه دا چه منافقان وائي چه جنګ ته تلي نهٔ وے نو مړه به نهٔ وے نو الله فرمائي چه مرګ خو څه هلاکت او تباهي نهٔ ده چه خلك ووائي لاړو غرق او تباه شو او د هلاکت کندے ته پریوتو بلکه راشئ د مرګ حقیقت وپیژنئ بنده مؤمن چه مړ شي نو خپل یو عظیم رب ته ورځي، د الله سره مغفرت او رحمت دے چه هغه د ټولے دنیا نه غوره دے نو بنده به لاړ شي په راحت کې به ځملي (مستریح به شي) خوبونه او مزے به وکړي او ګناهونه به ئے معاف شي او نور ګناهونه به ترے نهٔ کیږي او بله دا چه د خپل الله دیدار به ورته نصیب شي هغه الله چه تا د هغه د رضا دپاره ټوله زندګي تیروله او ټول کوششونه دے د هغه دپاره کول نو اُوس هغه الله ته ورسیدے نو د مرګ حقیقت دا دے:

(اَلْمَوْتُ نَقْلَةٌ مِنَ الدَّارِ الْفَانِيَةِ اِلَى دَارِ الْمَغْفِرَةِ، اِلَى دَارِ الرَّحْمَةِ، اِلَى دَارِ الرُّؤْيَةِ)۔

د فاني کور نه نقل کیدل دي داسے کور ته چه هلته د الله بخنه ده، د هغه رحمتونه دي او د هغه لیدنه (ملاقات) دے۔ مؤمن ډے مړ شي هیڅ پرواه نشته بلکه نعمت ته لاړو۔ نو کله چه بنده پدے پوهه شي چه مؤمن مړ شو نو نعمتونو ته لاړو نو بیا وریسے خفګان نهٔ کوي او خپله هم د مرګ نه نهٔ یریږي۔ ددے کمزوري او فاني محلے نه به لاړ شي ډیرے ښائسته محلے ته چه هغه د پیغمبرانو او نیکانو صالحینو محله ده۔

سیده عائشه رضی الله عنها د وفات په وخت خفه وه (جزع ئے کوله) عبد الله بن عباس رضی الله عنهما ورته وفرمایل : (تَقْدَمِينَ عَلَى فَرَطِ صِدْقٍ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ وَعَلَى أَبِي بَكْرٍ) (بخاری: ۳۷۷۱) ۔ (ته خو په محمد ﷺ او په ابوبکر صدیق (رضی الله عنه) باندے ور روانه ئے څه له خفه کیږے۔ بلال رضی الله عنه چه وفات کیدو ښځے وریسے ژړل هغه ورته وویل : ژړا ولے کوے ؟ (غَدًا نَلْقَى الْأَحِبَّةَ مُحَمَّدًا وَصَحْبَهُ) صبا له به د ملګرو سره ملاویږو چه محمد ﷺ

او د هغه ملګری دی. نو پدے آیتونو کی د مؤمن دپاره د زیری لوی خبر پروت دے.
خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ: ددے نه تهول له دنیا مراد ده ځکه چه د انسانانو عادت دا دے چه مالونه، جائیدادونه راجمع کوی.
او حدیث کی راغلی چه الله تعالیٰ په بنده باندے په هغه وخت کی ډیر مهربانه وی چه کله دا مرشی وجه دا ده چه دنیا کی انسان چه ژوندے وی نو لږ مست وی نو د الله رحمت ترے لږ جدا وی، لوی لوی خبرے کوی او چه کله مړ شی نو پوره محتاج شی ،نهٔ ئے خپه کار کوی او نهٔ لاسونه او نهٔ ژبه او نهٔ غوږونه او نهٔ لوی لوی خبرے کولے شی نو داسے وخت کی ورته د الله تعالیٰ رحمت ډیر متوجه وی.
وَرَحْمَةٌ: د الله رحمتونه په ډیرو قسمونو سره دی لکه د قبر فراخیانی، په هغے کی خوشبویانی او په هغے کی رڼاګانے دا ټولے مؤمن ته ملاوېږی نو مرګ د مؤمن دپاره ښه تحفه ده.
لَإِلَى اللَّهِ تُحْشَرُونَ : (الی الله) ئے مقدم راوړو پدے کی حصر دے او په حصر کی اشاره ده چه اے بنده ! دا فکر وکړه چه تهٔ چرته روان ئے ؟ ته الله ته ورغللے نهٔ بل چا ته، هغه الله ته ورغللے چه ستا دوست دے، دشمن له نهٔ ئے ورغلے، مسافر کېږے نهٔ بلکه خپل مولیٰ او حقیقی مالك خوا ته ورغلے نو تهٔ نعمت ته ورسیدے نهٔ ضائع کیدو ته. دا خو د کفارو عقیده ده چه بنده مړ شی نو بس لاړو غرق شو او ختم شو او اخوا هیڅ شے نشته، مؤمن خو په الله عقیده لری او په قبر کی راحت او مزے منی او بیا جنتونه دی نو بیا ولے خفګان کوی.

## په دواړو آیتونو کی د قتل د مخکی ذکر کولو او روستو کولو فرق

مخکی آیت کی ئے قتل مقدم کړو ځکه چه هغه د جهاد سره لګی او په جهاد کی د بل دلاسه قتل زیات وی او موت (طبعی مرګ) کم وی او دویم آیت کی د عام حالت بیان دے او په عام حالت کی طبعی مرګ زیات وی او دا نعمتونه د دواړو حالتونو سره متعلق دی. نو مؤمن په هر حال کی د مزو سره مخامخ دے.
ځینو علماؤ ددے آیتونو په فائده کی وئیلی دی چه بعض مؤمنانو باندے د ګناهونو یره غالبه وی او په ځینو باندے د الله نه امید او په ځینو باندے د الله محبت او د هغه دیدار نو (لمغفرة) کی د اولے ډلے او په (ورحمة) کی د دویمے ډلے او په (لالی الله تحشرون) کی د دریمے

ډلے اجر خوړلے شویدے۔ مګر ظاهر دا ده چه دا درے واړه بدلے د یو مؤمن دپاره وی۔

| |
|---|
| فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ لِنْتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيْظَ الْقَلْبِ |
| نو په سبب د احسان د الله سره نرم شوے ئے ته دوی ته او که وے ته بد ژبے او سخت زړے |
| لَانْفَضُّوْا مِنْ حَوْلِكَ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ |
| خامخا خواره شوی به وے دوی د ګیر چاپیره ستا نه نو معافی کوه دوی ته او بخنه غواړه |
| لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ |
| د دوی دپاره او مشوره کوه د دوی سره په کار کی نو کله چه ته قصد وکړے د یو کار |
| فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِيْنَ ﴿۱۵۹﴾ |
| نو ځان سپاره په الله باندے یقیناً الله مینه کوی د توکل کونکو سره۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کی الله تعالیٰ په صحابه کرامو باندے احسان ذکرکړیدے چه تاسو ته ئے دومره ښائسته صفاتو والا پیغمبر درکړیدے نو ددے تقاضا دا ده چه تاسو دده تابعداری وکړئ چه هغه جهاد ته ځی نو تاسو هم ورسره ملګرتیا وکړئ۔ دا خو د صحابه کرامو دپاره فائده شوه۔ نو پدے کی د رسول الله ﷺ شان او مرتبه هم ذکر شویده چه د ډیرو کاملو صفاتو خاوند وو او پدے کی امتنان (او احسان) کول دی په نبی ﷺ باندے هم او په مؤمنانو باندے هم۔

او استنباطی مسئله پکی دا ده چه پدے کی بیان د شرائطو د امیر دے چه امیر کی دغه صفتونه راتلل پکار دی۔ چه د ملګرو سره نرمی وکړی او بد ژبانه او بد اخلاقه نه وی او ملګرو ته په غلطئ باندے معافی کونکے وی او د هغوی سره مشورے کوی او د هغوی د جرمونو دپاره د الله نه معافی غوښتونکے وی او مضبوط عزم والا وی۔

**ربط**:

۱- مخکی الله تعالیٰ مؤمنان د منافقانو په شان خبرو کولو نه منع کړل نو اُوس وائی چه د منافقانو په غلطو غرضونو کی تاسو واقع نه شئ ځکه چه د هغوی د دغه ویناګانو نه یو مقصد دا دے چه د مؤمنانو په الله تعالیٰ باندے توکل او اعتماد کمزورے شی او په اسبابو ئے تکیه او اعتماد قوی شی، او دویم دا چه نبی کریم ﷺ د مؤمنانو نه زړه بدی شی

او په آينده کې ورسره مشوره ونکړي۔ نو الله تعالىٰ دغه دواړه مطلبونه دلته رد کړل۔
۲– دويم دا چه مخکې الله تعالىٰ د مؤمنانو دپاره مغفرت او رحمت ذکر کړو نو اُوس وائي چه د الله تعالىٰ د رحمت نه په دنيا کې يو رحم دا دے چه خپل نبي ئے د هغوی دپاره رؤف او رحيم گرځولے دے او نبي کريم ﷺ ته ئے حکم کړيدے چه د مؤمنانو دپاره زما نه بخنه غواړه دے دپاره چه زهٔ ورته معافي وکړم۔
مطلب د آيت : اے پيغمبره ! په مؤمنانو په باندے د الله تعالىٰ يو عظيم الشان رحمت دا دے چه تهٔ د دوی دپاره نرم طبيعته او پوست جوړ شوے ئے چه يو طرف ته دے په دوی باندے زړه سوزی او بل طرفته دِے دوی ته د دوی په غلطئ باندے سخته او سخته خبره په خوله نهٔ راځي، ورنه په ميدان د اُحد کې چه دوی کومه معامله تا سره اُوکړه نو هغه ډيره غصه راوستونکے وه۔ نو که منافقان هر څومره کوشش وکړي تا ددے خوی نه نهٔ شي اړولے او چه مؤمنان هر څومره خطائي وکړي ستا په خوله ورته سپوره او بيهوده خبره نهٔ راځي۔ که بالفرض تهٔ سخت زړے او بد ژبانه وے نو دا ملگری به په تا باندے نهٔ وے راغونډ شوی بلکه د منافقانو حيلو او وسوسو کې به اخته شوی وے، نو تهٔ دا خوئي همدغه شان هميشه وساته، مؤمنانو ته د هغوی په خطاء باندے معافي کوه لکه څنگه چه ورته الله تعالىٰ معافي کړيده او د الله نه ورله بخنه غواړه چه تزکيه ئے وشي او په آينده کې د دوی سره په جنگي او غير جنگي تمامو معاملاتو کې مشوره کوه دے دپاره چه زړه ئے مطمئن شي او هيڅ خفگان محسوس نهٔ کړي او دے دپاره چه آينده کې اسلامي حاکمانو او مشرانو ته ددے نه سبق ملاؤ شي چه هغوی په هر کار کې مشوره وکړي۔ او کله چه تهٔ د يوے خبرے فيصله وکړے نو بيا په هغے باندے مضبوط ودريږه او په الله باندے ځان وسپاره۔
فَبِمَا رَحْمَةٍ : ما زائده ده دپاره د تاکيد، يا (ما) نکره ده په معنىٰ د (شيء) سره او (رحمة) د هغے نه بدل او بيان دے ځکه چه د ابهام نه روستو بيان په عظمت دلالت کوی۔ يعني په سبب د يو شي سره چه هغه د الله رحمت دے۔ يا ما استفهاميه ده په معنىٰ د (اَيَّةِ رَحْمَةٍ) سره او دا استفهام د تعجيب دپاره دے۔
او (رَحْمَةٍ) کې تنوين دپاره د تعظيم دے۔ يعني دا په تا باندے د الله تعالىٰ لوی احسان دے چه تهٔ ئے خپلو ملگرو ته نرم کړے ئے او په تا باندے ئے راجمع کړيدی۔
لِنْتَ لَهُمْ : نرمي هم د الله تعالىٰ خصوصي مهرباني ده چه په چا کې راشي۔

وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا : فظ کلمه د سَيِّءُ الْخُلُقِ (بد اخلاقه) معنیٰ ورکوی چه په مقابل کی ئے حَسَنُ الخلق (نیك خویه) استعمالیږی۔ رسول الله ﷺ کی الله تعالیٰ داسے اخلاق اچولی وو چه کافرانو ته ئے هم د ادب نه مخالفه خبره نهٔ ده کړے۔

فظ : اَلْغَلِيْظُ الْجَانِبِ السَّيِّءُ الْخُلُقِ) یعنی هغه شخص چه د هغه طرف ډیر سخت وی څوك خواله نشی ورتلے او بد اخلاقه وی) دارنگه کنځلمار، بد ژبانه ته وائی۔

غَلِيْظَ الْقَلْبِ : یعنی سخت زړے چه په چا باندے ئے زړه نهٔ سوزی، بد اخلاقی د هر چا سره عیب دے او سخت زړی د مؤمنانو سره کول عیب دے او د الله د دشمنانو کافرانو په مقابله کی عیب نهٔ دے، نو د دین داعی دپاره پکار دی چه د خپلو مخالفینو سره هم د اخلاقو د چوکاټ نه بهر ونهٔ وځی۔

امام بخاریؒ او نورو محدثینو د عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه د رسول الله ﷺ په تورات کی هغه صفات بیان شویدی کوم چه په قرآن کی موجود دی، چه هغه به سخت ژبی، سخت زړے او په بازارونو کی شور کونکے نهٔ وی او د بدئ جواب به په بدئ سره نهٔ ورکوی بلکه د معافئ او درګذر نه به کار اخلی۔ (رقم الحديث : ۲۱۲۵)

لَانْفَضُّوْا : (اَیْ تَفَرَّقُوْا) یعنی دوی به تس نس (خوارهٔ واره) شوی وے ځکه چه د بد اخلاقه او سخت زړی مشر سره د خپلو کشرانو وخت نهٔ تیریږی او خلك پرے نهٔ راغونډیږی او په نتیجه کی د دعوت کار بندیږی۔ ځکه چه دا قانون دے چه بد اخلاقه انسان هرڅومره نیك عمله او عالم او کمالاتو والا او ښائسته شکل والا وی خو انسانان ورله خواته نهٔ ورځی۔

فَاعْفُ عَنْهُمْ : یعنی که ستا په کوم حق کی ئے کوتاهی وکړه نو معاف ئے کړه لکه څنګه چه الله تعالیٰ معاف کړیدی۔

وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ : یعنی د دوی دپاره د الله نه بخښنه وغواړه د هغه تقصیر چه د الله په حق کی ترے شوے وی دے دپاره چه ستا شفقت په دوی باندے ښه پوره شی۔ او دے دپاره چه تهٔ عفو او احسان دواړه راجمعه کړے۔ (تفسير السعدی)

وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ : یعنی دوی سره مشوره کوه، یعنی په یوه موضوع کی د دوی نظریات هم رابنکاره کړه او د هغوی رایه هم معلومه وه، پدے مشوره کی به فائده دا وی چه د ملګرو زړه به خوشحالیږی او تا سره به ئے محبت زیاتیږی۔

نو نبی کریم ﷺ به په خپل ژوند کی د صحابه کرامؓ سره ډیرے مشورے کولے، د غزوهٔ

بدر په موقعه د دشمن د فوج سره د مقابلې په باره کې ئې مشوره اُوکړه، د غزوهٔ اُحد په موقعه ئې مشوره اُوکړه چه په کلي کې پاتې کیدو سره دفاع اُوکړو او که بهر وتلو سره د دشمن مقابله اُوکړو. د غزوهٔ خندق په موقعه ئې مشوره طلب کړه او ې وئیل چه اې مسلمانانو ! ما ته مشوره راکړئ. او په واقعه د افك کې ئې مسلمانانو ته ووئیل : (اَشِيْرُوْا عَلَيَّ) ما ته مشوره راکړئ. (ابن کثیرؒ)

امام شوکانیؒ لیکلي دي چه مقصود په هغه کارونو کې مشوره کول دي چه د هغې په باره کې په شرع کې ښکاره حکم موجود نهٔ وي آه. یا داسې حکم شرعي کې مشوره مراد ده چه د هغې وخت نهٔ وي معلوم لکه عُمره کول چه مور او پلار او مشرانو سره مشوره وکړي چه اُوس لاړ شو که روستو ؟ کوم کې به خیر زیات وي؟

د اُمت د ځینو علماؤ دا وینا ئې هم نقل کړیده چه مسلمانانو حُکامو لره د علماؤ سره په هغه کارونو کې مشوره کول پکار دي چه د هغې په باره کې هغوی ته علم نهٔ وي.

قرطبيؒ د ابن عطيهٔ قول نقل کړيدې چه د علماؤ ترمینځ پدې باره کې هیڅ اختلاف نشته چه کوم حاکم د علماؤ او دیندارو سره مشوره نهٔ کوي نو د هغه معزول کول واجب دي.

**فائده** : مشوره په اسلام کې لوی اهمیت لري الله تعالیٰ په سورة الشوری (۳۸) آیت کې د مسلمانانو صفت بیانوي : ﴿وَأَمْرُهُمْ شُوْرٰى بَيْنَهُمْ﴾ د مسلمانانو مهم کارونه به په مشوره سره وي. په یو روایت کې دي : (مَا خَابَ مَنِ اسْتَخَارَ وَلَا نَدِمَ مَنِ اسْتَشَارَ) (الطبراني في الاوسط ٦/٣٦٥) هغه څوك چه استخاره کوي هیڅکله به نا مراده (تاواني) نشي او هغه څوك چه مشوره کوي هیڅکله به پښیمانه نشي)

ابو هریره رضی الله عنه فرمائي : [مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَكْثَرَ مَشُوْرَةً لِأَصْحَابِهٖ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ] (الترمذی ١/٣٠١) ما هیڅوك داسې نهٔ دې لیدلې چه هغه د خپلو ملګرو سره د رسول الله ﷺ نه زیاته مشوره کړې وي.

**فائده** : آیا په رسول الله ﷺ باندې مشوره کول واجب وو ؟

فقهاءِ کرامو پدې باره کې اختلاف کړیدې مګر اتفاقي خبره دا ده چه په غیر منصوصي قضایاؤ (فیصلو، معاملاتو) کې به نبي کریم ﷺ د هر چا نه زیات مشوره کونکې وو برابره ده که هغه به دیني معامله وه لکه د بدر د قیدیانو په باره کې شو او که هغه به شخصي معامله وه لکه د عائشې رضي الله عنها د بهتان په باره کې.

بیا آیا په رسول الله ﷺ باندې د امت مشوره قبلول ضروري وو او که نهٔ ؟ نو ظاهر دا ده

چه مشوره کې غرض د ملګرو رایه معلومول وي او ټول جوانبو باندې نظر اچول وي نو که نبي یا یو امیر ته یو نظر ښائسته ښکاره شي او فوائد پکې وګنړي نو هغې باندې عمل کول جائز دي اګر که د بعضو یا د ټولو ملګرو د رائې سره مخالفه وي په دې وجه الله تعالیٰ خپل نبي ته خطاب وکړو (فَإِذَا عَزَمْتَ) یعني کله چه ته عزم وکړې نو په الله ځان سپاره.

## سوال وجواب

هرکله چه په نبي کریم ﷺ باندې د مشورې قبلول ضروري نۀ شو نو بیا پدې کې څه حکمت دې چه په مشوره کولو باندې مامور شو؟

**جواب** : پدې کې ډیر حکمتونه دي (۱) یو دا چه پدې کې نور امت ته دا سبق ورکول دي چه د خپلو کشرانو او رعیت سره مشوره وکړي او د کشرانو زړه خوشحاله شي چه زمونږ مشر په خپله رایه باندې مستقل نۀ دې او د استکبار د تهمت نه بچ شي.

(۲) دویم : پدې کې دا سبق دې چه صحابه کرامؓ ډیر زیات قدر او عزت لري او درجې ئې ډیرې زیاتې وچتې دي پدې وجه الله خپل نبي ته حکم وکړو چه د دوی سره په غیر منصوصي مسائلو کې او خاصکر په جهادي امورو کې مشوره وکړي.

(۳) دارنګه ټول امت پدې خبره پوهه شي چه په غیر منصوصي مسائلو کې د اجتهاد نه کار اخستل پکار دي او دا ځکه چه په یوۀ مسئله کې نظر ورکول هم یو قسم اجتهاد دې دا وجه ده چه امت مسلمه کې د متبحر علماؤ اجتهاد جاري دې. (عزیز التفاسیر بتغیر)

(٤) امام رازیؒ وائي چه دا آیت دلیل دې چه رسول الله ﷺ باندې به کله وحي نازله نۀ وه او یوه مسئله به راپیښه شوې وه نو هغه په اجتهاد باندې مامور وو او اجتهاد په مناظره او بحث مباحثې سره قوي کیږي پدې وجه رسول الله ﷺ په مشوره باندې مامور شو. (قاسميؒ)

**فائده** : هرکله چه الله تعالیٰ خپل نبي ته په مشوره اخستو باندې حکم وکړو نو غیر نبي حاکم به د خپلو کشرانو سره ضرور مشوره کوي او خپل انفرادي نظر په نورو باندې تحمیل نۀ کړي دې دپاره چه مینه او محبت ئې سره زیات شي او د تفرق او اختلاف مخه ونیولې شي. او په مشوره سره مشوره اخستونکې ډیر کم کرته خطا کیږي او که خطاء شي او مقصد حاصل نۀ شي نو هغه به پدې کار سره نۀ ملامته کیږي. په مشوره سره خبره داسې ښکاره شي لکه په دوه شیشو سره بنده خپل څټ هم ویني.

**فَاِذَا عَزَمْتَ** : دے نه روستو الله تعالیٰ اُوفرمایل چه د مسلمانانو سره د مشورے نه روستو چه کومه رائے مقرر شی نو د هغه کار د کولو دپاره په الله باندے اعتماد او بهروسه کوه، د خلقو په مشوره باندے نهٔ۔

**فائده** : فخر الدین رازیؒ لیکلی دی : دا آیت دلالت کوی چه د توکل معنیٰ هیچرے دا نهٔ ده چه بنده خپل ځان مُهمل او بیکاره اُوګنړی لکه چه د بعض جاهلانو دا خیال دے، ورنه مشوره کول به د توکل خلاف وے۔ توکل دا دے چه بنده ظاهری اسباب اختیار کړی لیکن په زړهٔ سره په هغے باندے بهروسه اُونکړی، که بهروسه وی نو صرف په الله۔

**فائده** : مشوره به د چا سره کولے شی؟ نو ددے ډیر صورتونه کیدے شی (۱) کله ضرورت داسے وی چه عامو خلکو ته خبره وړاندے کړے شی لکه رسول الله ﷺ د اُحد د غزا په وخت د جنګ میدان د ټاکلو مشوره د عامو صحابه کرامؓ نه واخسته تردے چه رئیس المنافقین عبد الله بن ابی نے هم پکی راوبللو۔ (۲) کله به د هغه شخص سره مشوره وکړی چه په مجلس کی حاضر وی یا په مشوره ورکولو کی ماهر او عقلمند وی لکه د صلح حُدیبیه په موقعه رسول الله ﷺ یواځے د ام سلمه (رضی الله عنها) سره مشوره وکړه او هغے مشوره ورکړه چه که تاسو خپله هدیه ذبحه کړئ نو صحابه کرامؓ به ستاسو اقتداء کوی او ذبحے ته به تیار شی او بیا همدغسے وشوه۔

(۳) کله به مشوره اخستونکے په خپله خوښه څه کسان د خپلے مشورے دپاره وټاکی لکه عمر فاروق رضی الله عنه د خپل مرګ نه روستو د مشر ټاکلو دپاره شپږ کسان (عثمان، علی، طلحه، زبیر بن عوام، سعد بن ابی وقاص او عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنهم) مقرر کړل چه هغوی بیا په مشوره سره سیدنا عثمان بن عفان رضی الله عنه خلیفه مقرر کړو۔

| اِنۡ یَّنۡصُرۡکُمُ اللّٰهُ فَلَا غَالِبَ لَکُمۡ ۚ وَاِنۡ یَّخۡذُلۡکُمۡ فَمَنۡ ذَا |
| --- |
| که مدد وکړی تاسو سره الله نو نشته زورور په تاسو او که مدد پریږدی ستاسو نو څوك دے |
| الَّذِیۡ یَنۡصُرُکُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِهٖ ؕ وَعَلَی اللّٰهِ فَلۡیَتَوَکَّلِ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ ﴿۱۶۰﴾ |
| هغه کس چه مدد به وکړی تاسو سره روستو د هغه نه او خاص په الله دے ځان وسپاری مؤمنان۔ |

**تفسیر** : په الله باندے توکل ولے پکار دے؟ نو دلته د الله تعالیٰ د قدرت بیان کوی چه نصرت او خذلان (مدد پریخودل) دواړه د الله په واك کی دی نو ځکه په هغه توکل پکار

دے۔ نو پدے کی الله تعالیٰ ذهن سازی کوی چه مدد صرف د الله په واك كی دے د هغه سره تعلق جوړول پکار دی۔

**ربط**: هرکله چه الله تعالیٰ خپل نبی ته په توکل باندے حکم وکړو نو اُوس ایمان والو ته وائی چه تاسو هم په الله توکل وکړئ ځکه چه ټول کارونه د الله تعالیٰ د ارادے پورے تړلے شویدی او د هغے په مقابله کی اسباب هیڅ تاثیر نهٔ لری نو که الله تعالیٰ تاسو سره مدد کول غواړی نو په تاسو به هیڅوك غالبه نهٔ شی (او د الله تعالیٰ مدد فرمانبردارو تابعدارو ته حاصلیږی او که ستاسو مدد پریدی (ځکه گناه د نعمت د زائله کیدو او د مغلوبیت او شکست سبب گرځی) نو بیا څوك دے چه تاسو سره مدد وکړی او ستاسو د مغلوبیت مخه ونیسی؟ او ستاسو د ایمان تقاضا دا ده چه تاسو به په الله توکل کوئ او خپل زړه به د الله پورے تړئ، نهٔ د اسبابو پورے اگرکه منافقان غواړی چه ستاسو تعلقات د الله تعالیٰ سره کمزوری کړی او په اسبابو مو یقین جوړ کړی۔

وَإِنْ يَخْذُلْكُمْ: خذلان مدد پریخودو ته وائی۔

مِّنْ بَعْدِهِ: اَیْ مِنْ بَعْدِ خِذْلَانِه۔ روستو د مدد پریخودو د الله تعالیٰ نه۔

| وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَغُلَّ وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا |
|---|
| او نهٔ دی جائز یو پیغمبر لره چه خیانت اوکړی او چا چه خیانت وکړو رابه شی د هغه څه سره |
| غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ تُوَفَّى كُلُّ نَفْسٍ |
| چه خیانت ئے کړے وی په ورځ د قیامت، بیا به پوره ورکړے شی هر نفس ته |
| مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿١٦١﴾ |
| بدله د هغه عمل چه دهٔ کړے وی او په دوی به ظلم نشی کیدے۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کریمه کی یو قانون دے یو شان نزول او بل ظاهری تفسیر دے۔

ظاهری مطلب د آیت دا دے چه الله تعالیٰ خپل نبی منع کوی د غلول (خیانت) کولو نه یعنی نبی له خیانت کول جائز نهٔ دی او نبی خو خیانت نهٔ کوی نو ذکر د مشر دے او مراد ترے امت دے پدے وجه روستو (وَمَنْ يَغْلُلْ) سره خبره عامه کوی۔ نو پدے آیت کی (اَلنَّهْىُ عَنِ الْخِيَانَةِ وَالْغُلُوْلِ) دے یعنی الله تعالیٰ امت منع کوی د هر قسم خیانت نه په غنیمتونو کی وی او که غیر غنیمتونو کی وی ځکه چه پدے خیانتونو سره معاشره خرابیږی،

اخلاق خرابیږي، پدے سره د الله تعالیٰ مدد کتې کیږي، په هغه معاشره به الله تعالیٰ څه رحم وکړي چه په هغې کې خیانت وي، پردي مالونه پکې خوړلے کیږي نو ددے نه ځان وساتئ مشر وي او که کشر۔ نو دا د هزیمت (شکست) دپاره قانون هم دے چه که شکست راځي نو سبب به ئے دا وي او که د خیانت نه ځان ساتئ نو شکست به دفع کیږي۔

**مضمون** : بیا الله تعالیٰ د کافرانو او مؤمنانو ترمینځ فرق بیانوي په قتال کې، اهل ایمان او کفار دواړه جنګ کوي لیکن د دواړو ترمینځ ډیر فرق دے، یو د الله په رضا روان دے او بل د الله په غضب اخته دے او جهنم ئے ځای ذے او بل جنت ته روان دے۔ او دا فرق دے د خائنانو او غیر خائنانو ترمینځ لکه ربط او مناسبت به ئے روستو راشي بیا په (۱۶۳) کې الله تعالیٰ ایمان والو باندے د خپل نبي په رالیږلو سره امتنان (احسان) بیانوي چه د نبي راتلل لوی نعمت دے۔

بیا په (أَوَلَمَّا أَصَابَتْكُمْ) کې زجر دے منافقانو ته چه هغوی ویلی وو په اُحد کې شکست ولے راغے؟ نو الله تعالیٰ په هغوی باندے د رد کولو دپاره د دغه شکست علتونه بیانوي چه دا ستاسو د جرمونو په وجه وشو۔ بل دا چه الله تعالیٰ دغسے په تقدیر کې لیکلي وو بل پدے سره تمییز د مؤمن او د منافقت راځي سره د رد نه په منافقانو، بیا په (ولا تحسبن) کې د شهداؤ دپاره بشارت دے او د ژوندو خلکو ذهن سازي کوي ځکه چه منافقانو ویلي وو چه اُحد کې څوك شهیدان شو نو هغوی د مزو نه لاړل، ښځے او بچي او مالونه ترے فوت شو نو الله جواب کوي چه هغوی خو اُوس مزو ته ورسیدل۔ هغوی تاسو پسے خفه دي چه کله به جنت ته راځي، هغوی دا نۀ غواړي چه دنیا ته راشي۔ بیا په درے آیتونو کې غزا د حمراء الاسد بیانوي چه دا قانون هم دے هغه دا چه مؤمن به د الله او د رسول تابعداري کوي په خوشحالئ او خفګان کې، بیمار دے او که روغ، خوشحاله دے او که خفه، په تکلیف کې دے او که په راحت کې، په هر صورت کې به د الله او د رسول خبرے ته تیاریږي۔ (او دا د تربیت خبره ده) بل قانون ئے هم دغه کې بیان کړیدے چه په الله باندے توکل کول او حسبنا الله ونیل او (انما ذلكم الشیطان) کې فرمائي چه د شیطان د چلبازئ نه ځان خبر کړئ شیطان ستاسو دشمن دے هغه درسره یو کار کوي نو هغې ته متوجه شئ، بیا الله تعالیٰ کافرانو او منافقانو دواړو ته توبیخ (رټنه) ورکړیده چه دا کافران جلتي کوي لګیا دي د اسلام د خرابوالي او د هغې په مقابلو کې کوششونه کوي او منافقان ورسره پټ مددونه کوي د دواړو اُور ځای دے، جهنم ته روان دي ځانونه ئے تباه کړل، بیا یو

آيت دے چه هغے ته (كنز من كنوز القرآن) وائي. يعني د قرآن كريم خزانه ده (ماكان الله ليذر المؤمنين) چه پدے كي بيان د ابتلاء اتو او د هغے حكمتونه بيانوي چه كله غزا د بدر راځي، كله د اُحد او د حمراء الاسد دا ولے راځي؟ نو الله ددے حكمتونه بيانوي چه پدے كي فائده دا ده چه الله تعالىٰ خبيثان د طيبينو نه جدا كوي، بيا سوالونه پيدا كيږي نو د هغے جوابونه بيانيږي، بيا په آخره كي الله تعالىٰ بخلاؤ ته زجر وركړيدے چه دا يهوديان او منافقان سخت بخيلان دي چه مؤمنانو ته تكليف دے او دوي په مالونو باندے خيته اچولے ده او په اهل ايمان ئے نهٔ لګوي نو د قيامت په ورځ به ددے مال نه مار جوړ شي او غاړے ته به ئے ورله واچوي او دنيا كي به هم د دوي مالونه الله ته پاتي شي. بيا د هغه ځاى نه د يهوديانو تفصيلي رد دے چه هغے كي بيان دے د يهوديانو د قبائحو په يو ركوع كي ددے وجه روستو راځي چه دوي معاشره خرابوله دلته اسلامي معاشره جوړيدله اصلاح كيدله او دوي په كي تخريب كاري كوله نو الله فرمائي چه دا شيطانان وپيژنئ بيا په آخرنئ ركوع كي (بَيَانُ حَالِ الْمُؤْمِنِيْنَ مَعَ رَبِّهِمْ) دے يعني د مؤمنانو د خپل رب سره كوم حالت دے هغه بيانوي، ترغيبا وترهيباً، ايمان والو ته ترغيب وركوي چه ستاسو حال ډے داسے وي او يهود او نصارىٰ او منافقان يروي چه تاسو د ايمان نه خالي يئ، كوم صفات چه پكار دي هغه په تاسو كي نشته. او په آخره كي داسے آيت دے چه ټول سورت لره جامع دے چه په څلورو خبرونے امر كړيدے او چا كي چه دا څلور كارونه پيدا شو نو دنيا څه چه آخرت كي به هم كامياب شي جنت ته به ورسيږي.

## شان نزول

مفسرينو د ذكر شوي آيت دپاره ګڼړ روايات ذكر كړيدي چه تقريباً اوو (۷) ته رسيږي كيدے شي چه دا ټول ئے اسباب د نزول وي ليكن مونږ بعض ذكر كوو:

(۱) د عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دے چه د بدر د غزا د غنيمت د مال نه يو سور رنګ والا څادر (شړئ) وركه شوه نو څيني خلكو وويل: (لَعَلَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ أَخَذَهَا) (جامع الترمذى ۲/ ۱۳۰) شايد چه دا به نبي كريم ﷺ اخستي وي.

نو الله تعالىٰ دا آيت نازل كړو چه نبي ته دا غلط نسبتونه مهٔ كوئ نبي هيڅ كله غلول (خيانت) نهٔ كوي.

(۲) د مقاتل او كلبيؒ نه روايت دے چه ذكر شوي آيتونه د هغه غازيانو په باره كي نازل

شوی وو چه هغوی د اُحد په غزا کی کنډو (مورچه) پرېښې وه او پخپله د غنیمت په مالونو راغونډولو کی مصروف شوی وو چه په نتیجه کی د هغوی پاتی ملګری شهیدان شو او مسلمانان د شکست سره مخامخ شو او دا ځکه چه د هغوی دا خیال وو چه احتمال شته چه نبی کریم ﷺ د غنیمت مالونه هغه چا ته ورکړی چا چه نیولی وی نو که مونږ څه شے ونهٔ نیسو د غنیمت نه به محروم شو۔ (تفسیر البغوی۱/۳۶۶)

نو الله تعالیٰ وفرمایل : چه نبی غلول نهٔ کوی په هغه دا حرامه ده چه په غنیمت کی غلول وکړی نو امتی دپاره خو په طریق اولیٰ حرام دے لکه امام عبد الله بن احمد رحمهما الله د عباده بن صامت ﷛ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ د غنیمت د اُوښ نه یو وېښته راواخستو او وے فرمایل: (مَالِیْ فِیْهِ اِلَّا مِثْلُ مَا لِاَحَدِکُمْ مِنْهُ، (اِلَّا الْخُمُسَ وَهُوَ مَرْدُوْدٌ عَلَیْکُمْ) اِیَّاکُمْ وَالْغُلُوْلَ فَاِنَّ الْغُلُوْلَ خِزْیٌ عَلٰی صَاحِبِهٖ یَوْمَ الْقِیَامَةِ، اَدُّوا الْخَیْطَ وَالْمِخْیَطَ وَمَا فَوْقَ ذٰلِكَ) (وسنده صحیح) وله شاهد، الصحیحة (۶۶۹)۔

زما پدے کی صرف هغه حصه ده کومه چه ستاسو د یو تن ده، سویٰ د خمس نه او هغه هم بیرته تاسو ته واپس کیږی، ځان د خیانت نه وساتئ ځکه چه خیانت به د قیامت په ورځ په خیانتګر باندے شرمندګی وی، (لهذا د غنیمت) یو تار او ستنه او ددے نه پورته شے ادا کړئ)۔

نو پدے کی یوه بله ذهن سازی هم ده هغه دا چه د نبی په باره کی د امت بدګمانی پیدا نشی ځکه چه په مشر باندے بدګمانی پیدا شی نو بیا به د هغه خبره درباندے اثر نهٔ کوی، ددے وجه نه د بعض عوامو په نیکانو علماؤ باندے بدګمانی وی نو هیڅ اثر پرے نهٔ کیږی۔

**تفسیر** : وَمَا کَانَ : دا په معنیٰ د (لَا یَجُوْزُ او لَا یَنْبَغِیْ) سره دے یعنی نبی له دا جائز هم نهٔ دی او مناسب هم نهٔ دی۔

اَنْ یَّغُلَّ : غلول په لغت کی د اُوښانو په غلا کولو کی استعمالیږی بیا په کی توسع شویده هر قسمه غلا ته وائی چه په غنیمت کی وشی، بیا پکی نوره توسع شویده نو هر خیانت او هر حرام مال ته غلول وائی۔

وَمَنْ یَّغْلُلْ : اُوس خبره عامه کوی او مقصد پکی دا دے چه اے امتیانو ! تاسو پخپله د خپلو ځانونو اصلاح ته متوجه شئ او په هیڅ شی کی خیانت مهٔ کوئ او د غنیمت د مالونو نه څه شے مهٔ غلا کوئ ګنے د قیامت په ورځ به د لوی شرم سره مخامخ شئ چه

دغه خیانت شوے شے به مو په شا وی او د محشر میدان ته به راشیٔ او بیا به هر انسان ته د هغه د عمل په اندازه پوره جزا ورکړے شی او هیڅ ظلم به پرے نهٔ کیږی. یعنی د قیامت د شرمندګیٔ نه روستو به د هغه اُور ته تلل وی.

یَاْتِ بِمَا غَلَّ: دا په خپل حقیقت باندے بناء دے او هیڅ تاویل ته پکی ضرورت نشته لکه چه معتزله ؤ پکی کړیدی او ددے تشریح رسول الله ﷺ داسے کړیده صحیحینو کی د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت شویدے چه رسول الله ﷺ مونږ کی یوه ورځ راپاڅیدو نو خیانت ئے ذکر کړو او د هغے لوئی والے او د هغے د سزا غټ والے ئے بیان کړو بیا ئے وفرمایل:

(لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ بَعِيرٌ لَهُ رُغَاءٌ يَقُولُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَغِثْنِي، فَأَقُولُ لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ أَبْلَغْتُكَ، لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ فَرَسٌ لَهُ حَمْحَمَةٌ فَيَقُولُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَغِثْنِي فَأَقُولُ: لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ أَبْلَغْتُكَ، لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ شَاةٌ لَهَا ثُغَاءٌ يَقُولُ: يَارَسُولَ اللّٰهِ أَغِثْنِي فَأَقُولُ: لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ أَبْلَغْتُكَ الحديث) (مسلم كتاب الامارة حديث رقم (٢٤)

زهٔ دے په تاسو کی یو تن مونده نکړم چه د قیامت په ورځ به راشی په څټ باندے به ئے اُوښ وی چه د هغه دپاره به رمبارے وی، وائی به چه اے د الله رسوله! ما سره مدد وکړه، نو زهٔ به وایم: زهٔ ستا دپاره د هیڅ شی اختیار نهٔ لرم، ما تا ته خبره رسولے ده. زهٔ دے په تاسو کی یو تن مونده نکړم چه د قیامت په ورځ به راشی د هغه په څټ باندے به اس وی چه د هغه دپاره هنږیدل وی نو وائی به چه اے د الله رسوله! زما مدد وکړه نو زهٔ به وایم: زهٔ ستا دپاره هیڅ اختیار نهٔ لرم ما تا ته خبره رسولے ده، زهٔ دے یو تن په تاسو کی مونده نکړم چه د قیامت په ورځ راشی د هغه په څټ باندے ګډان وی چه د هغے رمبارے وی وائی اے د الله رسوله! زما مدد وکړه نو زهٔ به وایم چه زهٔ ستا دپاره د هیڅ شی اختیار نهٔ لرم ما تا ته خبره رسولے ده. دغه شان رقاع او صامت الفاظ ئے ذکر کړیدی یعنی په څټ باندے به ئے ټوټے وی چه خوزیږی به او د چا په څټ باندے به نور چارپیان وی یا مالونه به وی.

دغه شان چا به کتابونه پټ کړی وی او چا به غلط کتابونه لیکلی وی هغه به ئے په څټ باندے مصیبت پروت وی. (چا به کاری پټ کړی وی هغه به پرے سواره وی، ارندونه به وهی).

رسول الله ﷺ دا خبره د زکاة د راټولونکو په باره کی هم کړیده چه هغه د زکاة نه څه پټ کړی یا د خلکو نه هدایا (تحفے) واخلی نو دا هم غلول او خیانت دے څکه چه دا د

حکومت د طرفنه تلے دے، دا هدایا به حکومت ته ورسپاری۔ (تفسیر القرطبی ۴/۲٦۱)
(۲) تفسیر: امام بغوی د محمد بن اسحاق نه نقل کریدی چه دا د وحی په باره کی دے:
(اَیْ مَا کَانَ لِنَبِیٍّ اَنْ یَّکْتُمَ شَیْئًا مِنَ الْوَحْیِ رَغْبَةً اَوْ رَهْبَةً اَوْ مُدَاهَنَةً) (معالم التنزیل:۲/۱۲٦)
د یو نبی دپاره دا جائز نهٔ دی چه د وحی نه څه شے پټ کړی د وجه د مینے (د دنیا) نه یا د چا د یرے د وجه نه یا د چا دپاره د حق پټولو د وجه نه)
(۳) پدے کی یو بل قراءت (اَنْ یُّغَلَّ) دے اَیْ یُنْسَبَ اِلَی الْغُلُوْلِ - یعنی دا مناسب نهٔ ده چه یو تن نبی غلول ته منسوب کړی لکه بعض کسانو وئیلی وو چه شاید دا شریٔ نبی ﷺ اخستی وی۔ لیکن دلته دا قراءت نشته بلکه د معلوم صیغه ده (اَنْ یَّغُلَّ) بیا به ذکر د نبی وی او مراد به ترے امت وی لکه چه مخکی ذکر شو۔
ثُمَّ تُوَفّٰی کُلُّ نَفْسٍ: د قیامت په ورځ بدله به په نیکیو او بدیو باندے وی، که چا خیانت کړے وی، پردے مال ئے خوړلے وی نو د هغه نه د هغے په مقدار نیکیانی اخستے کیږی، که نیکیٔ ئے ختمے شی نو بیا به د هغه گناهونه پرے وربار کړے شی او بیا به اُور ته راښکلے شی لکه دا خبره په احادیثو کی راغلے ده۔
**فائده**: ابن مسعود ﷺ چه فرمایلی وو چه کتابونه پټ کړیٔ ځکه چه څوك څه پټ کړی د قیامت په ورځ به دغه پټ کړے شوے شے راوړی۔ د هغه مقصد دا وو چه خپل مصاحف (قرآنونه) د عثمان ﷺ نه پټ کړیٔ، ځکه چه هغه د مصحف الامام نه علاوه مصاحفو باندے حکم کړے وو چه هغه دے وسوزولے شی، نو دلته پردی کتابونه پټول مقصد نهٔ وو۔ (ابن کثیرؒ)

| |
|---|
| أَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللّٰهِ كَمَنْ بَآءَ |
| آیا پس هغه څوك چه روان شو د رضا د الله پسے په شان د هغه چا دے چه اخته شوے وی |
| بِسَخَطٍ مِّنَ اللّٰهِ وَمَأْوٰىهُ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ﴿۱٦۲﴾ هُمْ |
| په غضب د الله او ځای د وسیدو د هغه جهنم دے او بد ځای د ورتللو دے (دا جهنم)۔ دوی |
| دَرَجَاتٌ عِنْدَ اللّٰهِ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ بِمَا يَعْمَلُوْنَ﴿۱٦۳﴾ |
| مختلفو درجو والا دی په نیز د الله او الله لیدونکے دے د هغه عملونو چه دوی ئے کوی۔ |

**تفسیر**: پدے دوه آیتونو کی الله تعالیٰ فرقونه بیانوی د دوه ډلو چه یو کافر دی او بل

مؤمنان دي، جنګ د دوو ډلو ترمینځ کیږي نو الله فرمائي چه ددے دواړو ډلو ترمینځ ځو مره فرق دے، یو د الله تعالیٰ د رضا پسے روان دے او بل د الله په غضب اخته دے، یو جنت ته ځي او بل جهنم ته، دا فرق دلته ولے بیانیږي ؟ ددے راز دا دے چه منافقانو دا خبره کړے وه چه د نبي کریم ﷺ د راتللو نه مخکې مونږ په اختلافاتو کې وو نو زمونږ امید وو چه دا نبي به راشي او په دهٔ سره به زمونږ جګړے او اختلافات ختم شي او امن وامان به راشي، او ددهٔ په وجه جنګونه نور هم زیات شو نو امن پکار دے. نو الله تعالیٰ پدے درے آیتونو کې د منافقانو ددے غلط ذهن رد کوي چه جنګونو کې فرق دے، مخکې خو جنګونه د جاهلیت او کفر وو او اوُس چه کوم جنګ کیږي دے ته جهاد وائي، دا د الله د رضا سبب دے او د الله تعالیٰ بندګي ده، کافر جنګ کوي خو جهنم ته روان دے او مؤمن جنګ کوي نو جنت ته روان دے او الله ترے رضا دے نو داسے مهٔ وایئ چه مخکې هم بې امني او اختلافات وو او اوُس هم دي، نهٔ بلکه دواړو کې ډیر فرق دے.

په (لَقَدْ مَنَّ اللهُ) کې هم الله تعالیٰ دا مضمون بیان کړیدے چه دوي ویلي وو چه نبي ﷺ راغلو ددهٔ په وجه اختلافات زیات شو نو دا خو زمونږ دپاره مصیبت شو، کله پلار مړ کیږه او کله ورور او کله نور خپلوان او کله مالونه لګیږه نو الله جواب وکړو چه محمد رسول الله ﷺ په تاسو باندے د الله تعالیٰ یو عظیم احسان دے وجه دا ده چه دا په تاسو باندے تلاوة الآیات کوي او تزکیه د نفسونو کوي او د قرآن او د سنت تعلیم درکوي او د ګمراهئ نه مو راوباسي ځکه چه تاسو خو په کفر او شرك او د ګمراهئ په سیلاب کې پراته وئ الله تعالیٰ ددهٔ په وجه راویستلئ نو دا څومره لوی احسان شو نو که پدے کې جنګونه وغیره راشي نو دا د لوازماتو د رسول نه دي، رسول سره به دا تکلیفونه وي لیکن دا د الله تعالیٰ لوی احسان دے، مثال ئے باران دے چه لږ تکلیف پکې وي چقرے جوړے شي مګر خیر ئے ډیر زیات دے.

**ربط** : یو مناسبت مخکې ذکر شو چه یو تن د الله د رضا پسے روان دے او بل د الله په غضب اخته دے دواړه یو شان نهٔ دي نو کفار چه جنګ کوي د الله په غضب اخته کیږي او مؤمن چه جنګ کوي نو الله ترے راضي کیږي نو دواړه یو شان مهٔ ګنړئ. نو ددے مطلب به دا وي (أَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللّٰهِ بِالْإِيْمَانِ وَالْعَمَلِ الصَّالِحِ كَمَنْ بَاءَ بِسَخَطٍ مِّنَ اللّٰهِ بِالْكُفْرِ)

آیا هغه څوك چه د الله د رضا پسے روان شو چه ایمان ئے راوړو او نیك عمل کوي دا په شان د هغه چا هیڅرے نشي کیدے چه د الله په غضب اخته شو چه کفر ئے وکړو دواړو کې

د ځمکے او د آسمان فرق دے۔

(۲) مناسبت: (أَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللّٰهِ فَتَرَكَ الْغُلُوْلَ كَمَنْ بَاءَ بِسَخَطٍ مِنَ اللّٰهِ بِالْغُلُوْلِ)

آیا پس هغه څوک چه د الله د رضا پسے روان شو او غلول ئے پریښودو په شان د هغه چا دے چه د الله په غضب اخته شو په سبب د غلول سره)

(۳) مناسبت: (أَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللّٰهِ بِاتِّبَاعِ النَّبِيِّ ﷺ كَمَنْ بَاءَ بِسَخَطٍ مِنَ اللّٰهِ بِمُخَالَفَةِ الرَّسُوْلِ ﷺ) (السراج المنير)

آیا هغه څوک چه د الله د رضا پسے روان شی په سبب د تابعدارئ د رسول الله ﷺ په شان د هغه چا دے چه اخته شو په غضب د الله په سبب د مخالفت د رسول الله ﷺ)

(٤) (أَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللّٰهِ بِالطَّاعَةِ كَمَنْ بَاءَ بِسَخَطٍ مِنَ اللّٰهِ بِسَبَبِ الْمَعَاصِيْ كَالْغَالِ) القاسمی ۲/ ۱۷۰)

آیا پس هغه څوک چه د الله د رضا پسے روان شو چه د الله تعالیٰ طاعت کوی په شان د هغه چا دے چه د الله په غضب اخته شو په سبب د گناهونو لکه غلول والا شو)

۵- امام قرطبیؒ دا آیت د صبر علی الجهاد او د نبی کریم ﷺ نه په جنگ کی اوریدو سره لگولے دے یعنی څوک چه د الله د رضا پسے روان شی چه په جهاد کی صبر کوی دا د هغه چا سره نهٔ شی یو شان کیدے چه د رسول الله ﷺ نه په جنگونو کی اوری

(القرطبی: ٤/٢٦٢)

علامه سعدیؒ فرمائی: پدے آیت کی الله تعالیٰ خبر ورکوی چه هغه څوک چه د هغه قصد او اراده د الله رضا کول وی او په هغه کارونو باندے عمل کول وی چه په هغے الله تعالیٰ راضی کیږی دا په شان د هغه چا کیدے شی چه داسے نهٔ وی بلکه په گناهونو باندے همیشوالے کونکے وی، خپل رب خفه کونکے وی دا دواړه هیڅکله برابر نهٔ دی نهٔ په حکم د الله کی او نهٔ په حکمت د هغه کی او نهٔ د هغه د بندګانو په فطرتونو کی۔ ﴿أَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا كَمَنْ كَانَ فَاسِقًا﴾ ددے وجه نه ئے وفرمایل: (هُمْ دَرَجَاتٌ) یعنی دا تول په درجاتو او مرتبو کی مختلف دی ځکه چه اعمال ئے مختلف دی نو څوک چه د الله رضا لټوی نو هغوی کوشش کوی په حاصلولو د اُوچتو درجو او کورونو او بالاخانو کی نو هغوی ته به الله تعالیٰ د خپل طرف نه ورکوی د هغوی د اعمالو مطابق او څوک چه د الله غضب په کارونو پسے روان دی هغوی کوشش کوی چه خپل ځانونه درکاتو (ښکته درجو) ته ورکوز کړی هر څوک د خپل عمل په اندازه، چه تولو باندے الله تعالیٰ لیدونکے دے هغوی

ته به د هغوی د اعمالو جزا او سزا ورکوی۔ (تفسیر السعدی تیسیر الکریم الرحمن ۱/۱۵۵)

وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ : د مصیر او مرجع ترمینځ فرق

مصیر د صیرورة نه دے او صیرورت د حالت بدلیدو ته وائی لکه د خاورے نه چه ختے جوړه شی او د مَرجِع کلمه د رجوع نه ده او رجوع خپل اصلی حالت ته د ورتاویدلو نه عبارت دے لکه انسان چه بیرته خاورے شی۔ (عزیز التفاسیر)

هُمْ دَرَجَاتٌ : د درجات حمل په (هُم) باندے حمل د وصف دے په ذات باندے او دا په ظاهر کی نهٔ صحیح کیږی نو زجاج معنیٰ کوی : (اَیْ هُمْ ذَوُوْ دَرَجَاتٍ، یا- لَهُمْ دَرَجَاتٌ)

یعنی دوی مختلفو درجاتو والا دی یا د دوی دپاره مختلف درجات دی، ځوك پورته او ځوك ختکته۔ مګر پدے حمل کی هم ډیر فصاحت دے، یعنی دوی درجے درجے دی۔ او پدے کی مبالغه ده یعنی د دوی د یو بل نه داسے مختلف دی لکه چه د درجاتو اختلاف وی۔

ظاهر دا ده چه دا د مؤمنانو سره لګیږی چه په دوی کی الله تعالیٰ مختلفے درجی کرزولی دی ځوك ډیر اُوچتے مرتبے والا وی لکه د انبیاؤ (علیهم السلام) په شان، او ځوك د هغوی پسے نزدے وی لکه علماء او شهداء، او ځوك د هغوی نه ښکته درجو والا وی لکه عام مؤمنان شو۔

یا د دواړو سره لګی یعنی مؤمنان اُوچتو درجو والا دی او اهل کفر ختکته درجو والا دی چه د دوی دپاره درکات لفظ استعمالیږی یعنی هرکله چه په عملونو کی فرق دے نو په نتیجه کی ئے هم فرق وشو۔

وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ : یعنی دا درجے الله تعالیٰ په عملونو سره ورکوی او الله تعالیٰ د دوی عملونه وینی نو د هغے مطابق به درجات ورکوی۔

| لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ إِذْ بَعَثَ فِيْهِمْ رَسُوْلًا |
| --- |
| یقیناً احسان کریدے الله تعالیٰ په مؤمنانو کله ئے چه راولیږلو په دوی کی یو رسول |
| مِّنْ أَنْفُسِهِمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ آيَاتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ |
| د دوی د جنس نه چه لولی په دوی باندے آیتونه د هغه او پاکوی دوی لره او ښائی دوی ته |
| الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلَالٍ مُّبِيْنٍ ﴿١٦٤﴾ |
| کتاب او پوهه د دین (سنت) او اګرکه وو دوی مخکی ددهٔ نه خامخا په ګمراهئ ښکاره کی۔ |

**تفسیر**: عنوان د آیت: بَيَانُ امْتِنَانِ اللّٰهِ عَلٰى أَهْلِ الْإِيْمَانِ بِبَعْثَةِ هٰذَا الرَّسُوْلِ الْمُرَبِّي الْمُزَكِّي الْمُعَلِّمِ) - پدے آیت کی الله تعالیٰ په مسلمانانو باندے خپل احسان ذکر کړیدے چه هغه د دوی د لارخودنے دپاره دوی ته د دوی په شان عربی انسان خپل رسول راولیږلو دے دپاره چه د هغه د تعلیماتو نه فائده واخلی، نو د منافقانو د خبرے تردید وشو چه هغوی وویل چه ددے رسول په وجه په اُحد کی اویا کسان زمونږ نه لاړل۔ نو الله فرمائی چه دا رسول مصیبت نهٔ دے بلکه دا نعمت وګڼړئ ځکه چه ددے رسول په وجه ایمان والا علماء جوړ شول او د نفس تزکیه ئے وشوه او د ګمراهئ نه راووتل او دا شهادتونه ددهٔ په تابعداریٔ کی هم سبب د جنت دے، نو دوی خو مزے وکړے که دا رسول نهٔ وے هم پدے کسانو مرګ راتللو اُورته به تلی وے په حالت د شرك کی نو رسول الله ﷺ د دوی دپاره احسان شو۔

ځوك چه نبی، یا د دین احکام مصیبت ګڼړی دا مسلمان نشی کیدے۔

**ربط**: مخکی د رسول الله ﷺ صفات ذکر شو، د هغه اخلاق او خیانت نهٔ کول نو اُوس ترغیب ورکوی چه د دغه نبی اتباع وکړئ او په جهاد کی د داسے نبی د ملګرتیا نه ځان مهٔ روستو کوئ۔

عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ: چونکه د رسول په بعثت سره مسلمانان په حقیقی معنو کی فائده مند شول، پدے وجه ئے په دوی باندے احسان ذکر کړو، ورنه رسول الله ﷺ خو د ټولے دنیا دپاره رحمت رالیږلے شوے وو لکه چه الله د سورة الانبیاء په آیت (۱۰۷) کی فرمائی: ﴿وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِلْعَالَمِيْنَ﴾ چه مونږ تا لره د ټول عالَم دپاره رحمت رالیږلے دے۔

د هغه رسول صفت دا دے چه هغه به دوی ته قرآن لوستلی، ځکه چه ددهٔ نه مخکی عربو ته هیڅ وحی نهٔ وه راغلے، که په دوی کی نهٔ وے رالیږلے شوے نو د غیبو سره به ئے هیڅ تعلق نهٔ وے او د غیبو نه به هیڅ نهٔ وے خبر شوی۔

هغوی به د توحید د دعوت او د اسلام د دعوت په ذریعه د شرك او ګناهونو نه پاك کوی او هغوی ته به د قرآن او سنت تعلیم ورکوی۔ عرب خلق د نبی کریم ﷺ د بعثت نه او د هغه د تزکیه او تعلیم نه مخکی په ښکاره ګمراهئ کی وو، د بتانو عبادت به ئے کولو، حرام اوګنده څیزونه به ئے خوړل، او په یو بل به ئے ظلم کولو، قتل وقتال او فسادونه پکی وو۔ الله تعالیٰ خپل نبی راولیږلو او هغوی ئے د تیارو نه رااُوویستل او رڼا ته ئے راوستل او په علم او زهد او عبادت کی ئے د دنیا بهترین انسانان جوړ کړل۔ د الله تعالیٰ په مسلمانانو باندے دا عظیم احسان وو۔

فخر الدین رازیؒ لیکلی دی چه الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ لره په عربو کی پیدا کړو، دا د

عربو دپاره د غټ فخر او شرافت خبره وه، ځکه چه په ابراهیم علیه السلام باندے فخر کول خو په یهود او نصاراؤ او عربو ټولو کې شریك وو.

او یهود او نصاراؤ به په موسیٰ او عیسیٰ (علیهما السلام) او تورات او انجیل باندے فخر کولو. د عربو سره د هغوی په مقابله کې د فخر هیڅ خبره موجود نهٔ وه. کله چه الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ راولیږلو او په هغه باندے ئے قرآن نازل کړو نو دا د عربو دپاره د لوئی شرافت خبره وه چه پدے کې نور قومونه شریك نهٔ وو.

إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ : یعنی په عربو کې نو دا د عربو خصوصی شرافت شو او (مِنْ أَنْفُسِهِمْ) د دوی د جنس ئے نه راولیږلو یعنی بشر ځکه چه د بشر نه هدایت او علم زده کول آسان وی ځکه چه انسان د انسان سره نفرت او طبعی وحشت نهٔ لری که ملائك یا ئے پیرے رالیږلے وے نو بیا به د بعض بندګانو بهانه جوړه وے چه مونږ ددهٔ نه یریدو ځنګه پرے مونږ ایمان راوړے وے. نو رسول الله ﷺ انسان وو لکه د عامو انسانانو په شان، صرف فرق دا دے چه هغه ته الله تعالیٰ وحی وکړه او داسے معجزات ئے راښکاره کړل چه هغه د انسان په طاقت کې نهٔ وو چه دا دلیل وو د هغه په حق او رشتینی رسول کیدو باندے او د هغه د تابعداریٔ په لازمیدو باندے.

او (انفس) کې بعض مفسرینو دا هم وئیلی دی چه د رسول الله ﷺ د عامو عربو سره نسبی شرکت وو سویٰ د بنو تغلب نه چه دا نصاریٰ وو.

يَتْلُوْ عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ : یعنی آیتونه د قرآن او دلیلونه.

مِنْ قَبْلُ : یعنی مخکې ددے کتاب او سنت نه. یا مخکې ددے نبی رالیږلو نه.

او ددے آیت باقی تشریح په بقره (۱۲۹) آیت کې وګوره.

نو ددے آیتونو مناسبت هم د واقعاتو د اُحد سره دے پدے وجه اُوس بیرته د اُحد واقعے ته رجوع کوی.

| أَوَلَمَّا أَصَابَتْكُمْ مُصِيبَةٌ قَدْ أَصَبْتُم |
|---|
| آیا او هرکله چه ورسیدو تاسو ته مصیبت (په اُحد کې) چه یقیناً رسولے وو تاسو |
| مِثْلَيْهَا قُلْتُمْ أَنَّى هٰذَا قُلْ هُوَ مِنْ عِنْدِ |
| دوچنده د هغے نه (په بدر کې) ووئیل تاسو د کومه راغلو دا غم، ته ووایه دا د طرفه |

﴿أَنفُسِكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴿١٦٥﴾

د نفسونو ستاسو نه دے، یقیناً الله تعالیٰ په هر شي باندے قدرت لرونکے دے۔

**تفسیر** : پدے آیتونو کی منافقانو ته زجر دے چه دوی یو اعتراض راپورته کړو او په ساده لوحو مسلمانانو کی ئے دا خبره خوره کړه چه نبی کریم ﷺ خو د فتح وعده کړے وه، هغه پوره نشوه، بل طرفته دا نبی په مونږ باندے څنګه احسان دے چه ددهٔ په ملګرتیا کی په مونږ باندے په اُحد کی سخت مصیبت راغلو، اویا کسان قتل شو نو دا وعده مونږ سره ولے رشتینی نشوه؟۔ نو الله پدے آیتونو کی منافقانو ته رټنه ورکوی او د مؤمنانو ذهن سازی کوی فرمائی : آیا تاسو د نبی کریم ﷺ نافرمانی هم کوئ او کله چه درته داسے مصیبت ورسیږی چه د هغه مصیبت دوچنده مصیبت تاسو دشمنانو ته رسولے دے بیا هم تاسو وایئ چه (أَنّىٰ هٰذَا ؟) دا مصیبت مونږ ته ولے راورسیدو ؟ حال دا چه مونږ مسلمانان یو او دشمنان مو کافران دی ؟ دا تعجب مو وکړو، نو الله فرمائی : دا مصیبت راتلل خو دومره لویه خبره نهٔ ده چه تاسو پرے ډیر پریشانه شوئ ځکه چه ستاسو مصیبت په نسبت د کافرانو سپك وو ځکه که په اُحد کی ستاسو اویا کسان شهیدان شو خو څوك مو قیدیان شوی نهٔ دی او په بدر کی تاسو د دشمنانو نه اویا کسان قتل کړل او اویا کسان مو ونیول نو تاسو کولے شوه چه هغه مو وژلی وے خو تاسو په خپله خوښه فدیه اخستو سره پریخودل۔ مطلب دا چه هرکله ستاسو دشمن د دوچنده مصیبت په وجه وارخطا نشو او بیرته جنګ ته تیار شو، اُحد ته راغلل نو تاسو په یو چند مصیبت څنګه وارخطا شوئ۔

بل طرفته د الله نبی تاسو ته وئیلی وو چه مورچه به نهٔ پریدئ او تاسو هغه پریخوده نو د نبی د امر نه د غفلت په وجه تاسو ته دا مصیبت ورسیدو نو پدے وجه خپل ځانونه ملامته کړئ او اے منافقانو ! تاسو خو هیڅ مهٔ وایئ ځکه چه تاسو خو د لارے نه وتښتیدئ ستاسو ددے اعتراض هیڅ حق نشته۔ د الله د مدد وعده بیخی رشتینی ده ځکه چه هغه خو شرط لګولے وو ﴿وَإِن تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا﴾ (آلعمران : ١٢٠) که تاسو صبر او تقویٰ وکړه، د کافرانو هیڅ چل به تاسو ته تکلیف درنکړی۔

البته دا د دنیا چلن دے چه کله الله تعالیٰ په مؤمن باندے هم امتحان راولی نو دا د ناکامئ نښه نهٔ ده۔

**هُوَ مِنْ عِندِ أَنفُسِكُمْ** : دے کی درے احتمالات دی (١) یو دا چه تاسو مرکز پریخودو لکه

چه مخکې بیان شو۔ نو شکست ستاسو د ځانونو د طرفنه شو۔

(۲) تاسو په خپله خوښه د جهاد دپاره د مدینې نه اُحد طرفته راوتل خوښ کړی وو۔

(۳) په حدیث د ترمذی کې راغلی دی چه د بدر په ورځ کله صحابه کرامو فدیه اخستله نو دوی ته ووئیل شو چه فدیه واخلئ لیکن ستاسو نه به اویا کسان قتل کولے شی نو دوی هغه خبره غوره کړه۔

إِنَّ اللهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ : یعنی الله تعالیٰ خو په هر شی قدرت لری که دغه اسباب نهٔ وے نو الله تعالیٰ تاسو ته غلبه درکوله لیکن پدے لږ شان مغلوبه کولو کې هم ډیر حکمتونه او رازونه دی چه څه مخکې بیان شویدی۔ یعنی د الله په قدرت کې هیڅ قسم کمے نهٔ دے راغلے لیکن دا د الله قانون دے چه مؤمن بنده ته د هغه د ګناه په وجه د هغه د متوجه کولو دپاره سزا ورکوی، او که همیشه غلبه راشی نو دے دپاره چه مست نشی۔ او په قدرت ذکر کولو کې اشاره ده چه د الله تعالیٰ قدرت دائمی دے هغه کولے شی چه تاسو ته بیرته غلبه درکړی۔

او پدے کې اشاره ده چه ستاسو څه خیال دے چه تاسو هره ګناه وکړئ الله به جزاء نهٔ درکوی؟ داسے نهٔ ده، یقیناً الله تعالیٰ په هر څه قدرت لری چه ددے نه یوه ستاسو مصیبت (د ګناه سزا) هم ده، آؤ الله په تاسو باندے داسے مصیبت درنازل نکړو چه ستاسو بیخ وباسی، الله تعالیٰ دا کولے شو او تاسو ئے مستحق وئ خو دا کارئے ونهٔ کړو آیا تاسو اُوس هم شکایت کوئ؟۔

**فائده** : نو ددے نه معلومه شوه چه د معاصیو سره الله تعالیٰ مصیبتونه تړلی دی کله چه په بنده باندے هغه راشی نو خپل ځان دے ملامته کړی، په اسلام او په نبی به پړه نهٔ اچوی او بنده ډیے ددے نه لوی عبرت تر قیامته پورے حاصل کړی۔

**حکمت** : من عند انفسکم : کې اشاره ده سبب ته نو پدے کې په جبریه ؤ باندے رد دے چه هغوی اسباب نهٔ منی۔ او په خپل قدرت ذکر کولو کې په قدریه ؤ باندے رد دے۔

| وَمَا أَصَابَكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ فَبِإِذْنِ |
|---|
| او هغه مصیبت چه ورسیدو تاسو ته په هغه ورځ چه مخامخ شوے دواړه ډلے نو دا په حکم |
| اللهِ وَلِيَعْلَمَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۶۶﴾ وَلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ |
| د الله دے او دے دپاره چه ښکاره کړی مؤمنان۔ او دے دپاره چه ښکاره کړی هغه کسان |

نَافَقُوْا وَقِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ أَوِ ادْفَعُوْا

چه منافقت ئې کړېدے او ووېلے شو دوی ته راشئ جنګ وکړئ په لاره د الله کې یا دفاع وکړئ،

قَالُوْا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّاتَّبَعْنٰكُمْ هُمْ لِلْكُفْرِ

ووېل دوی که پوهېدلے مونږ په جنګ خامخا مونږ به تابعداري کړے وے ستاسو، دوی کفر ته

يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْإِيْمَانِ يَقُوْلُوْنَ بِأَفْوَاهِهِمْ مَّا

په دغه ورځ ډېر نزدے شو په نسبت د دوی ایمان ته. وائی دوی په خولو خپلو سره هغه څه

لَيْسَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُوْنَ ﴿١٦٧﴾

چه نشته په زړونو د دوی کې او الله ښه پوهه دے په هغه څه چه دوی ئې پټوی۔

**تفسیر** : دا نور دوه علتونه بیانوی او ذهن سازی کوی چه تاسو ته کوم مصیبت در ورسیدو دا الله تعالیٰ په تقدیر کې لیکلے وو. د هغه تکوینی امر داسے وو چه تاسو ته به دا مصیبت رسیږی او د کافرانو په لاس کې هیڅ نشته او الله تعالیٰ چه په تقدیر کې یو شے ولیکی نو په هغے کې حکمتونه وی لهذا هغے ته تسلیمیدل پکار دی لکه د تقدیر فائده الله تعالیٰ داسے ذکر کړیده : ﴿لِكَيْلَا تَأْسَوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَلَا تَفْرَحُوْا بِمَا آتَاكُمْ﴾ (الحديد: ۲۳) دے دپاره چه غمژن نشئ په هغه څیز پسے چه تاسو نه فوت شو او خفه نشئ په هغه مصیبت چه تاسو ته ورسیدو) (السعدی ۱/۱۵۶)

او تقدیر باندے ایمان ساتلو سره د بنده زړه بےخبری او دا ضروری شے دے۔

وَلِيَعْلَمَ : دا دویم سبب او علت بیانوی چه الله تعالیٰ پدے امتحان سره مؤمنان راښکاره کوی چه په غم او خوشحالئ کې د دوی څه حال جوړیږی؟ آیا د دوی په عقیده باندے څه اثر پریوزی؟، نو دلته علم په معنیٰ د اظهار (راښکاره کولو) سره دے. یا (یعلم) په معنی د (یَرٰی) سره دے یعنی دے دپاره چه الله تعالیٰ ورونښائی مؤمنانو ته چه د معصیتونو نتیجی همدغسے وی لکه چه تاسو په سترګو ولیده نو په کار ده چه تر قیامته پورے ددے نه مؤمنان درس واخلی که تاسو ته دا مصیبت نه وے رسیدلے نو تاسو به په هر حال کې فتحے ته په طمعه ناست وئ اګرکه د الله احکام د خپلو لاندے کیدلے۔

﴿وَلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ﴾ : دا په (اذن الله) باندے عطف دے، پدے کې بل سبب دا خودلے شویدے چه الله تعالیٰ پداسے امتحاناتو سره د ایمان والو او د منافقانو ترمینځ تمیز راولی او

منافقان د ایمان والو د صفونو نه بهر کوی، او خلکو ته د هغوی انجام رابنکاره کوی او پدے تمییز کی فائده دا وی چه ایمان والو ته خپل دشمن معلوم شی چه صبا له په هغه باندے اعتماد نهٔ کیږی او په یو ځای کی به تشی مشر کولے. لکه عمر فاروق ﷺ به په خپل دور خلافت کی هغه شخص نهٔ مشر کولو چه حذیفه بن الیمان ﷺ به نهٔ منلو ځکه چه دا به منافق وی ځکه چه حذیفه ﷺ ته رسول الله ﷺ منافقان خودلی وو۔

دا آیت دلیل دے چه الله تعالیٰ منافقان د ایمان والو (صحابه کرامؓ) نه جدا کړی وو نو ثابته شوه چه هیڅ روایت د یو منافق نه نقل نه دے. نو دا خبره د هغه بعض ناپوهه خلکو خطاء شوه چه وائی پته نهٔ لگی چه دا احادیث کیدے شی د منافقانو نه نقل وی. نو انکار حدیث ئے شروع کړو لکه پدے باره کی صاحب د اصول الشاشی ص (۷۵) کی یو منکرت روایت د علی ﷺ نه په باب السنة کی راوړیدے چه هغه د شیعه گانو خبره ده او د هغوی په کتابونو (منهاج البلاغة) کی راغلے دے۔

وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ نَافَقُوا : یعنی الله تعالیٰ منافقان رابنکاره کړی چه په خوشحالئ کی خو ځانونه مؤمنان ښکاره کوی مگر د غم په وخت کی په الله باندے اعتراض کوی او خپلو جرمونو ته نهٔ گوری، نو الله تعالیٰ دغه منافقان ایمان والو ته رابنکاره کړل۔

وَقِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا : دا د اُحد د غزا شروع کیدو نه لږ مخکی حالت بیانوی چه د رسول الله ﷺ سره منافقان هم ووتل کله چه دشمن ته ښکاره شو نو عبد الله بن ابی ابن سلول (رئیس المنافقین) دریے سوه کسان د لارے نه راستانه کړل چه جنگ له نهٔ ځو ځکه چه دوی زما مشوره نهٔ ده منلے، ما ویلی وو چه په مدینه کی دننه جنگ کوو او بهر نهٔ ووځو، پدے کی ددهٔ فساد او ورانے غرض وو چه دشمن ته د دوی حال معلوم شی او په صحابه کرامو رازړهٔ ور شی او دوی دشمن ته کم ښکاره شی. او مسلمانانو کی پریشانی پیدا شی نو په عین موقعه کی شا ته شو نو پدے کی عبد الله بن عمرو بن حرام انصاری ﷺ (چه د جابر ﷺ پلار دے) وریسے ورروان شو او دا آواز ئے ورته وکړو :

(اتَّقُوا اللَّهَ وَلَا تَتْرُكُوا نَبِيَّكُمْ وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوِ ادْفَعُوا)

د الله نه ویریږئ او (که ځان ته مسلمانان وایئ نو) خپل نبی دشمن ته مهٔ پریدئ او د الله په لاره کی جهاد وکړئ (دا د جنت لاره ده) نو هغوی وویل : جنگ نهٔ کیدو والا دے، دا هسے خبرے اترے دی او مونږ به واپس شو خپل کارونه به وکړو۔ نو پدے کی عبد الله ﷺ ورته غیرت ورواچولو چه که د الله تعالیٰ د رضا دپاره جنگ نهٔ کوئ نو د خپل کلی والئ غیرت

خو وکړئ ستاسو په کلی او په خپلو انو حمله کیږی او تاسو دغه شان واپس کیږئ۔

(**فائده**: مؤمن به د الله نه ویرولے شی او منافق د خلکو نه او کافر به په توره او توپك ویرولے شی هر چا ته به خپله خپله یره ورکولے شی، که منافق ته الله او آخرت یادوے نو هغه ته دا هیڅ نۀ ښکاری په هغه باندے دا اثر نۀ کوی نو ستا خبرے ضائع کیږی)

نو دوی روان شو او مسلمانانو ئے په ځای پریخودل بیا روسته زمانه کی د مسلمانانو اختلاف شو چه دا کسان مسلمانان دی او که پدے کار سره کافران شویدی نو الله تعالیٰ په سورة النساء کی آیتونه راولیږل (فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ) چه دا منافقان شویدی الله تعالیٰ ذلیله کریدی دوی ته مؤمنان مۀ وایئ)۔ دلته هم وائی چه دوی کفر ته د ایمان په نسبت زیات نزدے شو۔ او څوك چه کفر ته نزدے وی او ایمان نه وړاندے وی نو هغے ته کافر وائی۔

## د قتال او دفاع فرق

قَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوِ ادْفَعُوا : د قتال او دفاع دواړو مطلب دا دے چه که ستاسو په زړه کی د الله رضا وی او د اسلام سره مو محبت وی نو د هغے دپاره قتال وکړئ او که د دین اسلام سره مو محبت نۀ وی نو بیا کم از کم د خپل نفسونو او د اهل او مال او کلی نه خو دفاع وکړئ۔ یا قتال دا چه بل څوك ووژنی، او دفاع دا ده چه د مسلمانانو جماعت او ډله زیاته کړی، دے دپاره چه د کافرانو په زړونو کی د مؤمنانو د ډیر والی د وجه نه هیبت پیدا شی۔

قَالُوا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّاتَّبَعْنَاكُمْ : ددے یو څو مطلبه دی (۱) یو دا چه که مونږ ته معلومه وے چه قتال واقع کیدونکے دے نو مونږ به تاسو سره روان شوی وے لیکن مونږ ته معلومه ده چه جنګ نۀ کیږی ځکه که جنګ کیدے نو دے نبی لاره ولے بدلوله پکار ده چه مخامخ ورغلی وے او جنګ ئے شروع کړے وے بلکه دوی هسے یو بل ته مخامخ کیږی او دا خبره د دوی په طریقه د مکابرے او معاندے سره وه او هسے بهانه وه۔

(۲) دویم دا چه که مونږ ته معلومه وے چه دا قتال فی سبیل الله دے نو مونږ به درسره تلی وے لیکن دا د دوی خپله خانه جنګی ده، قریش د یو بل سره انختی دی، زمونږ پکی څه کار دے۔ لکه ډیر کفار خلك صحیح جهادونه او مجاهدین بدناموی چه دا ملکی او وطنی جنګونه دی او د دوی په شا باندے نور خلك ولاړ دی هغوی ئے تاوی راتاووی۔ نو دوی د نبی جهاد ته جهاد فی سبیل الله ونۀ وئیلو نو دا کلمه د کفر شوه پدے وجه روستو

دوی ته د کفر نسبت وشو.

(۳) ځینو مفسرینو دا معنیٰ هم ذکر کړیده چه که مونږ د جنګ په ترتیب پوهیدلے او وس او طاقت مو لرلے نو مونږ به درسره تلی وے.

(٤) بعضو دا مطلب بیان کړیدے چه: که مونږ پوهیدلے چه دا جنګ دے مونږ به هم پکښی برخه اخستے وے لیکن دا خالص ځان وژنه ده ځکه چه د دغه مقابله کونکو سره مونږ په هیڅ کی برابر نهٔ یو، هغوی په هر اعتبار سره په تاسو قوی دی نو مونږ ستاسو په شان خپل ځانونه هلاکت ته نشو کوزارلے. (قاسمیؒ)

(۵) بعض دا په طریقه د مسخرو باندے حملوی او وائی چه منافقانو د مؤمنانو پورے مسخرے شروع کړے چه مونږ په جنګ نهٔ پوهیږو او د جنګ طریقه نهٔ راځی ځکه که مونږ ته د جنګ طریقے راتلے نو زمونږ خبره به مو منلے وے او د جنګ دپاره به د مدینے نه بهر نهٔ راوتلے نو بیا تاسو مونږ ته ولے وایئ چه مونږ سره جنګ ته لاړ شئ؟، روستو (یقولون بافواههم) ددے مطلب سره ښه لګی.

هُمْ لِلْكُفْرِ : الله فرمائی: چه دوی اُوسه پورے مسلمانان حسابیدل د دوی د ظاهری حال د وجه نه، لیکن اُوس پدے کار سره دوی کفر ته د ایمان په نسبت زیات نزدے شو، خپله پرده ئے ماته کړه او نفاق ئے رابښکاره کړو۔ شیخ الاسلام ابن تیمیهٔ ددے آیت نه دا فائده راویستلے ده چه ډیر کرته د امتحان راتللو نه مخکی به یو تن مسلمان حسابیږی او د اسلام احکام به پرے جاری کیږی لیکن کله چه امتحان راشی نو په هغے کی د بنده حالت معلوم شی، د امتحان نه روستو العیاذ بالله د کفر لاره اختیاره کړی. دا وجه ده چه امتحان د مؤمن او د کافر ترمینځ فرق راولی. او په همدے وجه د ابتلاء اتو نه د ځان خلاصولو دپاره دوه څیزونه ضروری دی یو د مخکی نه مضبوط ایمان ساتل ځکه چه کله انسان د مخکی نه ضعیف الایمان وی نو بیا ابتلاء سره نور خرابیږی لکه د دجال په وخت کی به بیباکه خلک د دجال ملګری شی. او دویم د الله تعالیٰ نه مدد او دعا غوښتل.

**فائده ۱** : حافظ ابن کثیرؒ وائی: بنده باندے احوال مختلف راځی، په یو حال کی به کفر ته نزدے وی نو په بل حال کی به ایمان ته نزدے وی.

**فائده ۲** : واحدیؒ وائی: دا آیت دلیل دے چه چا کلمه د توحید ووئیله نو هغه ته به د کفر نسبت نشی کولے لکه دلته الله تعالیٰ دوی ته صراحةً کافران ونهٔ وئیل سره ددے نه چه دوی کافران وو ځکه چه دوی په ظاهره کی لا اله الا الله وئیله آه. (قاسمیؒ)

ددے نه ددے جملے دا کمال هم راووتو چه الله تعالیٰ دوی ته صراحةً کافران ونهٔ وئیل ځکه چه دوی په ظاهره کې ځان ته مؤمنان وائی او کلمے وائی۔

**فائده** : ددے (نَافَقُوْا) نه روستو د منافقانو ناکاره صفتونه بیانوی چه پدے آیت کې ئے څلور ذکر کړیدی۔

يَقُوْلُوْنَ بِأَفْوَاهِهِمْ : یعني د دوی ژرونه د دوی د ژبو سره برابر نهٔ دی په ایمان کې۔ او دا جواب د سوال دے چه دوی خو کلمه د توحید وائی نو څنګه دوی کفر ته نزدے شو ؟ جواب دا دے چه دغه وینا د دوی سرسری په ژبه ده او زړه کې ئے توحید نشته۔ او دا فرق دے د مؤمنانو او منافقانو ترمینځ۔

چه هغوی اسباب نهٔ مني۔ او په خپل قدرت ذکر کولو کې په قدریه ؤ باندے رد دے۔

| |
|---|
| اَلَّذِيْنَ قَالُوْا لِإِخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوْا لَوْ |
| (دا) هغه کسان دی چه وائی په باره د ورونړو خپلو کې او (خپله) ناست دی که |
| أَطَاعُوْنَا مَا قُتِلُوْا قُلْ فَادْرَءُوْا |
| دوی زمونږ خبره منلے وے، نهٔ به وے وژلے شوی، ته ووایه ! پس دفع کړئ |
| عَنْ أَنْفُسِكُمُ الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ ﴿۱۶۸﴾ |
| د ځانونو خپلو نه مرګ لره که یئ تاسو رشتینی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کې بیا په منافقانو رد دے او د هغوی بد صفت ذکر دے چه نور خلک د قتال نه منع کوی، په اُحد کې اویا صحابه کرام شهیدان شو او دغه غزا یوه ورځ وه کله چه هغه ختمه شوه صبا له منافقانو د خپل کار کمال بیان کړو چه مونږ څومره هوښیار وو، بنه دے چه جنګ ته لاړ نشو ورنه مونږ به هم دغه شان قتل شوی وے، او زخمیان شوی وے او د شهیدانو په باره کې ئے خپلو خپلوانو ته دا وسوسه اچوله چه هرکله مونږ راواپس شو نو تاسو به هم راواپس شوی وے، که د اُحد شهیدان زمونږ په شان په کورونو کې ناست وے او کله چه مونږ د لښکر نه رابیل شو دوی زمونږ تابعداری کړے وے نو دوی به اُوس زمونږ په شان ژوندی وے او وژل شوی به نهٔ وے، لکه پدے وسوسو سره په انسانانو باندے اثر کیږی نو الله تعالیٰ د هغوی په رد کې دا آیت راولیږلو۔

لِإِخْوَانِهِمْ : ددے نه د دوی نسبي ورونه مراد دی چه هغوی صحیح مؤمنان وو او په اُحد

کې شهیدان شو.

وَقَعَدُوا : یعنې دوی خپله د جهاد نه ناست وو (دا جرم پکې وو) او نورو خلکو ته ئې دا دعوت ورکړو چه تاسو هم دغه شان کینئ.

قُلْ : یعنې د دوی د غلې کولو او د دوی د دروغو راښکاره کولو دپاره ووایه.

قُلْ فَادْرَءُوا : الله تعالیٰ جواب کوی چه اے نبی ته ورته ووایه ! مرګ یواځې په جهاد پورې خاص نهٔ دے بلکه تاسو نهٔ ګورئ چه ستاسو ترمینځ څو مره مرګونه کیږی که تاسو دومره هوښیاریئ او په خپله خبره کې رشتینی یئ نو بیا خو مرګ د خپلو ځانونو نه دفعه کړئ، که انسان په کوټه کې ناست وی هم مرګ به پرے راځی.

دلته ځینو مفسرینو دا خبره هم لیکلې ده چه ددے غزا نه روستو الله تعالیٰ په مدینه کې طاعون راوستو چه دا منافقان په کې زیات مړهٔ کیدل، په یوه ورځ پکې اویا منافقان مړهٔ شول نو الله دا آیت راولیږلو چه د خپلو ځانونو نه مرګ دفعه کړئ.

(القرطبی ٤/٣٦٧) وابی السعود (٦/٤٨٨)

عَنْ أَنْفُسِكُمْ : یعنې تاسو خو د ورونو غم کوئ مګر تاسو ته خپل ځانونه ډیر خواږه دی نو د هغے نه مرګ دفعه کړئ لیکن دا کار خو نشئ کولے. معلومیږی چه یره د تقدیر په مقابله کې هیڅ فائده نهٔ ورکوی، الله چه مرګ ولیکی بنده به ضرور مری نو عاقل لره پکار دی چه د الله په لاره کې مرګ خوښ کړی.

| وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللهِ أَمْوَاتًا بَلْ |
|---|
| او ګمان مهٔ کوه په هغه کسانو چه ووژل شو په لاره د الله کې د مړو (د عامو مړو پشان) بلکه |
| أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ ﴿١٦٩﴾ فَرِحِينَ |
| دوی ژوندی دی په نیز د رب د دوی، خوراکونه ورکیدے شی دوی ته. خوشحالیږی |
| بِمَا آتَاهُمُ اللهُ مِنْ فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ |
| په هغه څه چه ورکړیدی دوی ته الله تعالیٰ د مهربانئ خپلے نه او خوشحالی حاصلوی |
| بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِمْ مِنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا |
| په هغه کسانو چه نهٔ دی یو ځای شوی د دوی سره روستو د دوی نه چه نهٔ به وی |

خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿۱۷۰﴾

هیڅ یره په دوی باندې او نهٔ به دوی غمژن کیږي۔

**تفسیر** : پدې کې آیت کې بشارت دے شهداؤ دپاره، خاصکر د شهداءِ اُحد دپاره۔ او پدې کې ډیر زیری دی، دویم پدې کې رد دے په قول د منافقانو چه هغوی به د شهداؤ په باره کې دا خبرې کولې چه دا خلک تباه شو د مزو نه لاړل، د فلانۍ نه ښځه او د فلانۍ نه مال او د فلانۍ نه باغ پاتې شو، دنیا کې به ئې مزې کولې خکه چه د دوی په آخرت او قبر او برزخ او د هغې په نعمتونو ایمان نهٔ وو۔

نو الله جواب ورکړو چه دوی خو مزو ته لاړل، د فانی ژوند نه همیشه ژوند ته ورسیدل، او د الله په نیز هغوی په نعمتونو کې دی اګرکه انسانان پرې نهٔ پوهیږي۔

دریم پدې کې الله تعالیٰ د مؤمنانو ذهن سازي کړیده، د بعض شهیدانو خپلوان وارثان ډیر زیات خفه وو نو الله تعالیٰ چه دا زیری بیان کړل د هغوی تسلي وشوه خکه چه د هغوی په آخرت یقین وو۔ لکه مفسرینو پدې مقام کې ډیر واقعات نقل کړیدي:

(۱) ام حارثه رضی الله عنها د هغې خوی حارثه بن النعمان ﷺ په بدر کې شهید شوے وو نو هغې وویل اے د الله رسوله ! که زما خوی جنت کې وی زهٔ به نهٔ ژاړم او که بل ځای کې وی نو زهٔ به وژاړم نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: ﴿يَا أُمَّ حَارِثَةَ ! إِنَّهَا جِنَانٌ وَإِنَّ ابْنَكِ أَصَابَ الْفِرْدَوْسَ الْأَعْلَىٰ) اے ام حارثه ! په جنت کې دننه ډیر جنتونه دی او ستا خوی اعلیٰ فردوس ته تلے دے) نو هغې پیخې ونهٔ ژړل۔ (صحیح بخاری عن انس)

(۲) جابر رضی الله عنه فرمائي: زما پلار (عبد الله بن عمرو بن حرام رضی الله عنه) په اُحد کې شهید شو نو ما ژړل او د هغه د مخ نه مې کپړه لرې کوله، صحابه کرامو زهٔ منع کولم او نبی ﷺ نهٔ منع کولم صرف دائے وویل چه مهٔ ژاړه۔ پدې کې زما ترور (فاطمه) راغله او ژړل ئې نبی کریم ﷺ وفرمایل: مهٔ ژاړه:

(مَا زَالَتِ الْمَلَائِكَةُ تُظِلُّهُ بِأَجْنِحَتِهَا حَتَّىٰ رُفِعَ) (بخاری ۴۰۸۰)

ملائک همیشه په هغه باندې په خپلو وزرو سره سورے کړے تردے چه پورته کړے شو۔

ځینو وئیلی دی چه دا آیت د بدر د شهیدانو په باره کې نازل شوے وو۔ او ځینو وئیلی دی چه د بئر مَعُونَه د شهیدانو په باره کې نازل شوے وو چه د هغوی شمار (۴۰) څلوېښت یا اویا (۷۰) کسان وو او کوم چه عامر بن الطفیل الجعفری په غار کې ګیر کړي

وو او قتل کړی ئې وو. (زاد المسیر ۲/۵۵)

او ځینو د اُحد د شهیدانو سره لګولې دي لکه په سنن ابی داود (۲۵۲۲) کې د ابن عباس رضی الله عنهما روایت نقل شوېدی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: هرکله چه ستاسو ورونه په اُحد کې شهیدان شو نو الله تعالیٰ د هغوی روحونه د شنو مارغانو په ججورو کې واچول چه د جنت نهرونو ته راځي او د جنت میوې خوري او د سرو زرو قنادیلو ته پناهي وړي، کوم چه د عرش د سوري د لاندې زوړند دي، نو هرکله چه دوی د خپل خوراك او څکاك او د خوب د ځای مزیدار والې ومونده نو وې ویل: څوك به زمونږ ورونو ته زمونږ د طرفنه دا خبر ورسوي چه مونږ په جنت کې ژوندي یو، خوراکونه راکړې کیږي دې دپاره چه دغه ورونه په جهاد کې بې رغبته نشي او د جنګ نه روستو نشي نو الله سبحانه وتعالیٰ وفرمایل: زۀ به دا خبر ستاسو د طرفنه ورسوم نو دا آیت ئې نازل کړو: (ولا تحسبن الذین) الی آخر الآیة. (وصحیح مسلم ۲/۱۳۵ واحمد ۲۳۸۸ باسناد حسن)

او امام ترمذیؒ او ابن ماجهؒ د جابر رضی الله عنه نه نقل کړیدي چه رسول الله ﷺ ما ته ووېل: څه وجه ده چه زۀ تاسو بې سُوره غمجن وینم؟ ما ووېل: اې د الله رسوله! زما پلار شهید شو او بچې او قرض ئې پریښودو. رسول الله ﷺ وفرمایل: آیا زۀ تا ته زیرې نۀ درکوم په هغه خبره چه الله تعالیٰ په هغې سره ستا د پلار سره ملاو شو. ما ووېل: ولې نۀ اې د الله رسوله! وې فرمایل: الله تعالیٰ د هیچا سره هیڅکله خبرې نۀ دي کړي مګر د پردې نه وَكَلَّمَ اَبَاكَ كِفَاحًا) او ستا د پلار سره ئې مخامخ خبرې وکړې او دا ئې ورته ووېل: (يَا عَبْدِىْ تَمَنَّ عَلَيَّ اُعْطِكَ) اې زما بنده ارمان وکړه (ما نه څه وغواړه) چه زۀ ئې درکړم. هغه ووېل: اې زما ربه! ما دنیا ته بیرته بوځه چه ستا دپاره دوباره شهید شم نو الله تعالیٰ ورته وفرمایل: (اِنَّهٗ سَبَقَ مِنِّىْ اَنَّهُمْ اِلَيْهَا لَا يَرْجِعُوْنَ) زما دا فیصله مخکې نه شویده چه بندګان به بیرته دنیا ته نۀ واپس کیږي) نو هغه ووېل: اې زما ربه! نو زمونږ نه اخوا (دنیا والو) خلکو ته دا خبره ورسوه نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو. (ابن ماجه وسنده حسن - البانی)

او په روایت د ابن ماجه کې د اُحد د ټولو شهیدانو په باره کې راغلي دي:

(اِطَّلَعَ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ اِطِّلَاعَةً فَيَقُوْلُ: سَلُوْنِىْ مَا شِئْتُمْ) ستا رب دوی ته راښکاره شو او دا ئې ورته ووېل چه ما نه څه وغواړئ؟ دوی ووېل: اې زمونږ ربه! مونږ در نه څه وغواړو حال دا چه مونږ په جنت کې ګرځېږو کوم ځای چه غواړو، هرکله چه دوی پوهه شو چه دوی نشي پریښودلې کیدې ددې نه چه خامخا به څه غواړي نو دوی ووېل:

(نَسْأَلُكَ اَنْ تَرُدَّ اَرْوَاحَنَا فِيْ اَجْسَادِنَا اِلَى الدُّنْيَا حَتّٰى نُقْتَلَ فِيْ سَبِيْلِكَ)
مونږ ستا نه دا غواړو چه ته زمونږ روحونه زمونږ بدنونو ته واپس کړه او دنیا ته مو ولیږه دے دپاره چه ستا په لاره کې ووژلے شو۔ هر کله چه الله ولیدل چه دوی بل څه نۀ غواړي نو پرېے خودل۔ (ابن ماجه (۲۸۰۱) عن ابن مسعود)

لیکن ظاهر دا ده چه اعتبار د الفاظو عموم لره وي او خصوص د سبب له نۀ وي، یعنی د شهیدانو چه کوم فضیلت دلته بیان شویدے نو دا د اسلام تولو شهیدانو ته عام او شامل دے۔

وَلَا تَحْسَبَنَّ : یعنی په شهیدانو هیڅکله دا گمان مۀ کوه (پاتے خو لا یقین شو) چه دوی د خپل رب په نیز باندے هم مړه دي لکه څنګه چه د دنیاوی حالاتو په اعتبار سره مړه دي چه مال ئے وارثانو واخستو او ښځه ئے بل خاوند کولے شي بلکه دوی د خپل رب په نیز ژوندي دي په خاص ژوند سره چه هغه د مزو ژوند دے۔

**فائده** : د (قُتِلُوْا) نه معلومه شوه چه مړۀ دي او د (بَلْ اَحْيَاءٌ) نه معلومه شوه چه ژوندي دي او حقیقي مرګ ورله نشته نو معلومه شوه چه دوی په اعتبار د اجسامو سره مړۀ دي چه د بدن نه ئے روحونه وتلي دي، او په اعتبار د روحونو سره ژوندي دي او دا ژوند زیاتي دے د ژوند د نورو خلکو د روحونو نه، بلکه ددے ژوند معنیٰ دا ده چه د دوی روحونو ته د ژوند آثار ثابت دي چه هغه مزے حاصلیدل او د جنت نه خوراکونه کول دي او په خپلو خپلوانو باندے خوشحالیدل دي۔ او ددے نه دنیاوی ژوند نۀ دے مراد چه هغه بدنونو کې وینه چلیږي او رګونه خوزیږي او زړه ئے حرکت کوي او داسے ژوند هم ورله نشته کوم چه د عامو خلکو روحونو ته ثابت دے (چه هغه مزو کې نۀ وي) (ابن عاشورؒ)

لیکن صحیح دا ده چه د شهیدانو روحونه د مارغانو په ججورو کې وي د هغوی په روحونو او بدنونو سره خوندونه حاصلوي او د عامو مؤمنانو د روحونو نه خپله مارغان جوړیږي نو د هغوی روحونه صرف مزے اخلي، لکه حافظ ابن القیمؒ دا معنیٰ ذکر کړیده :

| لٰكِنَّ أَرْوَاحَ الَّذِيْنَ اسْتُشْهِدُوْا | ۝ | فِيْ جَوْفِ طَيْرٍ أُخْضَرٍ رَيَّانٍ |
|---|---|---|

لیکن روحونه د شهداو په خیټو (ججورو) د شنو مړو مارغانو کې وي۔

او د عامو مؤمنانو د روحونو په باره کې وائي :

| وَتَصِيْرُ طَيْرًا سَارِحًا مَعَ شَكْلِهَا | ۝ | تَجْنِيْ الثِّمَارَ بِجَنَّةِ الْحَيَوَانِ |
|---|---|---|

او ګرځي د دوی روحونه مارغان ګرځیدونکي په خپل شکل سره، چه د جنت نه میوے راشوکوي۔

او ابن عطیة وئیلی دی چه دوی خو ضرور مړهٔ شویدی او بدنونه د دوی په خاورو کی دی او ارواح د دوی ژندی دی په شان د ارواحو د عامو مؤمنانو لیکن دوی له فضیلت ورکړے شویدے په رزق د جنت سره د وخت د قتل د دوی نه گویا که د دوی دنیوی ژوند همیشه دے (عین دنیاوی ژوند نهٔ دے).

نو د بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ معنیٰ به دا وی چه په دنیا کی مړهٔ دی او د الله په نیز ژوندی دی چه هغه ورله د جنت خوراکونه ورکوی لکه څنګه چه دنیا کی بندګان خوراکونه کوی. نو د منافقانو رد وشو چه هغوی ورته هلاك او تباه وئیلی وو نو الله وفرمایل چه دوی ته زهٔ مزے ورکوم، دوی داسے مړی مهٔ ګڼړئ چه ګنے دوی معدوم (نشت) او ختم شو چه هیڅ مزے به نے نهٔ وی.

بَلْ أَحْيَآءٌ : ددے حیاة په باره کی علماؤ مختلف اقوال ذکر کړیدی مګر صاحب المنار وئیلی دی چه غوره دا ده چه دا یو غیبی ژوند دے چه مونږه ددے په حقیقت باندے نهٔ پو هیږو او د وحی نه علاوه پدے کی خبرے کول صحیح نهٔ وی (۱) نو پدے کی د بعض معتزله متکلمینو دا قول هم صحیح نهٔ دے چه وائی د (بل احیاء) نه مراد دا دے چه زر دے چه دوی به په آخرت کی راژوندی شی، دا تاویل صحیح نهٔ دے، بلکه دوی د وخت د قتل نه د الله تعالیٰ په نیز ژوندی دی او مزے حاصلوی. (۲) او دا قول هم صحیح نهٔ دے چه وائی دوی په اعتبار د بدنونو سره ژوندی دی لکه زمونږ د دنیاوی ژوند په شان چه خوراك څکاك کوی او په قبرونو کی نکاحونه کوی لکه د نورو دنیا والو په شان. (۳) او دا قول هم صحیح نهٔ دے چه د دوی بدنونه آسمان ته پورته کیږی او هلته ژوندی وی.

(٤) او دا قول هم صحیح نهٔ دے چه وائی دوی ژوندی دی په اعتبار د ښائسته ذکر او مزیدارو صفتونو سره چه د دوی صفتونه کیږی. (٥) او دا قول هم صحیح نهٔ دے چه وائی د دوی بدنونه نهٔ خاورے کیږی. څکه پدے قول هم دلیل نشته. (المنار)

د زیاتو عالمانو په نیز شهیدان په حقیقی معنو کی ژوندی دی او دا برزخی ژوند دے، او څینو وئیلی دی چه دلته مجازی ژوند مراد دے یعنی د هغوی غوره ذکر او صفت کیږی نو ګویا که دوی ژوندی شو لیکن راجح اوله رائے ده، د صحیح احادیثو مطابق د هغوی روحونه د شنو مرغو په جججورو کی وی، هغوی د جنت میوے خوری، او د عرش د سوری لاندے زوړند چراغونو ته پناه حاصلوی. او الله چه د دوی سره د اکرام کومه معامله اُوکړه په هغے سره اِنتهائی خوشحاله دی، او په دنیا کی چه د هغوی نه کوم مؤمنان ورونه پاتے

شویدی نو د هغوی په باره کی سوچ کولو سره خوشحالیږی چه په هغوی به هم د دنیا نه د راتلو څه روستنو هیڅ یره نهٔ وی او نهٔ به د غم څه خبره ورته رسیږی او د جنت د نعمتونو او راحتونو نه به فائدے اخلی۔

عِنۡدَ رَبِّهِمۡ : دا د (اَحۡيَاء) سره متعلق دے یعنی دوی د الله په نیز ژوندی دی معلومه شوه چه روحونه ئے ژوندی دی او بدنونه ئے مړهٔ دی۔

یُرۡزَقُوۡنَ : یعنی دوی ته الله تعالیٰ د جنت نه خوراکونه ورکوی۔ کما مر فی الحدیث۔ مخکی تیر شوی وو چه د عام مؤمن د روح نه مارغه جوړیږی او د شهید روح د شنو مارغانو په ججورو کی ننوزی نو دوه قسمه خوندونه حاصلوی۔

**فائده** : یُرۡزَقُوۡنَ یا صفت د اَحۡيَاء دے نو ددے نه معلومیږی چه د عام مؤمن او د شهید د روحونو ترمینځ فرق صرف په رزق کی دے چه شهیدانو ته الله تعالیٰ د جنت نه خوراکونه ورکوی لکه د حسن بصریؒ نه نقل دی چه شهیدان د الله په نیز ژوندی دی، د دوی په روحونو باندے رزقونه پیش کیږی نو دوی ته راحت او خوشحالی رسیږی لکه کافرانو باندے صبا او بیګاه اُور پیش کیږی نو هغوی ته درد رسیږی۔

(تفسیر البحر المحیط والبغوی ١٦٨/١)

حافظ ابن القیم رحمه الله لیکلی دی چه پدے آیت کی الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ او صحابه کرامؓ ته ډیره لویه تسلی ورکړیده چه کوم مسلمانان د اُحد په میدان کی په کار راغلل نو دے خلقو ته تاسو مړی مهٔ وایئ بلکه دا خو د الله سره په حقیقی ژوند باندے ژوند تیروی او د هر قسمه نعمتونو نه فائدے اخلی او په دوی هیڅ غم نشته۔

فَرِحِيۡنَ : دا حال دے د ضمیر د (يُرۡزَقُوۡنَ) نه، یعنی رزقونه ورکولے شی په داسے حال کی چه دوی خوشحالی کوی په هغه نعمتونو چه الله تعالیٰ دوی ته ورکړیدی یعنی خوراك څکاك وغیره۔ الله تعالیٰ شهیدانو ته ډیر کرامت ورکوی۔

اَلَّا خَوۡفٌ : دا بدل دے د (اَلَّذِيۡنَ لَمۡ يَلۡحَقُوۡا بِهِمۡ) نه یعنی دوی خوشحالیږی په هغه کسانو چه دوی پسے لا پیوسته شوی نهٔ دی پدے خوشحالیږی چه په هغوی باندے به هیڅ یره او غم نهٔ وی۔ یعنی کله چه دوی ته خبر ورکړے شی چه فلانے دوست به شهید کیږی او تاسو پسے به درځی نو دوی خوشحاله شی ځکه چه دوی پوهیږی چه په دوی باندے هم زمونږ په شان یره او غم نهٔ وی نو هرکله چه هغوی ستاسو په باره کی د شهادت په خبر باندے خوشحالیږی نو تاسو ولے د دوی په شهادت باندے غمژن کیږئ ؟!۔

يا (أَلَّا خَوْفٌ) كې لام اجليه پټ دے يعنى زيرے به وركيدے شى په ډيرو زيرو سره څکه چه په دوى باندے څه خوف او حزن نشته۔

**حكمت** : پدے آيت كې په يولسو طريقو سره د شهداؤ دپاره زيرے وركړے شويدے۔

بيا فرقونه دا دى چه د اول (من فضله) نه مراد (اَلشَّهَادَةُ وَمَا يَحْصِلُ بِهَا مِنَ النَّعِيْمِ) يعنى شهادت او هغه نعمتونه چه د شهادت په وجه حاصليږى۔ او (يستبشرون) كې روحانى خوشحالى ده يعنى چه د روستنو خلكو په راتللو هم خوشحاله دى۔ (يستبشرون) يعنى يو بل ته زيرى وركوى چه فلانے هم جنت ته راروان دے۔

**أَلَّاخَوْفٌ عَلَيْهِمْ** : څينى وائى چه د خوف نه مراد دا دے چه په دنيا كې به پرے يره نهٔ وى چه مشركان ئے بيخ كندى وكړى او بيخى ئے ختم كړى او دوباره پرے كامياب شى۔ اول مطلب اظهر دے۔ ولا هم يحزنون يعنى په آينده كې چه كله په آخرت كې الله تعالىٰ ته ورشى نو دوى باندے به غمونه نهٔ وى۔

| يَسْتَبْشِرُوْنَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ وَّاَنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٧١﴾ |
|---|
| خوشحاليږى په نعمت د الله تعالىٰ او په فضل سره او يقيناً الله نهٔ بربادوى اجر د ايمان والو۔ |

**تفسير** : يَسْتَبْشِرُوْنَ : دا ضمير يا راجع دے شهيدانو ته يا راجع دے (الذين لم يلحقوا) ته۔ كه شهيدانو ته راجع شى نو معنىٰ به دا وى چه دوى خوشحاليږى په نوى نوى نعمتونو او احساناتو د الله سره۔ يا د نعمت نه مراد هغه نعمتونه دى چه مخكى آيت كې ذكر شو (احياء عند ربهم يرزقون) او يا پدے آيت كې ذكر شو (فرحين بما آتاهم الله من فضله) او كه ضمير (الذين لم يلحقوا) ته راجع شى نو بيا به معنىٰ دا وى چه دوى خوشحاليږى په هغه نعمتونو په كوم باندے چه شهيدان خوشحاليږى۔ (المنار)

بيا (۱) د نعمت نه مراد (النعمة بقدر الكفاية) دے يعنى الله ورته دومره نعمتونه وركړل چه د دوى كافى كيږى او فضل كې د زيادت معنىٰ وى يعنى زيات ئے وركړل۔

(۲) دويم نعمت كې د خوف زائله كيدو ته اشاره ده او په فضل كې د حزن زائل كيدو ته۔

(۳) يا (نعمة من الله) كې تولو معنوى نعمتونو ته اشاره ده او په (فضل) كې د الله ديدار ته اشاره ده۔

(٤) علامه محمد رشيد رضاؒ د خپل استاذ نه نقل كړيدى چه (ما آتاهم الله من فضله) مجمل دے او ددے تفصيل ئے روستو كړيدے او هغه دوه قسمه دے، يو په شهيدانو فضل

ﺩﻱ ﭘﻪ ﺑﺎﺭﻩ ﺩ ﻭﺭﻭﻧﻮ ﺩ ﺩﻭﻱ ﻛﻲ ﭼﻪ ﺩﻭﻱ ﭘﺴﻲ ﻻ ـﻪٔ ﺩﻱ ﭘﻴﻮﺳﺘﻪ ﺷﻮﻱ ﺍﻭ ﺩﻭﻳﻢ ﻓﻀﻞ ﺩﻱ ﭘﻪ ﺩﻭﻱ ﺑﺎﻧﺪﻱ ﭼﻪ ﻫﻐﻪ ﺩ ﺍﻟﻠﻪ ﺗﻌﺎﻟﯽٰ ﻧﻌﻤﺖ ﺩﻱ ﭼﻪ ﺩﻭﻱ ﺗﻪ ﺋﻲ ﻭﺭﻛړﻭ ﺍﻭ ﺑﻞ ﺧﺎﺹ ﻓﻀﻞ (ﺍﻭ ﺍﺣﺴﺎﻥ) ﺩ ﺍﻟﻠﻪ ﺩﻱ ﭼﻪ ﺩﻭﻱ ﺗﻪ ﺑﻪ ﺋﻲ ﭘﻪ ﺩﺍﺭ ﺍﻟﻜﺮﺍﻣﺔ ﻛﻲ ﻭﺭﻛﻮﻱ. (ﺍﻟﻤﻨﺎﺭ)

ﺩﻏﻪ ﺷﺎﻥ ﺩﻭﻩ ځﻞ (ﻳﺴﺘﺒﺸﺮﻭﻥ) ﻭﻭﻳﻞ ﺷﻮ ځﻜﻪ ﭼﻪ ﺩ ﺍﻭﻝ ﺍﺳﺘﺒﺸﺎﺭ ﻧﻪ ﻣﺮﺍﺩ ﺩﻓﻊ ﺩ ﻣﻀﺮﺕ ﺩﻩ ﻳﻌﻨﻲ ﺍﻟﻠﻪ ﺗﺮﻱ ﺗﻜﻠﻴﻔﻮﻧﻪ ﺧﺘﻢ ﻛړﻝ ﺍﻭ ﺩﻭﻳﻢ ﺍﺳﺘﺒﺸﺎﺭ ﻛﻲ ﺣﺼﻮﻝ ﺍﻟﻤﺴﺎﺭ ﺩﻩ ﻳﻌﻨﻲ ﺧﻮﺷﺤﺎﻟﻴﺎﻧﻲ ﻭﺭﺗﻪ ﺣﺎﺻﻠﻲ ﺷﻮﻱ. (۲) ﻳﺎ ﺍﻭﻝ ﺍﺳﺘﺒﺸﺎﺭ ﺩ ﻭﺭﻭﻧﻮ ﭘﻪ ﺑﺎﺭﻩ ﻛﻲ ﻭﻭ ﺍﻭ ﺩﺍ ﺍﺳﺘﺒﺸﺎﺭ ﺩ ﺧﭙﻠﻮ ځﺎﻧﻮﻧﻮ ﭘﻪ ﺑﺎﺭﻩ ﻛﻲ ﺩﻱ. (۳) ﻳﺎ ﺍﻭﻝ ﺍﺳﺘﺒﺸﺎﺭ ﺩ ﺷﻬﻴﺪﺍﻧﻮ ﻭﻭ ﺍﻭ ﺩﻭﻳﻢ ﺩ ﻫﻐﻪ ﻛﺴﺎﻧﻮ ﺩﻱ ﭼﻪ ﺩ ﺩﻏﻪ ﺷﻬﻴﺪﺍﻧﻮ ﭘﺴﻲ ﺭﻭﺳﺘﻮ ﭘﻴﻮﺳﺘﻪ ﻛﻴږﻱ ﭼﻪ ﻫﻐﻮﻱ ﺑﺎﻧﺪﻱ ﺑﻪ ﻫﻢ ﺍﻟﻠﻪ ﺗﻌﺎﻟﯽٰ ﻧﻌﻤﺘﻮﻧﻪ ﺍﻭ ﻓﻀﻞ ﻛﻮﻱ، ﻳﺮﻩ ﺍﻭ ﺣﺰﻥ ﺑﻪ ﺗﺮﻱ ﺧﺘﻤﻮﻱ. ﻳﻌﻨﻲ ﺩﻭﻳﻢ ﻳﺴﺘﺒﺸﺮﻭﻥ ﻧﻪ ﻣﺮﺍﺩ ﻫﻐﻪ ﺭﻭﺳﺘﻨﻲ ﻛﺴﺎﻥ ﺩﻱ ﭼﻪ ﻫﻐﻮﻱ ﺑﻪ ﻫﻢ ﺩ ﺍﻟﻠﻪ ﭘﻪ ﻧﻌﻤﺖ ﺍﻭ ﻓﻀﻞ ﺑﺎﻧﺪﻱ ﺧﻮﺷﺎﻟﻪ ﻭﻱ ﺍﻭ ﺩ ﻫﻐﻮﻱ ﺧﻮﺍﺭﻱ ﺑﻪ ﻫﻢ ﺍﻟﻠﻪ ﺗﻌﺎﻟﯽٰ ﻧﻪٔ ﺿﺎﺋﻊ ﻛﻮﻱ.

(٤) ﻳﺎ ﭘﻪ (ﺍﻟﺬﻳﻦ ﻟﻢ ﻳﻠﺤﻘﻮﺍ) ﻛﻲ ﺍﺷﺎﺭﻩ ﺩﻩ ټﻮﻟﻮ ﻣﺆﻣﻨﺎﻧﻮ ﺗﻪ ﺍﮔﺮﻛﻪ ﻧﻪٔ ﻭﻱ ﺷﻬﻴﺪﺍﻥ ﺷﻮﻱ ﻟﻴﻜﻦ ﻫﺮﻛﻠﻪ ﭼﻪ ﺷﻬﻴﺪﺍﻧﻮ ﺩ ﺍﻟﻠﻪ ﺗﻌﺎﻟﯽٰ ﺛﻮﺍﺑﻮﻧﻪ ﻭﻟﻴﺪﻝ ﻧﻮ ﭘﺪﻱ ﺧﺒﺮﻩ ﺋﻲ ﻧﻮﺭ ﻳﻘﻴﻦ ﺯﻳﺎﺕ ﺷﻮ ﭼﻪ ﺍﺳﻼﻡ ﻫﻐﻪ ﺣﻖ ﺩﻳﻦ ﺩﻱ ﭼﻪ ﺍﻟﻠﻪ ﺗﻌﺎﻟﯽٰ ﭘﻪ ﻫﻐﻲ ﺑﺎﻧﺪﻱ ﺛﻮﺍﺑﻮﻧﻪ ﻭﺭﻛﻮﻱ ﻧﻮ ﺩﻭﻱ ﺩ ﺧﭙﻠﻮ ځﺎﻧﻮﻧﻮ ﺩﭘﺎﺭﻩ ﭘﻪ ﻫﻐﻪ څﻪ ﺧﻮﺷﺤﺎﻟﻪ ﺩﻱ ﭼﻪ ﺍﻟﻠﻪ ﺗﻌﺎﻟﯽٰ ﺩﻭﻱ ﺗﻪ ﺩ ﺧﭙﻞ ﻓﻀﻞ ﻧﻪ څﻪ ﻭﺭﻛړﻳﺪﻱ ﺍﻭ ﺩ ﺍﻳﻤﺎﻥ ﻭﺍﻟﻮ ﺩﭘﺎﺭﻩ ﭘﺪﻱ ﺧﻮﺷﺤﺎﻟﻪ ﺩﻱ ﭼﻪ ﭘﻪ ﺩﻭﻱ ﺑﻪ ﻫﻢ ﻳﺮﻩ ﺍﻭ ﺧﻔﮕﺎﻥ ﻧﻪٔ ﻭﻱ ﻟﻜﻪ ﺩﺍ ﻣﻌﻨﯽٰ ﺯﺟﺎﺝؒ ﺍﻭ ﺍﺑﻦ ﻓﻮﺭﻙؒ ﻛړﻳﺪﻩ (ﺍﻟﻘﺮﻃﺒﻲ٤/٢٧٥) ﺍﻭ ﻋﻼﻣﻪ ﺷﻮﻛﺎﻧﻲؒ ﻭﺍﺋﻲ ﭼﻪ ﺩﺍ ﻗﻮﻱ ﺗﻔﺴﻴﺮ ﺩﻱ ﺍﻭ ﻓﺎﺋﺪﻩ ﺋﻲ ﺯﻳﺎﺗﻪ ﺩﻩ. (ﻓﺘﺢ ﺍﻟﻘﺪﻳﺮ ﻟﻠﺸﻮﻛﺎﻧﻲ ٢/٥٠)

ﺑﻴﺎ ﺍﮔﺮﻛﻪ ﭘﻪ (ﻓَﺮِﺣِﻴْﻦَ) ﻛﻲ ﻫﻢ ﺩ ﺩﻭﻱ ﭘﻪ ﺧﭙﻠﻮ ځﺎﻧﻮﻧﻮ ﺑﺎﻧﺪﻱ ﺧﻮﺷﺤﺎﻟﻲ ﻣﺮﺍﺩ ﻭﻩ (ﻟﻜﻪ ﻣﺨﻜﻲ ﺫﻛﺮ ﺷﻮﻩ) ﺧﻮ ﻫﻠﺘﻪ ﺩ ﺷﻬﻴﺪﺍﻧﻮ ﭘﻪ ﻣﺎﺩﻱ ﻧﻌﻤﺘﻮﻧﻮ ﺧﻮﺷﺤﺎﻟﻴﻮ ﺗﻪ ﺍﺷﺎﺭﻩ ﺩﻩ ﻟﻜﻪ ﺧﻮﺭﺍﻙ، څﻜﺎﻙ ﻭﻏﻴﺮﻩ ﺍﻭ ﺩﻟﺘﻪ ﻣﻌﻨﻮﻱ ﻧﻌﻤﺘﻮﻧﻮ ﺗﻪ ﺍﺷﺎﺭﻩ ﺩﻩ ﻟﻜﻪ ﭘﻪ ﺷﻬﺎﺩﺕ ﺑﺎﻧﺪﻱ ﻛﺎﻣﻴﺎﺑﻴﺪﻝ، ﺍﻭ ﺩ ﮔﻨﺎﻫﻮﻧﻮ ﻣﻐﻔﺮﺕ ﻭﻏﻴﺮﻩ.

وَاَنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ : (۱) ﻇﺎﻫﺮ ﺩﺍ ﺩﻩ ﭼﻪ ﺩﺍ (ﭘﻪ ﻧﻌﻤﺔ ﻣﻦ ﺍﻟﻠﻪ) ﺑﺎﻧﺪﻱ ﻋﻄﻒ ﺩﻱ ﺍﻭ ﺩﻟﺘﻪ ﻫﻢ ﺑﺎﺀ ﻣﻘﺪﺭﻩ ﺩﻩ (اَیْ یَسْتَبْشِرُوْنَ بِاَنَّ اللّٰهَ) ﻳﻌﻨﻲ ﭘﺪﻱ ﺑﺎﻧﺪﻱ ﻫﻢ ﺧﻮﺷﺎﻟﻪ ﻭﻱ ﭼﻪ ﺍﻟﻠﻪ ﺗﻌﺎﻟﯽٰ ﺩ ﻣﺆﻣﻨﺎﻧﻮ ﺍﺟﺮﻭﻧﻪ ﻧﻪٔ ﺑﺮﺑﺎﺩﻩ ﻭﻱ ﻟﻜﻪ څﻨﮕﻪ ﺋﻲ ﭼﻪ ﺯﻣﻮﻧږ ﭘﻪ ﻭﺍړﻭ ﻭﺍړﻭ ﻋﻤﻠﻮﻧﻮ ﺑﺪﻟﻲ ﺭﺍﻛړﻱ. ﺍﻭ ﺩﺍ ﻫﻢ ﻣﺴﺘﻘﻞ ﺯﻳﺮﻱ ﺩﻱ ځﻜﻪ ﭼﻪ ﭘﻪ ﺩﻧﻴﺎ ﻛﻲ ﺩ ﺩﻭﻱ ﺳﺮﻩ ﺩ ﺑﺪ ﺍﻧﺠﺎﻡ ﻳﺮﻩ ﻭﻩ ﺍﻭ ﭘﻪ ﺧﭙﻞ ﺍﻳﻤﺎﻥ ﺑﺎﻧﺪﻱ ﻳﺮﻳﺪﻝ ﻟﻜﻪ ﺩﺍ ﺩ ﻛﺎﻣﻞ ﻣﺆﻣﻦ ﺻﻔﺖ ﺩﻱ ﻧﻮ ﻗﻴﺎﻣﺖ ﻛﻲ ﻭﺭﻟﻪ ﺯﻳﺮﻱ ﻭﺭﻛﻮﻱ ﭼﻪ ﺳﺘﺎﺳﻮ

هیڅ عمل برباد شوے نۀ دے۔

(۲) دویم دلته (وَاعۡلَمُوۡا) لفظ مقدر دے یعنی اے مؤمنانو! پدے خبره پوهه شئ چه الله تعالیٰ د ایمان والو اجر نۀ بربادوی نو شهیدانو ته به خامخا ښے بدلے ورکوی نو پدے کې تولو مؤمنانو ته تسلی شوه۔

او (الـمؤمنین) کې اشاره ده چه کوم اعمال د ایمان په بناء شوی وی هغه به نۀ بربادیږی او پدے سره د بنده مؤمن ډیره تسلی کیږی چه الله تعالیٰ په مؤمنانو ډیر رحیم دے چه د هغوی عملونه به ضائع نۀ بوځی او د دوی خواری به رنګ راوړی۔

| |
|---|
| اَلَّذِیۡنَ اسۡتَجَابُوۡا لِلّٰهِ وَالرَّسُوۡلِ مِنۡ بَعۡدِ مَاۤ اَصَابَهُمُ |
| هغه کسان چه قبول ئے کړو حکم د الله او د رسول روستو د هغې نه چه ورسیدو دوی ته |
| الۡقَرۡحُ لِلَّذِیۡنَ اَحۡسَنُوۡا مِنۡهُمۡ وَاتَّقَوۡا اَجۡرٌ عَظِیۡمٌ ﴿۱۷۲﴾ |
| زخم، دپاره د هغه کسانو چه ښائسته عمل ئے کړیدے د دوی نه او تقویٰ ئے کړیده اجر لوی دے۔ |
| اَلَّذِیۡنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ اِنَّ النَّاسَ قَدۡ جَمَعُوۡا |
| هغه کسان دی چه وویل دوی ته خلکو (جاسوسانو) یقیناً خلکو (کافرانو) راجمع کړیدی |
| لَكُمۡ فَاخۡشَوۡهُمۡ فَزَادَهُمۡ اِیۡمَانًا وَّقَالُوۡا |
| ستاسو دپاره (لښکرے) نو ویریږئ د دوی نه نو زیات کړو دے خبرے دوی لره ایمان او وے ویل |
| حَسۡبُنَا اللّٰهُ وَنِعۡمَ الۡوَكِیۡلُ ﴿۱۷۳﴾ فَانۡقَلَبُوۡا بِنِعۡمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ |
| کافی دے مونږ لره الله تعالیٰ او ښه کارساز دے۔ نو واپس شو دوی په نعمت د الله |
| وَفَضۡلٍ لَّمۡ یَمۡسَسۡهُمۡ سُوۡٓءٌ وَّاتَّبَعُوۡا رِضۡوَانَ اللّٰهِ |
| او په مهربانئ سره، نۀ وو رسیدلے دوی ته هیڅ تکلیف او روان شو د رضا د الله پسے |
| وَاللّٰهُ ذُوۡ فَضۡلٍ عَظِیۡمٍ ﴿۱۷۴﴾ اِنَّمَا ذٰلِكُمُ الشَّیۡطٰنُ یُخَوِّفُ |
| او الله خاوند د مهربانئ لوی دے۔ یقیناً دغه (جاسوس) شیطان دے چه یره وی تاسو |
| اَوۡلِیَآءَهٗ ۪ فَلَا تَخَافُوۡهُمۡ وَخَافُوۡنِ اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِیۡنَ ﴿۱۷۵﴾ |
| په دوستانو خپلو سره نو مۀ یریږئ د دوی نه او ویریږئ زما نه که یئ تاسو مؤمنان۔ |

**تفسیر** : پدے دوه درے آیتونو کې د حَمْرَاءُ الاسد غزا ذکر ده او دا هم د متمماتو د غزائے اُحد نه وه او بناء په قول راجح سره د اُحد په صبا باندے شوے وه په شوال میاشت کې.

کله چه قریشی لښکر د مدینے نه واپس شو او حمراء الاسد علاقے ته ورسیدل نو د نبی علیه السلام سره دا شك پیدا شو چه داسے نهٔ چه دا مشرکان بیا په مدینه حمله ونکړی نو سهار ئے وویل چه څوك په اُحد کې شریك شوی وو هغوی دے ځان تیار کړی ورځو او په کفارو بیا حمله کوو.

د دوی سره اویا صحابه کرام د مدینے د عَوَالی نه نور هم تیار شو نو ټول (۳٦۰) کسان شو سیدنا جابر بن عبد الله رضی الله عنهما وویل : اے د الله رسوله ! زهٔ درسره ځم ځکه چه زهٔ په اُحد کې د خپل پلار د وجه نه شریك نشوم چه هغه ما ته زما د خویندو د حفاظت وصیت کړے وو. نبی علیه السلام ورته وویل تهٔ صادق یې.

عبد الله بن ابی ابن سلول وویل زهٔ هم درسره ځم؟ هغه ته ئے وویل چه تهٔ به نهٔ ځے.

نبی ﷺ او صحابه کرامؓ د زخمونو او ستړی والی په حالت کې روان شو، نبی ﷺ په اُوښ باندے سور شو او روان شو تردے چه حمراء الاسد علاقے ته ورسیدل چه دا د مدینی نه (۸) میله (یعنی قریباً ۱۳) کیلو میټره) وړاندے علاقه ده چه د مدینے د عقیق په لاره د ذو الحلیفے گس طرفته ده.

لیکن هلته چه ورسیدل (هلته میله لگیدلے وه) تجارتونه ئے وکړل، مالونه ئے راوړل درے ورځو پورے ووسیدل او جنگ ونشو ځکه چه مشرکان روحاء علاقے ته رسیدلی وو چه دا د مدینی نه شپږ دیرش (۳٦) میله وړاندے علاقه ده، هلته ئے دمه وکړه او سوچ ئے وکړو چه مونږ خو هیڅ ونکړل، نهٔ مو زنانه راوستلے، نهٔ مالونه او نهٔ مو مشران مړهٔ کړل،

ابو سفیان او د هغه غشی ویشتونکو ملگرو وغوښتل چه بیا حمله وکړی لیکن بعضو کسانو (صفوان بن امیه) مشوره ورکړه چه دوباره حمله مهٔ کوئ ځکه چه د محمد (ﷺ) ملگری غصه دی، داسے نهٔ چه ختم مو کړی.

پدے دوران کې یو سړے معبد بن ابی معبد الخزاعی راغے چه دهٔ اسلام راوړو.

بعض وائی مشرك وو لیکن د رسول الله ﷺ خیر خواه وو ځکه چه خزاعه قبیلے او بنو هاشمو د یو بل سره د مدد حِلف او قسم کړے وو.

معبد نبی ﷺ ته وویل چه تا او ستا ملگرو ته ډیر تکلیف در ورسیدو، پدے مونږ ډیر خفهٔ شو او مونږ غوښتل چه الله تعالیٰ تا ته هیڅ تکلیف نهٔ وے رسولے. رسول الله ﷺ

ورته حکم وکړو چه ته لاړ شه او ابوسفیان او د هغه په ملګرو باندے رعب واچوه، هغه په جلتئ لاړو روحاء ته ورسیدو، د ابوسفیان او د هغه د فوج سره ملاو شو. ابوسفیان ته دده د اسلام علم نه وو نو ابوسفیان ترے تپوس وکړو چه اے معبده ! تا سره څه خبر دے ؟ هغه ورته خبره سخته کړه چه محمد (ﷺ) د خپلو ملګرو سره تاسو پسے راوتلے دے او داسے فوج ورسره دے چه ما هیڅ کله دومره نه دے لیدلے، سخت درته غصه دی او کوم خلک چه جنګ ته نه وو حاضر شوی هغه هم ورسره راوتلی دی او تاسو باندے چکونه لګوی چه دوی رانه ولے خلاص شول.

ابوسفیان ورته ووېل خوار شے دا څه وائے؟ معبد ورته ووېل چه زما ګمان دے چه ته به لا ددے ځای نه پاڅیدلے نه ئے چه اُوس به درباندے ددے ډیرکو نه اخوا د فوج اول سر راورسیږی او د اسونو تندی به وینے.

ابوسفیان ووئیل چه مونږ کلکه اراده کړیده چه په دوی به حمله کوو او بیخکندی به ئے کوو. معبد ووېل: دا کار مه کوه زه ستا خیر خواه یم.

نو د ابوسفیان او د هغه د ملګرو عزم مات شو او په زړونو کی ئے شکست او رعب پریوتلو او د دوباره حملے اراده ئے پریښوده او مکے ته ځان رسول ئے بهتر وګڼړل. ددے نه معلومه شوه چه د نبی ﷺ پالیسی او هوښیارتیا زیاته او صحیح وه.

لیکن ابوسفیان همداسے روان نشو بلکه هغه هم یوه هوښیارتیا وکړه او اعصابی جنګ ئے ولوبولو چه هسے نه د محمد (ﷺ) فوج راپسے متواتر مزل ونکړی، رالاندے به مو کړی نو د ځان نه د اړولو دپاره ئے یوه طریقه اختیار کړه هغه دا چه په لاره کی د عبد القیس قبیلے څه کسان مدینے طرفته روان وو، ابوسفیان ورته ووئیل تاسو په محمد (ﷺ) باندے رعب واچوئ، د یو اُوښ په مقدار وچکے (کشمش) به تاسو ته د عُکاظ په بازار کی درکړم کله چه تاسو مکے ته راغلئ.

هغوی لاړل او حمراء الاسد کی ئے نبی ﷺ ته ووېل لکه الله تعالیٰ د هغے نه داسے تعبیر کړیدے:

﴿اِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا وَّقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾ (آلعمران:۱۷۵).

یقیناً خلکو (د ابوسفیان ډلے) ستاسو د جنګ دپاره خلک راجمع کړیدی نو دوی نه یره وکړئ نو دے خبرے دوی لره ایمان زیات کړو او دوی ووئیل چه الله زمونږ کافی دے او ښه

کار ساز دے۔

سیدنا عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی: حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ کلمه ابراهیم علیه السلام په اُور کی وئیلے وه نو الله تعالیٰ ورته نجات ورکړو۔ او محمد رسول الله ﷺ او د هغه ملګرو د ابوسفیان د جنګ په مقابله کی وویله نو نجات ورته ملاؤ شو، نو دا کلمه د هر مؤمن او مجاهد ده۔

نو پدے آیتونو کی الله تعالیٰ د ایمان والو صفت کوی چه دوی ته سخت زخمونه او تکلیفونه رسیدلی وو او بیا هم د الله تعالیٰ د حکم تابعدار دی او حسبنا الله کلمه وائی نو ددے مؤمنانو نه الله تعالیٰ رضا دے او دوی ته به اجر عظیم ورکوی۔

**عنوان د آیت:** نو زمونږ دپاره پدے کی دا قانون شو چه (اِتِّبَاعُ الرَّسُوْلِ فِي الْمَنْشَطِ وَالْمَكْرَهِ لَازِمٌ) د رسول الله ﷺ تابعداری په خوشالئ او تکلیف کی لازم ده۔ که غم شوے وی او که واده او خوشحالی وی په ټولو حالاتو کی به د رسول الله ﷺ تابعدار وی۔

## د بدر الصغریٰ غزا

ځینی مفسرین وائی دا آیتونه د بدر الصغریٰ د غزا په باره کی نازل شویدی چه لنډ مضمون ئے دا دے: کله چه د اُحد د غزا نه قریشی لښکر ستنیدو نو د دوی مشر (ابوسفیان) نبی کریم ﷺ ته آواز وکړو چه راتلونکی کال به د بدر په ځای کی مقابله کوو نو نبی کریم ﷺ وفرمایل: (ذٰلِكَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ)

یعنی که د الله خوښه وی نو زمونږ او ستاسو په مینځ کی همدا وعده شوه۔

نو کله چه کال له د وعدے وخت راورسیدو نو رسول الله ﷺ ور ووتو پدے کی ابوسفیان هم د وعدے مطابق قریشی لښکر راوېستو او د بدر په طرف رارawan شو خو کله چه مَرُّ الظَّهْرَان ته ورسیدل نو په خپله لښکر کښئ باندے پښیمانه شو مګر دا خبره ورته ډیره سخته ښکاره شوه چه خپل عهد مات کړی او بیرته ستون شی حال دا چه مقابل طرف ئے په عهد کلك ولاړ وی او د دوی د ورتللو انتظار کوی او بل طرفته د دوی په زړونو کی رعب ننوتے وو او جرأت ئے نشو کولے چه د بدر په طرف سفر روان وساتی، د بدر د نوم نه یریدل ځکه چه دلته ئے دوه کاله مخکی غټ غټ مشران اویا کسان قتل شوی او اویا کسان قیدیان شوی وو نو د خپل واپس کیدو دپاره ئے یو چل جوړ کړو دے دپاره چه پړه په مسلمانانو ور واچوی چه دوی د بدر مقام ته حاضر نشو۔

نو ابوسفیان یو سړے چه نُعیم بن مسعود الاشجعی نو میده بنه غټ رشوت ومنو چه مدینے ته لاړ شه او مسلمانانو ته زمونږ قوت او سازوسامان بیان کړه دے دپاره چه جرأت ونکړی چه موعد ته راشی او پره په هغوی باندے وغورزیږی او مونږ د جنګ نه خلاص شو۔ نو هغه رشوت خور مدینے ته راروان شو، د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو سره ملاؤ شو او دا ئے ورته ووئیل چه پام کوئ چه بدر ته لاړ نشئ، مکے والو تاسو ته فوجونه راجمع کړیدی او سخت جنګ به درسره وکړی او بدله به درنه واخلی، صحابه کرامؓ چه دا خبره واوریده نو (حسبنا الله ونعم الوکیل) کلمه ئے ووئیله او جنګ ته تیار شو او د رسول الله ﷺ سره یونیم زر کسان د بدر مقام ته لاړل او هلته ئے اته شپے وکړے او دا داسے وخت وو چه هرکال به د بدر په مقام کی د تجارت میله لګیده او تاجران به ورته راتلل نو صحابه کرامؓ تجارتونه وکړل نو دنیاوی ګټی هم ورته ملاؤ شوے او الله هم ترے راضی شو۔

نو دا آیتونه ددے ذکر شوے غزا په باره کی نازل شویدی۔ مګر دا آیتونه داسے دی چه دواړو غزواتو ته پکی اشارات شته لیکن اول قول ډیر ښکاره دے ځکه چه د اُحد سره نزدے غزا د حمراء الاسد شویده او (مِنْ بَعْدِ مَا أَصَابَهُمُ الْقَرْحُ) نه هم معلومیږی۔ او کیدے شی چه د حمراءُ الاسد په باره کی نازل وی او غزوه د بدر الصغریٰ هم ددے یو مصداق ګڼړلے شوے وی۔ او قرطبیؒ او آلوسیؒ ویلی دی چه اول قول د اکثرو مفسرینو دے او دویم قول شاذ دے۔ او ابن کثیرؒ وائی : صحیح دا ده چه دا آیت د حمراء الاسد د غزا په باره کی نازل دے۔

**ربط** : ۱– مخکی آیت کی ئے ووئیل چه الله تعالیٰ به د ایمان والو اجر نهٔ ضائع کوی نو دلته وائی چه د دوی اجر به ځکه نهٔ ضائع کیږی چه دوی د الله او د رسول د حکم تابعداری کونکی دی چه مثال ئے په حمراء الاسد او بدر الصغریٰ کی ښکاره شول او د طاعت عمل الله تعالیٰ نهٔ ضائع کوی۔

۲– مخکی آیت کی د اُحد شهیدانو ته زیرے وو او اُوس د اُحد زخمیانو ته زیرے ورکوی په سبب د دویم استجابت سره۔

اسْتَجَابُوْا : استجابت په نَعَمْ (آؤ) سره جواب ورکولو ته وائی دلته مطلق خبره منلو ته وائی۔ او د الله تعالیٰ د احکامو استجابت د رسول الله ﷺ د احکامو په استجابت موقوف دے پدے وجه ئے دواړه ذکر کړل او د دواړو مقصد یو دے یعنی د الله او د هغه د رسول خبره منل او دلته ترے مراد خصوصاً د جهاد دپاره د رسول الله ﷺ دعوت قبلول دی۔

الْقَرْحُ : قرح په اصل کی زخم ته وائی دلته ترے مراد مصیبتونه د بدن او د مال دی چه

صحابه کرامو ته په اُحد کې رسيدلې وو. يعني خپل خپلوان ئې هم ووژل شو او خپله هم زخميان شو نو بدن ئې هم زخمي او زړونه ئې هم زخمي دي پداسې سخت حالت کې د الله او د رسول خبره مني.

بيا د الذين خبر پټ دے (لَهُمْ اَجْرٌ عَظِيْمٌ) يعني د دوی دپاره لوی اجر دے. يا (هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا) يعني هم دوی رښتيني مؤمنان دي. يا (لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا مِنْهُمْ) ئې خبر دے.

لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا مِنْهُمْ : (مِنْ) بيانيه دے يعني دا استجابت کونکي ټول محسنين او متقيان دي صحابه کرامؓ چه احسان کونکي او متقيان نهٔ شي نو بل به څوك وي ليکن (مِنْ) ئې پکې د يره ولو دپاره راوړو چه هر شخص ويريږي چه زهٔ به پدے محسنينو کې داخل يم او که نهٔ. او دواړه صفتونه ئې راجمعه کړل دپاره د مدح او تعليل يعني استجابت سبب د اجر دے ليکن د احسان او تقوئ په سبب سره په دغه اجر کې عظمت حاصليږي.

ځينې وائي دا مِنْ تبعيضيه دے او ددے وجه دا ده چه کله رسول الله ﷺ دوی ته دعوت ورکړو نو دوی ظاهراً او باطناً تيار شو ليکن بعض کسانو ته د هغوی په نفسونو او اهل کې څه موانع راپيښ شو نو هغوی ونهٔ وتل نو د (الذين احسنوا او اتقوا) نه مراد هغه کسان دي چه بالفعل ووتل او احسان دے ته وائي چه انسان يو عمل په کامله طريقه سره وکړي څومره چه ممکن وي او تقوئ دے ته وائي چه په هغے کې د بدئ او تقصير نه ځان وساتي. نو (مِنْهُمْ) کې به ضمير مخکني مؤمنانو ته راجع وي نهٔ (الذين استجابوا) ته صاحب المنارؒ وائي دا ډيره ظاهره او بنانسته وجه ده. (المنار ١٩٥/٤) البغوی (١٣٧/٢)

اَلَّذِيْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ: ددے نه مراد د عبد القيس قبيلے څه کسان دي. او د دويم (الناس) نه مراد مکے والا دي.

قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ : ددے مفعول پټ دے اَيِ الْجُنُوْدَ وَالْاَسْلِحَةَ.

يعني قريشو تاسو ته (لښکرے او وسلے) راجمعه کړيدي.

فَاخْشَوْهُمْ : د هغوی نه ويريږئ او جنګ له مهٔ ورځئ.

فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا : يعني دغه وينا د دوی ايمان زيات کړو، ددے نه معلومه شوه چه د امتحان په وخت د مؤمن په ايمان کې زيادت پيدا کيږي او دے ته ترغيب ورکوي چه په داسے وخت کې مؤمن له پکار دي چه ايمان کې زيادت پيدا کړي او هرکله چه د دغه جاسوس د صحابه کرامو په زړونو کې يره پيدا کول مقصد وو نو د هغے په خلاف ووېل شو چه دے وينا برعکس فائده وکړه چه د صحابه کرامو ايمان پرے زيات شو، او د باطل پرست چل او

مکر هیڅ فائده ونکړه۔
او دا دلیل دے چه ایمان کی زیادت او کمے راځی لکه د قرآن او احادیثو نه دا خبره معلومه ده۔ او دلته په یقین او د زړه په تصدیق کی زیادت پیدا کیدل مقصود دے نو دا اصطلاح د مناطقه ؤ او متکلمینو او احنافو چه ایمان بسیط دے او بسیط کی زیادت نهٔ راځی دا غیر شرعی اصطلاح ده۔
حَسْبُنَا اللهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ : په حدیث د بخاری کی دی چه دا کلمه ابراهیم علیه السلام په هغه وخت کی وئیلے وه چه نمرود په اُور کی واچولو نو الله ورباندے اُور گل گلزار کړو او نبی کریم ﷺ د حمراء الاسد په غزا کی وویله چه الله تعالیٰ ورته د دنیا او د آخرت دواړه نعمتونه ورکړل او د دشمن په زړه کی ئے رعب واچولو چه د جنگ اراده ئے ختمه کړه۔
علامه سیوطیؒ په «اکلیل» کی لیکلی دی چه ددے کلمے په غم او لوی کارونو راپیښیدو کی لوستل مستحب دی۔ آه۔ او ډیره عجیبه فائده لری، د عمل نه روستو پته لګیږی۔
حسب : اسم جامد دے په معنیٰ د کافی سره دے، او ددهٔ فعل مستعمل نهٔ دے، او صاحب د قاموس وئیلی دی چه دا اسم فعل دے په معنیٰ د کفیٰ سره او سیبویهٔ وئیلی دی چه دا مصدر دے ددے وجه نه تثنیه او جمع ئے نهٔ راځی۔
(نِعْمَ الْوَكِيْلُ) : وکیل په معنیٰ د مَوْكُوْلٌ اِلَيْهِ سره دے یعنی هغه ذات ته وائی چه هغه ته کارونه سپارلے شی۔

## څلور اجرونه

پدے آیت کی الله تعالیٰ څلور اجرونه ذکر کړیدی پدے وجه چه دوی په دے غزا کی زیات اخلاص ښکاره کړو او د شیطانانو خبروورباندے څه تاثیر ونکړو :
(۱) نعمت : یعنی ثابت قدمی او د ایمان قوت۔
(۲) فضل : یعنی حلاله ګټه او حلال مال۔
(۳) عافیت (لَمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْءٌ) چه د کافرانو زړونه رعب ونیول او د جنګ جرأت ئے ونکړو۔ (٤) واتبعوا رضوان الله : الله تعالیٰ ترے راضی شو اګرکه جنګ هم ونکړے شو لیکن د دوی اخلاص د الله تعالیٰ د رضا سبب جوړ شو۔
فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللهِ : ددے ډیر مصداقات دی (۱) العافیة، روغ راواپس شو۔ (۲) الثبات

عَلَى الْإِيْمَانِ ـ یعنی په ایمان باندے ثابت قدمیٔ سره راواپس شو۔ (۳) اَلطَّاعَةَ۔ د الله او د رسول په تابعداریٔ سره راواپس شو۔ (٤) اِذْلَالِ الْاَعْدَاءِ۔ دشمنان ئے ذلیله کړل۔

وَفَضْلٍ : ددے نه مراد (۱) تجارتونه دی (۳) او اجرونه دی۔

وَاللّٰهُ ذُوْفَضْلٍ عَظِيْمٍ : پدے تذییل کی اشاره ده چه تر قیامته پورے څوك په اخلاص سره یو نیك عمل وکړی نو الله تعالیٰ به دغسے اجرونه ورکوی۔

اِنَّمَا ذٰلِكُمُ الشَّيْطٰنُ : یعنی دغه جاسوس شیطان دے ځکه چه د شیطان کار هم خلك د نیکو نه منع کول دی او دهٔ هم خلك د جهاد نه منع کول نو دا انسی شیطان وو۔ یا دلته مضاف پټ دے۔ یعنی دغه کارونه کول چه هغه جاسوس رالیږل او په منافقانو باندے د هغے اثر کیدل کار د شیطان دے چه شیطان پرے خوشالیږی۔ اول قول ظاهر دے۔

يُخَوِّفُ اَوْلِيَاءَهٗ : دے کی دوه تفسیره دی (۱) يُخَوِّفُ الْمُؤْمِنِيْنَ بِاَوْلِيَائِهٖ) ـ یره وی مؤمنان په خپلو دوستانو سره چه هغه کافران، منافقان او غلط خلك دی نو دلته به باء او مفعول به پټ وی۔ او دا یره ولے اچوی؟ : لِئَلَّا يُجَاهِدُوْا (دے دپاره چه جهاد ته لاړ نشی) وَلَا يَأْمُرُوْهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ وَلَايَنْهَوْهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ۔ او دے دپاره چه په نیکیٔ ورته حکم ونکړی او د بدیٔ نه ئے منع نکړی۔ (وَيُعَظِّمُوْهُمْ فِيْ قُلُوْبِهِمْ) او د هغوی په زړونو کی د کافرانو عظمت او لوی والے اچوی چه دوی سره وسله ده او زيات دی، جنگ ورسره نشی کیدے، او خلك جیل ته اچوی۔ نو د دوی مقصد دا وی چه تا د جهاد نه منع کړی او کور کی کینے،

نو ددے علاج دا دے چه د بنده ایمان کله مضبوط شی او د الله عظمت پکی راشی نو دده د زړه نه به د شیطان د دوستانو خوف ختم شی۔ دا وجه ده چه میډیا کی کفار د خپلو وسلو او د خپل هتیار اشتهار کوی پدے سره ئے د خلکو یره ول مقصد دے۔ نو پدے آیت کی ډیره ښه ذهن سازی ده چه د کافرانو او د شیطانانو کار دا دے چه هغوی تا په خپلو مشرانو او وسلو او نفریٔ باندے یره وی نو اے مؤمنه ! د خپل ځان علاج وکړه او د الله یره زړه کی راوله نو د الله د دشمنانو یره به ختمه شی لکه دلته د نبی کریم ﷺ او د صحابه کرامو په زړونو کی د الله یره وه نو د کافرانو یرے پرے هیڅ اثر ونکړو او کامیابیٔ ته ورسیدل۔

(۲) یا اَوْلِيَاءَهٗ مفعول دے۔ نو معنیٰ داده چه دغه جاسوس شیطان دے چه خپل دوستان یره وی او د هغه یره د هغه په دوستانو باندے اثر کوی او تاسو خو د الله دوستان یئ، مؤمنان یئ نو تاسو ترے مهٔ یریږئ ځکه چه تاسو د شیطان دوستان نهٔ یئ نو تاسو ما نه

ددې مثال داسې دې لکه په سورة النحل (۹۹/۱۰۰) کې راغلي دي:
﴿اِنَّهٗ لَيْسَ لَهٗ سُلْطَانٌ عَلَى الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ، اِنَّمَا سُلْطَانُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ يَتَوَلَّوْنَهٗ﴾
د شیطان تسلط په ایمان والو او په هغه خلکو چه په خپل رب توکل کوي نشته، (بلکه) د هغه تسلط او غلبه په هغه کسانو ده چه د شیطان سره دوستي کوي.

وَخَافُوْنِ) : د الله نه یره دا ده چه هغه خیزونه پریخودلے شي چه په هغې کې د الله تعالیٰ د عذاب خطره وي او الله پرې ناراضه کیږي نو کوم کسان چه د الله د یرې نه ژاړي او گناهونه نۀ پریږدي نو دا د الله نه یریدونکي نۀ دي. (القرطبي ۲۸۳/۴)

اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ : ددې نه معلومه شوه چه (اَلْخَوْفُ مِنْ لَوَازِمِ الْاِيْمَانِ) چا کې چه ایمان وي هغه کې به د الله نه خامخا یره وي نو یره د ایمان سره لازمه ده.

| |
|---|
| وَلَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ اِنَّهُمْ |
| او غمژن دې نکړي تا لره هغه کسان چه کوشش کوي په (کارونو د) کفر کې یقیناً دوی |
| لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْئًا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا |
| هیچرې ضرر نشي ورکولے الله ته هیڅ شے، غواړي الله چه ونۀ گرځوي دوی لره برخه |
| فِي الْاٰخِرَةِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۷۶﴾ |
| په آخرت کې او دوی لره عذاب لوی دے. |

**تفسیر** : پدې او راتلونکي آیت کې الله تعالیٰ کافرانو او منافقانو دواړو ته د آخرت یره ورکړیده او نبي علیه السلام او مؤمنانو ته د دین د ترقي په باره کې تسلي ورکړیده. وجه دا وه چه دې کافرانو دا کوشش کولو چه مدینه څنگه ختمه کړي او اسلامي نظام ته صدمه ورسوي نو الله تعالیٰ نبي کریم ﷺ او صحابه کرامو ته تسلي ورکوي چه دا خلك به کوشش کوي لیکن دوی هلاکیدو والا دي په لوی عذاب به واوړي.

دارنگه ددې آیت او ددې راتلونکي دواړو آیتونو تعلق هم د غزوۀ اُحد سره دے. ددې غزا نه روستو د منافقانو نفاق، د قریش کافرانو او د مدینې د یهودیانو کفر او د هغوی سازشونه مخې ته صفا راښکاره شو نو رسول الله ﷺ او صحابه کرامو ته پدې سره ډیر تکلیف اُورسیدو چه د ډیر کوشش او محنت سره دا خلق ولې اسلام نۀ راوړي، نو الله تعالیٰ هغوی ته تسلي ورکړه چه که دا خلق په کفر کې زیاتیږي نو ته پدې غم ولې کوې؟ دا خلق الله ته

هیڅ نقصان نشي ورکولے، الله سبحانه وتعالیٰ خو غواړي چه په آخرت کې دوی ته هیڅ کامیابي ورنکړي۔

**ربط** : مخکې الله تعالیٰ مؤمنانو ته وصیت وکړو چه د کافرانو نه مۀ یریږي خپل کار به کوی نو اُوس الله نبي کریم ﷺ ته خطاب کوي چه تۀ هم مۀ غمجن کیږه چه کافران به اسلام د مینځ نه وباسي لکه چه د دوی زړه دے او مسلمانان به ختم کړي!!۔

ولا یحزنك : حزن دوه قسمه دے (۱) غیر اختیاري چه هسے زړه ته راځي د هغے نه منع نۀ کیږي، دویم حزن اختیاري دے چه بنده دومره خفګان وکړي چه کار پریدي نو دلته دا معنیٰ ده چه ددے کافرانو د کارونو د وجه نه دومره خفګان مۀ کوه چه تۀ ورته خپل دین او د دین کار پریدے۔ رسول الله ﷺ د منافقانو په منافقت باندے ډیر زیات خفه شوے وو چه دوی هیڅ دلیل ته غوږ نۀ نیولو او د اسلام په تخریب کارئ کې به د مشرکانو ملګري کیدل او دغه شان نبي کریم ﷺ د ځینې مرتدینو په وجه هم خفه شوے وو، او دغه شان د یهودیانو د مشرانو د کوششونو نه هم ډیر خفه شوے وو چه اسلام ته به ئې خنډونه پیدا کول او دغه شان د قریشو کافرانو غمجن کړے وو چه د اسلام د خرابوالي پسے ئې پینځے بدے کړے وے نو الله تعالیٰ دلته منع کړو چه پرواه پرے مۀ ساته۔

يُسَارِعُونَ فِي الْكُفْرِ : یعنې کوشش کوي، منډے ترړے وهي چه کفر به څنګه عام شي، جاسوسي، کفر، شرك او فساد عام کول او ددے دپاره مالونه لګول او جلسے او پروګرامونه جوړول دا د دوی مقصدونه وو۔

إِنَّهُمْ لَنْ يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْئًا : دا علت د نهي دے یعنې خفګان څکه مۀ کوه چه دوی پدے منډو ترړو سره الله تعالیٰ او د هغه دین ته هیڅ ضرر نشي رسولے چه هغه مغلوبه کړي او کافر غالب کړي بلکه ددے وبال به په هم دوی باندے په دنیا او آخرت کې راځي۔

يُرِيدُ اللَّهُ : نو سوال راځي چه الله تعالیٰ د کافرانو مخ نیوے ولے نۀ کوي چه د دوی دا پروګرامونه ختم کړي ؟ نو الله فرمائي : چه جنت د الله د خیر ځای دے نو الله غواړي چه دا ګنده خلك دغه پاك ځای ته لاړ نشي او دغه خلك اُور ته بوځي پدے وجه الله تعالیٰ د دوی نه د کفر کارونه اخلي نو که الله د دوی مخ نیوے وکړي نو بیا به دا خلك د جنت نه محرومه نۀ شي او الله غواړي چه دا خلك خبیثان دي د جنت نه ئې محرومه کوم۔

**فائده** : پدے آیت کافرانو ته دوه قسمه دهمکي شوه (۱) یو دا چه اے کافرو! مغلوبه کیږئ به۔ (۲) دویم دا چه جهنم ته روان یئ نو خپل ځان سم کړئ۔

| إِنَّ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ لَنْ يَضُرُّوا |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه اخستې ئې دې کفر په بدله د ایمان کې هیچرې ضرر نشي ورکولې |
| اللَّهَ شَيْئًا وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿۱۷۷﴾ |
| الله تعالیٰ ته هیڅ شې او دوی لره عذاب دردناك دې۔ |

**تفسیر**: ددې او د مخکنۍ آیت فرق دا دې چه مخکې آیت د ظاهري کافرانو په باره کې دې او دا آیت د منافقانو (پټ کافرانو) په باره کې دې چه دوی ایمان پریخودو او کفر ئې واخستو نو دوی هم د الله دین ته هیڅ قسمه ضرر نشي ورکولې چه هغه ختم کړي او کفر غالبه کړي۔ او پدې کې هر قسمه کافران داخلیدې شي چه هغه مرتد وي، که منافقان او که یهود او نصاریٰ وي۔

او هر کله چه د ښکاره کافرانو مکرونه او چلونه او د منافقانو چلونه د اسلام په خلاف جدا جدا دي نو ځکه ئې (لَنْ يَضُرُّوا اللَّهَ) جمله دوباره ذکر کړه۔

| وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّمَا |
|---|
| او گمان دې نکوي هغه کسان چه کفر ئې کړیدې چه یقیناً هغه شې |
| نُمْلِي لَهُمْ خَيْرٌ لِأَنْفُسِهِمْ إِنَّمَا نُمْلِي |
| چه مهلت ورکوو مونږ دوی ته غوره دې دپاره د ځانونو د دوی، یقیناً مهلت ورکوو مونږ |
| لَهُمْ لِيَزْدَادُوا إِثْمًا وَلَهُمْ عَذَابٌ مُهِينٌ ﴿۱۷۸﴾ |
| دوی ته دپاره ددې چه زیات شي دوی په گناه کې او دوی لره عذاب دې سپکوونکې۔ |

**تفسیر**: پدې آیت کې الله تعالیٰ بله ذهن سازي کوي او دا جواب د سوال دې چه کافران د الله تعالیٰ ځنګه دشمنان دي، دوی ته الله تعالیٰ راحتونه او د دنیا مزې ورکړي نو الله پرې زر عذاب ولې نهٔ رالیږي؟ مهلت ولې ورکوي؟ حاصل د جواب دا دې چه کافران دې دا گمان نکوي چه مونږ دوی ته کومې مزې ورکړي دا به د دوی دپاره غوره وي او گنې الله ته گران دي بلکه دا مهلت ورکول ددې دپاره دي چه دوی دنیا کې گناهونه وکړي ځکه چه دوی دپاره الله تعالیٰ جهنم تیار کړیدې د دوی د بدبختۍ او د گناهونو د وجه نه، د هغې دپاره ئې تیاروي نو پدې مهلت ورکولو کې دوی ته ضرر دې ځکه روستو ورله عذابونه تیار دي۔

اِنَّمَا نُمۡلِیۡ لَہُمۡ خَیۡرٌ لِّاَنۡفُسِہِمۡ : (ما) موصوله ده، اَیْ اَنَّ الَّذِیْ نُمْلِیْ لَهُمْ ذٰلِكَ خَیْرٌ لِّاَنْفُسِهِمْ)
یعنی هغه شے چه مونږ دوی ته مهلت ورکوو گنے دغه شے د دوی دپاره غوره دے۔ یعنی د دوی دا گمان غلط دے بلکه دا مهلت ورکول د دوی د هلاکت دپاره دی۔
یا (ما) مصدریه ده او (نُمْلِیْ) په تاویل د املاء سره دے اَیْ اَنَّ اِمْلَاءَنَا لَهُمْ خَیْرٌ لِّاَنْفُسِهِمْ)
یعنی زمونږ مهلت ورکول دوی ته د دوی دپاره غوره دی؟ هیڅکله نهٔ۔
املاء : د عمر اوږدوالے او مهلت ورکول دی۔
اِنَّمَا نُمۡلِیۡ لَہُمۡ لِیَزۡدَادُوۡۤا اِثۡمًا : یعنی زمونږ دا مهلت ورکول خو ددے دپاره دی چه دوی په گناهونو کی زیات شی او د اُور اعلیٰ درجو ته ورسیږی۔ نو په (لیزدادوا) کی لام د عاقبت دے یا لام د تعلیل دپاره دے۔
وَلَہُمۡ عَذَابٌ مُّہِیۡنٌ : دا عذاب ئے څکه راوړو چه دے منافقانو او کافرانو کی تکبر وو نو الله تعالیٰ ورته داسے سزا ورکوی چه دوی به سپک کړی۔

| مَا كَانَ اللّٰهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلٰى مَآ اَنْتُمْ عَلَيْهِ حَتّٰى يَمِيْزَ |
|---|
| نهٔ دے الله چه پریدی مؤمنانو لره په هغه حالت چه یئ تاسو په هغے باندے ترڅو چه جدا کړی |
| الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ ۭ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَي الْغَيْبِ وَلٰكِنَّ |
| پلیت (منافق) د پاك (مخلص) نه او نهٔ دے الله چه خبر کړی تاسو په غیبو باندے لیکن |
| اللّٰهَ يَجْتَبِىْ مِنْ رُّسُلِهٖ مَنْ يَّشَاۗءُ ۠ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ |
| الله غوره کوی د رسولانو خپلو نه چا له چه وغواړی نو ایمان راوړئ په الله او |
| رُسُلِهٖ ۚ وَاِنْ تُؤْمِنُوْا وَتَتَّقُوْا فَلَكُمْ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ﴿١٧٩﴾ |
| په رسولانو د هغه او که تاسو ایمان راوړو او تقویٰ مو وکړه نو ستاسو دپاره اجر دے لوی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی الله تعالیٰ د رسولانو په رالیږلو کی حکمت بیان کړیدے، دارنگه د الله تعالیٰ حکمت په ابتلاء اتو راتللو کی بیان شویدے چه هغه حکمت تمیز د خبیث او د طیب دے۔ دا آیت د غزائے اُحد او د حمراء الاسد وغیره غزواتو سره متعلق دے چه هغه زمانه کی به راتلل نو دلته سوال پیدا کیږی چه الله تعالیٰ کله یو قسم امتحان راولی چه کافران په مسلمانانو حملے کوی او د جهادونو نوبتونه راځی نو پدے امتحاناتو راتللو کی

څه فائده او څه حکمت دے ؟ نو الله تعالیٰ د هغے جواب ورکوی چه الله تعالیٰ تاسو په حالت د اختلاط باندے نهٔ پریدی بلکه الله به تمیز راولی ځکه چه په ظاهره کی منافقانو او مسلمانانو کلمه وئیلے ده نو ټول مسلمانان حسابیږی نو الله تعالیٰ دوی پدے یو حالت باندے نهٔ پریدی ځکه چه پدے کی منافقان او مجرمان شته اګرکه په ظاهره کی ټولو یوه سپینه جامه اغوستے ده او په مینځ کی ځوك سپین او ځوك تور دی، ددے نه نقصانات پیدا کیږی ځکه چه دوست او دشمن نهٔ پیژندلے کیږی، مؤمنان به په ناپوهئ سره هغوی ته خور لور ورکوی او په هغوی باندے به د مؤمنانو ګمان کوی، او دارنګه هغوی ته به حالونه وائی او حال دا چه هغوی به د کفارو جاسوسان وی نو ډیر فساد به پیدا شی،

او بله دا چه پدے کی به څه کسان الله تعالیٰ اُور ته بوځی نو دوی به عذر کوی چه اے الله ! مونږ ټولو کلمه وئیلے وه، ته پکی مونږ ولے اُور ته بوځے او دوی جنت ته؟ نو الله د مخکی نه امتحان راولی چه د دوی عذر او بهانه ختمه کړی او دے دپاره چه مؤمنان خپل دوست او دشمن وپیژنی دے دپاره چه آینده کی احتیاط کوی ځکه چه اُوسه پورے د اُحد د غزا پورے ډیر مسلمانان ددے نه خبر نهٔ وو چه ز مونږ په مینځ کی د لوستوڼی ماران موجود دی نو ددے نه روستو هغوی احتیاط شروع کړو او د منافقانو حالات جدا ښکاره شول او مسلمانان د هغوی د مقابلے دپاره په ذهنی طور سره تیار شول، عامو خلکو وپیژندل چه دا رئیس المنافقین عبد الله بن ابی ابن سلول دے او دا ئے ملګری دی. او دا وجه ده چه منافقانو نه یو حدیث هم امت نقل نکړو بلکه دین صفا پاتے شو، که الله تعالیٰ دا تمیز نهٔ وے راوستے نو دین به ګډوډ شوے وے.

عَلٰى مَا اَنْتُمْ عَلَيْهِ : اَیْ حَالَةَ الْاِخْتِلَاطِ. چه هغه حالت د ګډون او اختلاط دے.

حَتّٰى يَمِيْزَ الْخَبِيْثَ : یعنی کافر، منافق، مشرك، حرام خور، هسے صفتونو والا. او الطیب : مؤمن، مخلص، حلال خور او حقیقی جهاد کونکے او خبره منونکے چه په هغه کی اخلاص، توحید او اطاعت موجود دے. او دا تمیز ځکه ضروری دے چه د دواړه قسمه خلکو په نتیجه کی فرق راشی ځکه چه هر یو مختلف کار کوی نو نتیجه ئے هم مختلف کیدل پکار دی.

صاحب اللباب د الخبیث من الطیب درے توجیهات ذکر کړیدی :

(۱) د خبیث نه مراد منافق او د طیب نه مخلص مؤمن دے . (۲) یا د خبیث نه مراد ګناه ده او د طیب نه مراد مؤمن دے او (یَمِیْزَ) په معنیٰ په د (یَخُطُّ) سره دے یعنی ورژوی الله

تعالىٰ گناه د مؤمنانو نه په مصيبتونو راتللو سره۔

(۳) يا د خبيث نه كفر او شرك او د طيب نه اسلام مراد دے يعني الله كفر او شرك د اسلام نه جدا كړي پدے طريقه چه اسلام ته غلبه وركړي او كفر ذليله كړي۔ (اللباب)

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ : جواب د سوال دے چه د منافق او د كافر او د مؤمن د جدا كولو بله لار خو دا هم كيدے شي چه الله تعالىٰ مونږ ته حال ووائي چه فلانے موحد او مخلص دے او فلانے مشرك او منافق او بې اخلاصه دے نو امتحان څه له راولي ؟ يعني مونږ ته دے وحي وكړي۔ نو الله جواب كوي چه دا كار خو علم غيب دے او الله تعالىٰ تاسو ته د غيبو علم نۀ دركوي څكه چه بيا به د عالم ټول نظام خراب شي، يو تن به جهاد ته نۀ ځي وائي به چه ما ته معلومه ده چه زۀ پدے كي مرم، او بل تن به جهاد ته ځي څكه چه هغه ته به معلومه وي چه زۀ هسے هم نۀ مرم نو بيا به د منافق د زړه نه بنده خبرېږي نو امتحان به نۀ راځي۔ او الله چه تاسو ته منافقان او مؤمنان جدا رابنكاره كوي نو پدے طريقه چه امتحان او محنتونه راولي مؤمن او منافق پكي معلوم شي۔ (اللباب ۱/۱۳۲۲)

بلـه په هغے كي د الله تعالىٰ بندگياني وشي، تضرع او صبر او تحقيق د حق وشي چه دا د الله تعالىٰ محبوب اعمال دي۔

وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِىْ : بيا سوال پيدا شو چه هركله الله تعالىٰ هيچا ته د غيبو خبر نۀ وركوي نو بيا پيغمبران د غيبو خبرونه ولے بيانوي؟ نو الله فرمائي چه هغه جدا شے دے، الله تعالىٰ د بندگانو نه بعض خلك (رسولان) ددے دپاره غوره كړي (او دا هم د هغه د ارادے او د خوښے سره تعلق لري د بندگانو پدے كي خپل اختيار نشته) نو پيغمبرانو ته د غيبو خبر وركړي څكه چه كه ټولے غيبي خبرے د بندگانو نه بندے كړے شي نو بيا هم نقصان راځي نو الله تعالىٰ رسولان راوليږي چه هغوي ته د جنت او د جهنم او د بعض راتلونكي حالاتو خبر وركړي، ددے دپاره چه بندگان د شرونو نه ځان بچ كړي او راتلونكو خيرونو دپاره ځان تيار كړي۔ بل د پيغمبر حقانيت هم معلوم شي چه بل څوك داسے خبر نشي وركولے او دۀ وركړو معلومه شوه چه دا د الله تعالىٰ نبي دے۔

دلته دا مطلب نۀ دے چه الله تعالىٰ د ټولو غيبي څيزونو علم پيغمبرانو ته وركوي چه دوي د الله سره پدے كي برابر شي بلكه الله چه كومه خبره غواړي هغه ورته وښائي كوم كي چه د بندگانو فائده وي۔ او ټول مغيبات مراد كول د تمامو مفسرينو نه مخالفت كول دي چه هغوي دلته دا وئيلي دي : (وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِىْ مِنْ رُّسُلِهٖ فَيُخْبِرُهٗ بِبَعْضِ الْمُغَيَّبَاتِ)۔

لیکن الله غوره کوی د رسولانو خپلو نه نو هغه ته د بعض مغیباتو خبر ورکوی لکه مثلاً فلانے به مؤمن وی او فلانے به کافر پاتے کیږی (ابن عطیة، ابوحیانؒ)

یا د خلکو د کفر او د نفاق معلومات ورکړی (آلوسیؒ)

یا د تمییز د مؤمن د منافق نه خبر ورکړی۔ (ابن کثیرؒ، خازنؒ، ابن جریرؒ)

(په بل تعبیر سره داسے هم وئیلے شی چه الله تعالیٰ د وحی په ذریعه سره هم دا کار کولے شو چه خپلو پیغمبرانو ته وحی وکړی چه فلانے مؤمن او فلانے منافق دے لیکن الله تعالیٰ دا طریقه غوره نهٔ کړه ځکه چه پدے طریقه باندے یو اځی د نبی کریم ﷺ په زمانه کی خلك جدا کولے شو چه وحی جاری وه او نبی کریم ﷺ ژوندے وو نو که الله دا طریقه غوره کړے وے نو پکار وه چه تاسو ټولو ته ئے په هره زمانه کی وحی نازله کړے وے او په غیبو ئے خبر کړی وے یعنی نبوت نهٔ وے ختم شوے او په هر مؤمن وحی نازله شوے وے خو الله داسے نهٔ کوی بلکه څوك ئے چه د هغه دے کار دپاره غوره کړیدی صرف په هغوی باندے وحی نازلوی چه هغه پیغمبران دی لهذا تاسو د غیبو طمع مهٔ کوئ بلکه خپله ذمه واری وپیژنئ) (عزیز التفاسیر)

فَآمِنُوا بِاللّٰهِ : پدے کی بندګانو ته د هغوی کار او ذمه واری سپاری چه ستاسو کار په څه وی؟ هغه وکړئ او هغه دوه کاره دی۔ (۱) یو په الله او په رسولانو ایمان لرل چه یو په هغوی کی آخری رسول محمد رسول الله ﷺ دے چه ددے په ذریعه باندے تاسو ته دغه غیب معلومیدے شی او د کامیابئ لارے به درته ښائی۔

(۲) دویم تقویٰ اختیارول۔ دا دواړه ئے جمع کړل ځکه چه دا دواړه د کمال صفات دی۔ یعنی په الله او په رسولانو یقین کول او بیا د الله د حکمونو لحاظ ساتل د انسان دپاره د لوی اجرونو سبب دے، او کامیابئ ته په همدے سره رسیږی۔ نو الله پدے وجه امتحانات راولی چه په تاسو کی منافق او مؤمن او متقی معلوم مول غواړی۔ او دے آیت ته کَنْزٌ مِنْ كُنُوْزِ الْقُرْآن (د قرآن د خزانو نه یوه خزانه) وائی۔ کما فی بدائع التفسیر۔

| وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ بِمَا آتَاهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ |
|---|
| او ګمان دِے نکوی هغه کسان چه بخل کوی په هغه څه چه ورکړے دوی ته الله تعالیٰ د مهربانئ خپلے نه |
| هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ سَيُطَوَّقُوْنَ |
| چه دا غوره دے دوی لره بلکه دا بد دے دوی لره زر دے چه په غاړه کی به واچولے شی دوی ته |

مَا بَخِلُوْا بِهٖ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ

هغه شے چه بخل کړے دوی په هغے سره په ورځ د قیامت، او خاص د الله دپاره میراث

السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿١٨٠﴾

(آخری پاتے کیدل) د آسمانونو او د زمکے دے او الله په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ خبردار دے۔

**تفسیر**: پدے آیت کی الله تعالیٰ بخلاؤ ته زجر ورکړیدے چه د الله په لاره کی مال نهٔ لګوی او پدے کی رد دے په منافقانو او یهودیانو باندے او د روستو آیتونو دپاره مقدمه ده۔

**مناسبت**: په غزا د بدر او اُحد کی مال لګولو ته سخت ضرورت وو او په هره غزا کی ورته ضرورت وی ځکه مسلمانان مالی لحاظ سره کمزوری وی نو یهودیان او منافقان دواړو باندے لازم وه چه مال به لګوی (ځکه چه کفار هم په فروعو باندے مخاطب دی، کافر چه کفر کوی او مال هم نهٔ لګوی نو الله دوه سزاګانے ورکوی یو د کفر او بل د مال نهٔ لګولو) نو هغوی دواړو به بخل کولو او مال به ئے نهٔ لګولو نو پدے آیت کی دواړو ته زجر ورکوی چه چا بخل وکړو نو د قیامت په ورځ به ئے دغه مال په اُوګو باندے راروان کړے وی او د مار په شان د غاړے نه به ئے تاؤ شوے وی۔

او پدے آیت کی د مخکنی (الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ) بیان هم دے چه د الله د امتحان یوه طریقه دا هم ده چه الله تعالیٰ خبیث د طیب نه پدے طریقه هم راجدا کوی چه الله د انفاق امر وکړی نو پدے سره معلومه شی چه څوك مؤمن دے او څوك منافق، او څوك د مال سره مینه لری او څوك د الله سره او د روستو صفاتو د یهودیانو دپاره مقدمه هم ده۔

نو مخکی تیزی ورکول وو په جهاد باندے اُوس تیزی ورکوی په انفاق فی سبیل الله باندے۔ (قاسمیؒ)

**يَبْخَلُوْنَ**: د بخل تشریح په سورة البقره آیت (۲) کی ذکر شویده چه کوم کارونو سره انسان د بخل نه خلاصیږی هغے ته مراجعه پکار ده۔ لنډه دا چه بخل دے ته وائی چه سړے د واجب شی د ورکړے نه ځان وساتی لکه:

(۱) په خپل ځان باندے د مال نهٔ مصرفول۔

(۲) خپلو اقاربو (خپلوانو) ته – چه نفقه ئے په سړی باندے واجبه وی – خرچه نهٔ ورکول۔

(۳) زکاة نهٔ ورکول.

(٤) يو مضطر انسان ته طعام نهٔ ورکول چه د اضطرار (پریشانئ، مجبورئ) نه پرے خلاص شي او دغسے نور څيزونه واخله.

(۵) ميلمه له ضيافت نهٔ ورکول. (٦) سائل ته څه شے نهٔ ورکول.

دلته کوم بخيلان مراد دي ؟

(۱) ځينی مفسرين وائي چه دلته يهوديان مراد دي. لکه عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائي چه ددے نه مراد يهوديان دي چه هغوی ته الله تعالىٰ د خپل فضل نه د نبی کريم ﷺ په نبوت او صفاتو باندے علم ورکړے وو خو هغوی پرے بخل وکړو او په پټولو باندے ئے تحريف هم وکړو.

(۲) د عبد الله بن مسعود ﷺ نه روايت دے چه دلته هغه کسان مراد دي چه هغوی په زکاة باندے بخل کوی او دا رايه امام بخاریؒ غوره کړيده. ليکن د آيت مفهوم دے تولو ته عام دے اول مصداق ئے يهوديان وو او بيا د زکاة منع کونکو ته هم شامل دے.

هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ : يعني دا ورله عذاب دے.

سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُوا بِهِ : د طوق نه دے (غاړکئ) (د غاړے هار) ته وائي او هر هغه شے چه په غاړه کې اچولے شي لکه د سرو زرو يا د سپينو زرو هار چه زنانه ئے په غاړه کې اچوی.

معنیٰ دا ده : زر دے چه په غاړه کی به ورته واچول شي او د غاړے هار به ئے جوړ شي هغه مال چه کوم باندے ئے بخل کړے وو.

بيا دا غاړکئ يا کنايه ده د گناه نه يعني بخيلان به د بخل د گناه نه هيڅ کله خلاصے ونهٔ مومی گويا که دغه گناه د دوی د غاړے غوړ جوړ شوے دے، ليکن د ډيرو احاديثو مطابق ظاهر دا ده چه بعينهٖ د دغه مال نه به ورته مار جوړ کړے شي او د غاړے نه به ئے تاؤ شي.

او حديث کی دی : داسے مار به ترے جوړ شي چه (د زهرو د وجے نه به) گنجے وي او د هغه به د اُوخکو په شان دوه سترگے وی او ددهٔ د خولے وشکی به راکاږی او دا به ورته وائی چه زهٔ ستا مال يم او زهٔ ستا خزانه يم. (بخاري عن ابی هريرةؓ)

او که ددے بخل نه د علم بخل واخستے شی نو بيا هم د الله د قدرت نه بعيده نهٔ ده چه الله تعالىٰ د دغه پټ کړے شي علم نه هم مار جوړ کړی او د قيامت په ورځ د مار په شکل کی راشی لکه د يو حديث نه معلوميږی چه د قيامت په ورځ به د خائن د خيانت نه جنډه جوړه شي نو هلته خيانت معنوی شے دے او د مادی شي په شکل رابشکاره کيږی.

وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ : اُوس دا خبره بيانوي چه مالونه هسے هم الله تعالیٰ ته پاتي كيږي او بندګان به ترے خالي لاسونه روان وي نو بيا ولے پدے باندے بنده بخل وكړي؟

بيا ددے دوه معاني دي (۱) يو دا چه مخلوق كوم مالونه د يو بل نه په ميراث سره وړي نو د هغے ټولو مالونو آخري مالك الله تعالیٰ دے. مطلب دا چه دا مِلك د الله تعالیٰ دے او تاسو ته د څه ورخو دپاره دركړے شويدے نو ولے پدے سره بخل كوئ لكه په سورة الحديد (۷) آيت كي دي: ﴿وَأَنْفِقُوْا مِمَّا جَعَلَكُمْ مُّسْتَخْلَفِيْنَ فِيْهِ﴾

او خرچ كړئ د هغه مال نه چه تاسو الله تعالیٰ خليفه ګان كړي يئ په هغے كي.

(۲) دويمه معنیٰ دا چه روستو زمانه كي به آسمانونو او زمكے والا ټول مخلوقات فنا شي نو د هيچا ملكيت به پاتي نشي نو په شان د هغه مال به شي چه د يو شخص د فناء نه روستو بل ته ميراث پاتي شي نو پدے معنیٰ سره به تشبيهي ميراث مراد وي او په اوله معنیٰ سره حقيقي ميراث مراد دے. (قاسمیؒ، واحسن الكلام والسراج المنير ۱/۳۰۶)

**فائده** : (لله) ئے مخكي كړو دپاره د تخصيص نو ددے نه دا فائده حاصله شوه چه د هر شي ميراث به صرف الله ته پاتي وي نه بل چا ته نو صرف الله وارث دے او «الله، نبي وارث» وئيل غلط دي، شركي كلمه ده.

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ : يعني الله ستاسو په عملونو خبردار دے نو د مال په منع كولو به سزا دركوي.

| |
|---|
| لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ قَالُوْا إِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ وَّنَحْنُ |
| يقيناً واوريدهٔ الله تعالیٰ وينا د هغه كسانو چه وئيل ئے يقيناً الله محتاج دے او مونږ |
| أَغْنِيَآءُ سَنَكْتُبُ مَا قَالُوْا وَقَتْلَهُمُ الْأَنْبِيَآءَ |
| مالداريو، زردے چه وبه ليكو هغه خبره چه دوی ئے وائي او وژل د دوی انبياؤ لره |
| بِغَيْرِ حَقٍّ وَّنَقُوْلُ ذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ ﴿۱۸۱﴾ |
| په ناحقه او وايو به دوی ته چه اُوڅكئ عذاب د اُور سوزونكي. |

**تفسير : مضمون** : پدے ركوع كي د يهوديانو د خباثتو بيان دے او دا د قرآن كريم د عامو سورتونو طريقه ده لكه سورة بقره او روستو سورة النساء كي چه د توحيد مسئله او نور احكام او مسائل به شروع وي نو ناڅاپه به مينځ كي د يهوديانو د بدو صفتو بيان

وکړي چه دا هغه خلك دي چه په تاسو باندې کار خرابول غواړي او پدې مسئلو کې هم دوی رکاوټونه اچوي، شریان دي نو دوی وپیژنئ نو پدې وجه ددې واقعي مناسبت د اول د سورت سره دې چه اول کې هم د نصارئ او بیا د یهودو سره خبرې وي او د هغوی بد صفات ئې بیانول نو په آخره کې بیا وائي چه دا خلك وپیژنئ دې دپاره چه اول او آخر د سورت یو شان شي۔

۲- په مدینه کې نظام شرعي جوړ شو، معاشره صفا کیده، خیرونه عام کیدل نو دا معاشره یو یهودیانو گنده کوله او بل منافقانو نو الله تعالیٰ ځای په ځای په دوی باندې ردونه کوي چه مسلمانان ئې وپیژني نو ورته وائي چه دا هغه خلك دي چه دوی الله ته فقیر وئیلي دي (العیاذ بالله) (یعني اول بد صفت ئې دا دې چه د في سبیل الله انفاق نه ئې انکار کړیدې په باطل عذر سره) او رسولان ئې وژلي دي او د رسول الله ﷺ په نهٔ منلو کې د دروغو بهانې کوي (أَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُولٍ حَتَّىٰ يَأْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ) آیت (۱۸۳) کې راځي، او دوی د حق مکذبین دي (۱۸٤) بیا په (۱۸۵) آیت کې رسول الله ﷺ ته تسلي ورکوي او بل مرض ئې دا دې چه د دنیا دپاره حق پټوونکي دي (واذ اخذ الله میثاق) کې راځي۔ (لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَفْرَحُونَ) کې د دوی بل مرض دا ذکر کوي چه د هدایت کار کوي نهٔ او خلکو ته وائي چه مونږ ته هدایت والا ووایئ، کار ئې د سرې توب کړې نهٔ دې او خلکو نه غواړي چه مونږ ته سړي توب والا ووایئ۔ نو الله فرمائي: دا قسم خلك زما د عذابونو نه نشي خلاصیدې بیا الله تعالیٰ خپل تصرف بیان کړیدې چه کائنات ټول د هغه دي، د هیڅا پکې واك نشته نو دغسې دشمنانو ته به عذابونه ورکوي۔

**ربط** : مخکې الله تعالیٰ د یهودیانو بخل بیان کړو دلته ئې نور ناکاره صفتونه بیانوي چه د الله بې ادبي هم کوي چه هغه ته د بخل نسبت کوي۔

## شان نزول

(۱) ابن کثیرؒ او بغويؒ وغیره د محمد بن اسحاقؒ نه او هغه په خپل سند سره د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړیدي چه ابوبکر صدیق رضي الله عنه یوه ورځ د یهودیانو بیت المِدْرَاس (مدرسې) ته ننوتو، هلته ئې ډیر یهودیان وموندل چه د هغوی یو سړي ته راغونډ شوي وو چه د هغه فِنْحَاص بن عَازُوْرَاء نوم وو او دا د هغوی عالِم او حِبر وو او یو بل حِبر د (اَشْیَعْ) په نوم هم ورسره وو نو ابوبکر صدیق ﷺ هغه ته دعوت ورکړو: (وَيْحَكَ يَا

فَنْحَاصُ ! اِتَّقِ اللّٰهَ وَأَسْلِمْ) خوار شے اے فنحاصه ! د الله نه ويريږه، اسلام قبول کړه، يقيناً تا ته معلومه ده چه محمد (ﷺ) د الله رسول دے او تاسو ته ئے د الله د طرفه حق راوړيدے تاسو دا په تورات او انجيل کې ليکلے شوے مونده کوئ (فَـآمِنْ وَصَدِّقْ وَأَقْرِضِ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا يُـدْخِلْكَ الْجَنَّةَ وَيُضَاعِفْ لَكَ الثَّوَابَ) نو ته ايمان راوړه او ددے نبي تصديق وکړه او الله ته ښائسته قرض ورکړه (د الله په لاره کې مال ولګوه) الله به دے جنت ته داخل کړي او دوچنده ثواب به درکړي۔ (کافر ته به هم د مال د لګولو دعوت ورکولے شي ځکه چه هغوی هم د الله په لاره کې د مال په لګولو مکلف دي)۔

فنحاص ووئيل : اے ابوبکره ! ته دا ګمان کوے چه الله زمونږ نه قرض غواړي نو که ستا وينا حقه وي نو الله خو فقير دے چه زمونږ نه قرض غواړي ځکه چه قرض خو محتاج غواړي او مونږ اغنياء يو، زمونږ الله ته هيڅ حاجت نشته۔ (د کفر خبره ئے وکړه، د الله سخته بې ادبي ئے وکړه) نو ابوبکر صديق ﷛ هغه ته په غصه شو او د فنحاص مخ ئے ووهلو او بيا ئے ووئيل : قسم په الله که زمونږ او ستاسو ترمينځ لوظ نه وے ما به ستا څټ وهلے وے نو الله دا آيت د ابوبکر صديق ﷛ د تصديق دپاره نازل کړو۔

(محاسن التاويل، والبغوی وابن کثير، والدر المنثور ٢/٣٩٦، تفسير الطبری ٣/١٩٤، زاد المسير ٢/٦٥، فی ظلال القرآن ١/٥٣٧)

(٢) حافظ ابن مردويهٔ او ابن ابی حاتم رحمهما الله د ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت کړيدے چه کله د سورة بقرے دا آيت نازل شو : ﴿ مَنْ ذَا الَّذِیْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَاعِفَهٗ لَهٗ اَضْعَافًا کَثِيْرَةً ﴾ يعني څوک دے چه الله ته ښائسته قرض ورکړي، پس الله به ئے ورله ښه زيات کړي) نو يهوديانو (حُيَيّ بن اَخْطَب او فَنْحَاص بن عَازُوْرَاء) اُووئيل چه اے محمده ! ستا رب غريب شويدے، پدے وجه د خپلو بندګانو نه قرض غواړي نو دا آيت نازل شو۔

لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ: دا کلمات کله د زجر ورکولو او غضب دپاره استعماليږي لکه دلته شو۔ او کله د شفقت دپاره لکه په سورة المجادله اول آيت کې۔

دوي د الله ډيره بې ادبي وکړه پدے وجه الله تعالیٰ په لام او قد سره تاکيد وکړو۔ چه خامخا يقيناً ما ددے ظالمانو خبره واوريده او زهٔ به سزا ورکوم، دوي کنے وائي چه الله به زمونږ دا خبرے نهٔ آوري، ولے کهٔ د دوي دا عقيده وے چه الله هر څه آوري نو دوي به دومره لويه بې ادبي نهٔ کولے۔ نو الله تعالیٰ هم په کلام کې تاکيد وکړو۔

اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ : ځينې مفسرينو لکه قرطبيؒ وغيره دلته سوال وجواب ليکلے دے چه

یهودیان خو اهل کتاب وو، الله ئے منلو او دائے هم منل چه الله غنی دے او مونږ فقیران یو نو دوی څنګه دا خبره وکړی چه الله فقیر دے او مونږ مالدار یو؟ - نو بیا ئے جواب کړیدے چه د دوی دا عقیده نهٔ وه لیکن په ضعفاؤ ئے تلبیس کولو او په طریقه د جدل او الزام سره ئے دا وئیل او دلته استفهام پټ دے یعنی الله ګنې څه فقیر دے چه مونږ نه قرض غواړی؟ یعنی مطلب ئے دا دے چه الله غنی دے او مونږ فقراء یو او غنی ذات د فقراؤ نه څه نهٔ غواړی نو پدے کی د نبی ﷺ په دعوت باندے رد کول وو چه ستا دا دعوت صحیح نهٔ دے چه تهٔ وائے چه تاسو مالونه ولګوئ نو پدے کی د دوی غرض دا وو چه د عوامو خلکو ذهن د نبی علیه السلام نه واړوی چه دا نبی قرض د الله دپاره غواړی او الله خو څه فقیر نهٔ دے۔ (زبدة التفاسیر ص: ٧٤) تفسیر تبصیر الرحمن ١/١٣٥)

لیکن دا خبره ددے مفسرینو ضعیفه ده او دا د یهودیانو نه د دفاع صورت اختیاروی او حال دا چه یهودیان په کائناتو کی انتهائی غلیظ بی ادبه او بد ترین کافر دی، دوی د الله او د هغه د رسولانو لویه بی ادبی کړیده او د الله لوی دشمنان دی، د دوی د حال نه دا هیڅ بعیده نهٔ وه چه دوی داسے خبره وکړی او د دوی همدا عقیده وه د خپلے مالدارئ په غرور کی راغلی وو او د الله د قدر او احترام نه جاهلان وو لکه د دوی یو ملا دا هم وئیلی وو چه

﴿ مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ مِّنْ شَيْءٍ﴾ (انعام: ٩١)

الله تعالیٰ په بندګانو باندے هیڅ کتاب نهٔ دے نازل کړے۔ د الله د وحی او کتابونو نه منکر وو۔ رسول الله ﷺ حق پیغمبر وو په هغه پورے به ئے توقے کولے نو دا د دوی بی باکی ده چه په الله باندے هیڅ پرواه نهٔ لری او الله ته د فقر نسبت کوی او دغه شان دے ظالمانو دا هم وئیلی وو چه ﴿ يَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ﴾ د الله لاس بند کړے شویدے، خرچه نهٔ کوی لکه سورة المائده (٦٤) آیت کی راغلی دی۔ او دلته ئے (ان الله فقیر) په تاکید سره هم وویلو دا دلیل دے چه دوی دا خبره د زړه نه کوله۔ (البحر المحیط ٣/٤٥٥)

څینی علماؤ دا وئیلی دی چه د دوی علماؤ دا خبره په طریقه د جدل او الزام سره کوله او جاهلانو عوامو ئے په طریقه د عقیدے سره کوله، مګر ظاهر دا ده چه بعض کسانو دا خبره کړے وه او نور خلك پرے غلی پاتی شوی وو نو څکه الله تعالیٰ ټولو ته نسبت وکړو، پدے وجه ټول مجرمان شو چه په دغه مُلا ئے رد ونکړو او دوی پدے خبره راضی پاتی شو۔

فقیر: ډیر خلك په خوله باندے دا خبره نهٔ کوی چه الله محتاج دے لیکن د هغه عمل او طرز داسے وی لکه چه الله تعالیٰ محتاج ګڼری او دے د هغه نه بی حاجته دے مونځ یا زکاة

یا بل عمل په داسې طریقه سره کوی ګویا که الله ورته ددې محتاج ښکاری حال دا چه دې تولو کارونو ته د بنده حاجت دې. ﴿ وَتَوَلَّوا وَاسْتَغْنَى اللَّهُ ﴾ (تغابن: ٦) ﴿ وَأَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنَى ﴾ (اللیل: ٨).

سَنَكْتُبُ : سین د استقبال قریب دپاره دې یعنی زر دې چه ویه لیکو، ځکه چه ملائك ددهٔ د خولې سره سمدست ناست وی لیکل کوی. یا سین د تاکید دپاره دې.

چونکه د دوی دا قول په ضد او عناد باندې بناء وو ځکه الله تعالیٰ تحقیقی جواب ورنکړو بلکه په طریقه د زجر او تخویف سره ئې جواب ورکړو.

ځینې مفسرینو وئیلی دی چه (سَنَكْتُبُ) ئې مضارع راوړه ځکه چه پدې کې د کراماً کاتبین لیکنه نهٔ ده مراد بلکه ددې نه مراد دا دې چه الله تعالیٰ به دوی ته د عذاب اندازه مقرر کړی او ملائکو ته به ووائی چه دوی ته فلانی فلانی قسم عذاب ورکړئ او وخت په وخت به ورته دا عذاب مقرروی. دوی وائی ځکه چه (سَنَكْتُبُ) مضارع صیغه ده چه د کتابت نه اخستې شویده، اندازې ته وئیلې شی (مفردات) او دارنګه روستو (وَقَتْلَهُمُ الْأَنْبِيَاءَ) پرې عطف شوې هم دې چه دا هم د دوی د جنایتونو نه یو جنایت دې یعنی د پیغمبرانو وژنه به هم د دوی په عذاب کې په نظر ونیولې شی او ددې په وجه به هم ورته عذاب مقرر کړی او روستو (وَنَقُولُ ذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ) هم په آخرت کې مراد دې. (عزیز التفاسیر ٨/٢)

## په ګناه باندې راضی کیدل ګناه ده

وَقَتْلَهُمُ الْأَنْبِيَاءَ : دې موجوده یهودیانو خو پیغمبران نهٔ وو وژلی؟ مګر مونږ د سورة البقره آیت (٩١) لاندې لیکلی وو چه دوی د مشرانو په عمل باندې راضی وو او په ګناه باندې راضی کیدل هم ګناه ده. پدې وجه دوی ته هم د قتل نسبت وشو.

د امام شعبیؒ په مجلس کې یو سړی د عثمان ﷺ د قتل صفت وکړو چه ښه کار شویدې نو هغه ورته وفرمایل: (شَرِكْتَ فِيْ دَمِهٖ) تهٔ هم د هغه په قتل کې شریك شوې.

(تفسیر القرطبی ٢٩٤/٣) واللباب)

یا دا چه دوی هم وخت په وخت د رسول الله ﷺ د قتل ارادې کولې.

او قتل د انبیاؤ ئې د دوی ددې وینا سره شریك ذکر کړو پدې کې تنبیه ده چه دا ډیر عظیم او قبیح جرم وو.

وَنَقُولُ : دا وینا به دوی ته د دوی د مرګ په وخت کې کیږی، یا به ورته د حشر په ورځ، یا

په دوارو اوقاتو کې۔
ذُوۡقُوۡا : ذُوق (څکل) په محسوساتو کې استعمالیږي نو اشاره ده چه د دغه عذاب درد به په دوی باندې د محسوس په شان وي۔ او ذُوق لفظ ئې ورله استعمال کړو پدې کې اشاره ده چه دوی انبیاؤ ته د تکلیفونو گوټونه څکولي وو نو الله تعالیٰ دوی ته د عذاب گوټونه څکوي۔ او زجاج وئیلي دي چه ذوق په هغه ځای کې استعمالیږي چه د معافئ نه بیخي نا امیدي وي او دا مستلزم وي سخت غیظ او غضب لره۔
اَلۡحَرِیۡقِ : په معنیٰ د مُحۡرِق سره یعني سوزونکے۔ (چه هډوکے او غوښه او پوستکے ټول به ورله وسوزوي) حریق هغه اُور ته وائي چه لمبے وهي۔

| ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتۡ اَيۡدِيۡكُمۡ |
| --- |
| دا (عذاب) په وجه د هغه عمل دے چه مخکې لیږلي دي لاسونو ستاسو |
| وَاَنَّ اللّٰهَ لَيۡسَ بِظَلَّامٍ لِّلۡعَبِيۡدِ ﴿۱۸۲﴾ |
| او یقیناً نهٔ دے الله هیڅ قسمه ظلم کونکے په بندگانو۔ |

**تفسیر** : دا تتمه د مخکې ده یعني دا ستاسو د عملونو میوه ده چه تاسو ته ملاویږي او دا ظلم نهٔ دے۔
اَيۡدِيۡكُمۡ : غالباً کارونه په لاس کیږي پدے وجه په محاوراتو کې نسبت د کار لاس ته کیږي مراد ترے نفسونه دي۔
وَاَنَّ اللّٰهَ : ددے نه مخکې فعل پټ دے (وَاعۡلَمۡ اَنَّ اللّٰهَ) پدے خبره پوهه شه چه الله هیڅ قسمه ظلم کونکے نهٔ دے۔
یا دا عطف دے په (مَا قَدَّمَتۡ) باندے او د باء سببیه د لاندے دے یعني د عذاب دوه سببه دي (۱) یو دا چه دوی جرمونه کړیدي (۲) دویم دا چه الله تعالیٰ به ددوی سره عدل کوي، د الله د عدل تقاضا دا ده چه دوی ته د دوی د ظلمونو سزا سخته ورکړے شي۔

## سوال وجواب

سوال : ظلام صیغه د مبالغه ده یعني الله ډیر ظلم کونکے نهٔ دے حال دا چه الله ډیر او لږ هیڅ قسمه ظلم نهٔ کوي؟ (۱) جواب دا دے چه دے ته فاعل ذو کذا وائي یعني فاعل د نسبت لکه د تَامِرٌ او لَابِنٌ او دَافِقٌ او عَطَّارٌ او بَزَّازٌ په شان یعني ذُوۡ تَمۡرٍ وَذُوۡ لَبَنٍ وَذُوۡ دَفۡقٍ او ذُوۡ

عطرٍ او ذُوْ بَزّ نو دلته هم ذُوْ ظُلْمٍ مراد دے۔ یعنی الله تعالیٰ د ظلم خاوند نهٔ دے او ظلم ته منسوب نهٔ دے۔

(۲) دویم: ظلام ئے مبالغه راوړیده اشاره ده هرے نوعے د ظلم ته او عَبِيْد ئے جمع راوړه پدے کښی ټول بندګان مراد دی یعنی الله تعالیٰ هیڅ قسم ظلم نهٔ کوی په ټولو بندګانو باندے۔

(۳) جواب: دلته نفی مقید او قید دواړو ته متوجه ده یعنی الله هیڅ ظلم کونکے نهٔ دے نهٔ وړوکے ظلم کوی او نهٔ غټ ظلم۔ (نشر المرجان من مشکلات القرآن ۲۳۶)

(٤) ځینی علماء وائی چه ظلام په خپله معنیٰ پریخودلے شی نو دلته به نفی د زیات ظلم مراد شی او په بل آیت (اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ)(نساء: ٤٠) سره به نفی د وړوکی ظلم وشی نو هر قسم ظلم به د الله نه په دواړو آیتونو کی نفی شی۔

(۵) جمال الدین القاسمیؒ لیکلی دی چه په نفی د ډیر ظلم سره نفی د لږ ظلم په طریق اولیٰ سره راځی ځکه چه کوم شخص ظلم کوی نو هغه پدے وجه چه په ظلم سره ځان ته فائده راکاږی نو هرکله چه زیات ظلم پریدی سره ددے نه چه فائده ئے زیاته وی نو لږ ظلم چه فائده ئے هم کمه ده هغه به په طریق اولیٰ سره پریدی۔ (محاسن التاویل للقاسمی ۲/۱۸٦)

**فائده:** امام راغبؒ لیکلی دی چه عَبِيْد لفظ عام دے هغه بندګانو ته وائی، د الله بندګی کوی او که د غیر الله، او عِبَاد هغه بندګانو ته وائی چه د الله بندګی کوی، آه۔ په بل تعبیر سره عبید د بندګانو غلامانو او د الله بندګانو دواړو ته شاملیږی او عباد صرف د الله بندګانو ته شامل دے۔ مګر دا فرق اکثری دے ځکه چه په سورة النور کی (مِنْ عِبَادِكُمْ) لفظ راغلے دے۔

| اَلَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ عَهِدَ اِلَيْنَآ اَلَّا نُؤْمِنَ |
|---|
| (دا) هغه کسان دی چه وائی دوی یقیناً الله حکم کړیدے مونږ ته چه ایمان به نهٔ راوړو |
| لِرَسُوْلٍ حَتّٰى يَاْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ تَاْكُلُهُ النَّارُ ۭ قُلْ |
| په هیڅ رسول تردے چه راوړی مونږ ته قربانی چه وخوری هغے لره اُور، ووایه! |
| قَدْ جَاۗءَكُمْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِيْ بِالْبَيِّنٰتِ وَبِالَّذِيْ |
| یقیناً راغلی دی تاسو ته ډیر رسولان مخکښی زما نه په ښکاره دلیلونو سره او په هغه شی سره |

قُلْتُمْ فَلِمَ قَتَلْتُمُوهُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿١٨٣﴾

چه تاسو وئیلي وو (یعنی غوښتلي وو) نو ولے وژلي دي تاسو هغوی لره که یئ تاسو رښتیني.

**تفسیر** : پدے آیتِ کریمه کې هم د یهودیانو د یوے بلے دروغجنے دعوے او د الله د طرف نه د هغے د تکذیب بیان دے۔ رسول الله ﷺ ته د یهودیانو یوه جرګه راغله چه په هغے کې د دوی مشران (فنحاص بن عازوراء، مالك بن الصیف او کعب بن اشرف او وهب بن یهوذا) وو، یهودیانو اُووئیل چه ستا دا خیال دے چه تۀ الله مونږ ته رسول رالیږلے یې او په تا باندے ئے کتاب نازل کړیدے او الله خو مونږ ته په تورات کې دا حکم کړیدے چه مونږ به هغه رسول منو او د هغه تصدیق به کوو چه د هغه په وخت کې قربانی (صدقات) په اُور باندے سوزیږی نو که تۀ مونږ ته قربانی راوړے چه اُور ئے وسوزوی نو مونږ به ستا تصدیق وکړو۔ (مقصد ئے دا وو چه اے محمده! (ﷺ) ستا په ذریعه دا معجزه نۀ ده ښکاره شوے پدے وجه مونږ په تا باندے ایمان نۀ راوړو) نو الله تعالیٰ د هغوی په رد کې دا آیت نازل کړو (تفسیر القرآن العظیم لابی القاسم الطبرانی ص ۱۸۳) القرطبی (۲۹۵/٤)

او خپل نبی ته ئے دا جواب وښودلو چه اے زما نبی! ته دوی ته اُووایه! چه تاسو ته خو زما نه مخکې ډیرو انبیاؤ ښکاره نخے راوړیدی او هغه معجزے ئے هم راوړیدی چه د هغے مطالبه تاسو ما نه کوئ بیا که تاسو رښتیني وئ نو هغه مو ولے قتل کړل؟۔

اَلَّذِينَ قَالُوٓا : دا خبر د مبتداء دے (هُمُ الَّذِينَ) دا هغه حذف دی۔ یا دا صفت یا بدل دے د مخکې (قَوْلَ الَّذِينَ) کې د الذین نه۔

بِقُرْبَانٍ : په اصل کې مصدر دے لکه د غُفران او عُدوان او خُسران په شان لیکن قربان هغه شي ته وئیل کیږی چه الله ته د ثواب په نیت وړاندے کیږی او بنده په هغے سره الله ته خان نږدے کوی، برابره ده چه هغه بدنی یا مالی عبادت او یا بل نیک عمل وی او د قربان جمع قرابین راځی۔ (فتح البیان ۳۹۰/۲)

**فائده** : ۱- بنی اسرائیلو چه به کله د ګناه هو نو نه توبه ویستله او د هغے کفاره به ئے ورکوله نو د کفارے په طریقه به چه کله هغوی یو څاروے مثلاً غوا، بزه یا بل حیوان ذبح کړو دے دپاره چه ګناه هو نه ئے معاف شي نو دا سے ځای کې به ئے وا چولو چه آسمان ته به کولاؤ وو نو د آسمان نه به اُور راښکته شو او د غه صدقه به ئے وسوزوله او ایره به شوه نو : ایه ئبه وه چه ګناه ئے معاف شوه او که اُور به رانغلو نو د الله تعالیٰ په دربار کې به دغه

قرباني قبوله نهٔ وه.
(۲) دغـه شان كـلـه بـه ئـے د شكرانے او صدقے په طور دغه قرباني وړاندے كړه. (۳) او دغه شان د بـنـي اسـرائـيـلـو دپاره الله تعالىٰ غنيمت نهٔ وو حلال كړے او ددے امت دپاره ئے خاص حـلال وركـړ،خـولـو نو كله چه به هغوى د كفارو نه غنيمت ونيولو نو هغه به ئے يو ځاى ته راجمع كړو، د اُور د راتللو په انتظار كې به ورته كيناستـل، كه اُور به راغلو نو دا به دليل وو چه ددے مـجـا هـدينو جهاد او اخلاص قبول شويدے او كه نهٔ وه نو دے به په خيانت دلالت كـولـو. (٤) دغـه شـان عـوامـو خـلـكـو بـه د معجزے په طور باندے د انبياؤ نبوت د قرابينو (قـربـانـي سـيـزلـو) په سبب پيژندلو او په بني اسرائيلو كې ځيني پيغمبرانو ته همدا قسم مـعـجـزے وركړے شوے هم وے ليكن بني اسرائيلو دا خبره په الله باندے افتراء او دروغ تړلے وه چه مـونـږ تـه په تـورات كې دا وصيت شويدے چه هيڅ پيغمبر به نهٔ منئ ترڅو چه د هغه قرباني اُور ونهٔ سوزوي.
قُـلْ قَدْ جَآءَكُمْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِيْ : دا الزامي رد او جـواب دے يعني زما نه مخكې تاسو ته ډيـر رسـولان راغـلـي دي او ښـكـاره معجزات ئے راوړيدي او هغه قرباني ئے هم پيش كړيده چه تاسـو ئـے مـطـالـبـه كـوئ نـو بيا تـاسـو ولـے هغه وژلي دي، معلوميږي چه دا اعتراض ستاسـو بې ځايه او تعنتي او ضدي دے، دا الزامي رد دے. او تفصيلي جواب ئے دا دے چه دا خبـره صـحـيـح ده چه په تورات كې ئے دا خبره ليكلے وه ليكن دوى نيمگړے راخستے وه، په تورات كې ورسره دا خبره وه (حَتّٰى يَأْتِيَكُمُ الْمَسِيْحُ وَمُحَمَّدٌ فَإِذَا أَتَيَاكُمْ فَآمِنُوْا بِهِمَا مِنْ غَيْرِ قُرْبَانٍ) تـردے چـه تـاسـو تـه عيسىٰ او مـحـمـد (عليهما السلام) راشي نو كله چه دا دواړه راغلل نو په دوى باندے په غير د قرباني پيش كولو نه ايمان راوړئ. (القرطبي ٤/٢٩٦٥)
بِـالْبَيِّنٰتِ : يـعـنـي دغـه انبياؤ خو نـورے ډيرے ښكاره معجزے پيش كړے وے علاوه د قربانئ پيش كولو نه خو سره ددے نه ئے وژلي دي.
وَبِالَّذِيْ قُلْتُمْ : يـعـنـي په هغه خبره چه تاسو وويله چه هغه د قربانئ خبره ده يعني انبياؤ خو تاسو ته دا هم وئيلي وو چه آخري نبي او مسيح ددے نه مستثنىٰ دي. يا ددے نه مراد دا چـه دغـه انبياؤ ستاسـو دا مطالبه پوره كړے وه چه قرباني به ئے پيش كوله ليكن تاسو هـغـه هم په خپـل حال نهٔ دي پريښي، په هغوى باندے ايمان راوړل خو په ځاى پريده چه ستاسـو پـلارانـو هـغـه وژلي دي او تاسو په هغے باندے راضي يئ. پدے وجه روستو وائي چه دا خلك د انبياؤ تكذيب كونكي دي نو كه ستا تكذيب وكړي نو خفگان مهٔ كوه.

فَلِمَ قَتَلْتُمُوْهُمْ : لکه دوی زکریا او یحییٰ او اشعیاء علیهم السلام وژلی وو۔ نو ددے نه د دوی د دعویٰ دروغجن والے او عناد او تناقض معلومیږی چه کوم شے ددے آخری نبی نه غواړی هغه خو پخوانو انبیاؤ راوړے وو او بیا هم دوی وژلی دی۔ نو پکار ده چه د هغوی حق ئے خو منلے وے۔
اِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ : پخوانی انبیاء خو تاسو نهٔ دی منلی نو که تاسو رشتینی یئ ددے نبی په باره کی دغه خبره د تورات نه ثابته کړئ، تورات راوړئ۔

| فَاِنْ كَذَّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ |
| --- |
| نو که دوی دروغژن کړی تا لره (نو صبر کوه) نو یقیناً دروغژن کړے شویدی ډیر رسولان |
| مِّنْ قَبْلِكَ جَآءُوْا بِالْبَيِّنَاتِ وَالزُّبُرِ وَالْكِتَابِ الْمُنِيْرِ ﴿١٨٤﴾ |
| مخکی ستا نه، راغلی وو هغوی په ښکاره دلیلونو او په واړه کتابونو او په لوی کتاب رڼا کونکی |

**تفسیر** : دا رسول الله ﷺ ته تسلی ده چه تهٔ د دوی په تکذیب باندے خفګان مهٔ کوه که تا دوی ته دغه معجزه پیش نکړه خکه چه دوی ستا نه مخکی د ډیرو پیغمبرانو تکذیب کړے چه هغه لا د دوی خپل قومیان وو او ښکاره معجزات او شریعتونه ئے هم راوړی وو۔
فَاِنْ كَذَّبُوْكَ : ددے جزاء پټه ده۔ فَاصْبِرْ وَلَا تَحْزَنْ۔ صبر کوه او خفګان مهٔ کوه۔
فَقَدْ كُذِّبَ : دا دلیل د جزاء دے۔
جَآءُوْا بِالْبَيِّنَاتِ : دفع د وهم ده چه د پخوانو پیغمبرانو تکذیب به پدے وجه شوے وو چه هغوی به معجزے نهٔ وی ښکاره کړی او ما ته خو الله تعالیٰ ډیر معجزات راکړیدی نو الله فرمائی چه هغوی هم ډیر معجزات پیش کړی وو لیکن دے خلکو کی اهلیت نشته چه حق ومنی۔
بِالْبَيِّنَاتِ وَالزُّبُرِ وَالْكِتَابِ الْمُنِيْرِ : دا جمله په قرآن کریم کی تقریباً څلور ځای استعمال ده۔
(۱) بینات : دلائل عقلیه او زُبر دلائل نقلیه د پخوانو پیغمبرانو نه او کتاب منیر دلیل وحی ته وائی۔ (۲) بینات معجزاتو ته وائی او زبر او کتاب منیر دواړه کتابونو ته وائی لیکن زبر هغه کتابونو ته وائی چه په هغے کی زواجر (زورنے او وعظونه) وی او کتاب منیر هغه کتابونه دی چه په هغے کی تول احکام شرعیه وی لکه تورات او انجیل۔
(۳) فرق : دلائل درے قسمه وی، ضروری، (بدیهی) (۲) نظری، (۳) سمعی نو په بینات

کی دلائل ضروریه (بدیهیه) ته اشاره ده او په الزبر کی نظری دلائلو ته او په الکتاب المنیر کی دلیل سمعی تـه اشاره ده او دا درے قسمه ئے پدے وجه راوړیدی چه مخاطبین درے قسمه دی (۱) غبیان چه په هیڅ نهٔ پو هیږی نو هغوی ته به ښکاره خبره کولے شی او الزبر متوسط خلکو دپاره او الکتاب المنیر د عقلاؤ دپاره وی چه ددے کتاب نه استنباطات کولے شی او رازونه ویستلے شی۔ (فتح البیان سورة الحج)

(٤) ځینی وائی الزبر کی صحیفو د انبیاء علیهم السلام ته اشاره ده او الکتاب المنیر کی تورات او انجیل ته۔

الزُّبر : جمعه د زَبور ده، د زَبَرٌ نه جوړ دے، زجر ته وائی یا ښائسته کولو ته وائی دلته الزبر په معنیٰ د مفعول سره دے یعنی اَلْکُتُبُ الْمَزْبُوْرَۃُ (لیکلے شوی کتابونه) او خاصکر په هغه کتابونو کی استعمالیږی چه په هغے کی زجرونه او وعظونه او فضائل وی او غالباً احکام پکی نهٔ وی لکه صحیفے د ابراهیم او موسیٰ علیهما السلام او زبور کتاب د داود علیه السلام شو۔

| كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُوْرَكُمْ |
| --- |
| هر یو ساه والا څکونکے د مرګ دے او یقیناً پوره به درکړے شی تاسو ته اجرونه ستاسو |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ |
| په ورځ د قیامت، نو څوک چه بچ کړے شو د اُور نه او داخل کړے شو جنت ته |
| فَقَدْ فَازَ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ﴿۱۸۵﴾ |
| نو یقیناً کامیاب شو او نهٔ دے ژوند دنیوی مګر سامان د دهوکے دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی الله تعالیٰ (۱) تخویف (یره) په مرګ سره ورکړیده (۲) او ورسره ایمان والو ته ئے زیرے ورکړیدے (۳) او د جنت فضیلت او د جهنم عظمت ئے بیان کړیدے (٤) او زهد د دنیا ئے بیان کړیدے۔

**مناسبت** : یهود خو فسادونـه کوی او ستا تـکذیب کوی او ایمان نهٔ راوړی خو دا تکلیفونه په مرګ سره ختمیږی، په دنیا کی هیڅ تکلیف همیشه نهٔ وی نو مرګ دیر رانزدے دے، په دنیا کی تـولے بدلے مهٔ غواړئ، ستاسو د نیك عملونو او د صبر بدلے به آخرت کی درکولے شی، هغـه ډیرے لوی دی او د جنت او د جهنم غم وکړئ نو پدے کی

کافرانو ته یره ده چه مرگ درپسے دے، د خپل ځان غم وکړئ، د دنیا په مزو مځ نازیږئ، ډیر معمولی ژوند دے، او ایمان والو ته تسلی او زیرے دے چه د دنیا مصیبتونه په مرگ سره ختمیږی او ستاسو دپاره مزے تیاری دی نو پدے کی دواړو طرفونو ته دعوت دے۔

كُلُّ نَفْسٍ : یعنی هر ساه والا انسان که نبی وی او غیر نبی تول به مرگ څکی، د نفس اطلاق په الله باندے هم کیږی لیکن ددے نه صرف د الله ذات مستثنیٰ دے په استثناء عقلی او شرعی سره۔

نفس کله روح ته وائی او کله بدن ته او کله دواړو ته، دلته ترے دواړه مراد دی، فلاسفه وائی روح نه مری ځکه چه ذائقه څکونکے په وخت د څکنه کی موجود وی نو که هغه مړ شی نو څکنه به د کوم ځای نه راشی لیکن صحیح دا ده چه دواړه مری د بدن مرگ دا دے چه د هغه نه روح جدا شی نو هیڅ حاسه (د معلومات ذریعه) پکی پاتے نشی او د روح مرگ دا دے چه هغه د بدن په واسطه سره کوم لذتونه حاصلول نو کله چه د بدن نه ووتو نو د هغه لذتونو نه محروم شو۔ او، د روح جدا ژوند شته۔

ذَآئِقَةُ : ذائقه ئے ځکه ووئیلو چه دا مرگ همیشه نه وی بلکه په قبر او برزخ کی بیا په آخرت کی به ژوندے کیږی، او د انبیاء علیهم السلام او شهداؤ او د عامو مؤمنانو د روحونو په ژوندون کی فرق وی لکه مخکی (بل احیاء) ذکر شویدی۔

**حکمت**: د مرگ په مقررولو کی د الله تعالیٰ ډیر حکمتونه او رازونه دی که مرگ نه وے لیکلے شوے نو زړونه به ډیر سختیدلے ځکه چه قیامت خو وړاندے راروان دے نو ډیر خلك به نه یریدلے نو اصلاح به ډیره نه کیدلے۔ که مرگ نه وے نو زمکه به د فسادونو نه ډکیدلے، پدے وجه عمر فاروق ﷺ په خپله گوتمه کی لیکلی وو : (كَفٰى بِالْمَوْتِ وَاعِظًا) مرگ د انسان دپاره پوره نصیحت کونکے او د فسادونو نه منع کونکے دے۔

وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ : یعنی که په دنیا کی اگرکه په ښو او بدو باندے ښه او بد اثر مرتب کیږی مگر پوره جزا یا سزا به د قیا ت په ورځ هر چا ته ورکړے شی۔ دغه شان قبر کی بعض اجرونه ورکولے شی نه پوره۔ (زمخشری)

اجورکم : یعنی اجرونه د نیك عملونو ستاسو۔

أُجُوْرَكُمْ : الله تعالیٰ زمونږ ذهن جوړوی چه د اُور نه بچ کیدل لوېه کامیابی ده، پدے وجه رسول الله ﷺ د اُور نه د بچ کیدو طریقے خودلی وی. په یو حدیث کی ئے فرمایلی دی : چا چه د ورځے درے سوه شپیته نیکئ وکړے (وَقَدْ زَحْزَحَ نَفْسَهُ عَنِ النَّارِ) یقیناً هغه خپل ځان

د اُور نه بچ وساتو۔ (صحیح مسلم : ۲۳۷۷)

او امام احمد د عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما نه روایت راوړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل: (مَنْ أَحَبَّ أَنْ يُزَحْزَحَ عَنِ النَّارِ وَيَدْخُلَ الْجَنَّةَ فَلْتُدْرِكْهُ مَنِيَّتُهُ وَهُوَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلْيَأْتِ إِلَى النَّاسِ مَا يُحِبُّ أَنْ يُؤْتَى إِلَيْهِ) (مسند احمد رقم (۶۸۰۷) واخرجه مسلم ایضا)

که څوك غواړی چه د اُور نه بچ شی او جنت ته داخل شی نو هغه ته دے په داسے حال کی مرګ راشی چه هغه په الله او په ورځ د آخرت ایمان لری او خلکو ته دے په هغه څه راتلل کوی په کوم چه دے غواړی چه دهٔ ته پرے راتلل وکړے شی۔ (یعنی نرمی او احسان او خیر خواهی)

زُحْزِحَ : د زَحْزَحَةٌ نه دے، وړاندیے والے او یو طرف کولو ته وائی د زَحٌ نه دے په جلتئ سره یو شے راښکلو ته وائی (کشاف، فتح البیان ۲/۳۹۳)

فَقَدْ فَازَ : فوز : ګټے حاصلولو او خساره لرے کیدو ته وائی۔ (ابن کثیر)

وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ : متاع هغه شی ته وائی چه د هغے نه لږه فائده اخستے شی بیا زرختمیږی۔ عکرمهٔ وئیلی دی لکه تبر، کاسه، کټوئ وغیره (قرطبیؒ)

(۲) زمخشری وئیلی دی چه متاع هغه سامان دے چه یو مشتری ئے په دهوکے سره سودا وکړی روستو ورته د هغے فساد (ردی والے) معلوم شی۔

الْغُرُوْرِ : دا یا مصدر دے (یعنی دهوکه کیدل) یا جمع د غارٌ ده (دهوکه ورکونکے) ځینی وائی : غرور هر هغه زر ختمیدونکے شے دے چه انسان دوکه کوی۔

دنیا تـه ئے د دهوکے سامان وویلو وجه دا ده چه ددنیا لذات او عارضی خوندونه انسان د همیشه کامیابئ نه منع کوی۔ نو د دنیا حقیقت ویېژنه چه دهوکه پرے نشے۔

دلتـه د (الحیـوة الـدنیا) نه مراد هغه ژوند دے چه د انسان نه د دنیا په حاصلولو کی تیر شی او آخرت ته پکی هیڅ توجه ونکړی نو دا د بنده دپاره د دهوکے سامان جوړ شو۔ یعنی که څوك د جنت نه ابدی طور سره محروم شی او دوزخ ته داخل شی نو هغه سړے ناکام شـو اګرکـه په دنیا کی به ورتـه ځان کـامیاب ښکاری خو دهٔ دپاره دنیا په حقیقی توګه سامان د دهوکے دے۔

او کـلـه چه نیکان خلك ئے په طاعاتو او عباداتو کی او د آخرت په طلب کی تیر کړی نو د هغـوی دپاره دنیاوی ژوند متاع البلوغ (مقصد ته د رسیدو) وسیله ګرځی۔ (سعید بن جبیر، فتح البیان ۲/۳۹۳)

د دنیا داسے مثال دے لکه یو تن په یوه لاره کی کنده ویستلی وی او دپاسه ئے پرے څه اچولی وی خلکو ته هغه هواره لاره ښکاری، گمان کوی چه پدے به اخوا واوړم او یو کامیابئ او مقصد ته به ورسیږم خو چه دلته راورسی سمدست پکی گوزارشی او هلاك شی، انسان ته هم د دنیا مزے، خوانی، مال ومتاع وغیره ورته همیشه ښکاری خو سمدست پرے مرگ راشی او سیده الله ته ورشی۔ نو د کامیابئ لاره دا ده چه بنده په دنیا باندے دهوکه نشی بلکه پدے کی د آخرت او د جنت دپاره کار وکړی بیا الله تعالیٰ انسان ته د دنیا نه فائدے ورکوی۔

| لَتُبْلَوُنَّ فِيْ أَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ |
| --- |
| خامخا امتحان به راوستلے شی په تاسو په مالونو ستاسو کی او په نفسونو ستاسو کی |
| وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ |
| او خامخا اوریئ به تاسو د هغه کسانو نه چه ورکړے شویدے کتاب مخکی ستاسونه او د |
| الَّذِيْنَ أَشْرَكُوْا أَذًى كَثِيْرًا وَإِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا |
| هغه کسانو نه چه شرك ئے کړیدے ضرر ډیر او که تاسو صبر کوئ او تقویٰ کوئ |
| فَإِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُوْرِ ﴿۱۸۶﴾ |
| نو یقیناً دا د پخو کارونو نه دی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی الله تعالیٰ ایمان والو ته حکم کوی په صبر په مصیبتونو باندے چه په تاسو به قسماقسم امتحانات راځی، د اهل کتابو او مشرکانو نه به سپکے سپورے خبرے آوریٔ او ترغیب دے دوه خبرو ته چه پدے امتحاناتو کی صبر او تقویٰ اختیار کړئ دا داسے آیت دے لکه سورة البقره آیت (۱۵۵) کی (وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِنَ الْخَوْفِ) تیر شوے وو۔

شان نزول

هرکله چه یهودیانو او مشرکانو رسول الله ﷺ لره ډیر زیات خفه کړو نو الله تعالیٰ د هغه د تسلیٔ دپاره دا آیتونه نازل کړل،

مشرکانو به نبی کریم ﷺ ته جادوگر او شاعر او نور غلط نومونه ورکول۔

د کعب بن الاشرف یهودی په باره کی رسول الله ﷺ وفرمایل:

(مَنْ لِكَعْبِ بْنِ الْأَشْرَفِ فَإِنَّهُ قَدْ آذَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ)

یعنی څوك دے چه كعب بن الاشرف یهودی ووژنی ځکه چه هغه الله او د هغه رسول ته ضرر ورکړیدے۔ ځکه چه دغه كعب شاعر وو چه په رسول الله ﷺ پسے به ئے ناکاره اشعار وئیل او د مسلمانانو د ښځو ښائست او جمال به ئے په اشعارو کی یادولو۔ دارنګه د ابورافع په باره کی رسول الله ﷺ حکم کړے وو چه هغه هم قتل کړی۔ او رئیس المنافقین عبد الله بن ابی ابن سلول به د رسول الله ﷺ پسے خبرے کولے او د عائشه رضی الله عنها پورے ئے بهتان تړلے وو۔

په صحیح بخاری رقم الحدیث (٦٢٥٤) و (٢٦٩١) کی ئے یو مصداق داسے هم راغلے دے چه رسول الله ﷺ یوه ورځ د یو صحابی (سعد بن عباده ﷺ) بیمار پرسئ ته روان وو نو په یو مجلس ورتیر شو چه په هغے کی مسلمانان هم وو او مشرکان هم (او پدے وخت کی ابن سلول لا ایمان نهٔ وو ښکاره کړے) نو کله چه دغه مجلس ته ورسیدو نو خر متیازے وکړے نو رئیس المنافقین ابن سلول وویل چه دا خر دے زما خوا نه لرے کړه (فَإِنَّهُ قَدْ آذَانِيْ نَتْنُ حِمَارِكَ) ستا د خر نه بدبوئی خی چه زهٔ ئے په تکلیف کی کړم۔ نو پدے کی عبد الله بن رواحه ﷺ وفرمایل: (وَاللَّهِ لَحِمَارُ رَسُوْلِ اللَّهِ ﷺ أَطْيَبُ رِيْحًا مِنْكَ) قسم په الله د رسول الله ﷺ خر ستا نه ډیر خوشبویه دے۔ نو پدے کی یو تن ابن سلول دپاره غصه شو نو پدے کی جګړه جوړه شوه نو رسول الله ﷺ دواړه طرفونه په آرام کړل بیا ترے روان شو او د سعد بن عبادهٔ خوا ته ورغلو، هغه ته ئے کیله وکړه، هغه وفرمایل: اے د الله رسوله! تاسو مهٔ خفه کیږئ ستاسو د راتللو نه مخکی دا شے مونږ مشر کاوه، تاج مو ورله جوړ کړے وو ورته په سر کولو مو لیکن هرکله چه تهٔ راغلے نو ددهٔ مشری ختمه شوه نو ددهٔ دا ګمان دے چه تا ترے مشری اخستے ده نو ځکه دا ورانے کوی۔ او په یو بل روایت د بخاری کی دی چه سعدٔ رسول الله ﷺ ته وفرمایل چه اے د الله رسوله! ابن سلول معاف کړه نو رسول الله ﷺ هغه معاف کړو۔ او په دغه زمانه کی د رسول الله ﷺ همدغه رویه د نورو یهودیانو او منافقانو سره هم پاتے شوے وه، او دا هغه زمان. ه چه د بدر جنګ لا نهٔ وو شوے نو الله وفرمایل چه اُوس د صبر نه کار واخلئ اُوس لا د یهودیانو او منافقانو د چیرلو موقعه نهٔ ده راغلے۔ خو کله چه د بدر په میدان کی د قریشو سرداران اُووژل شول، نو عبد الله بن اُبی خپلو ملګرو ته اُووئیل چه دا دین خو غالبه کیږی پدے وجه راځئ چه د محمد (ﷺ) په لاس د اسلام اعلان اُوکړو۔ معلومه شوه چه څوك اسلام ته دعوت ورکوی او خیر طرف

تـه خلق رابلي او د شر نه خلق منع كوي نو هغه به مصيبتونه او تكليفونه ضرور برداشت كوي۔ (تيسير الرحمن)
دارنګه امام زهريؒ فرمائي: د اُوتوا الكتاب نه مراد كعب بن الاشرف دے او ابن جريجؒ وائي چه يهود او نصارىٰ دي چه مسلمانانو به د يهوديانو نه آوريدل چه وئيل به ئے عزير ابن الله (عزير د الله ځوي دے) او نصاراؤ به وئيل چه مسيح ابن الله دے۔
لَتُبۡلَوُنَّ فِيۡٓ اَمۡوَالِكُمۡ : د مال امتحان دا دے چه كله به كاروكسب نۀ لګيږي، پيسے به درنه وركے شي، كاروبار كي به تاوان وكړے، خرچه به دے په كور كي نۀ وي، كله به داسے ابتلاء وي چه الله بـه حكـم وكړي چـه مـال ولـګـوئ۔ مال ئے مخكي كړو ځكه چه پدے كي امتحانات زيات وي۔
وَاَنۡفُسِكُمۡ : د نفـس امتـحـان دا دے چـه بيـماري، تـكـليـفـونـه، قيد او بند، زخمونـه او مصيبتونه او قتلونه به راشي، او ملګري به وفات شي۔ (قرطبي)
حسن بصريؒ پدے كي دا هم داخل كړيدي چه په مال امتحان دا دے چه زكاة به وركوے او حج بـه پـرے كـوے او د نفس امتحان دا دے چه مونځونه به كوے۔ مګر دا متحانات آسان دي دلته قدري امتحانات مراد دي۔
وَمِنَ الَّذِيۡنَ اَشۡرَكُوۡۤا : يـعنى په تاسو پسے به اهل كتاب او عام مشركان دواړه خبرے كوي، يـعني مليان او جاهلان دواړه به درپسے لګيا وي، كنځلے به كوي، كله به وائي، د انګريزانو پيداوار دے او شيعه ګان دي او وهابيان او بي ادبه دي، كله به وائي بي مذهبه دي، لكه نبي كريم ﷺ او صحابه كرامؓ ددے دواړو ډلو نه په تكليف كي اخته وو۔
اَذًى كَثِيۡرًا : د اذى اطـلاق په هغه تكليفونو باندے كيږي چه د ژبي نه راوځي نو دا لفظ د دوي شركي اقوالو او په نبي كريم ﷺ او قرآن باندے طعن او تنقيد كولو او كنځلو او ردو بدو او مؤمنان په شعرونو او نثرونو كي بد يادولو او نورو بهتانونو ترلو ته شامل دے۔
وَاِنۡ تَصۡبِرُوۡا : يـعـنـي كله به ددے خلكو سره د جهاد كولو موقعه نۀ وي نو بيا به د دوي په خلاف د صبر او تقوىٰ نه كار اخلئ۔
صبر دا دے چه انسان تكليف او مصيبت برداشت كړي او تقوىٰ دا ده چه د نا مناسبه خبرو نه ځان وساتي۔
ذٰلِكَ مِنۡ عَزۡمِ الۡاُمُوۡرِ : عـطـاء بن ابي رباحؒ معنىٰ كوي: مِنۡ حَقَائِقِ الۡاِيۡمَانِ۔ يـعني چا كي چه صبر او تقوىٰ راغله نو د ايمان حقيقت ته ورسيدو ليكن دا ئے حاصل تفسير كړيدے۔

لفظي معنیٰ ئې دا ده چه عزم مصدر په معنیٰ د مفعول (مَعْزُوْم) سره دے۔ اَیِ الْاُمُوْرِ الْمَعْزُوْمَةِ عَلَیْهَا اَوْ مِمَّا یَجِبُ عَلَیْکُمْ اَنْ تَعْزِمُوْا عَلَیْهِ) ۔ یعنی په تکلیفونو کی صبر او تقویٰ نه کار اخستل د هغه کارونو نه دی چه پدے باندے پکار ده چه هر څوك کلکوالے وکړی او ددے کلکه اراده وکړی او ځان پرے مضبوط کړی او تاسو ته هم دا حکم دے چه پدے باندے کلك والے وکړئ ځکه چه پدے کی پوره عزت او شرافت دے۔ یا (مِنَ الْاُمُوْرِ الَّتِیْ عَزَمَهَا اللّٰهُ) دا د هغه کارونو نه دی چه الله تعالیٰ په بندگانو لازم کړیدی او واجب ئې گرځولی دی چه دا به کوی۔ (روح المعانی ١٤٨/٤، فتح البیان ٣٩٥/٢)

او په بل تعبیر سره داسے وئیلے شی چه دا هغه کارونه دی چه د هغے د کتهور توب فیصله شویده۔

او په ساده پښتو کی ئې معنیٰ ده چه دا د پخو کارونو نه دی چه چا دا کارونه وکړل نو دهٔ پوخ کار وکړو، دشمن ئې ووهلو ځکه چه پدے کارونو اختیارولو سره دشمن وهلے کیږی۔

او عزم په اصل کی (ثَبَاتُ الرَّاْیِ عَلَی الشَّیْءِ اِلٰی اِمْضَائِهٖ) ته وائی یعنی په یو شی باندے د هغے د پوره کیدو پورے رایه مضبوط ساتلو ته وائی۔ (فتح البیان) یعنی پوخ قصد کول۔

علامه ابن عاشورؒ لیکی چه د (اِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا) جزاء پټه ده۔ اَیْ تَنَالُوْا ثَوَابَ اَهْلِ الْعَزْمِ۔ که تاسو صبر او تقویٰ وکړه نو د عزم والو ثواب به حاصل کړئ ځکه چه دا د عزم کارونه دی۔ (التحریر والتنویر ٢٠٧/٣)

**فائده** : کومو علماؤ چه دا وئیلی دی چه دا آیتونه د قتال په آیت باندے منسوخ دی نو دا صحیح خبره نهٔ ده ځکه چه دا د دعوت د باب متعلق بنائسته اخلاق دی او په اخلاقو کی نسخ نهٔ وی۔

**فائده ٢**: الله تعالیٰ ایمان والو ته دا خبر ورکړو چه تاسو ته به د اهل کتابو او مشرکانو نه تکلیفونه رسیږی پدے خبر ورکولو کی ډیر فوائد دی:

(١) یو دا چه دا د الله تعالیٰ د حکمت تقاضا ده چه دغسے به کوی دے دپاره چه رشتینی مؤمن د نورو نه جدا شی۔ (٢) الله تعالیٰ په مؤمنانو باندے دا کارونه مقرروی دے دپاره چه پدے سره د دوی درجات پورته کړی او د دوی گناهونه ورژوی، او د دوی ایمان او یقین مضبوط شی۔ (٣) دے دپاره چه د مؤمنانو نفسونه د مخکی نه دے خبرے ته تیار شی او کله چه واقع شی نو په هغے صبر وکړی ځکه چه بنده کله مخکی نه تیار وی نو بیا پرے مصیبت آسانیږی او صبر او تقویٰ اختیارولو ته محتاج کیږی او هغے ته پناهی وروړی۔

(تفسیر السعدی ۱/ ۱۶۰) والمنار (۲۲۱/٤)

| وَإِذْ أَخَذَ اللهُ مِيثَاقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ |
|---|
| او کله چه اخستے وه الله تعالیٰ وعده د هغه کسانو نه چه ورکړے شویدے کتاب |
| لَتُبَيِّنُنَّهُ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُونَهُ فَنَبَذُوهُ وَرَآءَ |
| خامخا تاسو به بیانوئ دا خلکو ته او نهٔ به پټوئ دے لره نو گوزار کړو دوی هغه روستو |
| ظُهُورِهِمْ وَاشْتَرَوْا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُونَ ﴿۱۸۷﴾ |
| د شاگانو خپلو نه او واخستو په هغے سره قیمت لږ (دنیا) نو بد دے هغه شے چه دوی ئے اخلی۔ |

**تفسیر** : پدے کی الله تعالیٰ د اهل کتابو بل عیب بیانوی چه دوی حق پټ کړیدے او عهد ئے مات کړیدے او په هغے باندے زجر ورکوی۔

**ربط** : ۱- پدے کی د اهل کتابو د تکلیفونو ورکولو مثال ذکر دے چه هغه دا چه د دوی په کتاب کی د رسول الله ﷺ د نبوت دلیلونه موجود وو مگر دوی هغه پټ کړی وو۔ نو دوی به مسلمانانو ته یو تکلیف دا ورکولو چه خلکو ته به ئے رشتیا نهٔ وئیل او حقائق به ئے ترے پټ ساتل حال دا چه د دوی نه الله تعالیٰ دا لوظ اخستے وو چه ستاسو دے قسم وی چه دا کار به نهٔ کوئ خو دوی همدغه عهد شاته گوزار کړو او پیسے ئے پرے واخستے نو ډیر بد کار ئے وکړو چه د الله د لوظ په مقابله کی ئے دنیا متاع الغرور واخسته۔

۲- یا مخکی ایذاء ذکر شوه نو دلته د دوی عدم نفع الناس (خلکو ته فائده نهٔ رسول) ذکر کیږی۔

أُوتُوا الْكِتَابَ : د دوی نه مراد یهود او نصاریٰ دی یا صرف یهودیان دی بنا بر اختلاف۔ او د دوی نه دا لوظ د دوی د انبیاؤ او رسولانو په ژبه اخستے شوے وو۔ او دا لوظ په دوه خبرو وو (۱) لَتُبَيِّنُنَّهُ لِلنَّاسِ۔ یعنی ددے کتاب ټول احکام او خبرونه به بیانوئ چه یو په هغے کی د رسول الله ﷺ د نبوت خبر هم دے۔

(۲) دویم : وَلَا تَكْتُمُونَهُ۔ یعنی پدے کتاب کی به عمداً تاویلات او تحریفات نهٔ کوئ او پدے کی به باطل شبهات نهٔ پیدا کوئ چه د هغے په وجه خلك د حق نه منع شی۔ (فتح البیان ۲/ ۳۹۶ و التحریر والتنویر ۳/ ۳۰۲) وروح المعانی (۱٤۸/٤)

۱- پدے وجه ئے د بیان نه روستو عدم کتمان ذکر کړو۔

۲- بعض وائي : د بیان نه مراد دا دے چه په ژبه ئے بیان کړئ او د (وَلَا تَكْتُمُوْنَهٗ) معنىٰ دا ده
چه عملًا ئے واضحه کړئ- (روح المعاني)
۳- یا دا چه خلکو ته ئے بیان کړئ او غلط تاویلات پکې مهٔ کوئ او د دویمے جملے معنىٰ
دا ده چـه کـلـه ستاسو نه ددے مطالبه وشي او بیانولو ته ئے ضرورت راپیښ شي نو په هغے
باندے به سترګے نهٔ پټوئ- (عزیز التفاسیر)
لَتُبَيِّنُنَّهٗ : کې لام مـوطـئـه للقسم دے یعنې الله دوی سره دا لوظ په قسم ورکولو سره کړے
وو-
فَنَبَذُوْهُ : فـاء ئے راوړه چـه دلالت کوی په تعقیب مع الوصل باندے پدے کې اشاره ده چه
دوی دے لـوظ مـاتـولـو تـه ډیره جلتي وکړه، ددے لوظ د اخستو دومره وخت لا نهٔ وو شوے
چـه دوی سـمدسـت مـات کـړو- او ابـن عـاشـورؒ وائي چـه پدے کې اشاره ده چـه دا لوظ د
یهـودیـانـو عـلـماؤ ګوزار کړے وو په هغه زمانو کې چه د رسول الله ﷺ نبوت ته نژدے وو
یـعـنـې کـلـه چـه دغـه علماء ددے کتاب په ښکاره کولو قادر شو او په ځان کې ئے دا قدرت
ولیـدو چه دوی پـه کتاب پو هه شو او ددے په معانیو کې تصرف کولے شي نو دغه علم او
قـدرت ئے ددے دپاره وسیله جوړه کړه چه بد بد تحریفات ئے پکې وکړل او هغه ئے د خلکو
نـه پـټ وسـاتـلـو- یـا دا تعقیب پدے اعـتبار سره دے چه د دوی دنیا سره او د هغے د مال سره
ډیره مینه وه نو سمدست ئے دغه کتاب ذریعه د دنیا وګرځوله او هغه ئے ګوزار کړو (التنویر
والتحریر ۳/۲۰۳)
وَاشْتَرَوْا بِهٖ : (۱) ضمیر راجع دے ایمان تـه، ۲- یا د الله کتاب ته چه دوی پکې تحریف
وکړو- ۳- یا میـثـاق تـه- ٤- یا کتمان ته، لکه بعض بادشاهانو ځینو یهودیانو له مال ورکړو
او بیـا ئے ورتـه وویـل چه دا آخري نبي هغه رسول دے کوم چه ستاسو کتابونو کې وو؟ نو
دوی وویل چه دا هغه نهٔ دے، حق ئے پټ کړو-
**فائده** : دلتـه دا قـاعـده ده چـه په قرآن او حدیث کې د اهل کتابو کوم عیب ذکر شي نو
هغـه بـه دے امت تـه هـم شـامـل وي اګرکه عام احکام د اهل کتابو جدا دي ددے امت نه-
لیـکـن په عیبونو او نیکیو کې دا امت د هغوی سره شریك دے- دا وجه ده عامو مفسرینو
د سلفو نه نقل کړیدي چه دا میثاق دے امت تـه هم شامل دے-
قتاده رحمه الله فرمائي : هٰذَا مِيْثَاقٌ أَخَذَهُ اللّٰهُ عَلٰى أَهْلِ الْعِلْمِ فَمَنْ عَلِمَ شَيْئًا فَلْيُعَلِّمْهُ النَّاسَ
وَإِيَّاكُمْ وَكِتْمَانَ الْعِلْمِ، فَإِنَّ كِتْمَانَ الْعِلْمِ هَلَكَةٌ (دا وعـده الله تـعـالىٰ د ټولو اهل علمو نه

اخستے دہ نو چا تہ چہ یوہ خبرہ د علم معلومہ وی نو ھغہ دے خلکو تہ بیان کړی او د علم د پټولو نہ ځان وساتی؛ ځکہ چہ د علم پټول ھلاکت دے۔

د قتادةؒ نہ دا ھم نقل دی : [طُوبٰى لِعَالِمٍ نَاطِقٍ وَّمُسْتَمِعٍ وَّاعٍ، هٰذَا عَلِمَ عِلْمًا فَبَذَلَهٗ، وَهٰذَا سَمِعَ خَيْرًا فَقَبِلَهٗ وَوَعَاهُ] (خوشحالی دیٰ وی ھغہ ھغہ عالم لرہ چہ حق بیانونکے وی او ھغہ آوریدونکی لرہ چہ خبرہ یادونکے وی، دے یو علم زدہ کړو نو خلکو تہ ئے ھغہ خرچ کړو او دے بل خیر واوریدو نو ھغہ ئے قبول کړو او یاد ئے کړو)۔

او ترمذیؒ او ابوداوُدؒ د ابو ھریرہ ﷜ نہ روایت راوړیدے چہ رسول اللہ ﷺ وفرمایل: (مَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ يَعْلَمُهٗ فَكَتَمَهٗ أُلْجِمَ بِلِجَامٍ مِنْ نَارٍ) (الترمذی، احمد، ابوداود، وابن ماجه وهو حديث صحيح)۔ چا نہ چہ د یو علم پہ بارہ کی پوښتنہ وشوہ چہ ھغہ پرے پوھیدو او ھغہ پټ کړو نو د اور وارے بہ ورتہ واچولے شی)۔

او سیدنا ابو ھریرہ ﷜ وفرمایل: (لَوْلَا مَا أَخَذَ اللّٰهُ الْمِيثَاقَ عَلٰى أَهْلِ الْكِتَابِ مَا حَدَّثْتُكُمْ بِشَيْءٍ ثُمَّ تَلَا هٰذِهِ الْآيَةَ)۔ کہ اللہ تعالیٰ د کتاب والو (یعنی ټولو علماؤ) نہ دا وعدہ نۀ وے اخستے نو ما بہ تاسو تہ ھیڅ حدیث نۀ وے بیان کړے بیا ئے دا آیت ولوستو۔

(فتح البيان ۲/۳۹٦، و۳۹۷) والدر المنثور (٤/۱٦۹) فتح القدير للشوكانی (۲/٦٤) اللباب (۱/۱۳۳٦) البغوی (۲/۱٤۹) السراج المنير (۱/۲۲۰) ابن كثير (۲/۱۸۱)

حسن بن عمارةؒ وائی: زھریؒ تہ ورغلم پس د ھغے نہ چہ ھغہ حدیثونہ بیانول پریخی وو نو ما پہ دروازہ کی ومونډو ورتہ مے وویل چہ زما ارادہ دہ چہ ما تہ حدیثونہ بیان کړہ۔ ھغہ وویل : آیا تا تہ پتہ نشتہ چہ ما حدیثونہ بیانول پریښی دی؟، ما وویل : یا بہ راتہ حدیثونہ بیانوے یا بہ درتہ زۀ حدیث بیان کړم۔ ما تہ ئے وویل تۀ ئے بیان کړہ : ما ورتہ وویل چہ ما د حَکم بن عُیَیْنَةؒ نہ ھغہ د یحیی بن الخرازؒ نہ ھغہ د علی بن ابی طالب ﷜ نہ آوریدلی دی چہ فرمایل ئے : [مَا أَخَذَ اللّٰهُ عَلٰى أَهْلِ الْجَهْلِ أَنْ يَّتَعَلَّمُوْا حَتّٰى أَخَذَ عَلٰى أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يُّعَلِّمُوْا قَالَ : فَحَدَّثَنِيْ أَرْبَعِيْنَ حَدِيْثًا]۔ اللہ تعالیٰ پہ جاھلانو باندے د علم پہ زدہ کړہ کی دومرہ نیوکہ نۀ دہ کړے څومرہ ئے چہ پہ اھل علمو باندے د ھغوی پہ علم بیانولو کی نیوکہ کړے دہ (چہ دوی بہ خامخا علم بیانوی) ھغہ وائی : نو امام زھریؒ ما تہ (ددے پہ آوریدو سرہ) څلویښت حدیثونہ بیان کړل۔ (تفسير الخازن ۱/۳۳۰)

دغہ شان اقوال د حسن بصریؒ او محمد بن کعب القُرظیؒ نہ ھم نقل دی چہ دا آیت ھر عالم تہ شامل دے۔ (فتح البیان)

حافظ ابن كثيرؒ ليكي: (فَعَلَى الْعُلَمَاءِ أَنْ يَبْذُلُوا مَا بِأَيْدِيهِمْ مِنَ الْعِلْمِ النَّافِعِ الدَّالِّ عَلَى الْعَمَلِ الصَّالِحِ وَلَا يَكْتُمُوا مِنْهُ شَيْئًا) - نو (ددې نه روستو) په علماؤ باندې لازم دي چه د دوى په لاسونو كې كوم فائده مند علم وى كوم چه د عمل صالح ښودنه كوى هغه خلكو ته وښائى او د هغې نه دې هيڅ نهٔ پټوى) (ابن كثير ٢/١٨١)

نو معلومه شو چه عالِم به توحيد، او دين اسلام او د هغې احكام نهٔ پټوى د خلكو د يرې نه يا د دنيا د لالچ د وجه نه، يا د چا د ملامتيا يا د عهدې د زائله كيدو نه يريږي.

| لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ بِمَا أَتَوْا |
|---|
| گمان مهٔ كوه په هغه كسانو چه خوشحاليږي په هغه كار چه دوى ورته راتگ وكړي |
| وَّيُحِبُّوْنَ أَنْ يُّحْمَدُوْا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوْا |
| او خوښوى دوى چه صفت وكړے شي د دوى په هغه كار چه دوى نهٔ دے كړے |
| فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيْمٌ ﴿١٨٨﴾ |
| نو گمان مهٔ كوه په دوى باندې په بچ كيدو د عذاب نه او دوى دپاره عذاب دردناك دے. |

**تفسير**: پدې آيت كې د يهوديانو بل عيب ذكر دے چه د حق كار نكوى او ښه كار نهٔ كوى او د خلكو نه دا مطالبه كوى چه مونږ ته حق پرست ووايئ او زمونږ صفت وكړئ نو دا ډير قبيح عمل دے يو تن جهاد ته نهٔ دے تلے او د دين دعوت ئے نهٔ دے كړے او دا غواړى چه ما ته دې مجاهد او داعي وويل شي. په بل تعبيره سره داسے وئيلے شي چه پدې آيت كريمه كې د هغه ټولو خلكو بدى بيان شويده چه د رياكارئ او نوم او شهرت دپاره كار كوى او خومره ئے چه نهٔ وى كړى د هغې نه زيات ښكاره كوى، يا يو صفت په هغوى كې نهٔ وى او خپل ځان طرف ته ئے منسوب كوى.

امام احمدؒ او امام مسلمؒ روايت راوړيدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل: [مَنِ ادَّعَى دَعْوَى كَاذِبَةً لِيَتَكَثَّرَ بِهَا لَمْ يَزِدْهُ اللَّهُ إِلَّا قِلَّةً] (بخارى: ٦١٠٥، ٦٦٥٢ ومسلم: ١١٠)

((چا چه د خپل ځان دپاره د دروغو دعوه اُوكړه دے دپاره چه د خلقو مخے ته لوئى ښكاره شي نو الله به د هغه وقار (عزت) كم كړى)). يو بل حديث دے چه په صحيحينو كې روايت شويدے چه [الْمُتَشَبِّعُ بِمَا لَمْ يُعْطَ كَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُوْرٍ] ((څوك د يو داسے صفت دعوىٰ اُوكړى چه الله هغه له نهٔ دے وركړے نو دا داسے دے لكه د دروغو او د دهوكے دوه جامے ئے چه

اغوستی وی))۔ (مسلم : ۲۱۲۹)

## شان نزول

(۱) مفسرینو ددے آیت د شان نزول بیانولو دپاره د بخاری او مسلم دا روایت نقل کریدے چه مروان بن الحکم (کله چه په مدینه باندے امیر وو) خپل دربانچی (رافع) ته اُووئیل چه ابن عباسؓ خوا ته لاړ شه او پوښتنه ترے اُوکړه چه ددے آیت په تقاضا که هر بنده ته چه په خپل موجود شی باندے خوشحالیږی (یعنی چه یو نیك عمل وکړی په هغے خوشحالیږی) او خوښوی چه دۀ څه نۀ وی کړی په هغے باندے ددۀ صفت اُوشی، عذاب ورکړے شی نو آیا مونږ ټولو ته به عذاب ملاویږی ؟ نو ابن عباس رضی الله عنهما اُووئیل چه دا آیت د اهل کتابو په باره کی نازل شوے وو۔

بیا ابن عباسؓ ﴿وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ﴾ والا آیت اُولوستلو او وے وئیل چه رسول الله ﷺ د مدینے د یهودیانو نه د تورات یوه خبره اُوتپوسله نو هغوی هغه پټه کړه او بدله ئے کړه، بله خبره ئے بیان کړه او کله چه د هغه ځای نه لاړل نو خوشحاله وو چه رسول الله ﷺ ته ئے دا خودل چه مونږ دۀ ته صحیح جواب ورکړیدے او د هغه نه ئے دا غوښتل چه زمونږ صفت وکړی او دوی چه دا کوم کتمان د خبرے وکړو نو پدے باندے خوشحاله هم وو (چه مونږ رسول الله ﷺ ته جواب هم ورکړو او صحیح خبره مو ترے پټه هم کړه)۔ نو دا آیت نازل شو۔ (یعنی جواب ئے هم غلط ورکړو او بیا ئے پرے دپاسه شاباسے او ستاینه هم غوښتله)

ددے مثال داسے هم دے یو مشرك او بدعتی شاگردانو ته شرك او بدعت وښائی او بیا شاگردانو ته وائی چه زما کمال ته وګورئ څنګه علم مے درته وخودو او د حق د مخالفت طریقے مے درته وخودلے نو زما صفت خو وکړئ او په مینځ کی هغه فساد کړے وی۔

(۲) بل شان نزول : بخاریؒ او مسلمؒ د ابوسعید خدری ﷜ نه روایت کړیدے چه کله به رسول الله ﷺ غزوے ته تللو نو منافقان به روستو پاتے کیدل (وَفَرِحُوْا بِمَقْعَدِهِمْ خِلٰفَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ) او په خپله دے چالاکی باندے به خوشحالیدل او کله چه به رسول الله ﷺ د غزا نه د واپس کیدو نه روستو د هغوی خوا ته ورغلو نو هغوی به د قسمونو سره عذر پیش کولو او غوختل به ئے چه دوی د خیر کوم کار نۀ دے کړے په هغے باندے د دوی صفت اُوکړے شی (لکه مجاهد به نۀ وو او ځان به ئے مجاهد ښکاره کولو) نو دا آیت نازل

شو۔

(۳) بعضو (لکه عکرمة) وئیلی دی چه دا آیت د فنحاص او أشیع یهودیانو علماؤ په باره کی نازل شوی دے چه دوی به خلك گمراه کول او پدے به خوشحالیدل چه خلك دوی لره علم ته منسوب کړی او حال دا چه د علم خاوندان نهٔ وو۔

(تفسیر الطبری۷/٤٦٦) والبغوی (۲/١٥٠)

(٤) مجاهدٌ وائی : ددے نه مراد یهودیان دی چه خلکو ته به ئے د الله په کتاب کی تحریف وکړو او پدے به خوشحاله وو چه خلك د دوی صفت وکړی چه څو مره کمال مو وکړو۔ (الطبری)

ډیره ممکن ده چه ددے ټولو واقعاتو په باره کی دا آیت نازل شوے وی، ځکه د آیت مضمون په ټولو باندے تطبیق کیږی۔

د لا تحسبن الذین دپاره مفعول پټ دے۔

بِمَا أَتَوْا : (۱) أَیْ مِنْ إِضْلَالِ النَّاسِ۔ یعنی هغه کار چه دوی ورته راتلل وکړل چه هغه د خلکو گمراه کول وو۔ بما لم یفعلوا : مِنَ التَّمَسُّكِ بِالْحَقِّ۔ یعنی په حق باندے ئے منګولے نهٔ دی لګولی او خلکو نه غواړی چه پدے کار دے د دوی صفت وکړے شی۔

(۲) یا بِمَا أَتَوْا مِنَ الشِّرْكِ وَالْبِدْعَةِ۔ (بدائع التفسیر) یعنی په هغه کار چه دوی ورته راتګ وکړو چه هغه شرك او بدعت دے۔ او بما لم یفعلوا : أَیْ بِالسُّنَّةِ وَالْإِخْلَاصِ۔ (یعنی په سنت او اخلاص نهٔ دی روان او خلکو ته وائی چه مونږ ته متبعین د سنت او مخلصین ووایئ)۔

او که د منافقانو سره ولګی نو معنیٰ به دا وی : (بِمَا أَتَوْا أَیْ وَهُوَ تَرْكُ الْغَزْوِ وَالْقُعُوْدُ فِی الْبَیْتِ)۔ یعنی هغه کار چه دوی ورته راتګ وکړو چه هغه غزا پریخودل او کور کی کیناستل دی او (وَیُحِبُّوْنَ أَنْ یُّحْمَدُوْا بِمَا لَمْ یَفْعَلُوْا أَیْ بِالْجِهَادِ الَّذِیْ لَمْ یَفْعَلُوْا)۔

یعنی په هغه جهاد چه کړے ئے نهٔ دے۔ یعنی خلکو له به خو دهوکه ورکړی لیکن الله ته دهوکه نشی ورکولے نو د هغه د عذاب نه به خلاص نشی۔

فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ : دا تاکید دے د مخکی (لَا تَحْسَبَنَّ) دپاره۔

(بِمَفَازَةٍ) مفازه کامیابئ ته هم وائی او دشتے او بیابان ته هم وائی ځکه چه کله بنده هغه قطع کړی نو کامیاب شی۔ یا معنیٰ دا ده چه (لَا تَحْسَبَنَّهُمْ بِمَكَانٍ بَعِیْدٍ عَنِ الْعَذَابِ) دوی باندے گمان مهٔ کوه چه دوی به د عذاب نه وړاندے ځای ته لاړ شی۔ (فتح البیان۲/۳۹۸)

**فائده** : الله دپاره اخلاص ډیر اوچت شے دے کله چه بنده کی اخلاص پیدا شی نو الله

تعالیٰ د تولو بندګانو زړونه هغه ته راړوی، هَرِم بن حیانؒ فرمائي: : (مَا أَقْبَلَ عَبْدٌ بِقَلْبِهِ إِلَى اللَّهِ إِلَّا أَقْبَلَ اللَّهُ قُلُوْبَ الْخَلَائِقِ إِلَيْهِ حَتَّى يَرْزُقَهُ مَوَدَّتَهُمْ وَرَحْمَتَهُمْ) .یو بنده خپل زړه الله ته نهٔ متوجه کوی مګر الله تعالیٰ به د مخلوق زړونه هغه طرفته متوجه کړی، او کله چه بنده د الله سره چل ول کوی نو الله به ترې د مخلوق زړونه اړوی، تردې چه هغه به د خلکو مینه او رحمت ورك کوی. (اغاثة اللهفان ۲/ص:۱۵٤) والقرطبی ۱۱/۱٦۱ سورة مریم)

| وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿۱۸۹﴾ |
|---|
| اوخاص الله دپاره بادشاهي د آسمانونو او د زمکې ده او الله په هرڅه باندې قدرت والا دې. |

**تفسیر** : پدې آیت کی بیان دې د غِنیٰ د الله تعالیٰ د یهودو او د منافقانو د اعمالو نه چه کـه دوی د الله دین تـه نـهٔ راځي نو د الله ورتـه هیڅ ضرورت نشته، الله په هر شی قادر دې او بادشاهي د هغه ده.

بعض وائي : دا د مخکې (عذاب الیم) سره لګی نو پدې کی بیان د قدرت د الله تعالیٰ دې په عـذاب ددې مجرمانو (یهود او منافقانو) او رد دې په یهودیانو باندې چه الله تعالیٰ ته ئې فقیـر وئیلې وو. او په داسې آیت کی فکر کولو سره ایمان جوړیږی، چه بندګان محتاج دی او تول واك او بادشاهي د الله ده نو هغه ته توجه پکار ده.

| إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ |
|---|
| یقیناً په پیدائش د آسمانونو او د زمکه کی او په اختلاف د شپې او د ورځ کی |
| لَآيَاتٍ لِأُولِي الْأَلْبَابِ ﴿۱۹۰﴾ |
| خامخا ډیرې نخې دی دپاره د صفا عقلونو والو. |

**تفسیر** : پدې آخري رکوع کی بَيَانُ حَالِ الْمُؤْمِنِيْنَ مَعَ رَبِّهِمْ دې. یـعنی د مؤمنانو حال د خپـل رب سره بیـانـوی پـدې کی دوه فائدې دی (۱) یو دا چه ترغیب دې ایمان والو ته چه ستاسو حال ډې دغه شان جوړ شي څنګه چه د خواصو بندګانو دغه صفات دی.

(۲) دویـم پدې کی تعریض دې په یهود او منافقانو باندې چه تاسو ځان دپاره ښه صفتونه غواړئ او دعوې کوئ چه مونږ اُوچت خلك یو، دا راتلونکی صفات ځان کی پیدا کړئ نو د الله صحیح او غوره بندګان به جوړ شئ او هغه صفات دا دی :

چه ایمان والو کی عقل او فکر پروت دے، الله په هر وخت کی یادوی، د الله نه دعاګانے غواړی، د جهنم د اُور نه یریږی، د هغے غم ورسره دے ستاسو په شان نهٔ دی چه ځان دپاره د جنت دعوے کوی او دا وائی چه جهنم به مونږ ته نهٔ رارسیږی مکر یو څو ورځے۔ ایمان والا به د اُور نه یریږی ځوك چه د اُور نه نهٔ یریږی هغه د الله ډیر بدی شی۔ لکه یو حدیث کی هم دا راغلی دی چه کله بندګان یو ځای کی کینی او د جهنم او د جنت تذکره ونکړی نو ملائك وائی : (قَدْ نَسُوا الْعَظِيمَتَيْنِ) دے خلکو دوه لوی څیزونه هیر کړل چه هغه جنت او جهنم دی۔ ددے وجه نه ایمان والا وائی چه اے الله! ځوك چه اُور ته داخل شو دا خو په ډیر لوی شرم واوړیدو۔ او د هغوی صفت دا دے چه الله ته ایمان وسیله کوی او بیا درے دعاګانے کوی، د ګناهونو د بخنے، او د توفی مع الابرار، او د جنت دعاګانے کوی او د آخرت د شرمونو نه یریږی نو د داسے خلکو بنائسته بدله بیانوی او ورسره دا هم وائی چه نور قسمه مؤمنان دی هغوی له به ئے هم ورکوم په (۱۹۵) آیت کی۔

بیا ئے د دنیا زهد بیان کړیدے او دفع د وهم ده چه مؤمنان تکلیفونه تیروی او کافران په دنیا کی مزے کوی نو الله جواب کوی چه دا دنیا لږے مزے دی خو اُور ته روان دی او متقیانو دپاره زیرے بیانوی، بیا په اهل کتابو کی د نیکانو خلکو درے صفتونه، ایمان، خشوع او عدم اشتراء بآیات الله بیانوی۔ او ددے تخصیص ئے ځکه کړیدے چه په هغوی کی دا درے صفتونه ډیر کم ملاویږی۔ او په آخر کی یو آیت دے چه شامل دے ټول سورت ته چه دا څلور صفتونه ځان کی راولی؛ نو دنیا او آخرت دواړه به مو ښه شی۔

## ددے آیت فضائل

سیدنا عثمان رضی الله عنه فرمائی: چا چه دا آیتونه په شپه کی ولوستل نو ددهٔ دپاره به د ټولے شپے د قیام اللیل (تهجدو) ثواب ولیکلے شی۔ (سنن الدارمی: رقم: ۳۳۹٦) و تفسیر القرطبی۳۰۹/٤)

(۲) رسول الله ﷺ به چه کله تهجدو ته راپاڅیدو نو دا آیتونه به ئے د مانځه او د اوداسه نه مخکی ولوستل او آسمان ته به ئے کتل، پدے کی درے خبرے ملګری کیږی، قول، (ذکر)، فکر کول، او نظر کول۔ په سترګو به ئے آسمان ته کتل او په دماغو به ئے فکر کولو او په ژبه به ئے ذکر کولو پدے سره د الله تعالیٰ عظمت په زړه کی حاضریږی او په تهجدو کی ډیر خوند پیدا کوی۔ نو دا د تهجدو د آدابو نه دی۔

(۴) په صحیح ابن حبان کې حدیث دے عائشه رضی الله عنها فرمائی: یوه شپه رسول الله ﷺ ماسخوتن کې راغلو ما ته ئے ووېل : (یَا عَائِشَةُ ! ذَرِینِیْ أَتَعَبَّدُ اللَّیْلَةَ لِرَبِّیْ) ما پرېده، زهٔ د خپل رب نن شپه عبادت کوم۔ (یعنی عامو اوقاتو کې به ئے د تهجدو په وخت کې عبادت کولو او پدے شپه د ماسخوتن نه شروع شو، زړه ئے د الله د محبت او خوف نه ډک وو) عائشه فرمائی : اَودس ئے وکړو او په مانځه بانده ودرېدو او ووے ژړل تردے چه خپله غیږه ئے لمده کړه بیا ئے وژړل نو همداسے ئے ژړل تردے چه خپله ګیره ئے لمده کړه بیا ئے همداسے ژړل ژړل تردے چه زمکه ئے لمده کړه تردے چه سهار کې بلال رضی الله عنه راغے د مانځه خبر ئے ورکولو وے لیدل چه رسول الله ﷺ ژاړی نو وے فرمایل : اے د الله رسوله ! ولے دومره ژاړے (خفګان کوے) حال دا چه تا ته الله تعالیٰ مخکنی او روستنی ګناهونه بخلی دی نو وے فرمایل: (أَفَلَا أَكُونُ عَبْدًا شَكُورًا) آیا زهٔ به شکر ګزار بنده نهٔ جوړېږم،

بیا ئے وفرمایل: (لَقَدْ أُنْزِلَ عَلَیَّ اللَّیْلَةَ آیَةٌ وَیْلٌ لِمَنْ قَرَأَهَا وَلَمْ یَتَفَكَّرْ فِیهَا "إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ) الآیة کُلَّهَا) ۔ یقیناً په ما بانده بیګاه شپه یو آیت نازل شویدے، هلاکت دے هغه چا لره چه دا ئے ولوستلو او پدے کې ئے فکر ونکړو۔ هغه دا آیت دے (ان فی خلق السموات) تر آخره پورے۔

• صحیح ابن حبان بتحقیق الارناووط رقم: ۶۲۰) (۲/۳۸۶) اسناده علی شرط مسلم)

که دا بنیرے په یو بنده بانده ولګی نو هغه خو هلاکیږی۔ رسول الله ﷺ بانده ئے ډیر اثر کړے وو دا وجه ده چه کله کله به رسول الله ﷺ د شپے درے خله تهجدو ته رابیداریدو او په هر خل به ئے دا آیتونه لوستل۔

او په روایت د بخاری او مسلم کې د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه رسول الله ﷺ د شپے د خوب نه بیدار شو او آسمان طرفته ئے وکتل او دا آیتونه ئے ولوستل او بیا ئے یولس رکعاته مونځ وکړو۔ نو پدے روایت کې د سورة آل عمران د آخری لسو آیتونو لوستلو ذکر راغلے دے او په یو بل روایت کې تر آخر د سورة آل عمران پورے ذکر راغلے دے نو ددے آیت نه تر آخره پورے یولس آیتونه دی نو په کوم روایت کې چه د لسو ذکر راغلے دے د هغے نه مراد ددے آیت نه روستنی آیتونه دی۔

نو پدے آیتونو کې د الله تعالیٰ د عظمت او د هغه پهٔ تعلق خبرے دی او د مؤمنانو د زړونو جوش په کې ذکر دے چه د خپل رب سره عجیب تعلق قائموی، د جهنم نه یرېږی او د خاتمے یره ورسره ده، نو مؤمنان په یوه وادی کې دی او یهودیان په بله وادی کې۔ نو ایمان

والو ته ترغیب ورکوی چه ځانونه دغه شان جوړ کړئ۔
خَلْقِ السَّمٰوَاتِ : آسمان او زمکه ډیر ښکاره دی پدے وجه دائے په دلیل کی ذکر کړل چه ددے عظمت او ددے خِلقت او صُنعت او ترتیب ته وګوره خپل رب به وپیژنے۔
وَاخْتِلاَفِ الَّیْلِ : د شپے او د ورځے د بدلیدو فائدو ته وګوره۔
لَآیَاتٍ : یعنی پدے کی ډیرے نښے او دلیلونه دی په وجود الله تعالیٰ، د هغه په عظمت او قدرت او د هغه په کمال او رحمت او حکمت او د هغه په توحید باندے۔
لِّأُولِی الْأَلْبَابِ : الباب جمع د لُبّ ده خلاصه د عقل ته وائی، یعنی هغه خالص عقل چه د نقصان د شائبی نه خلاص وی او د خبرے مغز ته رسیږی، دا عقل صرف د مؤمنانو وی او د دنیا په باره کی د کافرانو عقل هم شته ځکه چه د آسمان او د زمکے او د ورځے او شپے نه خو کافران هم فائده اخلی لیکن د خپلے خیتے او د دنیا د جوړولو فقط او ایمان والا ترے دینی او اُخروی فائدے اخلی۔ یعنی صحیح عقل والا که پدے کائناتو کی سوچ وکړی نو داسے ایمان ته به ورسیږی چه هغه به شبهات نه خوزوی او په تشکیك (د چا په شکونو اچولو) سره به نۀ ختمیږی۔ (فتح البیان)
**فائده** : مفسرین لیکی : د توحید دلائل په دوه قسمه دی (۱) آفاقی۔ (۲) انفسی۔ او دلائل آفاقی لوی او اُوچت دی لکه الله فرمائی : ﴿لَخَلْقُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ﴾ (المؤمن:۵۷)د آسمانونو او د زمکے پیدائش د خلکو د پیدائش نه ډیر لوی دے) پدے وجه الله تعالیٰ دلته په آفاقو کی په فکر کولو باندے حکم وکړو ځکه چه ددے دلائل او شواهد ډیر ناشنا او لوی دی مثلاً که مونږ یو بے پانړے ته وګورو چه دا یو تیغ وو د هغے نه یوه زیله پیدا شوه بیا د هغے نه دواړو طرفونو ته نورے زیلے خورے شوے بیا د هغے نه نورے ورے زیلے خورے شی او همدغه شان روان وی چه د هرے زیلے نه زیله پیدا کیږی تردے چه دومره ورے ورے پیدا شی چه په سترګو هم نۀ ښکاری نو ددے نه معلومیږی چه ددے پانړے په تدبیر کی پدے طریقه سره ډیر رازونه او حکمتونه دی او بله دا چه پدے کی الله تعالیٰ قوتِ جاذبه ایخودے دے چه د زمکے د بیخ نه ځانله غذا راکاږی او بیا دغه غذا په دغه رګونو کی روانه وی او هر جزء ته تقسیمیږی چه د انسان د هغے په پیژندنه کی عقل حیرانیږی او دا فیصله کوی چه واقعی الله تعالیٰ موجود ذات دے او د هغه کارونه د حکمتونو نه خالی نۀ دی او بیا ددے نسبت آسمانونو او زمکے ته واخله او په هغے کی نور مخلوقات، نمر، سپوږمۍ، ستوری وغیره۔(قاسمی ۱۹۳/۲)

| |
|---|
| الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَى جُنُوبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُونَ |
| (دا) هغه کسان دی چه یادوی الله لره په ولاړه او په ناسته او په اړخونو خپلو او فکر کوی |
| فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هَذَا |
| په پیدائش د آسمانونو او د زمکه کی (وائی دوی) اے ربه زمونږ! نهٔ دی پیدا کړی تا دا |
| بَاطِلًا سُبْحَانَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿١٩١﴾ |
| عبث (بی فائدے)، پاکی ده تا لره نو وساته مونږ د عذاب د اُور نه۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی څلور صفتونه ددے ایمان والو بیانیږی (۱) د ژبی ذکر، (۲) په دماغو فکر کول۔ (۳) او بیا دعا کول (٤) او د اندامونو عبادت۔ چه دلته ئے درے حالتونه ذکر کړیدی۔

قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَى جُنُوبِهِمْ : دے کی یو تفسیر دا دے چه دا خاص دے د مانځه پورے۔ لکه د ابن عباس او علی بن ابی طالب رضی الله عنهم نه نقل دی چه دا په مانځه کی مراد دے آه۔ او په مانځه کی درے حالته دی، یا به ولاړ وی، یا به ناست وی یا په اړخ یعنی په سجده کی وی۔ یا دا چه دا د مونځ کونکی درے حالاتو ته اشاره ده، که روغ وی نو په ولاړه او که لږ ناجوړه وی نو په ناسته او که ډیر ناجوړه وی نو په پرتو باندے به وی۔

لکه په حدیث د بخاری کی دی چه عمران بن حصین رضی الله عنهما ته رسول الله ﷺ وفرمایل: (صَلِّ قَائِمًا فَإِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا، فَإِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَعَلَى جَنْبٍ) ۔ په ولاړه مونځ کوه که طاقت نهٔ لرے نو په ناسته او که طاقت نهٔ لرے نو په اړخ باندے ئے کوه۔ او مطلب دا دے چه مؤمنان هیڅکله مونځ نهٔ ضائع کوی۔

مګر عام مفسرین لیکی او قتادهٔ ته منسوب دی چه ددے درے حالاتو د ذکر کولو نه مراد د الله په ذکر همیشوالے کول دی ځکه چه د انسان همدا درے حالات وی۔ یعنی ایمان والو نه به په هیڅ حالت کی الله تعالیٰ نهٔ هیریږی۔ (فتح البیان)

**حکمت** : په سورة یونس (۱۲) آیت کی ﴿ دَعَانَا لِجَنْبِهِ أَوْ قَاعِدًا أَوْ قَائِمًا ﴾ راغلے دے چه هلته ئے اړخ مخکی کړیدے بیا ناسته بیا ولاړه، ددے حکمت دا دے چه دلته د مؤمن حال دے او هلته د ناشکره یا د مشرك دعا ذکر ده، یا داسے ووایه ! چه هلته د مصیبت حال ذکر دے او دلته د ذکر حالت دے۔ او په مصیبت کی اول د اړخ نه دعا شروع کوی ځکه چه

پروت وي، بیا چه مصیبت کم وي نو په ناسته او چه نه کم وي نو بیا په ولاړه دعا کوي.
او دلته د الله د بندګۍ حالت دے نو د سختے نه ئے شروع کړیده ترقي د اعلیٰ نه ادنیٰ ته.
وَيَتَفَكَّرُوْنَ : ذکر او فکر دواړه مُزْدَوَجَيْن (غبرګوني) دي او قرآن کريم کې دا ډير راغلي دي، آسمان او زمکه، شپه او ورځ. صبر او تقویٰ. توکل او عبادت، حج او عمره، جهاد او هجرت. ددے دواړو د یو بل سره مناسبت وي ځکه ئے جمع کوي. نو ذکر اصل کې د زړه شے دے لیکن په ژبه باندے ترے تعبیر کیږي.
نو د بنده کمال پدے کې دے چه د فکر سره ذکر هم ملګرے کړي چه د دنیا او آخرت دواړه ئے کامیاب شي. ځکه چه فکر یواځے اګرکه مفید دے لیکن فائده ئے په آخرت کې په ذکر سره حاصلیږي او ذکر اګرکه د دنیا او آخرت کې فائده ورکوي لیکن دا فائده په فکر سره کامله ګرځي. په بل تعبیر : که څوك صرف فکر کوي او ذکر نۀ نو دا نیمګړے دے، صرف لذت د علم ئے واخستو نۀ د روح، او که صرف ذکر کوي او فکر ورسره نۀ وي نو لذت د روح ئے واخستو نۀ د علم. (تفسیر المنار)

## د فکر فائدے

فکر ډیر اهم عبادت دے چه د اکثرو انسانانو نه ورك شویدے او زړه چه کله سخت شي نو دا عبادت ورك شي او چه زړه نرم وي نو دا عبادت زیاتیږي.
بعض سلفؒ وائي : یو ساعت په کائناتو کې فکر کول دا د یو کال د عبادت نه بهتر دے.
قرطبيؒ دا بې سنده رسول الله ﷺ ته منسوب کړیدے.
او حسن بصريؒ، ابو الدرداء او ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي : یو ساعت فکر کول د یوے شپے د عبادت نه غوره دي. (قرطبي)
عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائي : (رَكْعَتَانِ مُقْتَصِدَتَانِ فِيْ تَفَكُّرٍ خَيْرٌ مِنْ قِيَامِ لَيْلَةٍ)
دوه رکعاته چه درمیانه وکړے شي په فکر سره نو دا د تولے شپے د تهجدونه غوره دي.
(شرح السنة للبغوی ۲٦١/۳)
د ام درداء رضی الله عنها نه تپوس وشو چه د ابو الدرداء ﷺ لوی او زیات عمل څه وو؟، نو هغے ووېل : كَانَ جُلُّ عَمَلِهِ الْفِكْرَةَ) د هغه زیات عمل د الله په کائناتو کې سوچ کول وو.
امام مالك ته ووېل شو چه آیا فکر کول د (نیك) عملونو نه یو عمل دے؟ هغه وفرمایل: (نَعَمْ، هُوَ الْيَقِيْنُ) آؤ، په فکر سره د بنده یقین پیدا کیږي. (او په دین باندے مضبوطیږي)

بعض سلف (حسن بصريؒ) وائي : اَلْفِكْرَةُ مِرْآةٌ تُرِيْكَ حَسَنَاتِكَ وَسَيِّئَاتِكَ) فكر داسې شيشه ده چه تا ته ستا نيکيانې او بديانې راښکاره کوي. (قرطبيؒ)

ابن عون رحمه الله فرمائي: (اَلْفِكْرَةُ تُذْهِبُ الْغَفْلَةَ وَتُحْدِثُ لِلْقَلْبِ الْخَشْيَةَ كَمَا يُحْدِثُ الْمَاءُ لِلزَّرْعِ النَّبَاتَ وَمَا جُلِيَتِ الْقُلُوْبُ بِمِثْلِ الْأَحْزَانِ وَلَا اسْتَنَارَتْ بِمِثْلِ الْفِكْرَةِ) (فكر د انسان غفلت ختموي او زړه ته خشيت (يره) ورکوي لکه اُوبه چه ګياه راټوکوي او زړونه د غمونو په وجه صفا کيږي او د فکر په وجه روښانه کيږي. (معالم التنزيل للبغوی۲/۱۵۲)

**فائده ۲** : امام قرطبيؒ د ابن عربيؒ نه نقل کړيدي چه پدې کې اختلاف دے چه کوم عمل زيات بهتر دے، فکر او که نفلي مونځ؟. نو صوفياء وائي چه فکر افضل دے د مانځه نه ځکه چه پدې سره د الله معرفت حاصليږي او دا په شرعي مقاماتو کې افضل کار دے. او فقهاء وائي چه مونځ افضل دے ځکه چه په احاديثو کې دے باندے تيزي او ترغيب راغلے دے.

بيا قرطبيؒ فيصله کړيده چه رسول الله ﷺ دواړه راجمع کړيدي هغه به د شپے تهجدو ته راپاڅيدو نو دا آيتونه به ئے لوستل اوفکر به ئے کولو او بيا به ئے مونځ کولو.

نو د صوفياؤ دا خبره کول چه فکر د مانځه نه هم غوره دے او کله بې اودسه مونځونه کوي نو دا طريقه د احاديثو نه ورانده ده او په دين کې الحاد او غلو کول دي.

## فکر به په څه کې کولے شي؟

۱- نو دلته د فکر يو محل ذکر شو چه هغه په کائناتو کې فکر کول دي او د قرآن د نورو مواضعو نه معلوميږي چه نور فکرونه هم شته.

۲- اَلْفِكْرُ فِي الْقُرْآنِ. په قرآن کريم کې او ددے په حقانيت کې فکر کول.

۳- اَلْفِكْرُ فِيْ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ. چه قيامت راروان دے د هغے دپاره مونږ څومره تيارے کړيدے

٤- اَلْفِكْرُ فِي الْأَوَامِرِ. د الله په حکمونو کې فکر کول چه آيا دا مونږ څومره عملي کړيدي. ٥- اَلْفِكْرُ فِي النَّوَاهِيْ. په ګناهونو کې فکر کول.

(٦) اَلْفِكْرُ فِي الْأَوْقَاتِ. په وختونو کې فکر کول چه عبث تير شو او که نه.

(۷) د اسلام د غلبے دپاره فکر کول وغيره وغيره.

علماء کرامؒ فرمائي : فکر اولنۍ پوړۍ د تقوىٰ ده چه انسان ددے په وجه تقوىٰ ته رسيږي. (مَنْ جَعَلَ الْهُمُوْمَ هَمًّا وَاحِدًا) که د چا فکر صحيح شي نو ګناهونو باندے به نۀ اوړي او که

ښه فکر کوی نو تقویٰ ته به رسیږی۔
زړه چه جوړ وی نو ښه فکرونه ورته راځی۔ د ډیرو انسانانو فکرونه په شهواتو او د دنیا په حاصلولو کی وی۔ شیطان کله ښنده په دومره فکرونو کی بوځی چه هسے به غصه کی راشی هیڅ سبب به نهٔ وی۔
که یو انسان ځان تلی نو پدیے طریقه چه حسن بصریؒ وئیلی دی: که ستا زړه په دریے وختونو کی الله تعالیٰ طرفته متوجه کیدو نو زړه دیے جوړ دیے او که نهٔ وی د خپل زړه علاج وکړه او د الله نه بل زړه وغواړه: (۱) عِنْدَ تِلَاوَةِ الْقُرْآنِ۔ کله چه قرآن لولے۔ (۲) فِي الصَّلَاةِ۔ په مانځه کی۔ (۳) فِي الْخَلْوَةِ۔ چه یواځے ځای کی کینی)۔

## په آسمانونو او زمکه کی د فکر طریقے

(۱) هیڅ شے خپل ځان ته وجود نشی ورکولے بلکه هر شے په خپل وجود کی بل ته محتاج دیے نو ددیے نه معلومه شوه چه د ټول عالَم پیدا کونکے ضرور د ټول عالَم (ټولو ممکناتو) نه بهر دیے چه ازلی او ابدی موجود دیے او هر شی ته ئے وجود ورکړیدیے او ورکوی ئے۔
(۲) په آسمانونو او زمکه کی د علم خاوندان شته نو معلومه شوه چه پیدا کونکے ئے علم لری، د ارادے خاوندان شته نو اراده لری که بالفرض پخپله ئے علم او اراده نهٔ لرلے نو په مخلوقاتو کی به ئے آثار نهٔ وے ښکاره شوی۔
(۳) هرکله چه الله تعالیٰ د عالَم خالق دیے او هغه علم او اراده لری نو ضرور د عالَم پیدا کول بی حکمته نهٔ دی نو یوه ورځ به راشی چه د دنیا پروګرام به ختم شی او د هر چا سره به حساب وکړے شی۔
رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ: اَیْ یَتَفَکَّرُوْنَ قَائِلِیْنَ رَبَّنَا۔ فکر کوی په داسے حال کی چه داسے نتیجه راوباسی او وائی چه ایے ربه زمونږ الخ۔ (قاسمیؒ)
هٰذَا: دا اشاره ده خَلْق ته چه په معنیٰ د مخلوق سره دیے۔ یا آسمانونو او زمکے ته۔ یا مذکور څیزونو ته۔
بَاطِلًا: دا فاعل په معنیٰ د مصدر دیے لکه د عاقبة او عافیة په شان یعنی عبث۔ یا حال دیے یعنی (مَا خَلَقْتَ هٰذَا خَالِیًا عَنْ حِکْمَةٍ) دا تا نهٔ دی پیدا کړی چه د حکمت نه خالی وی۔
د باطل دوه معنے دی (۱) اَلَّذِیْ لَایَدُلُّ عَلٰی وُجُوْدِ الْخَالِقِ وَعَظْمَتِهٖ وَکَمَالِهٖ) هغه شے چه د

خالق په جود او د هغه په عظمت او کمال باندے دلالت نهٔ کوی چه دا د عبث معنیٰ ده۔
(۲) دویم باطل : اَلَّذِیْ لَایُؤْمَرُ وَلَایُنْهٰی) هغه شے چه هغه ته امر او نهی نهٔ وی۔ یعنی چه په آسمان او زمکه کی امر او نهی هیچا ته نهٔ وی داسے نهٔ دی۔ او دا معنیٰ دلته د روستو سره ډیره مناسبه ده یعنی دا یو مقصد له پیدا دی چه هغه ستا بندگی ده که څوك دغه بندگی ونکړی نو ته ورته غصه کیږے او تا د غضب او غصے یو ځای پیدا کړیدے چه هغه اُور دے او څوك چه ستا طاعت وکړی نو تا د نعمتونو ځای پیدا کړیدے چه هغه جنت دے نو اے ربه ! مونږ ستا د اُور نه بچ وساته۔
سُبْحَانَكَ : یعنی کوم خلك چه دا عقیده ساتی او تا ته د عبث نسبت کوی نو د هغے نه ستا جناب پاك دے۔ او تهٔ به داسے خلکو ته سزا ورکوے نو مونږ د خپل اُور نه وساته۔
**فائده ۲** : فی خلق السموات آه کی اشاره ده چه د الله په ذات کی فکر کول منع دی او ددے په باره کی قاسمیؒ د ابن ابی حاتمؒ په حواله د عبد الله بن سلام ؓ نه روایت نقل کړیدے : (لَاتَفَکَّرُوْا فِی اللّٰهِ وَلٰکِنْ تَفَکَّرُوْا فِیْمَا خَلَقَ) تاسو د الله په ذات کی فکر مهٔ کوئ لیکن د هغه په مخلوق کی فکر وکړئ۔ قاسمیؒ وائی چه ددے روایت دپاره ډیر شواهد دی۔ او دارنگه د الله په ذات کی فکر کولو سره کله کله وسوسے پیدا کیږی۔
مکر په کتاب العظمة ص (٤) کی دا حدیث په صحیح سند سره ذکر دے انظر الفوائد (۲/۲۰٤)

| |
|---|
| رَبَّنَا إِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ أَخْزَيْتَهُ |
| اے ربه زمونږ! یقیناً ته چه چا له داخل کړے اُور ته نو یقیناً وشرمولو تا هغه لره |
| وَمَا لِلظَّالِمِيْنَ مِنْ أَنْصَارٍ ﴿۱۹۲﴾ |
| او نشته ظالمانو لره هیڅوك مددګاران۔ |

**تفسیر** : یعنی دوزخ ته داخلیدل لکه څنګه چه عذاب دے نو ددے سره سره لویه شرمندگی هم ده نو لکه څنګه چه مونږ د عذاب نه پناه غواړو نو د شرمندگئ او رسوایی نه هم په تا باندے پناه غواړو دا دواړه خو د ظالمانو دپاره مقرر شویدی نو مونږ ته توفیق راکړه چه د ظالمانو په ډله کی رانشو چه په دغه ورځ باندے دوی سره به هیڅوك مددګار نهٔ وی۔

فَقَدْ أَخْزَيْتَهُ :اَیْ فَلَا تُخْزِنَا فِيْهِ۔ نو مونږ په دغه ورځ د شرم او رسوايي نه بچ وساته۔
أَخْزَيْتَهُ : اخزاء: د خِزْيٌ یا خِزَايَةٌ نه دے ددے نه مراد هلاکول، یا سخت شرمنده کول او سخت ذلیله کول دي۔

بیا ځینی مفسرینو وئیلی دي چه دلته د اُور ته د داخلیدونکو خلکو نه مراد هغه دي چه په اُور کی همیشه دپاره پاتی وی یعنی کافران او دلیل دا دے چه روستو ظالمان ذکر دي او دا ځکه چه گنهکار مؤمنان په عارضی طور سره جهنم ته د ادب ورکولو دپاره داخلیږی نهٔ د شرمولو دپاره۔ مگر ظاهر دا ده چه ټول جهنمیان شرمنده او خجالته دي البته د کافرانو شرمندگی همیشه ده او د گنهگارو مؤمنانو شرمندگی موقته او لږ وخت دپاره ده۔

وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ أَنْصَارٍ : ذهن ته سوال راغلو چه جهنم ته داخلول او شرمول به ظلم وی نو الله فرمائی چه دا جهنمیان چه اُور ته داخل شو او شرم ورته ورسیدو نو ددے وجه د دوی ظلم او شرك وو، الله تعالیٰ په دوی ظلم کونکے نهٔ دے او الله جهنم ته ظالمان بوځی۔ او پدے کی دے ته هم اشاره ده چه الله تعالیٰ کله په جهنمیانو د اُور فیصله وکړی نو بیا به ددے ظالمانو دپاره د دوی بتان، باطل معبودان، باباگان پیر او مرشد هیڅ مدد نشی کولے۔

| رَبَّنَا إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُّنَادِيْ لِلْإِيْمَانِ |
|---|
| اے ربه زمونږ! یقیناً مونږ واوریدو د یو آواز کونکے نه چه آواز ئے کولو ایمان طرف ته |
| أَنْ آمِنُوْا بِرَبِّكُمْ فَآمَنَّا رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا |
| چه ایمان راوړئ په رب خپل باندے نو مونږ ایمان راوړو اے ربه زمونږ! نو وبخه مونږ ته |
| ذُنُوْبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّئَاتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْأَبْرَارِ ﴿۱۹۳﴾ |
| گناهونه زمونږ او اُورژوه مونږ نه گناهونه زمونږ او وفات کړه مونږ سره د نیکانونه۔ |

**تفسیر** : دا دریمه دعا ده، مخکی د توحید او د شرك نه د بچ کیدو بیان وو اُوس په رسول الله ﷺ او په قرآن کریم باندے ایمان ذکر کوی او دا وسیله گرځوی دپاره د بخنے د گناهونو۔

**ربط**: مخکی تفکر (فکر کول) وو په عقلی دلیلونو کی اُوس تفکر دے په نقلی (سمعی) دلیلونو کی۔

سَمِعْنَا مُنَادِيًا : دلته د سماع ځیز نهٔ دے ذکر نو هغه د روستو (يُنَادِيْ لِلْإِيْمَانِ) نه

معلومیږی یعنی مونږ واوریدو (آواز) د آواز کونکی۔
(۱) د مُنادی (آواز کونکی) نه مراد محمد رسول الله ﷺ دے چه هغه د ایمان داعی دے،
(ابن مسعود، ابن عباس رضی الله عنهم)
د رسول الله ﷺ په هره خبره کی د ایمان دعوت دے که هغه انما الاعمال بالنیات حدیث وئیلے دے پدے کی هم د ایمان دعوت دے، که د مانځه او د اوداسه خبرے وی هغه هم ایمان ته دعوت دے لکه یا به د الله د ذات یا د هغه د حقوقو خبره وی نو الله ته به دے راکاږی۔
د رسول الله ﷺ آواز اگر که مونږ نهٔ دے آوریدلے لیکن د هغه د سنتو آواز مو آوریدلے دے۔
(۲) قتادهٔ او محمد بن کعبؒ وائی: منادی: قرآن کریم ته وائی چه قرآن کریم سراسر ایمان طرفته دعوت ورکړیدے۔
فَآمَنَّا: یعنی مونږ دغه شرعی ایمان راوړے نو دغه درته وسیله کوو چه مونږ ته بخښه وکړه الخ۔
**فائده ۱**: کله چه انسان کی صحیح ایمان راشی نو بیا د گناه بدی ورته ښه معلومه شی، گناه ورته د زهرو نه زیاته سخته ښکاری۔ عبد الله بن مسعود ؓ فرمائی: مؤمن ته گناه داسے ښکاری لکه غرئے چه په سر باندے پروت وی او منافق ته داسے ښکاری لکه مچ ئے په پوزه ناست وی او وائے لوزوی۔
**فائده۲**: پدے آیتونو کی پنځه ځل (ربنا) لفظ استعمال دے، جعفر صادق رحمه الله وئیلی دی چه چا ته یو مصیبت ورسیدو او پنځه ځله ئے (ربنا) ووئیل نو ضرور به ئے الله دغه حاجت پوره کړی او دا آیتونه ئے ولوستل چه دلته الله تعالیٰ ددے مؤمنانو حاجت پوره کړیدے (فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ) نو ستا به هم پوره شی دا د الله په نومونو باندے توسل دے۔

## د فاغفر لنا او وکفر عنا مصداقونه

فَاغْفِرْ لَنَا: دے ته دفع المفاسد وائی یعنی د گناه ضررونه راته مهٔ رارسوه او (توفنا مع الابرار) دے ته جلب المنافع وائی یعنی فائدے راکړه۔
دویم: (فاغفر لنا ذنوبنا) کی لوی گناهونه مراد دی او تکفیر السیئات کی واړه گناهونه دی۔

## د غفران او تکفیر ترمینځ فرق

فاغفر: د مغفرة نه دے په اصل کی پټولو ته وئیلے شی او کفر د تکفیر نه دے او تکفیر د

کفر نه دے چه دا هم په معنیٰ د پټولو سره دے، دهقان ته کافر وائی ځکه چه د تخم دانے په زمکه کې پټوی (مفردات راغب ۴۵۱)

نو پدے معنیٰ بانـدے د دواړو یو مطلب دے او دا دواړه ئے جمع کړل ځکه چه دا مقام د سوال او دعا دے او په داسے مقام کې ډیره عاجزی پکار ده پدے وجه ئے تکرار وکړو۔

۲- ځینې وائی چه غفران او مغفرت هغه بخښنې ته وائی چه الله ئے په خپل فضل او کرم سره وکړی او بنده ئے څه بدله نهٔ وی ادا کړی او تکفیر هغه بخښنې ته وائی چه بنده د خپلے ګناه څه بدله ادا کړی لکه د قتل کفاره، د قسم او د ظهار کفاره وغیره۔ (زاد المسیر ۲/۷۳)

او دا قول ددے الفاظو د اصل معنیٰ سره زیات مناسب دے۔

وَتَوَفَّنَا مَعَ الْأَبْرَارِ : دے تـه حسن الخاتمه وائی یعنی ددے مؤمنانو سره د خاتمے د ښه کیدو غم دے. یعنی کله چه مونږ بانـدے وفات راځی نو د نیکانو په صفت مو وفات کړه چه نیکان تا ته په کوم صفت د تقویٰ او نیکۍ او ایمان باندے درځی مونږ باندے هم دغه حالت راولـه۔ او دا مطلب نهٔ دے چه کله نیکان وفات کیږی نو مونږ ورسره په دغه وخت کې یو ځای کړه، د مرګ سوال نهٔ کوی۔

دویم د معیت معنیٰ ده: په برزخ او جنت کې د ابرارو سره ملګرے کیدل یعنی چه د نیکانو سره مو روحونه یو ځای شی۔ یعنی مونږ وفات کړه په داسے حال کې چه زمونږ روحونه د نیکانو سره ملګری شی۔ یا مَعْدُوْدِیْنَ وَمَحْشُوْرِیْنَ مَعَ الْأَبْرَارِ ۔یعنی مونږ شمار کړه او راپورته مو کړه د نیکانو سره۔ (فتح)

الابرار: جمع د بَارٌّ یا د بَرٌّ ده په معنیٰ کې ئے وسعت او فراخی پرته ده یعنی هغه څوک چه نیک کارونه ئے په فراخۍ سره (زیات) وی۔ یعنی ډیر نیک۔ یا معنیٰ دا چه الله تعالیٰ دهٔ ته خپل رحمت فراخه کوی۔ (فتح البیان) روستو نورے معانی راځی ان شاء الله۔

| رَبَّنَا وَآتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا عَلٰى |
|---|
| اے ربه زمونږ! او راکړه مونږ ته هغه څه چه وعده کړیده تا مونږ سره په (ژبه د) |
| رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴿۱۹۴﴾ |
| رسولانو ستا او مهٔ شرموه مونږ لره په ورځ د قیامت، یقیناً ته خلاف نکوے د وعدے نه۔ |

**تفسیر**: دا څلورمه دعا ده چه پدے کې د جنت سوال کوی، اے الله! د رسولانو په ژبه چه

تا کومه وعده کړې وه چه په تا او ستا په رسولانو څوك ایمان راوړي او ستا طاعت کوي نو هغوی ته به ښائسته بدله ورکوې او ستا دا وعده هم وه ﴿يَوْمَ لَا يُخْزِي اللَّهُ النَّبِيَّ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ﴾ چه الله به د قیامت په ورځ خپل نبی او مؤمنان نهٔ رسوا کوی)) نو نن زمونږ دعا قبوله کړه او د قیامت په ورځ مونږ مهٔ رسوا کوه۔

عَلَىٰ رُسُلِكَ : دلته د (اَلسُّن) لفظ پټ دے یعنی چه تا مونږ سره د رسولانو په ژبو وعده کړیده۔

**سوال** دا دے چه الله تعالیٰ چه د رسولانو په ژبه کومه وعده د جنت کړیده هغه به خامخا پوره کیږی نو د سوال کولو څه فائده ده ؟

(۱) **جواب** دا دے چه دلته مقصد دا دے چه (وَاجْعَلْنَا مُسْتَحِقِّينَ لِمَا وَعَدْتَنَا) مونږ د هغه وعدے مستحق وګرځوه کومه چه تا د خپلو رسولانو په ژبه کړیده۔ یعنی مونږ ته د ایمان او د نیك اعمالو توفیق راکړه چه د هغے په وجه ستا د نیکو بدلو مستحق وګرځو۔

(۲) **جواب** : الله تعالیٰ دغه وعده په اسبابو سره کړیده چه دا وعده به زهٔ پوره کوم خو تاسو به اسباب تیاروئ، او د دغه اسبابو نه یو سبب دعا دے چه دا دعا بنده وغواړی نو الله تعالیٰ جنت ورکوی۔ لکه نبی کریم ﷺ یقینی جنتی دے لیکن مونږ ورله دعا کوو (وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا نِ الَّذِي وَعَدْتَهُ)۔ اے الله ! مقام محمود ورکړه)۔ وجه دا ده چه الله تعالیٰ د جنت دپاره مختلف اسباب لیکلی دی یو په هغے کی دا ده چه امت به ورته دعا کوی۔ نو دا خبره خطاء شوه چه څوك وائی یا به دا شے ما له الله تعالیٰ لیکلے وی نو هسے به ئے هم راکوی یا به ئے نهٔ وی لیکلے نو دعا څه له کوم؟ دا بی ځایه خبره ده او د هغه چا خبره ده چه د تقدیر په حقیقت نهٔ دی پو هه شوی۔

(۳) یا دا دعا په طریقه د عبادت او خضوع سره شویده ځکه چه دعا د عبادت مغز دے او انتهائی عاجزی ده الله تعالیٰ ته لکه د (قَالَ رَبِّ احْكُمْ بِالْحَقِّ) اے الله ! فیصله وکړه په حق سره۔ او الله تعالیٰ خو په حق سره خامخا فیصله کوی۔

(٤) یا ددے مصداق خاص دے چه هغه په دشمنانو باندے په جلتئ سره مدد او غلبه حاصلول دی ځکه چه دا د صحابه کرامؓ د حال نه حکایت دے چه دوی د الله نه دا غلبه وغوښتله دے دپاره چه دین عزتمند او غالبه شی۔ (حاشية فتح البيان ۲/۲۰۳)

مَا وَعَدْتَنَا : ددے نه مراد جنت هم دے او ټولے هغه وعدے دی چه الله تعالیٰ په ایمان باندے کړیدی چه هغه په قرآن او حدیث کی تقریباً سل وعدے دی۔

وَلَا تُخْزِنَا: یعنی داسې مهٔ کوه چه مونږ کافرانو سره یو ځای اُور ته روان یو ځکه چه هغوی به وائی چه تاسو خو ځان ته مسلمانان وئیل او مونږ سره اُور ته روان یئ؛ نو اے الله! د هغوی د شرم او پیغور نه مو وساته۔ پدے کی منافقانو ته اشاره ده چه دوی په ظاهره کی مسلمانان وو، جهاد ته هم ځی، مونځونه هم کوی لیکن په زړه کی کافران وو اُور ته به روان وی۔

دا جمله ئے ورسره ذکر کړه ځکه چه جنت ته داخلیدل دوه قسمه دی یو دا چه د اول نه جنت ته لاړ شی بغیر د عذاب څکلو نه، او دویم دا چه د ګناهونو په وجه جهنم ته لاړ شی بیا به راوځی نو مؤمنان سوال کوی چه اے الله! مونږ د اول نه جنت ته داخل کړه او د شرمندګئ نه مو وساته۔

دا دعا د الله تعالیٰ ډیره خوښه شویده نو یو ئے قرآن کریم کی رانقل کړیده او بل ئے د استجابت اعلان کړیدے۔

**فائده** : پدے آیتونو کی د مؤمن انسان څلور غمونه ذکر کړل (۱) د جهنم غم، (۲) د ګناهونو غم (۳) د حسن الخاتمے غم۔ (٤) د قبول الاعمال غم۔ لکه په ﴿وَآتِنَا مَا وَعَدْتَنَا﴾ کی ورته اشاره وشوه، نو دا څلور څیزونه دی چه د مؤمن دپاره خوشحالی نهٔ پریدی، د اُور غم، د ګناهونو غم، او د خاتمے غم، او د اعمالو د قبلیدو غم، هر مؤمن پکار ده چه داسے وی۔

یحیی بن معاذ وئیلی دی: (أَرْبَعٌ لَمْ يَدَعْنَ لِلْمُؤْمِنِ فَرَحًا : هَمُّ الْمَعَادِ، وَهَمُّ الْمَعَاشِ، وَهَمُّ الذُّنُوبِ وَإِلْمَامُ الْمَصَائِبِ)۔ څلورو څیزونو د مؤمن خوشحالی نهٔ ده پریخے، د آخرت غم، د ژوند غم، د ګناهونو غم، او د مصیبتونو د راتللو غم۔

| فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ أَنِّي لَا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ |
| --- |
| نو (دعا) قبوله کړه دوی لره رب د دوی چه بیشکه زهٔ نهٔ ضائع کوم عمل د یو عمل کونکی |
| مِنْكُمْ مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى بَعْضُكُمْ مِنْ بَعْضٍ فَالَّذِينَ |
| ستاسو نه که نارینه وی یا زنانه، بعضے ستاسو د بعضو نه دی، نو هغه کسان |
| هَاجَرُوا وَأُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَأُوذُوا |
| چه هجرت ئے کړیدے او ویستلے شویدی د کورونو خپلو نه او ضرر ورکړے شویدے دوی ته |
| فِي سَبِيلِي وَقَاتَلُوا وَقُتِلُوا لَأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ |
| په لاره زما کی او جنګونه ئے کړیدی او وژلے شویدی خامخا وبه رژوم د دوی نه ګناهونه د دوی |

| وَلَأُدْخِلَنَّهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ثَوَابًا |
| --- |
| او خامخا داخل به کړم دوی لره جنتونو ته چه بهیږی به لاندے د هغے نه ولے، بدله ده |
| مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَاللَّهُ عِنْدَهُ حُسْنُ الثَّوَابِ ﴿۱۹۵﴾ |
| د طرفه د الله نه او الله چه دے د هغه سره ښائسته بدله ده۔ |

**تفسیر** : پدے آیتِ کریمه کی الله تعالیٰ خبر ورکړیدے چه ددے مؤمنانو دعا الله قبوله کړه او هغوی ته ئے زیرے ورکړو چه زهٔ د خپل هیڅ بنده عمل نهٔ ضائع کوم، برابره ده چه سړے وی او که ښځه۔ او پدے کی د الله مهربانی او احسان ذکر دے چه د بنده د عمل قدر کوی چه نیک عمل وی نو په هغے باندے ډیرے عجیبے بدلے ورکوی، د آخرت خصوصًا او د دنیا بدلے هم ورکوی لیکن د هغے تذکره ځکه نهٔ کوی چه دنیا معمولی ده۔

ترمذیؒ، حاکمؒ (۲/۳۰۰) او سعید بن منصورؒ د ام سلمه رضی الله عنها نه روایت کړیدے چه هغوی رسول الله ﷺ ته اُووئیل چه اے د الله رسوله ! د هجرت ذکر کولو سره الله تعالیٰ د ښځو نوم نهٔ دے اخستے ؟ نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو : ﴿ أَنِّي لَا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِنْكُمْ مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى بَعْضُكُمْ مِنْ بَعْضٍ ﴾ چه سړے وی او که ښځه زهٔ د هیچا اجر نهٔ ضائع کوم۔ ﴿فَالَّذِينَ هَاجَرُوا ﴾ نه آخر پورے د عامل د عمل تفصیل دے۔

**ربط** : مخکی د مؤمنانو حال وو د خپل رب سره اُوس د رب حال دے د مؤمنانو سره چه هغوی ته به مهربانیانی ورکوی۔ او پدے کی د مؤمنانو نور پنځه صفات بیانوی۔

### د اجابة او استجابة فرق

فَاسْتَجَابَ : استجابت هغه قبلولو ته وئیلے شی چه په هغے سره مقصد حاصل شی۔ او اجابت مطلق جواب ورکولو ته وائی برابره خبره ده چه د منلو جواب وی او که د نهٔ منلو جواب۔ (فتح القدیر للشوکانی)

### سوال وجواب

**سوال** : که څوك ووائی چه د سوال د قبلولو خبره په ﴿ فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ ﴾ سره پوره شوه نو پدے کی څه حکمت دے چه الله تعالیٰ همدغه مضمون د آیت د آخره پورے اُوږد بیان کړو؟۔ (۱) جواب دا دے چه یو پدے کی اشاره ده چه د سوال د قبلولو ښه ذریعه د هغے سره نیك عمل کول دی نو پدے کی دعوت دے چه پکار ده چه بنده یوائے په قول باندے

اکتفاء ونکړي بلکه عمل هم ورسره ملګرے کړي نو سوال به ئے ښه قبول شي.
(۲) دا رنګه دے ته هم اشاره ده چه د الله په نیز بانديے انسان ته عزت او اکرام په نیکو صفاتو ملاویږي، دا د چا ذاتي صفت نهٔ دے بلکه هر چا کي چه تقوی او نیك اعمال راغلل نو هغه ته به عزت ملاویږي که هغه نر وي او که ښځه ځکه چه ټول انسانان د الله په نیز بانديے په انسانیت او نسب کي برابر دي، د آدم علیه السلام اولاد دي.
(۳) دا رنګه اشاره ده چه هر څوك اګرکه زنانه وي هم نیغ په نیغه په غیر د واسطے نه د الله نه حاجتونه غوښتے شي. (٤) پدے کي د دغه پنځو (هجرت، د کور نه ویستل، د الله په لار کي تکلیفونه برداشت کول، جهاد کول، او شهید کیدل) عملونو تذکره ددے دپاره شویده چه بنده پوهه شي چه دغه عملونه په نیك اعمالو کي ډیر بهتر دي او د سوال په قبلیدو کي ډیر لوی اثر لري. (عزیز التفاسیر)
او اصل وجه دا ده چه مؤمنانو د عملونو د قبلیدو دعا کړے ده او الله تعالیٰ هم د عملونو د قبولیت جواب ورکړو. لکه (آمنا، وتوفنا، وآتنا ما وعدتنا علی الاعمال).

## الله تعالیٰ ولے نیك عمل نهٔ بربادوي؟

أَنِّي لَا أُضِيعُ : یعني ستاسو هیڅ یو نیك عمل نهٔ بربادوم، نهٔ ایمان، نهٔ ذکر او نهٔ فکر او نهٔ دغه دعا او نهٔ نور نیك اعمال، الله تعالیٰ ولے نیك عمل د چا نهٔ بربادوي؟ (۱) وجه دا ده لِكَمَالِهِ. ځکه چه په الله کي کمال دے، (۲) لِرَحْمَتِهِ: بله دا چه د الله رحمت او مهرباني زیاته ده او (۳) لِشُكْرِهِ، بله دا چه په الله کي د شکر صفت دے چه هغه د عمل قدر پیژني، ډیر انسانانو دپاره عمل وکړے شي خو هغه د عمل قدر نهٔ پیژني او نهٔ پکي رحم وي.
(٤) وَلِأَنَّهُ يُحِبُّ الْخَيْرَ. بله وجه دا ده چه الله تعالیٰ کي د محبة او کراهة صفت دے چه ځیني څیزونه ښه ګڼړي او بعض څیزونه بد ګڼړي نو د بندګانو نیك عمل الله تعالیٰ ته زیات محبوب دے نو د هغے ډیرے بدلے ورکوي لکه دا وجه به په ﴿أَمْ نَجْعَلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَالْمُفْسِدِينَ فِي الْأَرْضِ أَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِينَ كَالْفُجَّارِ﴾ (ص: ۲۸) آیت کي راشي ان شاء الله تعالیٰ.
**حکمت** : الله تعالیٰ دلته جواب ورکړو د عمل په قبلولو، وجه دا ده چه د ټولو انعاماتو نه لوی نعمت دا دے چه د بنده عمل د الله په دربار کي قبول شي، چه پدے سره د دنیا او د آخرت فائدے حاصلیږي، دا شائسته جزاء ده پدے وجه ئے دا ذکر کړه.

مِّنۡ ذَكَرٍ اَوۡ اُنۡثٰى : د الله په قانون کې سړے او ښځه يو شے دے، د هغه په بندګيانو او بدلو او په ايمان کې او د آخرت په لحاظ يو شان دي، ځکه چه دواړه انسانان دي البته د دنيا په بعض احکامو کې الله تعالىٰ فرق کړيدے هغه د نظام د چلولو دپاره لکه روستو سورة النساء کې به راشي چه د زنانو ميراث ئے کم کړيدے او د سړو زيات، او د سړو دپاره ئے څلور ښځے جائز کړيدي او د ښځے دپاره نهٔ. ښځے دپاره ئے مهر وئيلے دے، نهٔ د سړي دپاره، چه د هغے حکمتونه به روستو سورت کې راځي ان شاء الله تعالىٰ.

او ددے آيت نه معلوميږي چه زنانه ته الله تعالىٰ په اسلام کې ډير لوی قدر ورکړيدے په داسے حال کې چه د اسلام نه مخکې تولو امتونو د ښځو حقوق هضم کړي وو او دا به ئے د چارپيانو په شان ګنړله.

او پدے کې ښځو ته دعوت دے چه تاسو په دعوت او د دين په کارونو کې د سړو سره شرکت وکړئ. (فتح البيان)

بَعۡضُكُم مِّنۢ بَعۡضٍ : (۱) بعض ستاسو د بعضو نه دي په جنس کې، يعنې يو شان انسانان دي چه د يو ے خاورے نه پيدا دي. (۲) دويم بعض ستاسو د بعضو نه دي په ايمان کې، دواړو کې ايمان شته او دا د الله تعالىٰ قانون دے چه فرق بين المتماثلين نهٔ کوي (يعنې چه دوه څيزونه يو شان وي د هغے ترمينځ فرق نکوي) نو که د ښځے زړه د الله د محبت نه ډك وي او د سړي هم يو شان نو الله تعالىٰ ئے په بدلو کې فرق نکوي. نو دا د الله تعالىٰ مهرباني شوه چه سړو او ښځو دواړو ته شامل ده چه الله تعالىٰ ئے نهٔ بربادوي.

**فائده** : دا آيت هم ډير د زيري آيت دے چه د هيچا نيك عمل الله تعالىٰ نهٔ بربادوي لکه يو حديث هم د ډير زيري نه ډك دے. ابو الدرداء ﷺ د نبي کريم ﷺ دا ارشاد نقل کوي چه هغه فرمايلي دي : (مَنۡ زَحۡزَحَ عَنۡ طَرِيقِ الۡمُسۡلِمِينَ شَيۡئًا يُؤۡذِيهِمۡ كَتَبَ اللّٰهُ لَهُ بِهِ حَسَنَةً وَمَنۡ كَتَبَ اللّٰهُ لَهُ عِنۡدَهُ حَسَنَةً أَدۡخَلَهُ اللّٰهُ بِهَا الۡجَنَّةَ)

(احمد۲۷۵۱۹) وسنده حسن لغيره - البانی، الصحيحة ۵/۳۸۶)

چا چه د مسلمانانو د لارے نه داسے څيز جدا کړو چه هغوی ته تکليف ورکوي نو الله به هغه لره يوه نيکي وليکي او د چا چه يوه نيکي د الله په دربار کې وليکلے شي نو الله به ئے د هغے په سبب جنت ته داخل کړي). نو په يوه قبوله شوے نيکئ باندے هم انسان ته جنت ملاويږي.

فَالَّذِينَ هَاجَرُوا : دے ته تخصيص بعد التعميم وائي يعنې الله د هيڅ يو مؤمن عمل هم

نهٔ بربادوی خصوصاً د مهاجرینو، مجاهدینو اعمال به نهٔ بربادیږي ځکه چه دا ډیر قیمتی اعمال دی، او دا د دعا په قبلیدو کی ډیر مؤثر دی۔ (فتح البیان)

او ددے تخصیص نے پدے وجه هم وکړو چه پدے سورت کی د جهاد موضوع وه، (بدر او اُحد) پکی ذکر دی نو ددے سره مناسب نے دا اعمال ذکر کړل۔

وَأُخۡرِجُوا : **سوال** : آیا هجرت او د کور نه ویستل یوه معنیٰ نهٔ ده ؟۔

**جواب** : هجرت دے ته وائی چه سړے د خپل اصلی وطن نه لاړ شی او په بل فرعی وطن کی ځای ونیسی او د کور نه ویستل عام دی چه بل فرعی وطن کی ئے ځای نیولے وی لکه عام صحابه کرام رضی الله عنهم چه په مدینه منوره کی دیره شول او یا ئے نهٔ وی نیولے لکه ابو جندل او ابو بصیر رضی الله عنهما چه د مکے نه ویستلے شو خو بل چرته وطن ئے نهٔ وو نیولے بلکه در په در ګرځیدل۔ (عزیز)

یا بعض صحابه کرامو د رسول الله ﷺ د خدمت دپاره په خپله خوښه هجرت کړے وو او ځینی پکی کافرانو مجبوره کړی وو۔ (المنار والرازی)

(۲) یا (وَأُخۡرِجُوا) عطف تفسیر دے او مطلب دا دے چه د دوی دا هجرت د مجبورتیا په وجه شویدے چه کافرانو په ویستلو مجبوره کړیدی۔

بعض مفسرین وائی چه دا د صحابه کرامؓ مختلفو احوالو ته اشاره ده چه څوک په هجرت مجبوره شوی وو او څوک په زوره ویستلے شوی وو او څوک په مکه کی پاتی وو لیکن د سختو تکلیفونو سره مخامخ وو او څوک غازیان او څوک شهیدان وو۔ (المنار)

وَأُوذُوا : ایذاء (تکلیف ورکول) اخراج (ویستلو) ته هم شامل ده او نورو ظلمونو ته هم، او د (فِي سَبِيلِي) نه مراد عبادت او د الله دین دے۔ او دا تکلیفونه ئے سبب د ویستلو دے۔

فِي سَبِيلِي : اَیْ مِنۡ اَجۡلِهٖ وَسَبَبِهٖ) یعنی زما د رضا په وجه او سبب سره ورته تکلیف ورکړے شوے وو۔

وَقَاتَلُوا: دا بله طریقه د ایذاء ده چه ایمان والو سره جنګونه شویدی نو دوی د کفارو جنګ ته مجبوره شویدی۔

لَأُكَفِّرَنَّ : ځکه چه هجرت مخکنی ګناهونه ختموی، او جهاد سره ټول ګناهونه بخلے کیږی سویٔ د قرض نه۔ لکه په حدیث کی راغلی دی۔

سَيِّئَاتِهِمۡ : ددے نه مراد واړه ګناهونه دی یا ټول ګناهونه دی واړه وی او که غټ۔ او همدا ظاهر ده ځکه لفظ کی عموم دے۔

ثَوَابًا : دا منصوب دے بنا بر مفعول مطلق۔ اَیْ اُثِیْبُ ثَوَابًا ۔ زهٔ بـه بدله ورکوم دوی ته په بدلـه ورکـولو سره۔ چه د هغے قدر او اندازه صرف الله تعالیٰ ته معلومه ده۔ پدے کی نورو اجرونو او ثوابونو ته اشاره ده چه هغه د الله سره دی نو مؤمنان دے د هغے طمع هم وکړی۔ (المنار)

حُسْنُ الثَّوَابِ : چه د هغے نه یو جنت دے، د عرش د سوری لاندے ودریدل، په جنت کی د الله تعالیٰ ملاقات۔

| لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِي الْبِلَادِ ﴿۱۹۶﴾ مَتَاعٌ |
| --- |
| دهوکه دِے نکړی تا لره اوړیدل راوړیدل د کافرانو په ښارونو کی۔ (دوی لره) فائدے دی |
| قَلِيْلٌ ثُمَّ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۱۹۷﴾ |
| لږے بیا ځای د وسیدو د دوی جهنم دے او بد ځای تیار شویدے (دا جهنم)۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی الله تعالیٰ د دنیا بی رغبتی بیانوی۔

شان نزول

بـعض مسلمانانو وئیلی وو چه کافران په ښائسته او مزیدار ژوند او مزو کی دی او حال دا چه مونـږ د تـکلیفونو او د لوږو او تندو نه هلاك شو ځکه چه د هجرت په اولنو وختونو کی مسـلمانان پـه تنگسیا کی وو او د مکی مشرکان په خوشالئ کی ژوند تیرولو او بی غمه به په دنیا کی تلل راتلل او تجارتونه به ئے کول۔ (اسباب النزول للواحدی ص : ۹۳)

نو الله تـعالیٰ دا آیتـونه نازل کړل چه نبی کریم ﷺ ئے مخاطب کړو او مسلمانانو ته ئے خبرداریے ورکـړو چـه د کافرانو دا دبدبه یو څو ورځی ده هسے نهٔ چه تاسو پریے دوکه شیٔ، د دوارو ډلـو پـه انـجام بـانـدے سوچ وکړیٔ ستاسو دپاره څه تیار دی او د دوی دپاره څه ؟ او دا سوال پـه هـر وخـت کـی د بـنـده پـه زړه کی راځی مگر که انجام ته سوچ وشی نو دا سوال ختمیږی مؤمن کی صبر پیدا شی۔

په یو متکلم فیه روایت کی دی : (لَا تَغْبِطَنَّ فَاجِرًا بِنِعْمَةٍ إِنَّ لَهُ عِنْدَ اللّٰهِ قَاتِلًا لَا يَمُوْتُ) (ای النار) (ضعیف الجامع الصغیر: ٦٢٤٨)

بـد کـاره ته د هغه په نعمتونو مهٔ پسخیږه ځکه چه د هغه دپاره د الله په نیز داسے وژونکے

(اُوړ) شته چه هغه به پرے نهٔ مری۔ ددے روایت تائید ددے آیت نه کیږی۔
**لَا يَغُرَّنَّكَ** : غرور دے ته وائی (اَلْإِطْمَاعُ فِیْ أَمْرٍ مَحْبُوْبٍ عَلٰى نِيَّةِ عَدَمِ وُقُوْعِهٖ أَوْ إِظْهَارُ الْأَمْرِ الْمُضِرِّ فِیْ صُوْرَةِ النَّافِعِ) (التحرير والتنوير ۳/۳۱۵) چه دیو محبوب کار طمع ورکړی او په نیت کی ئے داوی چه دا به نهٔ کیږی۔ یا ضرری شے د فائده مند په صورت کی وربنکاره کړی۔ او دلته مقصد دا دے چه انسان داسے دهوکه شی چه کافرانو ته ورمائل شی او د هغوی لاره اختیاره کړی او دین پریدی۔ او دهوکه دا هم ده چه بنده ووائی چه کافران به د الله دوستان وی او هغه ته به نزدے وی ځکه ورته مزے او مالونه ورکوی، نهٔ بلکه دا د ختمیدونکے دنیا یوه فتنه او د دوی دپاره استدراج دے۔
**تَقَلُّبُ** : ډیر ګرځیدل او اوړیدل راوړیدل، او ددے بیا دوه مطلبه دی یو دا چه (غَيْرَ مَاخُوْذِيْنَ بِذُنُوْبِهِمْ فِي الدُّنْيَا) النکت للماوردی ۱/۴۴۴) یعنی پدے مهٔ دهوکه کیږه چه دا خلك الله تعالیٰ په ګناهونو سره په دنیا کی زر نهٔ رانیسی بلکه دوی به ضرور رانیسی خو په قلاره او دنیا کی دوی ته مهلت ورکړے شویدے۔ یعنی دوی بنه په امن کی اوړی راوړی او ژوند تیروی نو دا معمولی فائدی دی چه زر ختمیدونکے دی څوك دے پدے سره دهوکه نهٔ خوری۔ لکه حدیث کی دی : [لَوْ كَانَتِ الدُّنْيَا تَعْدِلُ عِنْدَ اللّٰهِ جَنَاحَ بَعُوْضَةٍ مَا سَقٰى كَافِرًا مِنْهَا شَرْبَةً) (الترمذی ۲۳۲۰، بسند صحیح) که دنیا د الله په نیز د ماشی د وزر برابره وے نو کافر ته به ئے ددے نه یو ګوټ اُوبه نهٔ وے ورکړے) ځکه چه هغه ئے دشمن دے لیکن دنیا الله تعالیٰ ته معمولی بنکاری ځکه ئے دشمنانو ته هم ورکړیده۔
(۲) دویم : تفسیر زاد المسیر (۱/۴۸۰) لیکی چه دلته د تقلب نه مراد (تَصَرُّفُهُمْ فِي التِّجَارَاتِ) (قاله ابن عباس، والفراء وابن قتيبة والزجاج) دے،
یعنی چه کافران په تجارتونو پسے ګرځی او په مالونو کی تصرفات کوی، بینکونه او ملکونه او جائیدادونه لری، پدے دهوکه نهٔ شے۔ ماوردیؒ لیکی : تَقَلُّبُهُمْ فِيْ نَعِيْمِ الْبِلَادِ۔ چه دوی د دنیا په نعمتونو کی ګرځی راګرځی۔
**فائده** : د کافرانو مزو ته ئے تقلب لفظ استعمال کړو، تقلب کی معنیٰ د تکلف ده ځکه چه د دوی دا مزے په تکلف سره حاصلیږی او پدے مزو کی ئے هم پریشانی ده ځکه چه خوب ورله نهٔ ورځی، د نشے ګولے خوری او په یو ځای کی ئے ساعت نهٔ تیریږی کله یو چمن او علاقے ته او سیاحتونه او چکری وهی او کله بل ته، تو له زندګی ئے د پریشانئ نه ډکه وی ځکه چه الله تعالیٰ د خواهشاتو اخستو سره پریشانی او تکلیف تړلے دے او

مؤمنانو له په خخښته هم خوب ورځي اګرکه پیسے او مالونه به ورسره نۀ وی لیکن نفس ئے غنی وی نو سکون ورته حاصل وی او د زړه سکون په ایمان او دین کی دے، د دنیا نه خوند صرف مؤمنانو واخستو۔

**اَلْبِلَادِ** : مختلف ښارونه او زمکے او علاقے۔

**مَتَاعٌ قَلِیْلٌ** : اَیْ ذٰلِكَ الْکَسْبُ وَالرِّبْحُ مَتَاعٌ قَلِیْلٌ۔ (زجاج) (زاد المسیر)

دا کسب او ګټه معمولی فائدے دی۔

یا هٰذَا التَّقَلُّبُ مَتَاعٌ۔ دا ګرځیدل د دوی معمولی فائدے دی۔

نو که د یو سړی په دنیا کی هر څو مره ښه ژوند شی خو چه عاقبت او همیشه زندګی ئے خرابه شی نو دغه مزے به ورته څه فائده ورکړی؟!، عقلمند دے پدے باندے سوچ وکړی۔ پدے امت کی ابوجهل څه شو؟، فرعون څه شو؟ قارون څه شو؟ چه لوی لوی فخرونه به ئے کول او په دنیا او مالونو به نازلیدل، هلاکتونو ته ورسیدل نو دنیا ورله څه فائده ورکړه؟!۔

| لٰـكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ |
|---|
| لیکن هغه کسان چه ویریدل د رب خپل نه، دوی لره جنتونه دی چه بهیږی به |
| مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا نُزُلًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ |
| لاندے د هغے نه نهرونه، همیشه به وی په هغے کی، میلمستیا ده د طرفه د الله نه |
| وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ لِّلْاَبْرَارِ ﴿١٩٨﴾ |
| او هغه څه چه د الله سره دی غوره دی دپاره د کاملو نیکانو۔ |

**تفسیر** : لکن د دفع د وهم دپاره راغلی نو سوال دا پیدا شو چه دنیا به د مؤمنانو دپاره هم ښه نۀ وی او ټول مالداره به جهنم ته روان وی؟ نو الله وفرمایل : چه مالدارو او مزو والو کی فرق دے، دوه قسمه دی (۱) یو هغه دی چه کافر دی (۲) دویم هغه دی چه متقیان دی او الله تعالیٰ ورته د دنیا مالونه هم ورکړیدی نو دوی ته به الله تعالیٰ په آخرت کی بدلے ورکوی نو دنیائے هم ښه ده ځکه چه دوی پدے مالونو کی پرهیز کړیدے او د الله نه یکی یریدلی دی او مالونو په دوکه کی نۀ دی اچولی نو د دوی دپاره دنیاوی ژوند متاع البلاغ (مقصد ته د رسیدو توښه) ګرځیدلے ده، نۀ متاع الغرور۔ شاعر هم دا مضمون ادا کړیدے ۔

| مَا أَحْسَنَ الدِّيْنَ وَالدُّنْيَا إِذَا اجْتَمَعَا | وَأَقْبَحَ الْكُفْرَ وَالْإِفْلَاسَ بِالرَّجُلِ |
|---|---|

څه ښه دے دین او دنیا چه دیو تن دپاره راجمع شی او څه بد دے کفر او غریبی چه په سړی باندے راتاو شی۔

ښه ده ښه ده دا دنیا چه تو ښه ده د عقبیٰ

په دنیا کی بدی نشته چه بدی نهٔ وی له تا

د دنیا په بازار کیږی د هغه جهان سودا

(د عبد الرحمن مومند دیوان)

دویم تفسیر قرطبی لیکی : دا د متاع قلیل سره لګی :

لَیۡسَ لَهُمۡ فِیۡ تَقَلُّبِهِمۡ فِی الۡبِلَادِ کَبِیۡرُ الۡاِنۡتِفَاعِ، لٰکِنِ الۡمُتَّقُوۡنَ لَهُمُ الۡاِنۡتِفَاعُ الۡکَبِیۡرُ وَالۡخُلۡدُ الدَّائِمُ)

یعنی د کافرانو دپاره په ښارونو ګرځیدو کی زیاتے فائدے نشته نو سوال پیدا شو چه زیاتے فائدے به چاته حاصلیږی؟ نو الله وفرمایل چه متقیانو دپاره به زیاتی او همیشه فائدے وی۔ (الجامع لاحکام القرآن للقرطبی ٤/٣٢١)۔

نو پدے کی ترغیب دے تقویٰ او بڑته چه دا ځان کی پیدا کړیٔ الله به ناشنا فائدے درکړی۔

نُزُلًا : اَیۡ یُعۡطَوۡنَ نُزُلًا۔ دوی ته به میلمستیا ورکولے شی۔

نزل : مَا یُهَیَّئُ لِلضَّیۡفِ یعنی هغه طعام او میلمستیا ته وئیلے شی چه میلمه دپاره تیار وی او هغه ته ورکولے شی۔ او میلمه له چه طعام تیار شی نو میلمه پرے هیڅ سخته نهٔ وی تیره کړی، نهٔ ئے اغړلی وی او نهٔ پخ کړی وی خو صرف ورته دسترخوان مخے ته شی او ورته ووئیل شی چه خوره او دپاسه پرے د هغه اکرام هم کیږی او د هغه نه څه عوض او بدله نهٔ غوښتلے کیږی۔

خَیۡرٌ لِّلۡاَبۡرَارِ : اَیۡ مِنۡ تَقَلُّبِ الۡکُفَّارِ فِی الدُّنۡیَا] یعنی د الله سره چه څه دی هغه غوره دی د تقلب د کافرانو نه په دنیا کی ځکه چه هغه دائمی دی او په هغے کی هیڅ تکلیف نشته۔

ابرار : کامل نیکانو ته وئیلے شی۔

**فائده** : الله تعالیٰ پدے آیت کی مونږ ته دوه ځل دعوت راکړو یو د تقویٰ او بل د بڑ (نیک عملیٔ) یعنی د کافرانو په مقابله کی ځان کی بر او تقویٰ پیدا کړه کامیابیٔ او همیشه نعمتونو ته به ورسیږے۔

## ابرار چا ته وائی؟

الابرار : ددے ډیر مصداقات دی۔ (۱) یو مرفوع روایت کی دی : [هُمُ الَّذِیۡنَ بَرُّوا الۡاٰبَاءَ وَالۡاَبۡنَاءَ]۔ (الادب المفرد للبخاری وعبد بن حمید وابن ابی حاتم رفتح القدیر للشوکانی)

دا هغه خلك دي چه د پلار او بچو دواړو سره ئے احسان کړیدے۔ د دواړو حقوق ئے ادا کړي وي۔ او اکثر انسانان د یو سره احسان کوي او بل ضائع کوي۔
(۲) حسن بصريّ وائي: اَلْاَبْرَارُ: اَلَّذِيْنَ لَا يُؤْذُوْنَ الذَّرَّ ابرار هغه خلك دي چه هغوی میګانو ته هم ضرر نهٔ رسوي، انسانان خو لا په خاي پریده۔ (تفسیر ابن ابی حاتم۸٤٦/۳)
(۳) قتادة وائي: اَلْاَبْرَارَ الَّذِيْنَ يُؤَدُّوْنَ حَقَّ اللهِ وَيُوْفُوْنَ بِالنَّذْرِ ابرار هغه خلك دي چه د الله حقوق ادا کوي او نذرونه (منبتے) پوره کوي۔ (القرطبی ۱۲۵/۱۹ سورة الدهر)
(٤) ابن زيدٓ وائي: هُمُ الْمُطِيْعُوْنَ لِرَبِّهِمْ۔ (الدر المنثور، تفسیر مقاتل بن سلیمان)
دا هغه خلك دي چه د خپل رب تابعدار وي۔ دا ټول تفسیرونه صحیح دي لیکن:
(٥) ظاهر تفسیر دا دے چه ابرار هغه خلك دي (اَلَّذِيْ يَخْرُجُوْنَ مِنْ طَاعَةٍ وَيَشْتَغِلُوْنَ فِيْ طَاعَةٍ) چه د یو طاعت او عبادت نه وځي او په بل کي مشغوله کیږي، ټوله زندګي ئے د الله په هر قسم بندګئ کي تیریږي نو دے ته کامل نیکان وائي۔ او داسے به نهٔ وي چه صرف د جُمعے په ورځ یا شپه عبادت وکړي یا ټول کال مونځونه نهٔ کوي صرف رمضان کي ئے شروع کړي۔

| وَإِنَّ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَمَنْ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَمَا |
| --- |
| او بعض ددے اهل کتابونه خامخا هغه څوك دي چه ایمان لري په الله او په هغه څه |
| أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِمْ خَاشِعِيْنَ |
| چه نازل کړے شویدي تاسو ته او په هغه څه چه نازل کړے شویدي دوی ته، عاجزي کوي |
| لِلّٰهِ لَا يَشْتَرُوْنَ بِآيَاتِ اللهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا أُولٰٓئِكَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِنْدَ |
| الله ته، نهٔ اخلي په آیتونو د الله قیمت لږ، دغه کسان دوی لره اجرونه د دوی دي په نیز |
| رَبِّهِمْ إِنَّ اللهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۱۹۹﴾ |
| د رب د دوی، یقیناً الله تعالیٰ جلت حساب کونکے دے۔ |

**تفسیر**: اُوس په آخر کي الله تعالیٰ د نیکانو اهل کتابو صفت بیانوي او هغوی ته زیرے ورکوي ځکه چه پدے سورت کي د اهل کتابو بدي بیان شوه نو اُوس د نیکانو پکي پنځه صفات بیانوي او ترغیب ورکوي چه اے کتاب والو! راشئ تاسو هم دا صفات ځان

کی پیدا کړئ نو الله به مو ددے امت په مؤمنانو کی شمار کړی او کامیاب به شئ ځکه چه د الله تعالیٰ د یهودو او نصاراؤ سره د هغوی د بدو صفاتو په وجه ورانه ده که دا ئے پریښودل د الله صحیح بندګان به شی۔

لَمَنْ يُؤْمِنُ بِاللهِ : د اهل کتابو مرض دا دے چه په الله باندے صحیح ایمان نهٔ راوړی بلکه د هغه سره شریکان جوړوی۔

وَمَا أُنْزِلَ : دویم مرض ئے دا دے چه د قرآن کریم منکر دی او د هغے سره سخته دشمنی لری۔ پدے وجه ئے دا مخکی ذکر کړو۔

خَاشِعِينَ لِلهِ : بل په اهل کتابو کی مرض د تکبر دے چه ځان لوی ګڼړی، نو دا مؤمنان پکی الله تعالیٰ ته عاجزی کوی، او دا د مؤمن صفت دے چه الله ته به خشوع کوی دا په مانځه کی هم مراد ده او بهر د مانځه نه هم۔ په بنده کی چه خشوع راشی نو په هغه کی د انقیاد (تابعداریٔ، خبره منلو) صفت پیدا شی، د خشوع په وجه په بنده کی د شفقت او رحمت ماده پیدا کیږی، او د دنیا نه زهد پیدا شی چه بیا ئے هر خیر ته راکاږی۔

لَا يَشْتَرُونَ بِآيَاتِ : دا ئے بل صفت دے چه د الله په کتاب باندے دنیا نهٔ غوره کوی بلکه حق راښکاره کوی او په هغے باندے عمل هم کوی۔

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا |
|---|
| اے ایمان والو! صبر وکړئ او غالب شئ په دشمنانو په صبر سره او ځان وتړئ دشمنانو ته |
| وَاتَّقُوا اللهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿۲۰۰﴾ |
| او ویریږئ د الله نه دے دپاره چه کامیاب شئ۔ |

**تفسیر:** آخر کی الله تعالیٰ یو جامع آیت راوړیدے لکه دا د بلغاؤ طریقه ده چه په آخر د کلام کی داسے خبره راوړی چه ټول مضمون ته شامل وی نو دا آیت د سورت ټولو مضامینو ته شامل دے ځکه چه په کوم بنده کی صبر او مصابره او مرابطه او تقویٰ پیدا شی نو ټول صفات به پکی راشی، د کفر نه به بچ شی، د جهاد ماده او اسلام او ایمان او نیك اعمال ټول به پکی پیدا شی۔

### د آیت فوائد او توضیحات

۱- پدیے آیت کی ترقی د ادنیٰ نه اعلیٰ درجاتو ته شویده، په بنده کی اول ایمان راشی بیا صبر بیا مُصَابره بیا مرابطه بیا تقویٰ. گویا که دا د تربیت طریقه ده.

۲- اصْبِرُوْا : دلته تهول قسم صبرونه مراد دی، چه په طاعاتو باندیے وی، د گناهونو نه صبر، او په مصیبتونو باندیے صبر، او صبر د ایمان حقیقت دیے.

۳- وَصَابِرُوْا : دا د صبر نه اعلیٰ درجه ده څکه چه مصابره په صبر کی په بل باندیے غلبے ته وائی دلته معنیٰ ده : صَابِرُوْا عَلَى الْأَعْدَاءِ فِي الصَّبْرِ. په صبر کی په دشمنانو باندیے غالبه شئ څکه چه دشمنان صبر کوی د کفر دپاره نو تاسو به د حق دپاره صبر کوئ آیا دشمنان مال او جان د باطل پاره نهٔ لگوی؟ دنیا والا د دنیا دپاره ډیر صبر کوی نو مؤمن به د هغے نه ډیر زیات صبرناك وی څکه چه ددهٔ دپاره جنت شته. یعنی دومره کلك او قوی صبر وکړئ چه د کافرانو صبر مات کړئ او په هغوی باندیے ستاسو صبر دپاسه شی. یا د صَابِرُوْا معنیٰ ده یو بل ته په صبر باندیے وصیت کول. لکه د ﴿ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ﴾ په شان.

٤- مرابطه : اصل کی څان تړلو او بندولو ته وائی، ددیے بیا دوه شکلونه دی

(۱) یو د دشمن په مقابله کی په سرحداتو او مورچو کی کیناستل چه کفار د مسلمانانو ملك ته راوانهٔ وړی او اسلام ته تکلیف ورنکړی. پدیے وجه په احادیثو کی د رباط ډیر فضیلت راغلے دیے. په حدیث د سلمان فارسی ﷺ کی دی : [رِبَاطُ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ خَيْرٌ مِنْ صِيَامِ شَهْرٍ وَقِيَامِهِ، إِنْ مَاتَ جَرَى عَلَيْهِ عَمَلُهُ الَّذِي كَانَ يَعْمَلُهُ وَأُجْرِيَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ وَأَمِنَ الْفُتَّانَ)

یوه ورځ او یوه شپه د الله په لاره کی رباط (مرابطه) کول د یویے میاشتے د روژو او قیام اللیل نه بهتر دی. او مرابط چه مړ شی الله تعالیٰ ورله تر قیامته پوریے اجر لیکی او (په قبر کی) رزقونه ورته جاری کوی او د فتنے (امتحان (سوال وجواب د قبر نه) به بچ کیږی.

(صحیح مسلم کتاب الامارة حدیث رقم (۱٦٣) وکشف المشکل من حدیث الصحیحین ۱/۱۰۵۹) لابن الجوزی.

څینی مفسرینو پدیے باندیے دا اشکال کړیدیے چه د رسول الله ﷺ په زمانه کی خو رباط نهٔ وو چه صحابه کرامؓ د دشمن په مقابله کی په سرحداتو ناست وی او مورچے ئے وهلی وی؟ جواب دا دیے چه قرآن عالمی کتاب دیے، الله تعالیٰ ته معلومه وه چه روستو نزدیے زمانه کی به رباط شروع شی لکه د ابوبکر، عمر او عثمان او علی رضی الله عنهم په زمانه کی شروع شو نو دا اشکال نهٔ کیږی چه د رسول الله ﷺ په زمانه کی دیے یو شے نهٔ وی او قرآن کی دیے پریے امر کیږی.

(۲) دویم رباط د نفس دے په درے کارونو (إِسْبَاغُ الْوُضُوْءِ عَلَى الْمَكَارِهِ) د تکلیفونو سره اودس کامل کول. (وَكَثْرَةُ الْخُطَا إِلَى الْمَسَاجِدِ) او مساجدو ته ډیر قدمونه اخستل. (وَانْتِظَارُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الصَّلَاةِ). د یو مانځه نه روستو د بل مانځه په انتظار کی کیدل. فَذٰلِكُمُ الرِّبَاطُ، فَذٰلِكُمُ الرِّبَاطُ فَذٰلِكُمُ الرِّبَاطُ) (صحيح مسلم :۱ ۲۵) والترمذی (۱/ ۱۸)

نو دا (هغه) رباط دے (چه الله پرے قرآن کریم کی امر کریدے). دے ته ئے ځکه رباط وئیلے دے چه په مورچه کی وخت تیرول ډیر سخت وی، او دا رباط د هغے نه ډیر سخت دے ځکه چه پدے کی د نفس د خواهش خلاف زیات دے، او دا کار همیشه هر وخت دے او هغه رباط کله کله وی. که چا دا دواړه کارونه وکړل نو پدے امر باندے ئے عمل وکړو. او دا دواړه مصداقونه ددے آیت کرخی او د بعض اهل لغتو په نیز د رباط دوه معنی دی (مُلَازَمَةُ الثُّغُوْرِ او مُوَاظَبَةُ الصَّلَاةِ). د سرحداتو د حفاظت دپاره همیشه وسیدل، او په مانځه باندے همیشوالے کول. (فتح البيان۲/ ٤١٠)

بیا رباط په دوه قسمه دے. (۱) اَلرِّبَاطُ عَلٰى ثَغْرِ الْعَدُوِّ. د دشمن په سرحد باندے مورچه وهل او کیناستل لکه مخکی ذکر شو. (۲) دویم اَلرِّبَاطُ عَلٰى ثَغْرِ الْقَلْبِ. د زړه په غاړه کیناستل چه شیطان دننه لاړ نشی ځکه چه زړه هم یوه بادشاهی ده، او دا د الله تعالیٰ د عظمت عرش دے او شیطان ددے د خرابولو کوشش زیات کوی او زړه ته مختلفے لارے راغلی دی پدے وجه شیطان په هغے لارو راتلل کوی نو که بنده ددے لارو حفاظت ونکړی نو زړه (یعنی دار الخلافه) ئے شیطان قبضه کوی. او د زړه حفاظت ډیر کم انسانان کوی او عام خلك ددے په باره کی آزادی کوی.

**فائده** : رباط د رَبْطُ الْفَرَسِ نه دے په یو ځای کی د اس تړلو ته وائی چه د هغه ځای حفاظت او ساتنه پکی مطلب وی (مفرداتِ راغب)

خو دلته ترے یواځے د اس تړل مراد نهٔ دی بلکه د هغه تولو وسائلو برابرولو ته شاملیږی چه په مسلح جهاد کی ورته ضرورت راپیښیږی. (تفسير الطبری۲/ ۲۲۲)

ددے نه دا معلومه شوه چه مسلمانانو باندے لازمه ده چه د کافرانو په مقابله کی به هر قسم وسائل په کار اچوی لکه چه الله تعالیٰ پدے باندے په سورة الانفال (۶۰) آیت کی امر کریدے: ﴿وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ﴾. تاسو کافرانو دپاره څومره چه ستاسو وس وی قوت تیار کړئ او د سرحداتو د حفاظت دپاره د اسونو تړل.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ : د الله نه تقویٰ دا ده چه د هغه د حدودو پابندی وکړے شی.

**لَعَلَّکُمْ** : دا امید په نسبت د بندګانو دے چه تاسو امید وساتئ چه الله به خامخا کامیابی درکوی. او دا درے واړه داسے اسباب دی چه پدے سره کامیابی حاصلیږی.

ځینی مفسرینو ددے درے څیزونو خاص مصداقات ذکر کړیدی :

(۱) اِصْبِرُوْا عَلَی النَّعْمَاءِ وَصَابِرُوْا عَلَى الْبَأْسَاءِ وَرَابِطُوْا فِیْ دَارِ الْاَعْدَاءِ وَاتَّقُوا اِلٰهَ السَّمَاءِ لَعَلَّکُمْ تُفْلِحُوْنَ فِیْ دَارِ الْبَقَاءِ) بدائع التفسیر) (په نعمتونو صبر وکړئ او په تکلیفونو ځان کلك کړئ او د دشمنانو په کورونو کی مورچے ووهئ، او د آسمان د اله نه ویریږئ دے دپاره چه په همیشه کور کی کامیاب شئ ) مګر دے قافیه جوړولو ته ضرورت نشته، صبر عام دے او مصابره خاص ده لکه مخکی ذکر شو.

## امتیازات وخصوصیات

۱- یو پدے سورت کی الله تعالیٰ د نصاراؤ زیاته مقابله وکړه او د هغوی د سوالاتو جوابات ئے ورکړل.

۲- پدے کی ئے د کتاب الله تقسیم محکمات او متشابهاتو ته کړیدے.

۳- د زهد شپږ څیزونه ئے ذکر کړیدی (زین للناس حب الشهوات)

٤- پدے کی د عیسیٰ علیه السلام او د هغه د مور او د هغه د نیا تاریخ ذکر کړیدے.

٥- او د عیسیٰ علیه السلام په عبدیت باندے (۲۵) دلیلونه ذکر شویدی چه داسے په بل سورت کی نهٔ دی ذکر.

٦- د اهل کتابو زیات قبائح (بد صفات) ئے ذکر کړیدی.

٧- رد د شبهاتو د اهل کتابو دے په رسالت باندے.

٨- قصة د احد او بدر او په هغے کی حکمتونه ذکر دی دپاره د تربیت.

٩- او اسباب د دفع الهزیمة بیان شو. ۱۰- او پدے کی قوانین او د بندګانو ذهن سازیانی په ډیر عجیب انداز ذکر دی. په عقائدو او جهادونو او د تقدیر په باره کی.

۱۱- او په آخر کی د مؤمنانو نادر صفات.

۱۲- د الله تعالیٰ حکمتونه په خیر او شرك کی. ۱۳- غزوه د حمراء الاسد.

۱٤- تربیت د جماعتِ مُسلمه. ۱۵- د مبتدعینو او اهل الفرقة د مخونو توریدل او د اهل السنة والجماعة مخونه سپینیدل.

۱٦- د اهل کتابو دوه قسمونو ته تقسیمول صالحین او بد عمله.

۱۷- د لفظ (الناس) ډیر تکرار پکی شویدے۔

۱۸- اسلام صرف مقبول دین دے او باقی دینونه مردود دی۔

۱۹- د کعبې مشرفې فضیلت او د حج پرېښودل د کفارو کار دے۔

۲۰- د اعتصام بالله او د اعتصام بامر الله وحبل الله دوه اقسام۔

۲۱- د شهداءِ احد فضائل۔

ختم شو تفسیر د سورة ال عمران په حمد د الله او په توفیق د هغه سره په جمادی الاولی ۱٤۳۵/۵/۱٤ هـ الموافق ۲۰۱٤/۳/۱٤ء بجی (۱۰:۳۰) یوم السبت

ولله الحمد فی الاولی والآخرة۔

وکتبه ابوزهیر سیف الله الباریزی البشاوری غفرله الباری

بسم الله الرحمن الرحیم

| آیاتها (۱۷٦) | (٤) سورة النساء مدنية (۹۲) | رکوعها (۲٤) |
| --- | --- | --- |

سورة النساء مدني دے، پدے کې یو سل شپږ اویا آیتونه او څلیریشت رکوع دي۔

## سورة النساء :

النساء : زنانو ته وائي۔ زنانو ته الله تعالیٰ ډیره ورځ ورکړیده چه د دوی په نوم باندے دا سورت یاد کړے شو، او د سړو په نوم سورت نشته۔ پدے کې حکمة دا دے چه زنانه یو مظلوم مخلوق دے چه په عامو معاشرو او خصوصاً د جاهلیت په معاشره کې په دوی ظلم کیدو او د دوی حقوق غصب کیدل نو الله تعالیٰ دا سورت د هغوی د حقوقو د ادا کولو دپاره راولیږلو۔

**فائده** : پدے سورت کې (۱۷٦) آیتونه دي۔ او (۳۰٤٥) کلمات دي۔ او د حروفو شمار ئے شپاړس زره دیرش (۱٦۰۳۰) دے۔

ددے سورت فضائل

۱ – رسول الله ﷺ فرمائي : [مَنْ أَخَذَ السَّبْعَ الْأُوَلَ مِنَ الْقُرْآنِ فَهُوَ حَبْرٌ] (مسند احمد ٦/۸۲ باسناد حسن– شعیب)۔ چا چه د قرآن اولني اوه سورتونه واخستل (یاد ئے کړل او ددے په مطلب ئے ځان پوهه کړو) نو دا لوی عالِم دے۔

۲–د واثله بن الاسقع ﷺ نه مرفوعاً نقل دي :

[أُعْطِيتُ السَّبْعَ الطُّوَلَ مَكَانَ التَّوْرَاتِ وَأُعْطِيتُ الْمَثَانِيَ مَكَانَ الْإِنْجِيلِ وَأُعْطِيتُ الْمِئِينَ مَكَانَ الزَّبُوْرِ وَفُضِّلْتُ بِالْمُفَصَّلِ] (المعجم الکبیر) وصحیح الجامع الصغیر (۱۰٤۹)۔

ما ته اوه اوږده سورتونه د تورات په ځای راکړے شویدي او مثاني د انجیل په مقابله کې او مئين د زبور په مقابله کې راکړے شویدي او زۀ په مفصلاتو سورتونو غوره کړے شوے یم۔

۳– د سیدنا عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل دي :

[ثَمَانُ آيَاتٍ فِي سُوْرَةِ النِّسَاءِ، هُنَّ خَيْرٌ لِهٰذِهِ الْأُمَّةِ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ وَغَرَبَتْ]

په سورة النساء کې اته آیتونه دي چه ددے امت دپاره د دنیا او مافیها نه غوره دي چه

هغه دا دي: ﴿ يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ: ٢٦ ﴾ ﴿ وَاللّٰهُ يُرِيْدُ اَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْكُمْ ﴾ ﴿ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ ﴾ ﴿ اِنْ تَجْتَنِبُوْا كَبَآئِرَ: ٣١ ﴾ ﴿ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ: ٤٨ ﴾ ﴿ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ: ٤٠ ﴾ ﴿ وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ: ١١٠ ﴾ ﴿ مَا يَفْعَلُ اللّٰهُ بِعَذَابِكُمْ ﴾ (الدر المنثور ٤/٣٤٥ والقرطبي (٥/١٦١) وفي شعب الايمان (٦٧٤٤) آیت: وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَلَمْ يُفَرِّقُوْا: ١٥٢) وفي سنده صالح المري ضعيف) ـ او ابن مسعود رضی الله عنه ورسره دوه نور زيات کړيدي: (لا خير في كثير من نجواهم) او (والذين امنوا بالله)۔

دا آيتونه د الله د طرفنه ددے امت دپاره اعلانات او زيرى دى۔

## د نزول زمانه

د سيدنا ابن عباس، عبد الله بن زبير او زيد بن ثابت رضى الله عنهم نه نقل شويدى چه دا سورت مدنى دے۔ قرطبیؒ ليكلى دى چه صرف يو آيت د فتح د مكے په كال په مكه كى د عثمان بن طلحه الحَجَبِىؓ په باره كى نازل شويدے، هغه آيت: ﴿ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمٰنٰتِ اِلٰٓى اَهْلِهَا ﴾ دے۔ (٥٨ آيت)

ليكن بيا هم مدنى شو ځكه چه د هجرت نه روستو نازل دے۔

بخارىؒ د عائشه رضى الله عنها نه روايت كړيدے چه كله سورة النساء نازله شوه نو زهٔ د رسول الله ﷺ سره اوم، يعنى د ام المؤمنين په حيثيت سره۔ او پدے خبره باندے د ټولو علماؤ اتفاق دے چه عائشه رضى الله عنها د وادهٔ نه روستو د رسول الله ﷺ سره مدينے ته راغلے وه۔ دے نه سوئ پدے سورت كى بيان شوى مسائلو باندے د سوچ كولو نه روستو بالكل يقين كيږى چه دا مدنى سورت دے۔

## مناسبت او ارتباط

١ – په سورة البقره كى اكثر په يهوديانو ردونه وو او په آل عمران كى اكثر په نصاراؤ او پدے سورت كى ددے امت تربيت بيانوى۔

٢ – مخكى سورتونو كى عقائد او نظريات (يعنى توحيد) برابرول وو نو پدے سورت كى د دنيا انتظام برابرول ذكر دى نو اسلام لكه څنګه چه د معاد (آخرت) برابرولو دپاره راغلے دے نو دغه شان معاش به هم جوړوى۔

٣ – د هغه سورت په آخر كى ئے په تقوىٰ باندے حكم وكړو نو دلته د تقوىٰ دوه قسمونه

بیانوی چه یو تقویٰ په حقوق الله کی او بل په حقوق العباد کی۔

٤- مخکی د اُحد د غزا بیان وو چه ډیرے ښځے په کی کونډے او ډیر ماشومان پکی یتیمانان شو نو دلته د همدغه کونډو او یتیمانانو په باره کی هدایات نازل شویدی چه د دوی سره داسے کویٔ او داسے نهٔ۔

٥- په مخکی سورت کی هم د منافقانو بدیانی او د جهاد خبرے وے نو پدے سورت کی به هم ددے دوارو متعلق بحث کیږی۔

٦- مخکی په هغه چا رد وو چه نیکان بندګان (لکه عیسیٰ او مریم علیهما السلام) ئے د الله سره شریکان ګنړل نو اُوس په عمومی طریقه د شرك رد او په هغے سخت عذاب بیانوی۔

## موضوع، دعویٰ او مقصد د سورت

ددے سورت غټ درے مقاصد دی (١) بَيَانُ الْأُمُوْرِ الْإِنْتِظَامِيَّةِ (وَبِعِبَارَةٍ: اِصْلَاحُ الْمُعَاشَرَةِ، وَبِعِبَارَةٍ: بَيَانُ حُقُوْقِ الْعِبَادِ خُصُوْصًا حُقُوْقُ الْمَظْلُوْمِيْنَ مَعَ بَيَانِ حُقُوْقِ اللّٰهِ)

یعنی هغه امور (کارونه) چه په هغے سره د بندګانو دنیا او آخرت جوړیږی چه هغه د مظلومانو سره او د بادشاهانو او د هغوی د رعیت سره تعلق لری۔ یا هغه کارونه چه په هغے سره معاشره جوړیږی، یا داسے تعبیر وکړه: د بندګانو د حقوقو بیان دے خاصکر د مظلومانو د حقوقو بیان دے۔ لکه زنانه، ماشومان او یتیمانان او خپل خپلوان وغیره په اوله حصه د سورت کی دا مسئله زیاته بیانیږی۔ د سورت زیاته حصه ئے رانیولے ده۔

سره د بیان د حقوق الله او حقوق العباد نه، حقوق الله پکی دا دی چه د الله سره شرك نهٔ کول او توحید اختیارول۔ او د بندګانو حقوق دا دی چه د مظلومانو، یتیمانانو، کونډو زنانو او کمزورو او میراث خورو سره ظلم مهٔ کویٔ او د مشرانو حقوق دا دی چه د هغوی په معروف کی طاعت کول لکه اولی الامر منکم کی دی او رعیت دپاره ئے وئیلی دی چه (ان تؤدوا الامانات الی اهلها) امانتونه به خپل اهل ته سپاریٔ۔

په بل تعبیر: پدے سورت کی داسے امور ذکر کوی چه په هغے سره ظلمونه دفع کیږی لکه په زنانو، ماشومانو او ناپوهه خلکو ظلم کول، او د الله په حق کی ظلم د هغه سره شرك کول دی نو هغه ئے هم دفع کړیدے پدے طریقه چه د شرك دوه کرته قباحت (بدی) ئے بیانه کړیده په آیت (٤٨) او (١١٦) کی۔ (احسن الکلام)۔

(۲) بَيَانُ الْأَحْكَامِ الْمَلَكِيَّةِ - يعني د قانون سازئ او د ملك د جوړولو او د خلافت اسلامي د قائمولو ترتيبونه بيانيږي دا د (۵۸) ان الله يأمركم) نه روستو شروع كيږي۔ او ددے نه بل تعبير كيږي: (بَيَانُ حُقُوْقِ الرُّعَاةِ وَالرَّعَايَا ، يا بَيَانُ اَحْكَامِ الرَّاعِيْ وَالرَّعِيَّةِ) سره يعني د بادشاهانو او د رعيت احكام او حقوق بيانيږي۔ او دا به يواځے د بادشاهانو سره متعلق نهٔ وي بلكه دا انفرادي احكام هم دي، د هريو تن پكي هم فائده شته۔

۳- موضوع: اِزَالَةُ رُسُوْبِ الْجَاهِلِيَّةِ - د جاهليت د زمانے خيرې زائله كول۔ د اسلام نه روستو د جاهليت د زمانے بعض خيرې پاتي وو نو د هغے اصلاح ئے وكړه او هغه ئے صفا كړل او بندګانو ته ئے صحيح تصور وركړو او د دشمنانو ګنده خيالات او تصورات ئے دفع كړل، لكه جاهليت والو به د يتيمانانو مال خوړلو او زنانه به ئے په ميراث كي وړلے او بي حيائي به ئے كوله، او په باب د نكاح كي به ئے د خپلے خور او مور سره نكاحونه كول۔

او د يهودو او منافقانو سخت رد هم پكي ذكر ئے ځكه چه د دوی د يو بل سره تعلق وو، معاشره ئے ګنده كوله۔

او ددے سره سره دا سورت د مسلمانانو په اجتماعيت كي د تعاطف (يو بل باندے د مهربانئ او ظلم نكولو) احساس وركوی دارنګه څوك چه دے مقصد ته ضرر رسوی (لكه مشركان، اهل كتاب او خصوصًا يهود) نو د هغوی مكرونه او چلونه او وسائل ئے دفع كړيدي او د هغوی فاسد منهج او طريقه ئے ختمه كړيده او داسے قوانين او تشريعات ئے وضع كړيدي چه دوی لارے ته راولي۔ (فی ظلال القرآن ۱/ ۵۵٤)

٤- **موضوع** : چه جامعه ده مخكنو موضوعاتو لره او هغه مقصدي موضوع ده (اَلتَّرْغِيْبُ اِلَى اِتِّبَاعِ الرَّسُوْلِ بِالْكَثْرَةِ) د نبي كريم ﷺ تابعدارئ ته ئے زيات ترغيب وركړيدے لكه ﴿ وَمَنْ يُطِعِ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ﴾ ﴿ مَنْ يُطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ اَطَاعَ اللهَ﴾ او د رسول الله ﷺ د تابعدارئ فوائد به ذكر كوی۔

لكه د (۵۹) آيت نه روستو په يو ركوع كي ډير فوائد او په منافقانو باندے ردونه كړيدي او د (اطيعوا الله واطيعوا الرسول) او ﴿ وما ارسلنا من رسول الا ليطاع﴾ او ﴿ فلا وربك لا يؤمنون﴾ ﴿ ولو انا كتبنا عليهم ان اقتلوا﴾ ای فی اتباع الرسول) ﴿ مع الذين انعم الله عليهم﴾ او په آخر د سورت كي به هم دغه خبره كوی۔

او دا ځكه مركزي مسئله ده چه رسول الله ﷺ دغه مخكني حقوق بيانونكے وو او د جاهليت رسمونه هغه ختمول او ددے په مقابله كي منافقان او يهود پيش پيش وو چه د

خلکو مخے تـه به ودریدل او شکونه به ئے اچول نو الله به په دوی باندے هم سخته حمله کوی چه ډیر بد صفات ئے راجمع کړیدی او منافقان ئے په مینځ مینځ کی تکولی دی۔ ورسره ورسره د قرآن د عادت مطابق چه توحید خامخا بیانوی نو د نصاراؤ په شرک ئے رد کړیدے او اهل کتاب ئے د غلو فی الدین نـه منع کړیدی او حق دین تـه ئے دعوت ورکړیدے۔ او په مینځ کی ئے هم وثیلی دی: ﴿وَاعْبُدُوا اللهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا﴾ او ﴿إِنَّ اللهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ﴾ خو د رسالت خبره په سورت کی زياته ذکر ده۔ او دا يوه جامعه موضوع ده چه زمونږ تعبير ددے د ښه بيان نه قاصر دے۔

د يوے رکوع **حاصل**: اول کی الله تعالیٰ په تقویٰ سره امر کړیدے ځکه چه دا بنیادی خیز دے چه په چا کی تقویٰ پیدا شی نو هر خیر ورپورے انخلی او تقویٰ ته ئے په ډیر ښائسته انداز دعوت ورکړیدے، براعة الاستهلال ئے کړیدے۔ یعنی دا اولنۍ آیت تولو ذکر شوی مقاصدو ته اشاره کوی چه هغه د الله په احکامو عمل کول او يو بل باندے رحم کول لکه (مِنْ نَفْسٍ وَّاحِدَةٍ) کی ورته اشاره ده او حقوق العباد ادا کړئ د صله رحمیٔ لحاظ وساتئ۔

بیا ئے سمدست د یتیمانانو د مالونو متعلق حکم کړیدے چه دوی ته مالونه ورکړئ او د دوی مالونـه مـهٔ بدلوئ، بیا ئے د یتیمانانو زنانو د نکاح مسئله بیان کړے بیا ئے د مهرونو مسئله، بیا د سفهاؤ د مالونو د حفاظت حکم دے او د هغے متعلقات، بیا ئے مسئلة المیراث ذکر کړیده په (لِلرِّجَالِ نَصِيْبٌ) کی، بیا په (وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ) کی بل حکم دے چه میراث نه څه نا څه برخه خپلوانو ته هم ورکول پکار دی۔ بیا د یتیمانو په مال خوړلو سره تخویف ذکر دے، بیا په (يُوْصِيْكُمُ اللهُ) دوه آیتونو کی د میراث تفصیلی احکام بیانوی د هغے نه روستو د وصیت مسئله هم بیانوی او بیا بشارت او تخویف ذکر دے چه د احکامو پابندیٔ سره جنت ملاویږی ورنه جهنم دے۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ |
|---|
| اے خلقو! ویریږئ د رب خپل نه هغه ذات چه پیدا کړی یئ تاسو د نفس یو نه |
| وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيْرًا |
| او پیدا کړے ئے دے د هغے نه بی بی د هغه او خوارهٔ کړی ئے دی د دواړو نه سری ډیر |

| وَنِسَآءً وَاتَّقُوا اللهَ الَّذِيْ تَسَآءَ لُوْنَ بِهٖ وَ |
|---|
| او ښځې او ویریږئ د الله نه هغه چه تاسو سوال کوئ د هغه په نوم او د (پریکولو) د |
| الْاَرْحَامَ اِنَّ اللهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيْبًا ﴿۱﴾ |
| خپلولئ نه، یقیناً الله تعالیٰ دے په تاسو باندے نګهبان۔ (ساتونکے)۔ |

**تفسیر** : یَا اَیُّهَا النَّاسُ : دا عام خطاب دے هر چا ته، مؤمن وی که کافر، یهود وی که نصارئ او که منافقان، او د قیامته پورے ځو مره انسانان چه راځي هغوی ټولو ته متوجه دے۔

اِتَّقُوْا : تقویٰ سره په بنده کی ټولے نیکیانی راجمع کیږی پدے وجه ئے پدے باندے امر وکړو۔

رَبَّكُمْ : رب لفظ ئے راوړو پدے کی اشاره ده چه د الله نه پدے وجه یره کول پکار دی چه هغه د انسان رب دے، هغه انسان لره پیدا کړیدے، هغه ورته روزی ورکوی، او په هغه باندے د هغه بیشماره احسانات دی، نو پدے احکامو سره هم د بنده پالنه کوی۔

مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ : ددے نه مراد آدم علیه السلام دے او د (زَوْجَهَا) نه مراد حواء رضی الله عنها ده۔ حدیث کی دی چه آدم علیه السلام اُوده وو نو الله تعالیٰ د هغه د ګسے پوختئ نه د هغه دپاره بی بی حواء راپیدا کړه چه خوا کی ورسره ناسته وه، آدم علیه السلام ترے تپوس وکړو ته څوك یې؟ هغے ووئیل : زۀ ستا بی بی یم، څه دپاره پیدا شوے؟ هغے ووئیل : (لِتَسْکُنَ اِلَیَّ) دے دپاره چه ته ما ته سکون حاصل کړے۔ (ابن جریر والبیهقی فی الاسماء والصفات وابن عساکر وابن ابی حاتم الدر المنثور ۱/ ۲۷۸)

**حکمة** : الله تعالیٰ حواء د آدم علیه السلام نه ولے پیدا کړه؟ د خټے نه ئے ولے نۀ جوړوله؟ پدے کی ډیر حکمتونه دی یو په هغے کی دا دے چه د دواړو یو بل سره میل جول (تعلق) او محبت پیدا شی او په یو بل ئے ترس او ترحم پیدا شی، که دا نۀ وے د یو بل نه به جدا جدا ګرزیدلے او په یو بل به نۀ خفه کیدلے، پدے وجه علماء کرام دا نکته وائی چه سړے د خاورے نه پیدا دے او ښځه د سړی نه پیدا ده نو د سړی توجه ټوله د دنیا او د هغے د مالونو او جائیدادونو سره وی او زنانه سره صرف د خپل خاوند غم وی، خاوند ورته د هر څه نه غوره ښکاری۔

بیا الله تعالیٰ حواء رضی الله عنها د آدم علیه السلام د ګسے (چپے) پوختئ نه راویستله پدے کی

د ښځې کوږوالي ته اشاره ده چه ښځه کوږ لرګے دے پدے کې الله تعالیٰ د سړي په شان ډير کمال پيدا نکړو ځکه چه بيا د دواړو شريك ژوند نه تيريږي، يو بل ته تن نه ايږدي نو الله تعالیٰ په ښځه کې کوږوالے پيدا کړو چه سړي ته محتاجه وي او سړي نه بغير د هغے کار نه کيږي او بل طرفته په سړي باندے امتحان دے چه دا د جنت حوره نه ده چه ته به ترے ټولے فائدے اخلے او هيڅ تکليف به ئے نه وي، نه بلکه دا کوږ لرګے دے دے سره به ګوزاره کوے۔

**فائده** : دا آيت صريح دليل دے چه حواء د آدم ﷺ نه پيدا ده او بيا ټول انسانان د دوي دواړو نه پيدا شويدي نو کوم ګمراهان چه دا تاويل کوي چه د (نفس واحدة) نه مراد يو جنس دے او حواء د آدم ﷺ نه پيدا نه ګڼړي نو دا خطاء دي، ځکه چه د صحيح حديث نه منکر دي۔ او بعض باطل پرست پکې لا دا هم وائي چه آدم ﷺ د خاورے نه نه دے پيدا ځکه چه دا ممکن نه ده۔

**فائده** : (مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا ) کې د سورت موضوع ته اشاره ده چه ټول انسانان د يو نفس نه پيدا دي نو ښځې د سړو سره په جنس کې يو دي، دواړه خور او ورور دي نو خوېندو سره احسان پکار دے نه ظلمونه کول او نه د هغوي حقونه غصب کول۔ دا براعة الاستهلال شو۔

وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا : دوه کسان وو الله تعالیٰ ترے په کربونو، فدمونو انسانان راخوارۀ کړل او لګيا دي خوريږي، او د يو بل نه ئے پيدا کوي دے دپاره چه د يو بل سره ئے مينه او محبت او په يو بل باندے ترحم پيدا شي۔

وَنِسَاءً : د ښځو سره ئے (كَثِيرًا) ونه وئيلو حال دا دے چه د ابو هريره ﷺ نه نقل دي چه زنانه د سړو نه په دنيا کې هم زياتي دي ځکه چه د يو سړي دپاره ځلور ښځې جائز دي او په جنت کې به هم زياتي وي، يو جنتي ته به دوه بيبيانې ورکوي او شهيد ډپاره اويا او چا ته زياتي او چا ته کمے۔ او اُوس زمانه کې مردم شماري والا ليکي چه دنيا کې سړي ځلويښت فيصده او زنانه شپيته فيصده پيدا کيږي نو ددے نه معلومه شوه چه دويم واده کول پکار دي دے دپاره چه زنانه معلقے پاتي نه شي۔ نو زنانه اګرکه زياتي دي ليکن اصل په هغوي کې پټ والے دے، هغوي بازارونو ته نه راوځي، کارونه نکوي، دکانونو ته نه راوځي نو نه ښکاره کيږي او سړي په هر ځاي کې ښکاري نو ځکه ډير معلوميږي او پدے وخت کې زنانه پدے وجه ډيرے ښکاري چه کورونو کې ئے وخت نه تيريږي بهر راوتي دي۔

وَاتَّقُوا اللهَ : دوباره ئے په تقوىٰ باندے حکم وکړو دپاره د تاکید او اهتمام. یا پدے کی تقوىٰ ده په حقوق الله کی چه د هغه سره شرك نهٔ کول دی.
تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ : پدے کی دوه قوله دی (۱) اول دا چه تَسَاءَلُوْنَ باب تفاعل دے د تشارك خاصیت پکی دے یعنی د یو بل نه سوال کوئ په نوم د هغه سره.
(۲) دویم دا چه دا په معنیٰ د مجردو سره دے یعنی تاسو سوال کوئ د هغه په نوم سره. یا باء زیاتی ده أَیْ تَسْئَلُوْنَهٗ) یعنی تاسو سوال کوئ د هغه نه او پدے کی د تقوىٰ علت ذکر دے چه هرکله چه تاسو د هغه نوم بل چا ته وسیله کوئ یا د هغه نه سوال کوئ نو لازم ده چه د هغه تعظیم وکړئ، د هغه توحید ومنئ او د هغه احکام قبول کړئ.
په بل تعبیر : د الله نه پدے وجه هم یریدل پکار دی چه بنده د الله په نوم اخستو سره خپل یو حاجت د بل چا مخے ته اړدی، دا پو هیږی چه د مسئول (سؤال کړے شوی انسان) په زړهٔ کی د الله د کبریاء او د هغه د عظمت تصور شته چه د هغے په وجه به ددهٔ حاجت ضرور پوره کوی. د الله ددے عظمت او کبریاء تقاضا دا ده چه بنده د هغه عبادت اُوکړی او د هغه نه اُویریږی. لکه عربو به یو بل ته وئیل : أَسْئَلُكَ بِاللّٰهِ وَبِالرَّحِمِ. تا نه د الله په نوم او د خپلولئ په وجه سوال کوم. (مجاهدؒ) او حسن بصریؒ فرمائی : یو تن به وئیل : (آنْشُدُكَ بِاللّٰهِ وَبِالرَّحِمِ) تا ته په الله او په خپلولئ قسم درکوم. (الدر المنثور)
وَالْاَرْحَامَ : پدے کی درے اقوال دی (۱) دا عطف دے په لفظ د (الله) باندے او مضاف پټ دے یعنی (وَاتَّقُوْا قَطْعَ الْاَرْحَامِ) یعنی اویریږئ د پریکولو د خپلولئ نه. نو دا عطف د خاص دے په عام باندے او دا قول د مجاهدؒ، ضحاكؒ او قتادهؒ دے.
(۲) قول : دا منصوب دے په اغراء (تیزئ) سره یعنی وَالْاَرْحَامَ اِحْفَظُوْهَا. د خپلولئ حفاظت او ساتنه وکړئ. دا قول د واحدیؒ دے.
(۳) قول : دا عطف دے په محل د ضمیر د (بِهٖ) باندے او د هغے محل نصب دے. یعنی تَسَاءَلُوْنَ بِهٖ وَبِالْاَرْحَامِ . او په قرائت د ابن مسعودؓ کی (وَبِالْاَرْحَامِ) راغلے دے یعنی هرکله چه تاسو یو بل ته خپلولی وسیله کوئ نو لازم ده چه په خپلوانو کمزورو باندے ظلمونه ونکړئ لکه عربو به یو بل ته دا وئیل چه د الله او د خپلولئ لحاظ وکړه دا شے راکړه.
والارحام جمع د رَحِم ده، دلته ترے خپلولی مراد ده که د مور د طرفنه وی او که د پلار د طرفنه. (التفسیر المنیر)
د صله رحمئ اهمیت د بنده په زړهٔ کی د کینولو دپاره الله تعالیٰ د خپل حق سره د ((رحم))

حق یو ځای کړو، دے دپاره چه معلومه شی چه لکه څنګه چه د الله د حقوقو ادائیګی واجب ده، نو دغه شان د رشته دارو (خپلوانو) حقوق هم ادا کول واجب دی. او څوك چه په خپلولئ او رشته کی څومره نژدے وی هغومره به د هغه د حق اهمیت زیات وی.

قرآن کریم کی الله تعالیٰ د والدینو د حقوقو د اهمیت خودلو دپاره بندګانو ته د خپل عبادت د حکم ورکولو نه روستو بغیر د څه تاخیر نه د والدینو سره د ښه سلوك حکم کړیدے. الله فرمائی : ﴿ وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ﴾ (الاسراء : ۲۳) بل ځای فرمائی : ﴿ وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا وَّبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّبِذِى الْقُرْبٰى ﴾ - (النساء : ۳۶) په صحیحینو کی د عائشے رضی الله عنها روایت دے چه نبی کریم ﷺ اُوفرمایل : چه ((رحِم (خپلولی) د عرش سره پیوسته ده وائی چه څوك ما یو ځای کړی نو الله دِے هغه یو ځای کړی، او څوك چه ما پریکړی الله دِے هغه د خپل رحمت نه پریکړی)). په صحیحینو کی د جُبیر بن مطعم ﷺ روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

((خپلولی پریکونکے به جنت ته نهٔ داخلیږی)).

د آیت په آخر کی الله اُوفرمایل : چه الله تعالیٰ ستاسو د احوالو او اعمالو نه خبردار دے، د هغه نه یوه ذره هم پټه نهٔ ده، پدے وجه بنده لره پکار دی چه خپل ژوند داسے تیر کړی چه د هغه په زړهٔ او دماغو کی دا خبره کینی چه الله ما ته ګوری، او زما ټول اعمال د هغه په سترګو کی دی.

رَقِيْبًا : د رقابت نه اخستے شویدے د یو کار د تحقیق دپاره نظر تیزول او کلمه رقیب په معنیٰ د مُراقب (څوکئ کونکی) سره هم راځی. او رقیب د الله په صفاتو کی (حفیظ) ساتونکی ته وائی. او پدے جمله کی الله تعالیٰ بندګان یره وی چه خبر شئ الله تعالیٰ ستاسو هر عمل وینی، حساب به درسره کوی نو دا مقدمه ده دپاره د عمل کولو په روستو احکامو باندے.

| |
|---|
| وَاٰتُوا الْيَتٰمٰٓى اَمْوَالَهُمْ وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيْثَ بِالطَّيِّبِ وَلَا تَاْكُلُوْٓا |
| او ورکړئ یتیمانانو ته مالونه د هغوی او مهٔ بدلوئ خبیث د پاك سره او مهٔ خورئ |
| اَمْوَالَهُمْ اِلٰٓى اَمْوَالِكُمْ اِنَّهٗ كَانَ حُوْبًا كَبِيْرًا ﴿۲﴾ |
| مالونه د هغوی سره د مالونو ستاسو نه یقیناً دا ګناه ده لویه. |

**تفسیر** : دا اولنے حکم دے ددے سورت د احکامو نه چه پدے کی منع ده د یتیمانانو د

مالونو خوړلو نه ځکه چه دا هغه ډله ده چه دوی د خپلو حقوقو نه دفاع نشي کولے، هرڅوك ئے په ډیره آسانئ سره حقوق ضائع کولے شی، نو اسلام د هغے د حفاظت حکم وکړو.

اَلْیَتٰمٰی : جمع د یتیم او یَتِیْمَةٌ (مذکر او مؤنث) ده او ایتام یواځې د یتیم (مذکر) جمعه راځي، د یُتْم نه دے په لغت کی یواځې والی ته وائي او په عرف کی په حیواناتو او مارغانو کی یُتْم دا دے چه مور ئے مړه وی او په انسانانو کی دا دے چه پلار ئے وفات شوے وی او دے یواځې پاتې شوے وی چه د کفالت ئے څوك نهٔ وی. (مفرداتِ راغب ۵۷۵)

او شرعاً یتیم والے د بلوغ نه مخکې وی لکه په صحیح حدیث د ابوداود کی دی : (لَا یُتْمَ بَعْدَ احْتِلَامٍ) د بلوغ نه روستو یتیم والے نشته) (السلسلة الصحيحة رقم : ٣١٨٠)

اَمْوَالَهُمْ : دوی ته ئے د مالونو نسبت وکړو پدے کی اشاره ده چه ماشوم د بلوغ نه مخکې د مال مالك گرزیدلے شی، او پدے نسبت کی دے ته هم اشاره ده چه دا مال پردے دے، صرف تاسو ئے متولیان او محافظین یئ نو هغوی ته په خپله موقعه کی خپل مالونه وسپارئ. او یتیم ته د مال ورکولو دوه مطلبه دی (١) یو دا چه ددے نه مراد یتیمانانو ته طعام او جامه وغیره ورکول دی چه دا ترے مهٔ منع کوئ ځکه چه د هغوی مال دے خو تهٔ ئے صرف نگران او متولی یی. (٢) دویم دا چه کله بلوغ ته ورسیږی او تاسو د هغوی نه هوښیارتیا معلومه کړه نو بیا ورته پوره مال وسپارئ لکه روستو (٦) آیت کی دا حکم راروان دے. یا دا چه بعض ماشومان نابالغ وی خو هوښیار وی او د هغوی مال ته ضرورت راپیښ شی نو تاسو ئے ترے مهٔ ایساروئ او پکار ده چه ستاسو د طرفنه ډیے دوی ته څه مانع نهٔ وی، تاسو ئے پکار ده چه په پوره اخلاص سره ورکړے ته تیار شئ.

وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيْثَ : ١- خبیث خپل ردی مال د یتیم په مزیدار او قیمتی مال باندے مهٔ بدلوئ مثلاً خپل ردی (کم قیمته) مال د یتیمانانو په مال کی ورواچوئ او په بدل کی ئے د هغوی د مالونو نه غوره او ښه مال واخلئ لکه د یتیم غوا او اُوښ غوره دے، تهٔ هغه راواخلے او خپل مال کی ئے واچوے او خپل کم قیمته غوا او اُوښ د هغه په مال کی واچوے. ٢- خبیث حرام مال ته وائي او طیب پاك مال یعنی پلیت (حرام) مال (د یتیمانانو مال) په پاکیزه مال (خپل حلال مال) باندے مهٔ بدلوئ.

٣- تبدل کله په معنیٰ د استبدال سره وی معنیٰ به دا وی : مهٔ اخلئ مال د یتیم چه حرام دے ستاسو دپاره په بدل د خپل حلال مال کی. (فراء، بغوی، زجاج)

وَلَا تَأْكُلُوْٓا اَمْوَالَهُمْ اِلٰٓى اَمْوَالِكُمْ :

(اِلٰی) په معنیٰ د (مَعَ) سره دے یا متعلق دے په مَضْمُوْمَةً پورے۔ (یعنی چه یو ځای شی) او مخکنی جمله کی په هره طریقه سره چه غلطه وی د یتیم مال د اخستو نه منع وکړه او پدے کی په طریقه د تاکید سره د جاهلیت والو په یو عمل باندے رد کوی چه هغوی به د یتیم مال په طریقه د گډون سره خوړلو او په چل سره به ئے خوړلو۔ چه خپل لږ مال سره به ئے د یتیم زیات مال یو ځای کړو او بیا به ئے خوړلو، البته ددے نه دا صورت مستثنیٰ دے چه د یتیم ولی (نګران) فقیر وی نو په جائزه او د عرف مطابق طریقه سره د هغه مال که د ساتنے په مقابله کی وخوری نو گناهګار به نه وی۔ دلته په طریقه د اِفْسَاد سره د یتیم د مال د خوړلو نه منع راغله۔ او پدے کی بنه آس او اُوښ او ګاړے داخل دے چه د یتیم سره ئے مارچه کوی۔

او دلته ذکر د اکل (خوراك) دے او مراد ترے نه هر قسم فائده اخستل دی۔

اِنَّهٗ : (ه) ضمیر مخکنی (اکل) یا تبدل یا دواړو ته راجع دے

حُوْبًا : حُوْب په اصل کی زورنے ته وئیلے شی او قرطبیؒ وائی : وحشت ته وائی او قفال وئیلی دی چه تحوب کسب د هغه څیز دے چه درد پیدا کوی او دلته ترے لویه ګناه یا ظلم مراد دے۔ (ابن عباسؓ، الدر المنثور وابو السعود)

او کبیراً ئے د تاکید دپاره ووئیل چه دا کبیره ګناه ده۔

**لطیفة** : زمخشری وائی چه د یتیمانانو مال خوړل که یواځے وی او که د خپلو مالونو سره یو ځای کول وی په دواړو طریقو خوړل په دوی باندے حرام وو مګر دلته ئے دویم صورت ذکر کړو پدے کی اشاره ده چه هرکله ستاسو خپل حلال مال موجود دے او ددے سره ستاسو سترګے پردی مال ته وځیږی نو دا ډیر قبیح او د بدیٔ لائق دے، نو پدے کی د دوی منع کول زیات دی۔ (قاسمی ۲/٤١٢)

| وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا فِى الْيَتٰمٰى فَانْكِحُوْا مَا |
|---|
| او که یریږئ تاسو چه انصاف به ونکړئ په باره د یتیمانانو کی نو نکاح اُوکړئ د هغے سره |
| طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ ۚ فَاِنْ |
| چه خوښے وی تاسو ته د نورو زنانو نه دوه دوه او درے درے، او څلور څلور نو که چرته |

| خِفۡتُمۡ اَلَّا تَعۡدِلُوۡا فَوَاحِدَةً اَوۡ مَا مَلَكَتۡ |
|---|
| یریږئ تاسو چه انصاف به ونکړئ نو یوه ښځه وکړئ یا هغه چه مالکان دی |
| اَيۡمَانُكُمۡ ذٰلِكَ اَدۡنٰۤى اَلَّا تَعُوۡلُوۡا ﴿۳﴾ |
| ښی لاسونه ستاسو، دا ډیره نزدے ده چه تاسو به نهٔ اوړئ۔ (د حق نه)۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کی غوره تفسیر هغه دے چه امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کی د عائشه رضی الله عنها نه نقل کړیدے چه هغه فرمائی: (د عربو عادت دا وو) چه د یو سړی په ولایت کی به یوه یتیمه جینئ پاتے شوه (مثلًا تره ته به پاتے شوه) نو که د هغے سره به مال کم وو یا به بدرنګه وه نو هغه به ئے په نکاح خپل بچی دپاره نهٔ اخستله O او که چرته مالداره او بدرنګه به وه نو بل ته به ئے هم نهٔ ورکوله ځکه چه یریدل به چه مال ئے بل چا ته نقل نشی او دے ئے په آرام آرام سره مال وخوری۔ او خپله به ئے هم په نکاح نهٔ اخستله ځکه چه بدرنګه به وه نو پدے طریقه به ئے زوړنده ساتله او زندګی به ئے ورله برباده کړله۔ O او که جینئ به ښائسته وه لیکن غریبه به وه نو بیا به ئے د هغے سره نکاح کوله لیکن نقصان به ئے ورسره دا کولو چه هغے ته به ئے د نورو ښځو په شان مهر نهٔ ورکولو بلکه معمولی شان څه به ئے ورله مقرر کړل نو الله تعالیٰ مسلمانان پدے آیت کی ددے عادتونو نه منع کړل۔ (بخاری کتاب التفسیر)۔

او دا طریقے بعینهٖ زمونږ د عجمو په ظلمونو باندے رد کوی چه هغوی هم د خپلو نزدے یتیمانانو سره داسے کار کوی۔

فِي الۡيَتٰمٰى: دلته د یتامیٰ نه مراد یتیمانانے جینکئ دی۔

(۱) نو د آیت معنیٰ دا ده چه اے د یتیمانو جینکو اولیاؤ! که تاسو یریږئ چه که ددے یتیمانو جینکو سره نکاح اُوکړئ نو د هغوی سره به انصاف معامله اُونکړے شئ، یا خو به مهر کم ورکړئ، یا به د هغوی سره ښه سلوك اُونکړئ (ځکه چه ښائسته نهٔ ده)، نو د دوی نه سیوئ نورو غیر رشته دارو (پردو) جینکو سره وادهٔ اُوکړئ، په دنیا کی خو جینکئ څه کمی نهٔ دی، او بیا یو نهٔ بلکه څلور ښځے په یو وخت کی ساتلے شئ۔ او دا یتیمه پریدئ چه بل چا سره واده وکړی۔ بیا ئے د مال او د جمال غم مهٔ کوه۔ او هرکله چه تهٔ د مال او د جمال غم کوے نو بیا په یتیمه ظلم مهٔ کوه۔

(۲) دویم تفسیر دا هم جائز دے چه دا هم د عربو په عادت بناء دے چه کله به یوه یتیمه جینئ د یو سړی په نکاح کی راغله نو د هغې سره به ئے احسان کولو ځکه خپله ښځه به ئے شوه لیکن نورو زنانو باندے به ئے ظلم کولو، یو سړی به لس لس ښځے کولے لیکن بیا به ئے حق نشو ادا کولے، سهر به ئے سم نهٔ ورکولو نو الله تعالیٰ د یو حکم نه په بل باندے حواله ورکوی چه په یتیم باندے ظلم نهٔ کوے نو پکار دا ده چه په نورو زنانو هم ظلم ونکړے او تر څلورو پورے نورے ښځے کولے شئ او ددے نه اخوا تاسو نه انصاف نهٔ کیږی.
نو دلته به معنیٰ دا وی: وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا فِى الْيَتٰمٰى فَلَا تَظْلِمُوْا فِى الْمَنْكُوْحَاتِ)
که تاسو یریږئ چه د یتیمانانو سره به انصاف ونکړئ یعنی د یتیمانو د بی انصافئ نه یریږئ نو د نورو غیر یتیمانانو ښځو سره هم ظلم مهٔ کوئ.
(۳) د عائشے رضی الله عنها نه امام بخاریؒ یو بل روایت هم نقل کړیدے چه مطلب د آیت دا دے چه یوه یتیمه جینئ به د خپل ولی سره پاللے شوه او د هغه په مال کی به شریکه وه او ښائسته به هم وه. د هغه ولی به د هغې سره وادهٔ کول نهٔ غوښتل او نهٔ به ئے دا خوښول چه ددے واده د بل چا سره وکړی پدے یره چه ددے خاوند به ددهٔ سره په مال کی شریك شی. نو الله تعالیٰ مسلمانان د داسے کار نه منع کړل.
(٤) د ابن عباسؓ، سعیدؒ بن جبیر او قتادةؒ او ضحاكؒ نه ابن جریر طبریؒ او سیوطیؒ او صاحب د البحر المحیط (۳/۵۰۳) نقل کړیدی چه هرکله د یتیمانانو په باره کی ډیر کلك وعیدات نازل شو نو خلکو د یتیمانانو د مالونو نه ځان ډیر بچ ساتلو دے دپاره چه په دوی ظلم ونشی لیکن بل طرفته به ئے په نکاح کی ډیرے ښځے پرتی وے او د هغوی د زوجیت حقوق به ئے پوره نهٔ ورکول او بی انصافی او ظلم به ئے پکی کولو او هیڅ پرواه به ئے نهٔ لرله نو پدے آیت سره ئے دوی ددے ظلم نه منع کړل نو معنیٰ د آیت به دا وی:
که چرے تاسو د یتیمانانو (هلکانو او جینکو) د مالونو نه ځان ساتئ او د ظلم نه یره کوئ نو دارنګه ځان وساتئ د ظلم کولو نه په خپلو منکوحاتو باندے او د هغې طریقه دا ده چه د څلورو نه زیاتے مهٔ کوئ ځکه چه تاسو د څلورو نه زیاتو سره هیڅ عدل نشئ کولے یعنی چه یو انسان د یوے ګناه نه ځان بچ کوی نو لازم دا ده چه د هغې په شان د بلے ګناه نه دے هم ځان بچ وساتی.
پدے کی اول تفسیر راجح دے.
مَا طَابَ لَكُمْ: یعنی هغه زنانه چه نیے لګی په تاسو. یا حلالے وی تاسو لره. د (مَنْ) په

ځای (مَا) لفظ استعمال کړو ځکه چه دلته مقصد نکاح د ښځو ده په وصف د طِیِّبَة سره او (مَا) د وصفیت دپاره استعمالیږی۔ (المنار) او ښه والے د ښځې کله په لیدلو سره معلومیږی نو د نکاح په وخت ښځې ته کتل هم جائز دی لکه چه ددے په باره کې ډیر صحیح نبوی احادیث راغلی دی (فَانْظُرْ اِلَيْهَا فَاِنَّهٗ اَحْرٰی اَنْ يُّؤْدَمَ بَيْنَكُمَا)۔ (ترمذی، ابن ماجه)

**فَانْكِحُوْا:** پدے کې الله تعالیٰ مسلمانانو ته اجازت ورکړیدے چه دوی دے په خپله خوښه سره د نورو ښځو سره وادهٔ اُوکړی او هغوی ته ئے د څلورو ښځو پورے د نکاح کولو اختیار ورکړیدے، او د څلورو نه د زیاتو ښځو ساتلو نه ئے منع کړیده۔

امام شافعیؒ وائی چه د رسول الله ﷺ سنت پدے باندے دلالت کوی چه د نبی کریم ﷺ نه سِویٰ د هیچا دپاره د څلورو ښځو نه زیاتے ساتل جائز نهٔ دی، پدے باندے د امت اجماع ده۔ صرف بعض شیعه ګانو د څلورو نه زیاتو ته جائز وئیلی دی۔ هغوی مَثنیٰ نه دوه او د ثلاث نه درے او د رباع نه څلور مراد کوی یعنی نهه ښځې۔ مګر پدے باندے هیڅ قسم صحیح نقلی دلیل نشته او د عربو د لغت خلاف دے۔

د امت علماؤ د څلور نه د زیاتو په حرمت باندے د غیلان ثقفی د واقعے نه دلیل نیولے دے چه د هغه سره لس ښځې وے، کله ئے چه اسلام راوړو نو د الله رسول ﷺ هغه ته اُووئیل چه د څلورو نه سوئ باقیو ته طلاق ورکړه۔ دا حدیث د ابن عمر رضی الله عنهما نه احمد، ترمذی، ابن ماجه، دارقطنی او ابن ابی شیبه روایت کړیدے او علامه البانیؒ ددے تصحیح کړیدهٔ۔

دویمه واقعه د نوفل بن معاویهؓ ده چه د هغه سره د اسلام راوړو په وخت پنځه ښځې وے۔ رسول الله ﷺ هغه ته ووئیل چه څلور اُوساته او یوه پریده۔ دا امام شافعیؒ په خپل مُسند کې روایت کړیدے۔

دریمه واقعه د قیس بن حارث اَسَدِی ده چه د هغه سره اته ښځې وے۔ رسول الله ﷺ هغه ته ووئیل چه څلور اُوساته او باقی پریده، دا ابن ماجة روایت کړیدے او علامه البانیؒ ددے تصحیح کړیده۔

څلورمه واقعه د عُمَیر اَسَدیؓ ده چه د هغه سره هم اته ښځې وے۔ رسول الله ﷺ هغه ته اُووئیل چه ددے نه څلور غوره کړه۔ دا ابوداود او ابن ماجه روایت کړیدے او علامه البانیؒ په صحیح ابن ماجه کې ددے تصحیح کړیده۔ (القاسمی ۲۲۳/۲) وتیسیر الرحمن) او ډیر دلائل په حرمت د مافوق الاربع په الدین الخالص (۱۲) جلد (سیطبع قریبا) کې وګوره۔

مخکې بیان شو چه د امت پدې اجماع ده چه د څلورو نه زیاتې ښځې ساتل د امت د هیڅ فرد دپاره جائز نهٔ دي، دا کار د رسول الله ﷺ پورې خاص وو۔ لیکن پدې کې هیڅ شک نشته چه د یوې نه زیاتې ښځې ساتل حلال دي۔ نبي کریم ﷺ او صحابه کرامؓ پدې باندې عمل کړیدې، او نن پورې په هر دَور کې مسلمانان ددې قائل دي، او ددې مطابق عمل کوي۔

**فائده** : اسلام د سړي دپاره د څلورو ښځو پورې اجازه ورکړه نهٔ ښځې دپاره د ګنړو خاوندانو، ځکه چه سړي کې طاقت زیات دې او حرارتِ غریزي ئې زیات دې، دارنګه زنانه په ځوانئ کې ګوزاره کوي لیکن کله ئې چه بچي وشي نو بیا ئې توجه بچي ته شي، د هغې تربیت کوي نو خاوند ئې معلق شي او د هغه ورته ضرورت وي او دارنګه په زنانه باندې ګنړ عوارض راتلې شي۔ او د زنانه خوئي دا دې چه کله په یو کار مصروفه شي نو بیا ئې شهوات مړه وي، اکثر د خاوند حقوق د هغې نه نهٔ ادا کیږي، او زنانه دپاره د ډیرو خاوندانو اجازه ئې ځکه ورنکړه چه د زنانه طاقتونه کمزوري دي، دا سبب د قتال د خاوندانو ګرځي، دارنګه د انساني غیرت خلاف ده، نسب پدې سره خرابیږي، نو دا کار شرعاً او عقلاً دواړه غلط دې۔

**مَثْنٰی** : بیا قرآن کریم د دوو نه شروع وکړه پدې کې ځینی علماء دا فائده بیانوي چه ډیرې ښځې په نکاح کول بهتر دي ځکه چه رسول الله ﷺ دعوت ورکړیدې چه (تَزَوَّجُوا الْوَدُوْدَ الْوَلُوْدَ) (ابوداود، ترمذي، نسائي) تاسو د ډیرو بچو راوړونکو ښځو سره نکاح وکړئ۔ او د بې انصافئ نه د یرې په صورت کې یوه ښځه باندې اکتفاء ده۔

مګر ځینې علماء (لکه دکتور لقمان السلفيؒ) وائي چه قرآن کریم چه دا ونیلي دي چه که تاسو یریږئ چه د دوي ترمینځ به عدل او انصاف نه کار وانخلئ نو یوه ښځه اُوساتئ نو دا داسې شرط دې چه ددې تعلق د هر سړي د زړهٔ سره دې۔ که واده کونکې پو هیږي چه دا انصاف نشي کولې نو غوره همدا ده چه یوه ښځه اُوساتي۔

خاصکر په داسې حالاتو کې چه بنده د هغې د اخراجاتو د پوره کولو دپاره حرام طرفته مائل کیږي یا د هغې په وجه ډیر کورونه ورانیږي مثلاً د ښځو اولاد خپل مینځ کې د دشمنئ انداز اختیاروي، بنې په یو کور کې وخت تیرولو سره د خاوند زندګي تنګوي، وهل ټکولو ته نوبت رسیږي او د هغه دین ته نقصان رسوي، او بیا خاوند د هغې په نفقه کې هم عدل نشي کولې په کومه طریقه چه ورته الله تعالیٰ حکم ورکړیدې، ضرور د

کشرے ښځے لحاظ په خرچه او جامو او خوراکونو کی زیات کیږی او دا بی انصافی ده، کشرے ښځے ځان سره سفرونو او حضرونو کی ګرځوی او مشران ئے د کور حفاظت ته پریښی وی، او ډیر مالداره خلك لیدلے شویدی چه هغوی خپلے ښځے د هغوی د اولادو سره شرلی وی او د داسے خلکو سره تربیت حاصلوی چه هغوی د دوی د قبیلے نه نهٔ وی او دوی ته هیڅ التفات هم نهٔ کوی، او ډیر داسے پلاران شته چه هغوی د نوو ښځو د رضا کولو دپاره خپل غټ ځامن هم شړلی وی او د خپلو ښځو سره بد اخلاقی کوی او ډیر کرته خاوند د اولے ښځے د تنګولو په اراده باندے دویمه ښځه کوی یا هسے د شهواتو څکے کوی او بیا د ښځو حقوق نشی پوره کولے، د بچو تربیت ئے ضائع شی، بلکه بچی ئے خپل مینځ کی په دشمنئ باندے تربیت ومومی او د ښو بد اخلاقیانی د هیچا نه پټی نهٔ دی لکه دا کارونه په ډیرو علاقو کی لیدلے شویدی نو ددے نه انکار مکابره ده، یا دا چه په خاوند کی حاکمیت نهٔ وی، د دوو ښځو په مینځ کی د هغوی د اختلافاتو په صورت کی فیصله نشی کولے، د شریعت په ډیرو نکاحونو کی چه کوم حکمتونه وو هغه ضائع شی، او دویم واده ذریعه د شهواتو پوره کولو وګرځی او خپل حقیقی مقصد نه غافل شی نو په خلکو لازم دی چه په یوه ښځه اکتفاء وکړی کله چه د هغوی نه عدل نهٔ کیږی او دغه مفاسد ورته متوجه کیږی دے دپاره چه عمل راشی پدے قول د الله تعالیٰ (فَاِنۡ خِفۡتُمۡ اَلَّا تَعۡدِلُوۡا فَوَاحِدَةً) البته په سخته مجبورتیا کی دویمه ښځه په نکاح کول سره د ادا کولو د حقوقو نه جائز دی۔ (المنار ٤/٢٠٢ بتصرف)

د بعض خلکو حرص زیات وی او بیا د زنانو حقوق نشی پوره کولے، هسے ئے کور ته راجمع کړی وی او هغه بیا په یو ځای کی پرتی وی چه خاوند ورته هیڅ توجه نهٔ ورکوی، زنانه څه حیوانات نهٔ دی چه سرے به ئے کور ته راجمع کوی، نهٔ بلکه د هغوی حقوق به ادا کوے، کوته به ورکوے او خرچه به ورکوے او بدنی حقوق به ئے ادا کوے نو پدے باره کی دے هر انسان خپل ځان ته سوچ وکړی، عام خلك دویم واده د خپلو شهواتو د ترقئ دپاره کوی، آؤ که څوك په ډیر احتیاط سره ژوند تیروی نو د هغه دپاره ډیر ودونه کول بهتر دی۔

او د دویم واده عیب بیانول کفر دے څکه چه دا د الله تعالیٰ حکم دے، ابن باز په فتاوی المرأة المسلمه کی لیکی : چه دا کار په ﴿ذٰلِكَ بِاَنَّهُمۡ كَرِهُوۡا مَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ فَاَحۡبَطَ اَعۡمَالَهُمۡ﴾ کی داخلیږی۔ بیا دلته دا خبره یاد ساتل پکار دی چه کله نا کله د اولے ښځے د بد اخلاقئ د وجه نه عدل نهٔ کیږی، هغه د هغے دپاره عقوبت وی، که هغه نیك اخلاق شروع کړی نو بی

انصافي به ختمه شي لکه تفصيل ئے په الدين الخالص (۱۲) کې وګوره۔
أَوْمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ : سوال دا دے چه ما ملکت ايمانکم (يعنې وينځه) هم يوه ده نو ددے مقابله د (فَوَاحِدَةً) سره څنګه صحيح کيږي؟ جواب دا دے چه دلته عبارت پټ دے : (أَوِ اكْتَفُوا بِمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ) يا اکتفاء وکړئ په وينځه خپله۔ او دا ځکه چه د وينځے حقوق د آزادو ښځو په نسبت بيخي کم دي، د هغے د جماع حق نشته، او په هغوی کې د شمار اندازه هم نۀ ده مقرره نو د هغے ساتل ډير آسان دي نو که د آزادے ښځے د حقوقو د ادا کولو نه يريږي نو په وينځه دے ګوزاره وکړي، او وينځه په غير د نکاح نه اخستے شي، او د يوے ښځے حقوق هم زيات دي پاتے لا دا چه دوه او درے او څلور شي۔
ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَلَّا تَعُولُوا : دے نه روستو الله تعالیٰ اُوويل چه په يوه باندے اکتفاء کول يا د وينځو نه کار اخستل پدے اعتبار سره زيات مناسب دي چه ستاسو نه بې انصافي ونشي۔ اَیْ اَنْ لَّا تَعُوْلُوْا عَنِ الْعَدْلِ ۔ تاسو به د عدل نه نۀ اوړئ۔ عَالَ په معنیٰ د (مَالَ او جَارَ) سره دے يعنې چه تاسو مائله نشئ د عدل نه يا ظلم ونکړئ۔ (المحرر الوجيز)
بعض مفسرينو د (الا تعولوا) معنیٰ کړيده : دے دپاره چه ستاسو اولاد زيات نۀ شي، او بيا د هغوی د اخراجاتو تيارولو دپاره د يتيمانو په مال باندے ظلم کوئ)۔ د زيد بن اسلمؒ، جابر بن زيدؒ، سفيان بن عُيَيْنَةؒ او امام شافعيؒ نه همدا تفسير منقول دے۔ (قرطبي)
مګر هغه تفسير د (أَنْ لَّا تُعِيْلُوْا) قرائت سره زيات مناسب دے۔ ځکه چه په عام لغت د عربو کې عَالَ يَعُوْلُ په معنیٰ د ظلم سره استعماليږي او أَعَالَ يُعِيْلُ په معنیٰ د اولاد زياتيدو سره، اګرکه ځينې علماؤ وئيلي دي چه امام شافعيؒ د عربو په لغت زيات پوهه وو او کيدے شي چه (تَعُوْلُوْا) هم د بعض عربو په لغت کې په معنیٰ د اولاد زياتيدو سره وي لکه ابو حاتمؒ دا خبره کړيده او ابو عمرو الدُّوْرِي (د قرائت امام) نقل کړيدي چه دا لغت د حِمْيَر دے۔ (فتح القدير للشوکاني ۷۸/۲ والتحرير والتنوير)
ليکن هغه بعيد تفسير دے او د مشهور لغت خلاف دے۔ نو د حديث (تزوجوا الودود الولود) په مقابله کې ورله هيڅ اعتبار نشته۔
د عائشےؓ، ابن عباسؓ، مجاهدؒ، عکرمهؒ او حسنؒ وغيرهم نه اولنے تفسير منقول دے۔ او حافظ ابن کثير رحمه الله همغے ته ترجيح ورکړيده۔
ځينې علماؤ د امام شافعيؒ د تفسير تائيد کړيدے او وئيلي ئے دي چه عَالَ يَعُوْلُ په عربئ ژبه کې په معنیٰ د زيادت سره استعماليږي لکه عرب وائي : (عَالَتِ الْمَسْئَلَةُ اِذَا زَادَتْ

سِهَامُهَا) مسئلے عول وکړو یعنی کله چه د مسئلے حصے زیاتی شی، نو پدے اعتبار سره د آیت معنیٰ به دا شی (ذٰلِكَ اَدْنٰى اَنْ لَا تَكْثُرُوْا، وَاِذَا لَمْ تَكْثُرُوْا لَمْ يَقَعِ الْاِنْسَانُ فِي الْجَوْرِ وَالظُّلْمِ، لِاَنَّ مَطِيَّةَ الْجَوْرِ وَالظُّلْمِ هِيَ الْكَثْرَةُ وَالْمُخَالَطَةُ) ۔ دا په یوه بنځه اکتفاء کول ډیر نزدے دی دے ته چه تاسو به نهٔ زیاتیږئ او کله چه تاسو زیات نشوئ نو انسان به په ظلم او جور کی نهٔ واقع کیږی ځکه چه د کثرت او ګډون نه ظلم پیدا کیږی) نو بناء پدے باندے دا تفسیر نزدے کیږی د جمهورو تفسیر ته۔ نو دلته امام شافعیؒ کثرت د عیال کنایه ګرزولے ده د ظلم او مائل کیدو نه ځکه چه د عیال په ګنړ کیدو کی کله نا کله یو طرفته مائل کیدل او ظلم راځی نو دا په طریقه د کنایه سره تفسیر شو۔

او الله تعالیٰ پدے مقام کی د ظلم نه منع کوی پدے وجه چه په ګنړو بنځو او د هغوی په ګنړ اولاد کی د انسان نه ظلم واقع کیږی، آؤ که یو انسان قوی العزم وی او د هغه نه ظلم نهٔ کیږی نو بیشکه چه د هغه دپاره څلور جائز بلکه بهتر دی۔ خو دلته خبره د هغه انسان شروع ده چه هغه په ځان یریږی د ظلم نه نو هغه ته وائی چه اولاد مهٔ ګنړه وه په ظلم کی به واقع شے۔ او بیا وائی: د امام شافعیؒ تفسیر راجح دے ځکه چه بیا تکرار په آیت کی راځی ځکه چه مخکی (اِنْ خِفْتُمْ اَنْ لَّا تُقْسِطُوْا) ذکر شو چه که یریږئ د ظلم نه نو که (ان لا تَعُوْلُوْا) هم په معنیٰ د ظلم واخستے شی نو تکرار به راشی۔ (حامع لطائف التفسیر للشیخ عبد الرحمن بن محمد القماش)

که څوك سوال وکړی چه د امام شافعیؒ دا تفسیر خو د (مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ) خلاف معلومیږی ځکه چه کله د سړی وینځے زیاتی وی نو ضرور به ئے اولاد زیاتیږی؟

جواب دا دے چه په خاوند باندے د وینځو حقوق نشته، دویم دا چه وینځه مال دے کله چه مالك د هغے د نفقے نه تنګ شی نو خرڅه به ئے کړی نو په هغے باندے هیڅ قسم ظلم نشی راتللے۔ او د امام شافعیؒ ددے تفسیر نه د منصوبه بندئ والو دپاره دلیل نهٔ صحیح کیږی ځکه چه کثرت د اولادو (کله چه د تربیت سره وی) شریعت هغے ته دعوت ورکړیدے لکه چه مخکی حدیث تیر شو او دے آیت کی د څلورو بنځو اجازه ورکړے شوه او ښکاره خبره ده چه د څلورو بنځو نه به ډیر اولاد پیدا کیږی۔ دارنګه آیت (وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ) (البقره: ۱۸۷) او (وَقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ) (البقره: ۲۲۳) کی د اولادو طلب کولو باندے امر راغلے دے۔

**فائده ۲:** دلته الله تعالیٰ تر (رُبَاع) پورے اجازه ورکړه دے نه معلومه شوه چه زیادت د

امت دپاره ناروا دي، كه جائز وي نو الله تعالىٰ به پدې عدد ذكر كولو اكتفاء نهٔ كولې بلكه شمار به ئې مطلق پريښې وي. دا رنګه الله تعالىٰ د عدل او انصاف حكم وكړو او بيا ئې د څلورو ښځو د نكاح اجازه وركړه دې نه معلوميږي چه د څلورو نه زيادت كولو كې انسان بې انصافئ ته ضرور مائل كيږي. او پدې باندې د امت اجماع ده چه تائيد ئې په مرفوع احاديثو كيږي چه هغه په مجموع الطرق سره حسن درجې ته رسيږي چه هغه تفصيلًا حافظ ابن كثيرؒ او علامه شوكانيؒ په السيل الجرار (۱/۲۵۵) طبع دار ابن حزم كې ذكر كړيدي.

**فائده۳:** د څلورو ښځو د نكاح د اجازې نه معلومه شوه چه د ښځې حق په خاوند باندې دا دې چه په څلورمه شپه به هغې له خامخا حق ادا كوي او باقي شپې په خپل عبادت كې تيرول ورله جائز دي.

| وَآتُوا النِّسَآءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً فَإِنْ طِبْنَ |
|---|
| او وركوئ زنانو ته مهرونه د هغوی د ډالۍ په طريقه نو كه په خوشحالۍ سره پريږدي زنانه |
| لَكُمْ عَنْ شَيْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوهُ هَنِيئًا مَّرِيئًا ﴿٤﴾ |
| تاسو ته د څه شي د مهر نه پخپله خوښه نو خورئ هغه مزيدار (مبارك)، بې نقصانه. |

**تفسير:** پدې آيت كې دريم حكم دې يعنې زنانو ته د هغوی مهر وركول دې دپاره چه د هغوی سره ئې ښه ژوند تير شي او هغوی خوشحاله شي.

## ربط

مخكې آيت كې حكم وشو چه په تاسو لازم دي چه لكه څنګه چه د يتيمانانو په باره كې د بې انصافئ نه ځانونه ساتئ نو دغه شان د زنانو په باره كې هم د بې انصافئ نه ځانونه بچ كړئ. او لكه څنګه چه په تاسو باندې يتيمانانو ته خپل مالونه وركول لازم دي نو دغه شان درباندې واجب ده چه زنانو ته هم د هغوی مالونه (مهرونه) وركړئ او په يوه او بله بهانه ئې ترې مهٔ خورئ.

## د مهر وركولو حكمت

د نكاح نه خو سړي او ښځه دواړه فائدې اخلي نو بيا ولې شريعت په سړي لازمه كړه چه ښځې ته به مهر وركوي؟ (۱) ددې راز دا دې چه واده ته د سړي شوق او ضرورت زيات وي او

د ښځې کم نو ځکه به سړے مهر ورکوي۔ (۲) دویم دا چه زنانه د خپل مور او پلار نه راجدا کیږي نو هغې ته یو قسم وحشت ملا ویږي نو د مال په ذریعه به د هغې د زړه وحشت ختم شي او دا به ورله پتېځ شي۔ (۳) کله چه ښځه واده کیږي نو هغې ته خپل ځان حقیر ښکاره شي چه زۀ لاړم خرڅه شوم، د حیواناتو په شان او زما یو مالك پیدا شو چه زۀ به د هغه د تصرف لاندې یم نو ځان ورته ډیر معمولي ښکاره شي نو سړے مهر ورکوي (اِظْهَارًا لِاِكْرَامِهَا وَشَرَفِهَا) چه ستا ډیر عزت او شرافت دے، دا مال واخله، تۀ د وینځې په شان نۀ یې، بلکه زما او ستا دوستي ده او دوست دوست ته تحفه ورکوي پدے وجه الله تعالیٰ دلته د مهر نه په نِحْلَه (عَطِيَه) سره تعبیر کړیدے چه دا د سړي د طرفنه یوه تحفه ده او د محبت یوه نښه ده او خپلولي قائم ساتل دي او د مینے محبت او شفقت رسئ مضبوطول دي، او بیع شراء نۀ ده۔ (المنار ۳۰۸/٤)

وَآتُوا النِّسَآءَ : دا خطاب خاوندانو ته هم دے او د ښځے اولیاؤ ته هم۔ د جاهلیت په زمانه کې به خلکو ځانله د ښځو مهرونه اخستل چه زمونږ بعض پښتنو به هم دا کار کولو دے ته به ئے وَلْوَر وئیلو۔نو الله منع وکړه چه دا کار به نۀ کوئ بلکه زنانو ته به ئے ورکوئ۔

وآتوا : ورکول د مهر عام دي که في الحال ئے ورکړي او که په وخت د نکاح کې ئے مقرر کړي او په ځان ئے لازم وګرځوي، او بیا ئے روستو د واده نه ورکوي۔

صَدُقَاتِهِنَّ : جمع د صَدُقَة ده، مهر ته وائي صَدَاق هم ورته وائي۔ او دے ته صَدُقه پدے وجه ووئیلے شوه : (لِاَنَّهٗ يَدُلُّ عَلٰى صِدْقِ رَغْبَةِ الرَّجُلِ فِي الْمَرْاَةِ) دا دلیل دے چه سړے په ښځه کې رشتیني رغبت لري ځکه ډیر مال ورکوي او د زنا کارو په شان نۀ دے چه د ښځے نه د یو ے ورځے دوه ورځو فائده واخلي او بیا ئے وشړي۔

نِحْلَةً : کلبيؔ وائي : عَطِيَّةً وَهِبَةً۔ یعني د عطیه او تحفے په شکل۔ یا حال دے یعني په داسے حال کې چه دا تحفه ده د خاوندانو د طرفنه (روح المعاني) او همدا معنیٰ ئے په لغت کې هم ده او همدا غوره ده۔ عائشہؓ او قتادةؔ په (فَرِيْضَةً) سره معنیٰ کړیده او ابن دُرید په (واجب) سره کړیده۔ ابوعبیدؔ وائي : (عَنْ طِيْبِ نَفْسٍ) په خوشحالئ د نفس سره۔

زجاجؔ وائي : تَدَيُّنًا یا دِيَانَةً وَشِرْعَةً۔ د وجه د دینداری نه یا د وجه د دین جوړیدو نه۔ (بغویؔ) نو دا منصوب بنا بر مفعول له دے۔ او کوم شے چه دین وي هغه فرض وي لهذا مهر فرض دے۔ (البحر المحیط، زهرة التفاسیر والتنویر وغیرهم)

یعني د واده په وخت کې د ښځے دپاره مهر مقررول واجب دي۔ د نبي کریم ﷺ نه سوئ

دامت د هیڅ فرد دپاره بغیر د مهر نه واده کول جائز نهٔ دی۔ او د مهر د تعیین په وخت کی نیت هم صحیح کیدل پکار دی چه دا د ښځې حق دے چه هغې ته ئې ورکول پکار دی۔

د عطیة او هبة معنیٰ ډیره صحیح ده لغةً او شرعاً او د مهر وجوب د (وَآتُوا) او د (قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِي أَزْوَاجِهِمْ) (الاحزاب) نه معلوم دے۔

د جاهلیت په زمانه کی به خلقو ځان له د ښځو مهرونه اخستل، الله تعالیٰ هغوی ددے ناکاره کار نه منع کړل او مسلمانانو ته ئې حکم اُوکړو چه د واده په وخت کی د ښځو مهر ضرور متعین کړی او د هغوی حق هغوی ته ضرور ورکړی۔

فَإِنْ طِبْنَ لَكُمْ : دا بل حکم دے چه که یوه ښځه خپل خاوند ته د مهر څه برخه معاف کوی یا ئې بیخی نهٔ اخلی نو هغه به د خاوند دپاره بیخی حلال او مزیدار وی۔ ابن جریرؒ او قرطبیؒ ویلی دی چه ددے سبب دا وو چه بعض خاوندانو دا بده ګڼړله چه د ښځې نه مهر واپس واخلی نو د هغې جواز ئې دلته بیان کړو۔

## د عربیت بحث

فَإِنْ طِبْنَ : طبن : په خوشحالئ سره یو شے ورکول او بخښل۔ او روستو (نفساً) ددے دپاره تمییز دے یعنی (طِبْنَ نَفْسًا) او دا تمییز محول عن الفاعل دے أیْ طَيِّبَاتٌ أَنْفُسُهُنَّ۔ یعنی چه نفسونه ئې خوشحاله وی او (عَنْ شَيْءٍ)، یعنی څه برخه او حصه۔ د طبن په صله کی باء راځی لیکن دلته (عَنْ) استعمال شو ځکه چه دا متضمن دے معنیٰ د عفوے لره۔ او (مِنْهُ) ضمیر صَدُقات ته راجع دے په تاویل د مذکور یا د مال یا د صَدَاق سره۔ نو معنیٰ ئې دا شوه : ((کچرته په خوشحالئ د نفسونو سره وبخښی دا زنانه یو شے د مهر نه نو تاسو له حلال دی))۔ نو پدے کی اشاره ده چه دا مهر به هله جائز کیږی چه زنانو د زړونو نه بخښلی وی او هسے ظاهری بخښل چه د چا د مجبورتیا یا د خاوند د ډیرو سوالونو یا د شرم او حیاء یا د خاوند د بد اخلاقئ او بد سلوك د یرے د وجه نه وی او خاوند هغه قبول کړی نو پدے سره به مهر د خاوند دپاره نهٔ جائز کیږی او دا به د قرآنی تعلیم خلاف ورزی وی۔

**مسئله** : کله چه ښځه بخښلے شوے مهر واپس غواړی هغې ته به ورکولے شی۔ لکه پدے باندے د قاضی شُریحؒ فیصله او د عمر بن خطاب ﷺ رایهٔ دلیل دے چه هغوی ته یوه ښځه راغله او د خاوند نه ئې بخښلے مهر واپس غوښتو، خاوند وویل : دا ئې ما ته بخښلے دے او الله فرمائی: ﴿فَإِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَيْءٍ مِنْهُ نَفْسًا﴾ نو قاضی شریحؒ ورته وویل : که

ددې زړه خوشحاله وې نو تا نه به یې واپس نهٔ غوښتې. (قاسمیؒ وغیره)
لیکن رجوع په هبه کښې حرامه ده کله چه په هبه باندې ګواهان موجود وی، بیا واپس اخستل حرام دی او زنانه خو ساعت په ساعت بدلیږی، او د عُمَر او د شُریحؒ قصه د یوې خاص زنانه په باره کښې ده.
هَنِیۡٓـًٔا مَّرِیۡٓـًٔا : ۱– هنیئا : مبارك، فائده مند او (مریئا) ښه تیریدونکې.
۲–ابوحمزهٔ وائی : هَنِیْئًا لَا اِثْمَ فِیْهِ مَرِیْئًا لَا دَاءَ فِیْهِ) هنیء هغه دې چه ګناه پکښې نهٔ وی او مریء هغه دې چه بیماری پکښې نهٔ وی. (په آخرت کښې) ۳– یا هنیئا معنیٰ لَذِیْذًا. خوندور. مریئا : مَحْمُوْدُ الْعَاقِبَة. چه انجام یې ښه وی. (البحر المحیط)
۳– یا هنیئا هغه دې چه بغیر د مشقت نه حاصل شی او مریء هغه دې چه زر هضمیږی. (قاسمیؒ)
٤– ځینی وائی : هنیء هغې ته وائی چه ښه تیریږی او په مرئ کښې نهٔ انښلی او مریء هم دغې ته وائی نو دائې د تاکید دپاره ذکر کړو. (التنویر)
دا دواړه مبالغه ده په حلال والی او د ګناه په زائله کیدو کښې.

## د بیمارئ علاج او مجربه نسخه

ابن کثیرؒ، ماوردیؒ، ثعلبیؒ، آلوسیؒ او قرطبیؒ وغیره مفسرینو د علی بن ابی طالب ﷺ نه نقل کړی چه یو سړی د ځیټې په سخت درد اخته شو نو علیؓ ورته وویل چه د ښځې د مال نه څه پیسې راواخله او په هغې باندې شهد واخله او د باران اُوبه ورسره یو ځای کړه او وې څکه نو شفاء به درته ملاؤ شی ځکه چه د ښځې مال ته دلته الله تعالیٰ هنیء مریء وویلو او شاتو ته یې (فِیْهِ شِفَاءٌ لِلنَّاسِ) ویلی دی او د باران اُوبو ته یې (مَاءً مُبَارَكًا) ویلی دی نو څلور واړه خیرونه به ورته راجمع شی.

| وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ اَمْوَالَكُمُ الَّتِیْ جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ قِیٰمًا |
| --- |
| او مهٔ ورکوئ بې وقوفو ته مالونه د هغوی هغه چه ګرځولی دی الله تعالیٰ تاسو له سبب د ژوند |
| وَّارْزُقُوْهُمْ فِیْهَا وَاكْسُوْهُمْ وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ﴿۵﴾ |
| او خوراك ورکوئ هغوی ته په دې کښې او جامې ورکوئ هغوی ته او وایئ هغوی ته وینا نیکه |

**تفسیر** : څلورم حکم دې د بیوقوفانو د مالونو د حفاظت.

په آیت کې د (سُفَهاء) نه مراد کوم خلق دي ؟ پدې باره کې د علماؤ درې رائے دي :
اولـه رایه دا ده چه ددې نه مراد کم عقل او نابالغ یتیمانان دي، د هغوی اولیاء منع شویدي چـه د هغـوی مالونه هغوی ته ورکړي، ځکه چه هغوی به د خپلے ناپو هئ او کم عقلئ په وجه سره هغه ضائع کړي.
او د مال نسبت ئے اولیاؤ طرف ته پدې وجه اُوکړو چه هغوی ته دا احساس ورکړے شي چه د دوی د رشته دارو یتیمانانو مال د دوی مال دے او د هغې حفاظت په دوی باندې د خپل مال د حفاظت په شان واجب دے.
دویـمـه رائے دا ده چـه ددې نه مراد ((ښځې او بچي )) دي. الله تعالیٰ د سړو مالونه د هغوی خپـلو ښـځـو او بچـو تـه ورکول منع کړیدي چه بنده خپل مال هغوی ته ورکړي او خپله مـحـتـاج شي او د هـغـوی پسے گـرځي. او د دوی دپاره د (سفهاء) لفظ الله تعالیٰ استعمال کـړیدے، دا دے ته اشاره ده چه هغوی به د خپلے کم عقلئ په وجه د مال حفاظت نشي کولے بلکه ضائع به ئے کړي.
دریـمـه رائے دا ده چـه ددې نـه مراد هر هغه بنده دے چه د هغه سره د مال د حفاظت دپاره پوره عقل نهٔ وي. ددې رائے مطابق د آیت حکم ښځو، ماشومانو او یتیـمانانو او ټولو خلقو ته شاملیږي چه هغه کم عقل او ناپو هه وي.
حـافظ ابن کـثـیر رحمة الله علیـه لیکلي دي چه په ناپو هو باندې د مالي معاملاتو پابندي لګول ددې آیت نه اخستے شویدي. دا پابندي په ډیرو اسبابو سره لګي، کله د کم عمرئ په وجه سره، کله د لیونتوب په وجه سره، کله د کم عقلئ او بے دینئ په وجه سره، چه د هغې د اثر لاندې راغلے سړے مال ضائع کوي او کله په مُفلس سړي باندې پابندي لګیږي دے دپاره چه د هغه مال بچ شي او د هغه د قرضدارو قرض ادا شي، نو په سفهاؤ کې مُفلس هم داخل شو،آه.
په یـو صـحـیـح حـدیـث کې راغلي دي چه الله تعالیٰ د درې کسانو دعاګانے نهٔ قبلوي (۱) رَجُلٌ كَـانَـتْ تَحْتَهُ امْرَأَةٌ سَيِّئَةُ الْخُلُقِ فَلَمْ يُطَلِّقْهَا (۲) وَرَجُلٌ كَانَ لَهُ عَلٰى رَجُلٍ مَالٌ فَلَمْ يُشْهِدْ عَـلَيْهِ (۳) وَرَجُلٌ آتٰى سَفِيْهًا مَالَهُ وَقَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى : وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَاءَ أَمْوَالَكُمْ) (شعب الایمان- صحیح الجامع :۳۰۷۵) یـو هـغـه سړے چه د هغه په نکاح کې بد اخلاقه ښځه وي (چه بد فـعلي کوي چه د هغې برداشت نا ممکن وي) او هغه ورله طلاق ورنکړي. دویم هغه سړے چه د هغـه پـه بـل سړي مـال وي او ګواه پرې نهٔ نیسي او دریم هغه سړے چه بیوقوف ته

خپل مال ورکوی او الله فرمایلی دی چه بیوقوفانو ته مالونه مهٔ ورکوئ)۔

جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ قِيَامًا : پدے کی د مال د حفاظت ترغیب ورکړے شویدے، او د مال فائده ئے بیان کړیده ځکه چه د بنده بغیر د مال نه دنیاوی حالات برابر نهٔ پاتے کیږی، دا د دنیاوی ژوند سبب دے۔ زمخشری د سلفؒ قول نقل کړیدے چه ((مال د مؤمن اسلحه ده))۔ د سفیان ثوریؒ سره یو سامان وو، هغه به ئے اړولو راړولو او وئیل به ئے چه که دا نهٔ وے نو بنی عباس به ما لره د خپل لاس رومال جوړ کړے وے۔ (یعنی تولیه به ئے جوړه کړے وے)

**فائده** : قرآن کریم کی د زندګئ د تیرولو دوه اسباب خودلے شویدی یو انفرادی او بل اجتماعی، انفرادی سبب ئے مال دے ځکه دنیا دار الاسباب دے، د مال نه بغیر گوزاره نهٔ تیریږی پدے وجه شریعت کی د مال ډیر اهمیت راغلے دے۔ او دویم اجتماعی او عمومی سبب دے چه هغه کعبه ده ﴿ جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيَامًا لِّلنَّاسِ ﴾ (المائده : ۹۷) الله تعالیٰ کعبه سبب د زندګئ د انسانانو جوړه کړیده. که کعبه ورانه شوه دنیا به ختمه شی۔

وَّارْزُقُوْهُمْ فِيْهَا : دے نه روستو الله تعالیٰ نصیحت اُوکړو چه دے یتیمانو یا خپلو ښځو او خپلو بچو ته د خوراك او کپړو خرچه ورکوئ، په هغوی باندے تنګئ مه راولئ۔ یوه معنیٰ دا هم وئیلے شویده چه په هغه مال سره تجارت کوئ او د هغه ناپوهو خرچ د مال د نفعے نه ورکوئ، دے دپاره چه اصل مال ختم نهٔ شی، او د هغوی سره په نرمئ سره خبره کوئ، او هغوی ته وایئ چه کله ته هوښیار شوے نو ستا مال به تا ته حواله کوم۔ پلار دِے ځوی ته وائی چه زما مال ستا مال دے، کله چه ته لوئی شوے او د ژوند تجربه دِے اُوشی نو تا ته به مال درکوم۔

وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا : یعنی نیکه خبره ورته کوئ چه ستا مال دے زهٔ ئے درله حفاظت کوم۔ معروف هغه قول او عمل ته وئیلے شی چه په هغے باندے د نفس سکون حاصلیږی پدے وجه هغه عقلًا یا شرعاً ښائسته وی۔ علامه آلوسیؒ وائی چه پدے کی د هغوی دینی اصلاح او تربیت هم داخل دے چه هغوی ته به د دین ضروری علم وربنائی آه۔ او دنیاوی لین کی به هم استعمالولے شی چه سفاهت او سادګی ئے ختمه شی۔ او قرطبیؒ وئیلی دی چه هغوی ته به دعا هم کوی۔ (بَارَكَ اللّٰهُ فِيْكُمْ)۔

وَابْتَلُوا الْيَتَامٰى حَتّٰى إِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ فَإِنْ آنَسْتُمْ مِّنْهُمْ

او امتحان کوئ په یتیمانانو تردے چه ورسیږی نکاح ته نو که معلوم کړو تاسو د هغوی نه

رُشْدًا فَادْفَعُوْا اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ وَلَا تَاْكُلُوْهَا

هوښیارتیا نو ورکوئ هغوی ته مالونه د هغوی او مهٔ خورئ دا مالونه

اِسْرَافًا وَّبِدَارًا اَنْ يَّكْبَرُوْا

پداسې حال کې چه تاسو اسراف کونکي یئ او جلتي کونکي یئ (پرېږئ) ددې نه چه دوی به لوئي شي.

وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا

او څوك چه مالداره وي نو ځان دې پوره ساتي (د مال د یتیم نه) او څوك چه محتاجه وي

فَلْيَاْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ فَاِذَا دَفَعْتُمْ اِلَيْهِمْ

نو خوري دې (د هغې نه) په ښائسته طریقې سره نو کله چه ورکوئ تاسو دوی ته

اَمْوَالَهُمْ فَاَشْهِدُوْا عَلَيْهِمْ وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا ﴿۶﴾

مالونه د دوی نو گواهان پیش کړئ په هغوی باندې او کافي دې الله حساب کونکے.

**تفسیر**: اُوس د ماشومانو یتیمانانو (کم عقلو) په باره کې حکم دے چه دوی ته به مال نشي ورکولے مګر په دوه شرطونو سره یو دا چه بلوغ ته ورسیږي او بل دا چه رُشد (هوښیارتیا) ئې معلومه شي. ځکه چه کم عقلتوب پټ صفت دے دا به پدې علامو سره معلومولے شي.

مطلب د آیت دا دے : الله تعالی د یتیمانانو اولیاؤ ته حکم کړیدے چه کله نا کله څه مال ورکولو سره په عقلي او مالي معاملاتو کې د هغوی د ذهني صلاحیت امتحان اخلئ او کله چه بالغ شي یعنی احتلام ئې اُوشي یا د هغوی عمر پنځلس کالو ته اُورسي او ستاسو په مشاهده کې دا خبره راشي چه په دوی کې نیکي شته او په مالي اُمورو کې سمجهدار او هوښیار دي نو د هغوی مالونه بغیر د تاخیر نه هغوی ته ورکړئ.

د آیت کریمه ظاهري معنیٰ دا ده چه کوم یتیم په دیني یا مالي اعتبار سره نا اهله ثابت شي، د مثال په توګه فضول خرچ وي، یا په ذهني او عقلي توګه باندې کمزورے وي یا په دیني اعتبار سره قابل د اعتماد نهٔ وي، نو د هغه مال به هغه ته نشي ورکولے.

دے نه روستو الله تعالیٰ اولیاؤ ته نصیحت کړیدے چه د یتیمانانو په مال کې فضول خرچي مهٔ کوئ او د ساده ګانو د سادګئ نه بده استفاده مهٔ کوئ او ستاسو دې دا نیت نهٔ وي چه د دوی غټیدو نه مخکې د دوی مال بې ځایه خرچ کړئ، پدې یره چه د غټیدو نه

روستو به هغوی خپل مال تا نه اخلي او ستا د لاس نه به ووځي، نو د دوی د مالونو په باره کې دا قانون واوره چه که د یتیم ولي مالدار وي نو هغه له د هغه د مال نه پرهیز کول پکار دي، ځکه چه هغه مال د هغه دپاره د مردارې او وینې په شان حرام دے۔ او که غریب وي او د یتیم د مال حفاظت کوي او په هغې کې د کاروبار په وجه د خپل بچو دپاره بل کار نشي کولے او د حفاظت په نۀ کولو سره د یتیم مال ضائع کیږي نو د خپل ضرورت او د خپل محنت مناسب مزدوري دې ترې واخلي۔

حافظ ابن کثیرؒ د فقهاؤ قول نقل کړیدے چه هغه به د خپلې مزدورۍ او خپل ضرورت نه چه کوم کمه اندازه وي هغه به اخلي۔

او قرطبي (۴۴/۳) کې دي چه د عرف مطابق اجرت ترې اخستے شي او ډیر اقوال په احکام القرآن د جصاصؒ (۶۵/۲) کې وګوره۔

دے نه روستو الله اُوفرمایل چه د بلوغ عمر ته د رسیدو او د عقل او پوهې د یقین نه روستو چه کله د یتیم مال هغه ته حواله کوئ نو هغه باندې ګواه ونیسئ دے دپاره چه روستو تاسو څوك متهم (بدنام) نکړي او څه جګړه راپورته نشي او کوم شیطانان او حسد ګرئ ونۀ لمسوي چه ستا نه فلاني مال خوړلے دے۔ او الله خو د تهولو نه لوئي ګواه او ستاسو ظاهر او باطن پیژندونکے دے پدې وجه د یتیم مال په پوره امانت سره هغه ته نقل کړه۔

**مسئله** : (۱) د جمهورو علماؤ مذهب دا دے چه کله یو تن سفیه (کم عقل) وي نو چه هر څو مره ژوند پرې تیر شي او سفاهت ئې ختم شوے نۀ وي مال به ورته نشي ورکولے او همدا د آیت د ظاهر نه معلومیږي (روح المعاني ۲۰۶/۴)

(۲) امام ابوحنیفةؒ وائي چه پنځه ویشتو کالو ته ورسیږي یا د زمانے د بلوغ نه ئې لس کاله تیر شي نو مال به ورکوي ځکه چه پدې عمر کې بنده نیکۀ جوړیږي چه اُوس هم د خپل مال نه فائده وانخلي نو کله به ئې ترې اخلي او الله تعالیٰ ساده ګانو ته د هغوی مال ورکول پدې وجه ممنوع ګرزولي دي چه دوی هوښیار شي او ددې دپاره ئې ممنوع نۀ دي ګرزولي چه بل څوك دې پرې تهول عمر قبضه وکړي ۔ جواب دا دے چه د اولیاؤ په لاس هغه ته فائده رسیږي هغه ورته خوراك څکاك او جامه ورکوي او په حدیث کې د مال د ضائع کولو نه منع راغلې ده او سفیه خو مال ضائع کوي او د بل چا قبضه ددې دپاره نۀ ده چه هغه ترې مال خوري بلکه ددۀ د فائدې دپاره ولي پرې قابض دے۔ نو قول د ابو حنیفةؒ کمزورے دے، د صحیح حدیث خلاف دے۔

وَابْتَلُوا : ابتلاء ازمیښت او امتحان ته وائي او ددے یوه طریقه دا ده چه دۀ ته به لږ مال د تجارت دپاره ورکړے شي یا په ځان او خپل اهل باندے د خرچ کولو دپاره۔
إِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ : یعنی ورسیږي زمانے د نکاح ته چه هغه بلوغ دے ځکه چه انسان کله بالغ شي نو نکاح ته ئے شوق کیږي که نۀ وي د بلوغ نه مخکې هم نکاح کیږي، جائز ده۔
بیا نکاح ته د رسیدو نه مراد بلوغ دے او بلوغ په دوه څیزونو سره راځي یو په احتلام سره او بل پنځلس کلنئ ته په رسیدو سره، بنا په اختلاف د علماؤ۔
فَإِنْ آنَسْتُمْ : آنس په معنیٰ د (اَحَسَّ) محسوس کول او معلومول، وَجَدَ (موندل) او اَبْصَرَ سره دے۔ (لیدل)
مِّنْهُمْ رُشْدًا : رُشد صلاحیت، قابلیت، اهلیت او هوښیارتیا ته وائي۔ او دا هر قسم هوښیارتیا ته شامل دے، دا ضروري نۀ ده چه پوره هوښیار شي بلکه چه د مال په حفاظت پوهیږي پدے وجه ئے رشداً نکره راوړه۔ (عزیز)
ابن عباس رضی الله عنهما وائي : رشد : د عقل صلاحیت (عقلمندي) او د مال حفاظت دے۔ (قاسمیؒ) او حسن بصريؒ وائي صلاحیت د عقل او دین دے۔
إِسْرَافًا وَبِدَارًا : دا حالونه دي په معنیٰ د اسم فاعل سره یعنی مُسْرِفِيْنَ وَمُبَادِرِيْنَ كِبَرَهُمْ۔ مۀ خورئ مالونه د هغوي پداسے حال کي چه تاسو اسراف کونکي او جلتي کونکي يئ چه د دوي د غټیدو نه مخکې ورله مالونه ختم کړئ چه بیا راته لاتجے جوړي نکړي۔ (قاسميؒ) د بِدَار (جلتيء) صورت دا دے چه د یتیم د ورځے یوے روټئ پخولو ته ضرورت دے او تۀ ورله دوه او درے پخوے چه مال ئے زر ختم شي۔ او د هغه زر روپو ته ضرورت دے او دے ورله پنځه او لس زره روپئ لګوي۔ نو پردے مال به بې ځایه نۀ لګوي۔
أَنْ يَكْبَرُوا : دا په تاویل د مصدر سره مفعول دے دپاره د بداراً۔ یعنی مُبَادِرِيْنَ كِبَرَهُمْ۔ تاسو جلتئ کوئ (د مال په ختمولو) د دوي د غټ والي نه۔ یا مضاف پټ دے، مَخَافَةَ أَنْ يَكْبَرُوا : یعنی یره کوئ ددے نه چه دوي به راغټ شي او جګړے او د مال حسابونه به راسره کوي او اُوس ئے مونږ د خپل خواهش مطابق استعمالوو۔
وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا : یعنی که څوك غني وي او د یتیم د مال حفاظت کوي نو هغه له پکار دي چه ځان په عفت کي وساتي او د یتیم مال ته زړه ښه نۀ کړي او د یتیم مال دے د خپل مال سره نۀ یو ځای کوي چه د یتیم حق ضائع نکړي۔
وَمَنْ كَانَ فَقِيرًا : څوك چه محتاج وي او د یتیم په مال کاروبار کوي نو د عرف مطابق

تره خپله نفقه اخستے شی۔ او امام بخاریؒ او عائشه رضی الله عنها وائی څکه چه دا تربیت د یتیم کوی او د هغه د مال اصلاح کوی نو د هغے په بدله کی تره د عرف مطابق نفقه اخستے شی۔ (بخاری حسب ترقیم فتح الباری۲۲۱۲)

فَأَشْهِدُوا عَلَيْهِمْ : یعنی کله چه ورته خپل مال سپاری نو گواه به پرے پیش کری چه تهمت پرے رانشی او دا گواه پیش کول په نیز د بعضو مستحب دی مگر ظاهر د قرآن دا دے چه دا حکم د فرضیت دے۔

وَكَفَى بِاللَّهِ حَسِيبًا : پدے کی یره بیانوی چه الله به درسره حساب کوی که چرته تا د یتیم مال کی خیانت کرے وی۔

| |
|---|
| لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ وَلِلنِّسَاءِ |
| دپاره د سړو حصه ده د هغه مال نه چه پریخودے وی مور او پلار او خپلوانو، او د زنانو دپاره |
| نَصِيبٌ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ |
| حصه ده د هغه مال نه چه پریخودے وی مور او پلار او خپلوانو، د هغه مال نه چه لږ وی |
| أَوْ كَثُرَ نَصِيبًا مَفْرُوضًا ﴿٧﴾ |
| د هغے نه یا ډیر وی، حصه ده مقرر کړے شوے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی مستحقینو ته د خپلو حقوقو په ادا کولو حکم دے او دا شپږم حکم دے د میراث په باره کی او پدے کی د جاهلیت والو په رسم باندے رد مقصود دے پدے وجه ئے د ښځو نوم هم په مستقله توگه اخستے دے، جاهلیت والو به ښځو او ماشومانو ته د میراث نه حصه نهٔ ورکوله او دا به ئے ویل چه (مَنْ اَخَذَ بِيَدِهِ السَّيْفَ) میراث د هغه چا حق دے چه په لاس کی ئے توره اخستی وی۔ او چونکه پدے کار کی ظلم وو پدے وجه شریعت د ظلمونو د فع کولو دپاره د مسلمانانو تصور برابر کړو، چه د مشر او کشر او د زنانو او د سړو فرق به په میراث کی نهٔ وی بلکه ټولو ته به خپلے خپلے مقررے حصے ورکولے شی، کومے چه الله تعالیٰ روستو تفصیلاً بیان کړیدی۔

پدے وخت کی هم ډیر مسلمانان ښځو او جینکو او خویندو او ترینڈو ته میراث نهٔ ورکوی او ډیر خلك پرے ځان کافر کړی وائی چه جینکو له چا میراث ورکړیدے؟! د الله په مقابله کی ودریږی۔ مال ته ټینګیدل او چته تقویٰ ده، نفلونه او بدنی عبادتونه آسان دی

پردی مال نه ځان ساتل ګران کار دے، اوس پدے وخت کی د اکثرو انسانانو مالونه حرام دی ځکه چه یا خو خپله خویندو او لونړو ته میراث نهٔ ورکوی یا دهٔ پلار خپلو خویندو ته میراث نهٔ وی ورکړے نو هغه ئے بچو ته پاتی وی نو د هغوی دپاره هم دغه مال حرام دے۔

وَالْاَقْرَبُوْنَ : لفظ د (قرابت) ذکر کولو کی د وراثت علت طرف ته اشاره مقصود ده۔

مِمَّا قَلَّ مِنْهُ اَوْ كَثُرَ : یعنی دغه میراث مال لږ وی او که ډیر خو خپلو مستحقینو ته به ورکولے شی، پدے کی مسلمانان پوهه کول دی چه د ناجائزو رواجونو نه ځانونه بچ وساتئ لکه ځینی خلك د مشرانی په نامه څه مال اخلی او نورو وارثانو ته پکی برخه نهٔ ورکوی۔ O یا ځینی خلك په اوسنئ زمانه کی هم زنانه د میراث نه محروموی او یا ورته په غیر منقولی مالونو کی برخه نهٔ ورکوی۔ O یا ځینی خلك د میراث د مال نه رواجی خیراتونه کوی او د ټولو وارثانو رضا ته پکی نهٔ ګوری او نهٔ د یتیمانانو خیال ساتی نو الله تاکید وکړو که مال لږ وی او که ډیر خو د میراث خورو لحاظ به ساتلے شی۔

او د (نصیباً مفروضاً) مطلب دا دے چه الله دا احکام واجب کړیدی۔

مَّفْرُوْضًا : یعنی مقرر کړے شوے د الله د طرفنه چه د هغے تشریحات په احادیثو کی راغلی دی۔ یا فرض په معنیٰ د واجب او لازم سره۔

| وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُوْلُوا الْقُرْبٰى وَالْيَتَامٰى وَالْمَسَاكِيْنُ |
| --- |
| او کله چه حاضر شی تقسیم (د میراث ته) خپلوان او یتیمانان او مسکینان |
| فَارْزُقُوْهُمْ مِّنْهُ وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ﴿٨﴾ |
| نو خوراك ورکړئ دوی ته د هغے (مال) نه او وایئ دوی ته وینا نیکه۔ |

**تفسير** : پدے آیت کریمه کی ترغیب دے چه د میراث نه انفاق وکړئ ځکه چه دا طریقه ده چه کله بنده ته ډیر مال ملاؤ شی نو دهٔ له د هغے نه صدقه پکار ده۔

پدے آیتِ کریمه کی الله تعالیٰ د میراث متعلق یو ضمنی حکم بیان کړیدے چه کله د میراث مال تقسیمیږی او هلته داسے خپلوان چه د میراث حقدار نهٔ وی او یتیمانان او غریبان خلق راشی نو د مال د تقسیمولو نه مخکی د صدقے په توګه او د هغوی د زړهٔ ساتلو دپاره هغوی ته څه مال ورکول پکار دی، هغوی به دعا کوشی چه د فلانی په مرګ کی مونږ ته فائده وشوه، الله دِے ورته بخښنه وکړی۔

ددې آیت په باره کې دوه رائې دي: ۱ - یوه رائې دا ده چه دا آیت مُحکم دې، منسوخ نهٔ دې. امام بخاريؒ د ابن عباس رضي الله عنهما نه دغه روایت نقل کړیدې او د صحابه کرامؓ او د تابعینوؒ د یو جماعت هم دغه رائې ده چه وارثانو له پکار دي چه داسې وکړي لیکن ددې هیڅ حد مقرر نهٔ دې چه څومره به ورکوي او ډیر کم خلك پدې باندې عمل کوي چه د میراث د تقسیم په وخت کې غیر وارث خپلوانو او یتیمانانو او مسکینانو ته د میراث نه څه برخه ورکړي کله چه هغوي په دغه ځای د تقسیم کې حاضر وي. نو د (فَارْزُقُوهُمْ) حکم به استحبابي وي. نو د (وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا مَعْرُوفًا) مطلب به دا وي چه دوي ته پداسې سخت وخت کې چه انسان په غصه وي او خفګان کې وي نرمه وینا وکړئ چه پدې مال کې ستاسو برخه نشته لیکن مونږه تاسو ته څه شے د صدقې په طور درکوو. نو پدې سره به دغه مسکینان مړي ته ښه دعا وکړي.

۲ - دویمه رائې دا ده چه ددې آیت حکم د احکامو د میراث په ذریعه منسوخ شویدې. د منسوخې معنیٰ مطلب به دا وو چه په ابتداء د اسلام کې د مړي په مال کې د ټولو خپلوانو حق وو کله چه به ورته حاضر شو نو هغوي ته به هم څه نا څه ورکول کیدل لیکن روستو په (یوصیکم الله) آیت سره الله تعالیٰ دا حکم منسوخ کړو او په میراث کې صرف د وارثانو حق وښودلې شو، نهٔ د نورو خپلوانو او یتیمانانو او مسکینانو.

د عکرمهؒ، ابو الشعثاءؒ او قاسم بن محمدؒ همدا رائې ده. او د ائمه اربعوؒ او جمهورو فقهاؤ همدا مذهب دې. البته د مړي دا حق شته چه په وخت د مرګ کې د غیر وارثانو دپاره د څه مال وصیت وکړي نو پس د مرګ نه به هغه ورته ورکولې شي. د مال مالك په خپل ژوند کې په دریمه حصه مال کې د وصیت تصرف کولې شي لکه چه د سعد بن ابي وقاص ؓ د حدیث نه ثابت دې چه هغه بخاريؒ او مسلمؒ روایت کړیدې چه رسول الله ﷺ هغه ته په دریمه حصه مال کې د وصیت تصرف کولو حق ورکړے وو.

ځینو علماؤ اولنۍ رائې ته ترجیح ورکړیده او وئیلي ئې دي چه د آیت د منسوخ منلو څه معقوله وجه نشته. پدې وجه که د مال د تقسیم په وخت څه رشته دار موجود وي او هغه محتاج هم وي نو د صله رحمۍ د جذبې ساتونکي وارثان همدا مناسبه ګڼړي چه هغوي ته هم څه مال ورکړے شي، دې دپاره چه چرته د دوي د یو رشته دار د مال تقسیم کیږي هلته نه دوي محروم واپس نشي. او په خاص توګه هغه یتیم بچیان چه د هغوي پلار نیکه وفات شوې هم وي، او د میراث نه محروم شوې وي او بیا د هغوي د نیکه د وفات کیدو نه

روستـو میراث تقسیمیږي او د هغوی تره او ترینده میراث اُومومي او خوشحالي کوي او دا بـچیـان د هغـوی خُلو ته گوري او دوی ته هیڅ نهٔ وي ملاوٗ شوي. صرف پدے وجه چه د دوی پـلار د دوی د نیـکـه نه مخکې وفات شویدے نو د دوی د محرومتیا به څه عالَم وي ؟ د داسـے بـچـو پـه حق کـې خـو دا آیت د آبِ حیات په شان دے. او په خاص توگه که د نیکه جائیداد زیات وي او وارثان د هغه یتیمانانو په حال رحم کوي نو د دوی په حصه کې هم څه نا څه جائیداد راتلے شي او د دوی غربت لرے کیدے شي. (تیسیر الرحمن)

(۳) ځینـې عـلـمـاؤ ددے آیت تـفـسیـر داسـے کړیدے چه دلته د (اولو القربی) او یتامی او مساکین نه مراد پخپله وارثان دي او د آیت مطلب دا دے چه کله مړے وفات شي او میراث ئے پاتې شي او دغه وارثان راشي د میراث د تقسیم مطالبه کوي او في الحال تقسیم د څه حـالاتـو د وجـه نـه مشـکـل وي نو دوی له به د دوی د ضرورت مطابق لږه څه برخه ورکړے شـي چـه هـغـه بـه د دوی په روستو حصه کې حساب شي او د دوی ضرورت دے پرے پوره کړے شي او دوی ته دے نیکه، بنائسته وینا وکړے شي چه دا ستاسو مال دے لیکن اُوس ئے د تـقسیم موقعه نهٔ ده، ټول وارثان حاضر نهٔ دي، یا مال تس نس دے وغیره). مطلب دا چه یتیـمـانـان او مسـکینان خفه کول جائز نهٔ دي بلکه د هغوی ضرورت پوره کول پکار دي. لیـکـن اول تفسیر (د ابن عباسؓ رئیس المفسرین) ډیر غوره دے. او دا دریم تفسیر د حسین علي رحمه الله دے لیکن ضعیف جدًا دئے، د آیت د سیاق نه خلاف دے.

**فائده** : ددے نـه دا استنباط کیـږي چـه کـلـه ستـا مخے ته یو حاضر شي ته د یو تن زړه کـیـږي نـو هغه له هم د هغے نه څه ورکول پکار دي پدے وجه رسول الله ﷺ فرمایلي دي : کـلـه چـه یـو تـن ستاسو ته د هغه خادم څه طعام راوړي نو هغه دے خان سره کینوي، که د ځان سره ئے نهٔ کینوي نو هغه ته دے یوه یا دوه لقمے (نوړئ) ورکړي. او رسول الله ﷺ به نوے میوه ماشومانو ته اول ورکوله. (تفسیر السعدي ۱/۱٦۵).

نو کله چه یو دهقان د خپل پټي فصل او کرونده راوشوکوي نو هلته حاضرو مسکینانو ته څـه نـا څـه ورکـولـو سـره ددے آیت په اشاراتو باندے عمل راځي. او په ﴿ وَآتُوا حَقَّهُ يَوْمَ حَصَادِهِ﴾ کې دغه حکم ته اشاره شویده لکه روستو سورة الانعام (۱٤۱) آیت کې راځي.

| وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعَافًا |
| --- |
| او ودے یریږي هغه کسان که چرته پریدي روستو د خپل ځان نه بچي کمزوري |

خَافُوْا عَلَيْهِمْ فَلْيَتَّقُوا اللّٰهَ وَلْيَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ﴿۹﴾

چه يريږي په هغوی باندې (د خلکو د ظلم نه) نو ودې يريږي د الله نه او وائي دې وينا د حق سره برابره

**تفسير** : پدې آيت کې بل حکم دې (اَلنَّهْیُ عَنِ الظُّلْمِ عَلَی الْيَتَامٰی) په يتيمانانو باندې د ظلم کولو نه منع کوی لکه په خپلو بچو چه ظلم نهٔ خوښوی. نو په آيت کې د (الذين) نه مراد د يتيمانانو اولياء دی او دا فاعل دې د (وليخش) او مفعول ئې پټ دې اَيِ الظُّلْمَ عَلَی الْيَتَامٰی) مطلب به دا وی چه هغه کسان دې ويريږي د ظلم کولو نه په يتيمانانو بالفرض که دوی د خپل ځانونو نه روستو کمزوری بچي پريدی او دوی مړه شي او په هغوی باندې د ظلم نه يريږي چه څوك به پرې ظلم وکړي نو دغه شان دا کسان دې په يتيمانانو باندې ظلم نهٔ کوی يعنی لکه ستا بچو باندې چه څوك ظلم کوی تهٔ خفه کيږې نو دغه شان تهٔ په پردو بچو باندې ظلم مهٔ کوه. او داسې بنياد کيږده چه ستا د مرګ نه روستو هم ستا د اولادو سره څوك ظلم ونکړی او ددې نيك عمل په برکت ستا د يتيمانانو هم ښه تربيت شي او خلك ورته په درنه سترګه وګوری چه د فلانی نيك عمله اولاد دی.

يعنی په ټولو مسلمانانو لازمه ده چه د يتيمانانو په کمزوری حالت باندې رحم وکړی که په چا باندې ئې حقوق وی هغه دې ورته ادا کړی او که نهٔ وی نو (وَلْيَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا) د سمو خبرو حق خو په هرچا باندې لری، يتيمانان لکه چه د مالونو حفاظت ته محتاج دی همدارنګه د خير او د نصيحت خبرو او د آدابو ښودلو ته هم ضرورت لری.

د تفسير علماؤ ددې آيت نور توجيهات هم بيان کړيدی :

يوه توجيه مخکې تيره شوه.

دويمه توجيه دا ده چه دا حکم د مريض د عيادت کونکو دپاره دې چه که مريض په خپل مال کې د بې ځايه تصرف په وجه خپل اولاد ته نقصان رسوی نو هغه دې منع کړی.

دريمه توجيه دا ده چه دا حکم د وارثانو دپاره دې چه د ميراث د تقسيميدو په وخت چه کوم کمزوری رشته داران، يتيمانان او مسکينان موجود وی نو د هغوی خيال دې اُوساتی، دا سوچ دې اُوکړی چه که د دوی د وفات نه روستو د دوی واړه بچي وی نو آيا دوی به دا غوختلې چه څوك دا د صدقې او احسان نه محروم کړی.

څلورمه توجيه دا ده چه (نَزَلَتْ فِيْمَنْ يَأْمُرُ الْمُحْتَضَرَ بِأَکْثَرَ مِنَ الثُّلُثِ) دا آيت د هغه چا په باره کې نازل دې چه مړ کيدونکی شخص ته حکم کوی چه د ثلث مال نه په زيات وصيت

وکړی یعنی وصیت کونکے ډیے د وارثانو خیال اُوساتی او په وصیت کی ډیے د حد نه تیروتل نهٔ کوی او د بعض حاضرینو په وسوسو کی ډیے نهٔ راځی چه هغوی ورته د ټول مال په وصیت حکم کوی او دا ورته وائی چه ځان دپاره د آخرت غم وکړه او د بچو پرواه مهٔ کوه، هغوی ته به الله رزق ورکوی لکه د سعد بن ابی وقاص ﷺ په حدیث کی راغلی دی چه رسول الله ﷺ هغه ته د یو ثُلث نه د زیات مال وصیت اجازت ورنکړو۔ یعنی د خپلو بچو په باره کی دا خوښوے چه هغوی ته ډیر میراث پاتی شی نو د پردو بچو په باره کی هم دغه خوښ کړه چه هغوی ته زیات میراث پاتی شی۔

پنځمه توجیه دا ده چه دا حکم هغه مړ کیدونکو کسانو ته دیے چه د هغوی ګنړ اولاد پاتی کیږی او یریږی چه مشران به په کشرانو ظلم وکړی (لکه د دوه میندو اولادو کی اکثر دا کار کیږی) نو هغوی ډیے د الله نه ویریږی او خپل بچو ته ډیے دا وصیت وکړی چه ظلم به نهٔ کوئ او ټولو میراث خورو ته به صحیح صحیح میراث ورکوئ او جینکئ به هم نهٔ محروموئ۔ نو (فلیتقوا الله) به بیان د (وَلْيَخْشَ) دپاره وی۔ او (وَلْيَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا) یعنی د حق او شرعی حکم مطابق ډیے وینا وکړی چه په شرعی طریقه میراث تقسیم کړئ او بی ځایه خیراتونه مهٔ کوئ هسے نهٔ چه د یتیمانانو په مال کی درنه خیانت وشی۔

ابن جریرؒ، ابن کثیرؒ او رازیؒ وغیرهم اولنئ توجیه ته ترجیح ورکړیده او وئیلی ئے دی چه د سیاق سباق آیتونه ددیے تائید کوی۔ مګر الله تعالیٰ داسے عجیب آیت وئیلے ډیے چه ددیے ټولو معانیو سره لګی او پدیے ټولو باندیے مونږ مکلف یو ډیے دپاره چه مونږ د ظلم نه ځان بچ کړو۔ ینظر (محاسن التاویل للقاسمی ۲/۲۳۳ وتیسیر الرحمن بتصرف)

| إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه خوری مالونه د یتیمانانو په ظلم سره یقیناً دوی اچوی |
| فِي بُطُونِهِمْ نَارًا وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا ﴿۱۰﴾ |
| په خیټو خپلو کی اُور او زر ډیے چه دا خل به کړیے شی اُور ګرم ته۔ |

**تفسیر** : اُوس وائی که دیو انسان زړه سخت وی او په یتیمانانو ئے زړهٔ نهٔ سوزی او یا دومره هم نهٔ شی کولے چه خپل ځان مړ او خپل ماشومان یتیمان فرض کړی، ډیے دپاره چه په هغوی ئے رحم راشی او داسے هم نهٔ کوی بلکه د یتیم مال ته ئے پرلتئ وهلی وی نو د

دغه کسانو خیتې د اُور تنورونه دي او په اُور باندې سوزېدل د دوی سره مناسب دي۔
دا آیت چه کله نازل شو صحابه کرامؓ د یتیمانانو مالونه د خپلو ځانونو نه جدا کړل چه مونږ نه خیانت ونشي لکه مخکې په سورة البقره ﴿وَاِنْ تُخَالِطُوْهُمْ﴾ (۲۲۰) آیت کې ذکر شویدی۔

| |
|---|
| يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ |
| وصیت کوي الله تعالیٰ تاسو ته په باره د اولاد ستاسو کې، دپاره د سړي په اندازه د برخې |
| الْاُنْثَيَيْنِ فَاِنْ كُنَّ نِسَآءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا |
| د دوه جینکو ده، نو که چرته وي زنانه (دوه یا) دپاسه ددوو نه نو هغوی دپاره دوه حصې دي |
| مَا تَرَكَ وَاِنْ كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ وَلِاَبَوَيْهِ |
| د هغه مال چه مړي پریخې وي او که یوه وه نو د هغې دپاره نیمائي مال دې او د مور او پلار د مړي |
| لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ اِنْ كَانَ |
| دپاره د هر ددې دواړو نه شپږمه حصه ده د هغه مال نه چه پریخې وي مړي که چرته وي |
| لَهٗ وَلَدٌ فَاِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهٗ وَلَدٌ وَّوَرِثَهٗٓ اَبَوٰهُ |
| هغه لره اولاد نو که نۀ وي هغه لره اولاد او میراث وړي د هغه نه مور او پلار د هغه |
| فَلِاُمِّهِ الثُّلُثُ فَاِنْ كَانَ لَهٗٓ اِخْوَةٌ فَلِاُمِّهِ السُّدُسُ |
| نو د مور د هغه دپاره دریمه حصه ده، پس که وي هغه لره وروڼه نو د مور دپاره ئې شپږمه حصه ده |
| مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصِيْ بِهَآ اَوْ دَيْنٍ |
| پس د پوره کولو د وصیت نه چه وصیت ئې کړې وي په هغې سره یا پس د ادا کولو د قرض نه، |
| اٰبَآؤُكُمْ وَاَبْنَآؤُكُمْ لَا تَدْرُوْنَ اَيُّهُمْ اَقْرَبُ لَكُمْ |
| پلاران ستاسو او زامن ستاسو نۀ پوهېږئ تاسو چه کوم یو د دوی نه زیات نزدې دې تاسو ته |
| نَفْعًا فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱۱﴾ |
| په فائده کې، حصې مقرر کړې شویدي د طرفه د الله نه، یقیناً الله پوهه دې، حکمتونو والا دې۔ |

**تفسیر** : د قرآن کریم په څلورو آیتونو کی د میراث مسائل دی چه دوه دلته او یو په آخر د سورة النساء کی او یو په آخر د سورة الانفال او سورة الاحزاب کی دے چه هغه دواړه یو شان دی۔ او ددے آیتونو نه ټول مسائل د میراث حل کیږی که څوك پرے په صحیح معنو پو هه شی۔

اول میراث د توالد دے یعنی د بچو او د مور او پلار په باره کی۔ او په روستو نیمائی آیت کی میراث الازدواج دے یعنی د ښځے او د خاوند میراث۔ او په (وَاِنْ كَانَ رَجُلٌ) کی میراث د اخوه اخیافی دے۔ (چه د مور نه وی او د پلار نه نهٔ وی)۔ او په آخر د سورة نساء کی په هغے کی میراث د اخوه او اخوات اعیانی او علاتی دی چه د مور او پلار دواړو وی یا صرف د پلار نه وی نهٔ د مور نه۔ او (وَاُولُوا الْاَرْحَامِ) آیت کی د ذوی الارحامو میراث دے۔ او دلته ئے د اولادو میراث مقدم کړو ځکه چه د انسان تعلق د هر چا نه د اولادو سره مخکی او ډیر وی۔

**فائده عجیبه** : سړے چه مړ شی د هغه په مال کی څلور حقه دی (١) اَلتَّجْهِيْزُ وَالتَّكْفِيْنُ وَالتَّدْفِيْنُ۔ کفن دفن ورکول او سنبالول۔ (٢) اَدَاءُ الدُّيُوْن۔ د مړی قرضونه ادا کول، نبی علیه السلام دا مخکی کړیدی په وصیت باندے او قرآن کی د وصیت نه روستو ذکر دے حکمت ئے روستو راځی۔ (٣) تَنْفِيْذُ الْوَصِيَّة ۔ کوم وصیت ئے چه کړے وی هغه نافذ کول۔ (٤) تَقْسِيْمُ الْمِيْرَاث۔ ددے نه روستو چه کوم مال پاتے شو هغه به تقسیم کړے شی۔

**فائده** : د میراث اسباب څو مره دی؟ ابن عاشورؒ لیکلی دی چه په جاهلیت زمانه کی د میراث (١) یو سبب تبنی وه چه یو تن به یو شخص په خپل زوی ولئ ونیولو (متبنیٰ) نو د یو بل نهٔ به ئے میراث هم وړو، اسلام چه کله راغلو نو دا سبب ئے ختم کړو۔

(٢) عـقـد حِلْف : د جاهلیت په زمانه کی به یو تن د بل سره قسم وکړو چه زمونږ د دواړو وینه به شریکه وی او دواړه به د یو بل نه میراث وړو۔ په اسلام کی دا سبب هم زائل شو۔

(٣) رسول الله ﷺ په مکه کی د میراثو احکام نشو بدلولے ځکه چه طاقت ئے نهٔ وو، نهٔ شو نافذ کولے نو پدے وجه کله ئے چه مدینے ته هجرت وکړو نو د مهاجرینو اکثر خپلوان چه مشرکان وو په مکه کی پاتی شول نو رسول الله ﷺ د صحابه کرامو ترمینځ عقدِ حلف او عقد موالات جوړ کړو یعنی دا ئے وویل چه یو مهاجر د بل مهاجر وررور شو او ددهٔ نه به میراث وړی لکه روستو په ﴿ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ ﴾ النساء (٣٣) آیت کی راځی۔ بیا چه کله د مسلمانانو بچی پیدا شو او اکثر خپلوان ئے مسلمانان شول نو الله تعالیٰ د میراث سبب بیرته خپلولۍ ته واپس کړو۔ (التنویر والتحریر ٣٧/٤)

(٤) چه دا خپلولي کله په نسب سره ده۔ (٥) او کله په زوجيت (نکاحي تعلق) سره۔
(٦) او کله په وَلَاءُ الْعَتَاقَةِ سره۔ چه يو تن يو غلام آزاد کړي او د هغه خپلوان نهٔ وي نو آزادونکے به ترے ميراث وړي۔ نو درے سببونه (تبنی، هجرت او عقد مواخات) منسوخ شو او باقي نسب، زوجيت ولاء العتاقة پاتې شول۔
يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ : د ايصاء نه دے، ابن عاشورؒ وئيلي دي چه ايصاء په هغه شي باندے امر کولو ته وائي چه په هغے کي د مامور نفع وي او د امر کونکي د طرفنه اهتمام وي۔ او ابن کثيرؒ فرمائي : معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ تاسو ته په عدل سره حکم کوي۔ او وصيت تاکيدي حکم ته وائي چه نهٔ منسوخ کيږي۔
لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ :
**حكمة** : دلته الله تعالیٰ سړے مشابه کړيدے د ښځو سره په ميراث کي يعني سړو له دومره مال ورکوئ لکه ښځو له ئے چه ورکوئ خو د هغے دوچنده۔ نو گويا که اصل ميراث خوره جينئ ده، پدے کي ترغيب دے چه جينکئ د ميراث نه محرومي نکړے شي۔ او په تشبيه کي حکمت دا هم دے چه هلك زور کولے شي او جينئ زور نشي کولے۔
**صورت** : پلار مړ شو يو هلك او دوه جينکئ پاتے شوے نو ټول مال د دوي دے کله ئے چه مور نهٔ وي نو که مثلاً مال دوه لاکه روپئ دے نو يو لاکھ به هلك واخلي او يو لاکه به دوه جينکئ واخلي۔ او نور صورتونه ورسره ته ملکرے کوه۔ يا به ورسره مور او پلار وي او ښځه به ورسره وي يا نهٔ نو ډير صورتونه پکي جوړيږي خو د اولادو ميراث دغه شو کوم چه بيان شو۔
فَوْقَ اثْنَتَيْنِ : د دوه او د دوه نه زياتو جينکو يو شان ميراث دے چه دوه دريمے حصے به ورکولے شي۔ **صورت** : پلار مړ شو او دوه يا درے يا لس لونړه ترے پاتے شوے نو مال به درے حصے شي، دوه حصے به جينکو ته ورکړے شي دوي به ئے خپل مينځ کي برابر تقسيم کړي او دريمه حصه مال به ئے نور ميراث خواره واخلي چه مثلاً تړهٔ يا د تره خوي يا ماما او داسے وريسے ورځه، او جينکئ ټول مال د مړي نشي اخستے۔
وَاِنْ كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ : **صورت**: پلار مړ شو يوه لور ترے پاتے شوه نو نيمائي مال به د لور شي او باقي به نور ميراث خواره واخلي، جينئ ټول مال د پلار نشي اخستے۔
وَلِاَبَوَيْهِ : اُوس د مور او پلار ميراث بيانوي۔
لِكُلِّ وَاحِدٍ : دا بدل دے د (اَبَوَيْهِ) نه او د بدل په ذکر کولو کي فائده دا ده چه دا معلومه

شی چه یو سُدس (شپږمه برخه) د دوی شریك نهٔ دے بلکه د هر یو دپاره جدا جدا شپږمه برخه ده۔

د (اِنْ کَانَ لَهٗ وَلَدٌ) پورے صورت د مسئلے دا دے چه سړے مړ شو مور او پلار ئے پاتی شو او خپل بچی ئے پاتی دی نو مور او پلار ته به شپږمه برخه ورکولے شی او باقی به د بچو ترمینځ تقسیم شی۔ لکه شپږ لاکه روپئ پاتے شوے یو لاکه د مور او یو لاکه د پلار او څلور لاکه به د بچو دپاره شی۔

وَلَدٌ : په ولد کی خپل بچے او نمسے دواړه داخل دی۔ او هلك او جینئ دواړو ته شامل دے۔

فَاِنْ لَّمْ یَکُنْ لَّهٗ وَلَدٌ : په ولد کی نارینه او زنانه او نمسی ټول داخل دی۔

## د مور او پلار د برخو بعض تفصیل

(۱) که مړی یواځے نارینه اولاد لری برابره ده چه یو تن وی او که زیات نو مور او پلار هر یو به د ټول مال (میراث) نه شپږمه شپږمه (۱/٦) برخه اخلی او نور به نارینه اولاد ته پاتی کیږی۔

(۲) او که یواځے زنانه اولاد ئے وی نو د مور او پلار په شپږمو برخو کی څه تغیر نهٔ راځی خو چه لونړه خپلے برخے واخلی او څه پاتی شی نو هغه به هم د پلار شپږمے برخے سره یو ځای کیږی۔

(۳) که چرته یو تن مړ شی او صرف پلار ترے پاتی شی، چه هیڅ اولاد ئے نهٔ وی نو پلار ته به ټول مال ورکولے شی ځکه چه دا عصبه دے۔ (تفسیر السعدی ۱/۱٦٦ وغیره)

## د مړی چه اولاد نهٔ وی د هغے درے صورتونه

فَاِنْ لَّمْ یَکُنْ لَّهٗ وَلَدٌ : (۱) صورت : سړے مړ شو چه اولاد ئے نشته واده ئے نهٔ دے کړے یا ئے بچی نهٔ دی پیدا شوی او مور او پلار ئے ژوندی دی نو مور به ئے دریمه واخلی (وَلِاَبِیْهِ الْبَاقِیْ) او د پلار دپاره ئے باقی مال دے دا پدے وخت کی عصبه دے۔ مثلاً درے لاکه روپئ پاتے شوے نو یو لاکه به مور واخلی او باقی دوه لاکه به پلار ته پاتی شی۔

(۲) صورت چه د مور او پلار سره د مړی ښځه یا د مړی خاوند هم په وارثانو کی شامل وی نو پدے صورت کی قانون دا دے چه ښځه یا خاوند به اول خپله برخه واخلی (چه هغه روستو په بل آیت کی راځی) او په باقی مال کی به د مور دریمه برخه رسیږی او نور چه څه

پاتی شو هغه به پلار ته ورکړے شي.

(۳) **صورت** چه د مور او پلار سره د مړي دوه تنه يا زياتي خويندي يا ورونه ژوندي وي، برابره خبره ده چه سکه وي يا ناسکه نو پدے صورت کي د مور يواځي د ټول مال شپږمه برخه رسيږي او باقيمانده ټول مال د مړي پلار ته پاتي کيږي. البته که د خويندو او ورونو نه يو تن ژوندے وو نو بيا د مور په برخه باندے څه اثر نۀ غورزوي بلکه د اول صورت په شان حکم لري چه د مور به دريمه برخه رسيږي لکه ددے صورت تفصيل لاندے راروان دے. او آيا رونړه او خونيدو ميراث به وي او که نۀ نو پدے کي اختلاف دے، راجح دا ده چه د دوي ميراث نۀ رسيږي ځکه چه پلار نزدے عصبه دے او دوي ورلاندے دي.

وَوَرِثَهُ أَبَوَاهُ : يعني ميراث وړي د مړي نه مور او پلار ددۀ. دا قيد ورسره ځکه واڅي چه کله مور او پلار موجود وي ليکن کافران وي يا غلامان وي يا قاتلان وي نو هغوي ته د اولادو په ميراث کي څه برخه نۀ ملاويږي. (احسن الکلام)

وان کان له اخوة : صورت : سړے مړ شو مور او پلار ئے هم شته او ورسره ورونه ئے هم شته نو دلته به د مړي ورونه د مور حصه کموي، د دريمے نه به ئے شپږمے ته نقل کوي مثلاً : شپږ لاکه روپۍ پاتے شوے نو مور به ئے يو لاکه واخلي او په قول راجح کي به د ورونو هيڅ برخه نۀ وي او باقي پنځه لاکه به پلار ته پاتي شي.

دلته مور ولے شپږمے ته نقل شوه او پلار ته زياته پاتي شوه ؟ ددے حکمت دا معلوميږي (والله اعلم) چه د مور خرچه د مړي په نورو ورونو باندے لازم ده نو که مور ته برخه کمه ورسي نو د ورونو په وجه به ئے گوزاره روانه وي. او بل طرفته که د مړي ورونه زيات وي او ماشومان وي نو د هغوي خرچه په پلار راځي نو پلار له زياته ورکول پکار دي چه د دغه ماشومانو نفقه پرے هم وکړي.

**حکمة** : په احاديثو کي قرض د وصيت نه مخکي شودلے شويدے او دلته وصيت مخکي ذکر شو ؟ ددے حکمة دا دے چه د دَين (قرض) مُطالب (طلبگار) موجود دے هغه درته په سر ودريږي او د وصيت طلبگار نۀ وي ځکه چه د مړ کيدونکي په خوا کي حاضر نۀ وي يا د شرم او حياء د وجه نه مطالبه نشي کولے. نو الله فرماني قرض خو به هسے هم ورکوے خو چه دغه وصيت درنه هير نشي. (۲) دويم حکمة دا دے (خطيبؒ شربيني وائي:) چه وصيت پوره کول په وارثانو باندے گران تماميږي ځکه چه دا په غير د عوض نه اخستلے شي او بله دا چه وصيت د هر مکلف دپاره مستحب دے په خلاف د دَين (قرض)

نه چه هغه په هر چا باندے نهٔ وی۔ او په وصیت مخکښې ذکر کولو کښې ترغیب دے وصیت کولو ته۔ (السراج المنير ۱/۲۳۱)

آبَآؤُكُمْ : پدے کښې په مخکښې طريقه سره د ميراث د تقسيم حکمة بيانوی چه الله تعالىٰ د بندګانو صوابديد ته ونهٔ سپارلو بلکه خپله ئے بيان کړو ځکه چه تاسو نهٔ پوهيږئ چه تاسو ته د چا فائده زياته رسی۔ او الله تعالىٰ ته ستاسو ګټه او تاوان څرګند دے۔ تهٔ به راولګے پلار ته به زيات وصيت وکړے او حال دا چه د بچی فائده به زياته وی يا برعکس تهٔ به بچی ته زيات مال ورکړے او په واقع کښې به تا ته د پلار فائده زياته رسيږی۔ دا په دنيا او آخرت دواړو کښې مراد کيدے شی مثلاً په دنيا کښې تا ته پته نشته چه د پلار دعا بچی ته فائده ورکړی او دارنګه کله د بچی دعا او صدقه پلار ته فائده ورکړی، لکه امام قرطبیؒ وئيلی دی چه کله والدين د اولاد په دعا سره اُوچته درجه حاصله کړی او دغه شان اولاد د والدينو په دعا سره اُوچت مقام ته رسيدلے شی۔ دارنګه په آخرت کښې به هر يو د پلار او بچو نه د يو بل دپاره سفارش کوی، که پلاران ئے اُوچتے مرتبے ته رسيدلی وی نو الله تعالىٰ به ورته بچی ورپورته کړی لکه دا په سورة الطور (۲۱) آيت کښې راغلی دی : ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ﴾۔

او که بچی ئے اُوچتے درجے ته رسيدلی وی نو پلاران به ورته الله تعالىٰ د هغوی په سفارش سره ورپورته کړی۔ (ابن عباسؓ)

د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه داسے مطلب نقل دے چه په پلارانو او ځامنو کښې څوک د الله تعالىٰ ډير تابعدار وی هغه به د قيامت په ورځ اُوچتے درجے والا وی او الله تعالىٰ د بعض مؤمنانو سفارش د بعضو په باره کښې قبلوی، که د پلار درجه په جنت کښې پورته وه د بچی دپاره به سفارش کوی او که د بچی پورته وه نو د پلار دپاره به سفارش کوی۔ (السراج المنير ۱/۲۳۱)

ابو حيانؒ وئيلی دی چه پدے کښې اشاره ده چه د مُورث د مرګ تمنا مهٔ کوه۔ (احسن الکلام)

| وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ إِن لَّمْ يَكُن |
|---|
| او ستاسو دپاره نيمائی مال دے د هغے نه چه پريخودے وی ښځو ستاسو که چرته نهٔ وی |
| لَّهُنَّ وَلَدٌ فَإِن كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا |
| هغوی لره هيڅ اولاد او که وی هغوی لره اولاد نو تاسو لره څلورمه حصه ده د هغه مال نه |

تَرَكْنَ مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصِيْنَ بِهَآ

چه پریخودے وی دوی پس د پوره کولو د وصیت نه چه وصیت ئے کړے وی په هغے سره

اَوْ دَيْنٍ وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ

یا پس د ادا کولو د قرض نه او ښځو لره څلورمه برخه ده د هغه مال نه چه پریخودے وی تاسو

اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّكُمْ وَلَدٌ فَاِنْ كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ

که چرته نۀ وی تاسو لره څه اولاد نو که وی تاسو لره اولاد نو ښځو له اتمه برخه ده

مِمَّا تَرَكْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوْصُوْنَ

د هغه مال نه چه پریخودے وی تاسو پس د پوره کولو د وصیت نه چه وصیت کوئ تاسو

بِهَآ اَوْ دَيْنٍ وَاِنْ كَانَ رَجُلٌ يُّوْرَثُ

په هغے سره یا پس د ادا کولو د قرض نه او که چرته وی یو سړے چه میراث وړے شی د هغه نه

كَلٰلَةً اَوِ امْرَاَةٌ وَّلَهٗٓ اَخٌ اَوْ اُخْتٌ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ

میرات یا ښځه (دغسے) وی او د هغه دپاره ورور یا خور وی (صرف د مور نه) نو د هر یو دپاره

مِّنْهُمَا السُّدُسُ فَاِنْ كَانُوْٓا اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَهُمْ شُرَكَآءُ

ددے دواړو نه شپږمه برخه ده نو که چرته وی دوی زیات ددے نه نو دوی به شریك وی

فِي الثُّلُثِ مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصٰى بِهَآ اَوْ دَيْنٍ

په دریمه برخه کی پس د وصیت نه چه وصیت کولے شی پدے سره یا پس د ادا کولو د قرض نه،

غَيْرَ مُضَآرٍّ وَصِيَّةً

شی تاسو نۀ ضرر ورکونکی (په وصیت سره هیچا ته) دا مضبوط حکم دے

مِّنَ اللّٰهِ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَلِيْمٌ ﴿۱۲﴾

د طرفه د الله نه او الله پوهه دے، صبرناك دے۔

**تفسیر**: ښځه د خپل خاوند په میراث کی صرف څلورمه برخه اخلی کله ئے چه اولاد نۀ وی یا اتمه برخه اخلی کله ئے چه د خاوند نه اولاد وی او که ښځے د یوے نه زیاتی وی نو

هغوی تولے په څلورمه یا اتمه برخه کی شریکیږی۔
وَلَكُمْ نِصْفُ : **صورت** : ښځه مړه شوه او د هغې بچې ددے یا د بل خاوند نه نشته نو نیم مال به خاوند واخلی او باقی نیمائی به د هغې مور او پلار واخلی نو ددے میراث د سړی سخرانے ته نقل شو۔ ټول مال خاوند نشی اخستے۔
فَإِنْ كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ : **صورت** : ښځه مړه شوه او بچی هم ترے پاتی شو که ددے خاوند نه وی او که د بل خاوند نه نو خاوند به ئے څلورمه برخه واخلی او باقی به بچو کی تقسیم شی۔
وَلَهُنَّ الرُّبُعُ : ښځه که یوه وی او که ډیرے خو چه بچی ئے نهٔ وی نو څلورمه به ورته ملاویږی او که بچی ئے وی نو اتمه برخه به اخلی۔
لَكُمْ وَلَدٌ : یعنی د سړی ددے ښځے نه۔ یا د بلے ښځے نه بچی نهٔ وی۔
وَإِنْ كَانَ رَجُلٌ : اُوس د اخیافی ورونو او خویندو میراث ذکر کوی چه پدے کی ورونه او خویندے په میراث کی برابر دی۔ اخیافی یا خیفی هغه ورونو او خویندو ته وائی چه مور کی شریك وی نهٔ په پلار کی۔

قانون

د مور شریکو خویندو او ورونو په برخو کی شرط دا دے چه مړے به کلاله وی چه نهٔ ئے پلار او نهٔ ئے اولاد ژوندی وی، نهٔ خوی او نهٔ لور۔ او که پدے کی یو تن موجود وی نو دا ورونه او خویندے د میراث نه بی برخه کیږی۔
كَلَالَةً : میرات ته وائی او امام بخاریؒ د ابوبکر صدیق ﷺ نه نقل کړیدی چه کلاله مَنْ لَا يَرِثُهُ اِبْنٌ وَلَا أَبٌ) چه نهٔ ترے خوی میراث وړی او نهٔ پلار یعنی اصول او فروع ئے نشته او خویندے او ورونه ئے شته۔
أَوِ امْرَأَةٌ وَلَهُ أَخٌ أَوْ أُخْتٌ : دلته الله تعالیٰ ډیر صورتونه جمع کړیدی مثلاً سړے مړ شو د هغه نه ورور پاتے شو یا ترے خور پاتے شوه یا ښځه مړه شوه د هغې نه ورور یا خور پاتے شوه څلور صورتونه شو پدے تولو کی د هر یو دپاره شپږمه برخه د مال ده۔

## د صورتونو تفصیل

(۱) اخیافی ورور یا خور چه یوه وی د میراث شپږمه برخه (۱/۶) اخلی۔
(۲) دوه یا ددے نه زیات اخیافی خویندی او ورونه ټول د ترکی په دریمه (۱/۳) برخه کی سره یو برابر شریك دی، نارینه په ښځه باندے په برخه کی غوره والے نهٔ لری۔

فَإِنْ كَانُوْا أَكْثَرَ : یعنی دیو نه زیات وروڼه او خویندې وی نو دوی به دریمه برخه کی شریك وی یعنی د مړ وروریا مړے خور مال به درے حصے تقسیم شی دریمه برخه به دوی کی یو شان شریکه تقسیمه شی او دوه برخے به ئے نورو وارثانو ته ورکړی.
غَيْرَ مُضَآرٍّ : دا منصوب دے : یعنی كُوْنُوْا غَيْرَ مُضَارٍّ : یعنی تاسو شئ نهٔ ضرر ورکونکی په خپل وصیت سره.
یعنی پکار ده چه تاسو د خپلو وارثانو خیال وساتئ، نهٔ په قرض کی په هغوی تیری وکړئ چه په دروغو باندے چا ته د قرض اقرار وکړئ او نهٔ په وصیت کی د هغوی حقوق د خپو لاندے کړئ چه د خپل مال د دریمے برخے نه زیاتی په وصیت کی شامل کړئ. په دغه دوارو صورتونو کی ستاسو د وارثانو برخی کمیږی او مال ئے دلاسه وځی نو ستاسو ددے کار په وجه به وارثانو ته ضرر ورسیږی.
وَصِيَّةً مِّنَ اللهِ : دا مفعول مطلق دے دپاره د (يُوْصِيْكُمُ اللهُ). او د تاکید دپاره ئے راوړو.
یا مفعول به دے دپاره د (غَيْرَ مُضَارٍّ). یعنی د الله د طرفنه چه کوم وصیت تاسو ته د میراث په باره کی کیږی نو دے ته ضرر مهٔ ورکوئ چه مخالفت ئے وکړئ. (قاسمیؒ)
وَاللهُ عَلِيْمٌ حَلِيْمٌ : الله تعالیٰ دا دوه صفتونه په ډیر مناسب مقام کی راوړل پدے کی جواب دے د هغه چا چه د میراث په باره کی ئے سوالونه ذهن کی راځی چه ستاسو علم ناقص دے د الله تعالیٰ په حکمتونو باندے خبر نهٔ لرئ نو ښه دا ده چه د خپل قصور اعتراف وکړئ، او پدے کی اشاره ده چه که چا ضرر ورکړو نو د الله تعالیٰ د علم نه پټ نهٔ دی، الله تعالیٰ حلم والا دے بیا روسته سزا ورکوی. د الله تعالیٰ په حلم باندے دوکه کیدل نهٔ دی پکار.

| تِلْكَ حُدُوْدُ اللهِ وَمَنْ يُّطِعِ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ يُدْخِلْهُ |
| --- |
| دا (حکمونه) پولی د الله دی، او څوك چه تابعداری کوی د الله او د رسول د هغه، داخل به ئے کړی |
| جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَذٰلِكَ الْفَوْزُ |
| جنتونو ته چه بهیږی به لاندے د هغے نه ولے، همیشه به وی په هغے کی او دا کامیابی ده |
| الْعَظِيْمُ ﴿١٣﴾ وَمَنْ يَّعْصِ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ |
| لویه. او څوك چه نافرمانی کوی د الله او د رسول د هغه او ورتیریږی د پولو د هغه نه |

يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيهَا وَلَهُ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿١٤﴾

داخل به کړی هغه لره اُور ته، همیشه به وی په هغې کی او ده لره عذاب دے شرمونکے۔

**تفسیر** : دا اشاره ده ټولو ذکر شوو احکامو ته، او زیرے ورکوی هغه چا ته چه ددے احکامو تابعداری کوی او د نافرمانئ کونکو دپاره سزا بیانوی۔

وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ : لفظ د عصیان کی اشاره ده خبره (قول) نهٔ منلو ته او (ویتعد حدوده) نه مراد عملًا خبره نهٔ منل دی۔

د حدودو نه د تجاوز صورتونه

١- یو دا چه بیخی ترے انکار وکړی۔

٢- چه عقیده پرے لری خو یا پکی زیادت وکړی یا پکی نقصان لکه د فرض مانځه رکعتونه چه زیادت او نقصان پکی دواړه ناروا دے۔

٣- چه یو اځی زیادت پکی جائز نهٔ وی لکه د ځلورو ښځو نه زیاتی په نکاح کول۔

٤- چه یو اځی نقصان پکی جائز نهٔ وی لکه د زکاة مقدارونه، که زیادت پکی وکړے شی خیر دے بلکه ثواب دے خو چه د فرضیت عقیده پرے ونهٔ لری۔ نو دلته ټول صورتونه مراد کولے شی۔

خوارجو ددے نه دلیل نیولے دے چه په گناه باندے انسان کافر کیږی ځکه چه دلته ورله سزا کی خلود فی النار ذکر شویدے او دا د کافرو عذاب دے۔

د اهل السنة والجماعة د طرفنه (١) جواب شویدے چه دا په صورت دا نکار باندے حمل دے او په انکار سره کافر کیږی۔ (٢) جواب دا دے چه دلته د الله او د رسول د نافرمانئ سزا بیان شویده چه انسان همیشه جهنم ته بوځی لیکن که مانع نهٔ وی او که چرته د همیشوالی نه مانع موجود شو لکه په دهٔ کی ایمان او توحید شته نو که د گناه په وجه اُور ته لاړو نو ایمان او توحید به ئے د همیشوالی نه بچ کړی، د اُور په وجه به گناه کمزوری شی نو ایمان به خپل اثر وکړی نو د اُور نه به راوځی، او دا د الله تعالیٰ عدل دے چه د بندګانو عملونه نهٔ بربادوی۔ نو قید د (اِذَا لَمْ يَمْنَعْ مَانِعٌ) په ټولو نصوصو د وعید کی مراد وی لکه دے ته حافظ ابن کثیرؒ په سورة البقره کی اشاره کړیده۔

وَالّٰتِیْ یَاْتِیْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَآئِکُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَیْهِنَّ

او هغه ښځې چه راتلک اوکړي بدکارۍ ته د ښځو ستاسو نه نو ګواهان پیش کړئ په هغوی باندې

اَرْبَعَةً مِّنْکُمْ فَاِنْ شَهِدُوْا فَاَمْسِکُوْهُنَّ

څلور ګواهان د سړو ستاسو نه نو که ګواهي ورکړه هغوی نو بندې کړئ دوی لره

فِی الْبُیُوْتِ حَتّٰی یَتَوَفّٰهُنَّ الْمَوْتُ اَوْ یَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِیْلًا ﴿۱۵﴾

په کورونو کې تردې چه وفات کړي دوی لره مرګ یا به وګرزوي الله تعالیٰ دوی لره څه لاره۔

**تفسیر : مضمون** : پدې او روستو (وَالَّذَانِ) دوه آیتونو کې مقصد اِزَالَةُ الْفَحْشَاءِ عَنْ مُعَاشَرَةِ الْمُسْلِمِیْنَ ده، یعنی د مسلمانانو د معاشرې نه د بې حیایۍ ازاله ده۔ د عربو په معاشره کې د اسلام نه مخکې بې حیائي زیاته وه خاصکر هغوی به بریند ګرزیدل بد نظ کنټرول لکه دا د قرآن او د احادیثو نه معلومیږي، د وینځو سره به ښکاره زناګانې کیدلې، جنډې به ئې په کورونو لګولې وې چه فلانی کور کې زنا کیږي، دارنګه د زنانو خپل مابین کې او د سړو خپل مینځ کې بې حیائي کول به کم کوز ملاویدل اګرکه ښکاره به نۀ وو۔ نو الله تعالیٰ په اول کې دا قانون راولیږلو چه په دوی باندې دوه حده قائم کړئ یو اَلْحَبْسُ دویم اَلْاِیْذَاءُ۔ یعنی جیل ته ئې واچوئ او ضرر (ردې بدې، وهل ټکول) ورله ورکړئ۔ دا دواړه خبرې کله جمع کیږي هم چه کورونو کې به بند کړې شي او په خوله به ورته بد رد هم وویل شي چه تاسو د الله نه نۀ یریدلئ او شرم او حیاء درکې نۀ وه۔ که توبه ئې ویستله نو بیا ورته رد بد مۀ وایئ۔ نو روستو زمانه کې الله تعالیٰ دواړه خبرې منسوخ کړې د سورة النور په آیت۔ اګرکه غیر منسوخ معنیٰ هم پکې روستو رازي۔

روستو آیت کې توبې ته ترغیب ورکړیدې چه انسان کمزورې دې ګناه ترې کیږي خو ښه لاره دا ده چه پدې همیشوالې مۀ کوئ بلکه الله ته توبه وباسئ څکه چه معاشره په توبه سره صفا کیږي چه هر بنده د الله نه یره وکړي، نۀ د حکومت په زور او ډنډې سره۔ او فرمایلي ئې دي چه د دوه کسانو توبه نۀ قبلیږي یو هغه کس دې چه په وخت د غرغره (ساه ختلو) کې توبه وباسي او بل هغه کس چه پس د مرګ نه په قبر او حشر کې توبه وباسي دا نۀ قبلیږي، بنده که هرڅنګه فاسق فاجر او ګناهګار او مشرک وي لیکن په دنیا کې ورله توبه قبلوي، دا د الله تعالیٰ ډیر عجیب او ښکلې نعمت دې چه بندګانو ته ئې تحفه کړیدې

چه د انسان پوره صفائی کوی. بیا (یا ایها الذین آمنوا) کی مسئله د ایراث النساء ده چه ښځے په میراث کی ورل صحیح نهٔ دی سره د بیان د مسئلے د خلع نه، او په دغه یو آیت کی ښځو سره په ښائسته معاشره (زندگی) تیرولو باندے حکم دے. بیا (وان اردتم) کی بله مسئله ده اَلنَّهْيُ عَنْ اَكْلِ الْمُهُوْرِ مِنَ النِّسَاءِ . د زنانو د مهرونو خوړلو نه منع شویده کله زنانه ته مهر ورکړے شي نو دوباره په زوره او نارضا سره اخستل ترے حرام دی او ددے وجه بیانوی چه دا ظلم او بهتان دے. بیا بیان د محرماتو دے، چه پدے کی مؤمنانو ته ادب ورکوی چه د مجوسو په شان به نهٔ جوړیږئ چه خپله خور مور نهٔ پیژنی، او په درے قسمه زنانو باندے ئے پابندی لګولے ده چه د نسب، رضاعت او مصاهرت (سخرګنئ) په وجه ښځے حرامی دی. او پدے کی بیا ډیر افراد دی چه په قرآن او احادیثو کی هغه تفصیلًا بیان شویدی. بیا ئے فرمایلی دی چه دے څیزونو باندے ما څکه پابندی ولګوله چه دا د فطرت تقاضا ده، بیا ئے دوباره د مهر مسئله بیان کړیده څکه چه په ښځو باندے اکثر په مهرونو کی ظلم کیږی. بیا ئے مسئله د نکاح الاماء (وینځو سره د نکاح) مسئله بیان کړیده او د هغوی حدود ئے بیان کړیدی تر بلے رکوع پورے. حاصل ئے داشو چه پدے احکامو سره معاشره پدے طریقه پاکیږی کله چه د معاشرے د خلکو نه زنا ختمه شوه او الله ته ئے توبه وېستله نو معاشره به څو مره صفا شي او په زنانو ظلم نهٔ کیږی، د هغوی نه مهر نهٔ اخستلے کیږی او د حرام او حلالو تمیز وشی او د وینځو سره حتی الوسع نکاح ونهٔ شی څکه چه د هغے د وجه نه بد اخلاقیانی پیدا کیږی او په مینځ مینځ کی ئے بل حکم بیان کړیدے چه نکاح به کوئ لیکن د زناکارو ښځونه به ځان ساتئ څکه چه دا په سړی کی بد اخلاقی پیدا کوی او پدے سره معاشره خرابیږی.

د میراث د احکامو د بیانولو نه روستو دلته الله تعالیٰ د ښځو متعلق بعض نور احکام بیان کړیدی. سُدّیؒ، قتادهؒ او ابن جریرؒ وغیره مفسرینو وئیلی دی چه په ابتداء د اسلام کی د داسے وادهٔ شوے ښځے په باره کی چه د هغے نه زنا اُوشی او د څلورو سړو په ګواهئ سره ثابته شی نو حکم دا وو چه دا به په کور کی بنده کړے شي او نهٔ به شي وتلے تردے چه هغے مرګ راشي.

دے نه روستو بے وادهٔ ته د دُرو وهلو او وادهٔ شوی ته د رجم ورکولو په حکم سره دا حکم منسوخ شو. لکه چه امام مسلم (٤٥٠٩) و (٤٥١١) او امام احمدؒ او اصحاب سنن د عباده بن صامت رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ باندے به چه کله وحی راتله نو په

هغه باندې به د هغې اثر کیدو، نو هغه به د زور په وجه ستړې کیدو او د هغه په مخ باندې به آثار ښکاره کیدل. یوه ورځ په نبي ﷺ باندې وحي نازله شوه او کله چه هغه په آرام شو نو وې فرمایل: (خُذُوا عَنِّي قَدْ جَعَلَ اللَّهُ لَهُنَّ سَبِيلًا، الْبِكْرُ بِالْبِكْرِ جَلْدُ مِائَةٍ وَنَفْيُ سَنَةٍ وَالثَّيِّبُ بِالثَّيِّبِ جَلْدُ مِائَةٍ وَالرَّجْمُ) ما نه دا حکم واخلئ، د زناکارو ښځو دپاره الله لاره ویستلې ده، که زنا کونکې سړې یا ښځه واده شوې نه وي نو سل دُرې او یو کال د کلي نه شړل دي او که واده شوې وي نو سل دُرې او رجم کول دي. د امام احمدؒ قول ددې حدیث مطابق دې. لیکن د جمهورو علماؤ په نیز واده شوې زنا کار به صرف رجم کیږي ځکه چه نبي کریم ﷺ ماعز اسلميؓ، غامدیه زنانه، او دوه یهودیان صرف رجم کړي وو او هغوی ته ئې دُرې نه وې ورکړې. لهذا دوه طریقې جائز دي، د رجم نه مخکې دُرې ورکول او صرف رجم دواړه د احادیثو نه ثابت دي.

یو کال شړل هم ضروري حکم دې، ځینې نا اهله خلك وائي چه شړل غلط دي ځکه چه په شړلو سره بیا د زنا لاره کولاویږي، هغوی به هلته بیا زنا کوي، دا خبره خطاء ده وجه دا ده چه دا به اسلامي خلافت وي چه د دواړو د شړلو ترتیب به معلوم وي، سړې به د ښځې نه جدا جدا کولې شي او د هغوی تفقد به کیدې شي، داسې آزاد به ئې نه پریدي. او پدې شړلو کې حکمة دا دې چه سړي او ښځې ته به سزا هم ملاؤ شي چه آینده کې داسې کار ونکړي او ددې په ذریعه نور خلك هم منع شي او بله دا چه د مسلمانانو د دماغو نه به د زنا دا صورت او واقعه ووځي. امام ترمذي د عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه نقل کړیدي: (أَنَّ أَبَا بَكْرٍ ضَرَبَ وَغَرَّبَ وَأَنَّ عُمَرَ ضَرَبَ وَغَرَّبَ) ابوبکر صدیق ﷺ او عمر فاروق ﷺ دواړو زنا کار وهلي هم دي او شړلي ئې هم دي. (سنن الترمذي: ١٤٣٨ نسخة شاكر)

## د رجم حکمة

بیا په رجم (کاڼړو ویشتلو) کې حکمة دا دې چه دا ډیر بد قتل دې ځکه چه دې سړي او ښځې ډیره بیباکي کړیده چه حاجتونه ئې پوره کیږي او بیا هم زنا کوي. دارنګه په خاوند باندې فساد راولي او نسبونه خرابوي او سړې د ښځې اخلاق خرابوي، پدې کار سره به د خاوند سره ورانه شي، او بل طرفته ددۀ ټول بدن خوند اخستې دې نو پدې وجه ئې ټول بدن خوروي او دا د دنیا په لحاظ سخته سزا ده لیکن دا سړې مؤمن دې نو الله تعالیٰ ئې ددې حد په وجه معاف کوي او جنت ورله ورکوي خو پدې کار سره د نورو خلکو اصلاح کیږي نو دا حکم بعینه د حکمة او د فائدو نه ډك دې، او دې ته وحشیت وئیل سراسر ظلم او زیاتې

دے۔ د هر عقلمند او غیرتمند په نیز د داسے لوی مفسد سزا ډیره سخته وی، دغه سړے چه د هغه د ښځے سره زنا شوی وی هغه به څومره پریشانه او غصه وی او ژوند به ئے تنګ وی۔ نو که اسلام دا حکم نهٔ وے رالیږلے نو دا سړے به لګیدے د ډیرے غصے په وجه به ئے دغه سړے او ددهٔ تول کورنئ وېشتلے چه ددے نه به ډیر لوی فساد پیدا کیدلے نو شریعت وویل چه دغه یو سړے دے د خلکو په مخامخ په کاڼړو ویشتلے شی نو د خاوند زړه به یخ شی او فائدے به هم پکی حاصلی شی نور خلك به منع شی۔

وَالّٰتِیْ : دا د جمعے صیغه ده۔

یَاْتِیْنَ الْفَاحِشَةَ : دلته د فاحشے نه مراد حقیقی زنا ده ځکه چه په بد نظرئ او ګوتے وروړلو باندے صرف تعزیر دے۔

مِنْ نِّسَآئِكُمْ : یعنی ستاسو د زنانو نه چه مسلمانه وی دا ځکه وائی چه پردو (کافرو) زنانو باندے زمونږ وسعه نهٔ کیږی او که اهل ذمه کافرو زنا وکړه او د مسلمانانو په معاشره کی وسیدل نو هغوی هم پدے باره کی د مسلمانانو په حکم کی دی، حدود به پرے جاری کیږی۔

فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَيْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ : الله تعالیٰ په عامو اوقاتو کی یو یا دوه ګواهان ښودلی دی او په زنا کی څلور، ددے څه حکمة دے؟ نو یو حکمة پکی اِرَادَةُ السَّتْرِ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ دے یعنی دے دپاره چه په مسلمانانو باندے پرده واچولے شی ځکه که یو ګواه له اعتبار ورکړے شی نو هره ورځ به یو تن راځی او قاضی ته به وائی چه ما فلانی ځای کی ښځه ولیدله چه زنا ئے کوله نو هره ورځ به حدود قائمیږی او څلور کسان په یو وخت کی په یو سړی او ښځه ورپیښیدل ډیر کم وی نو که څوك دا ګناه کوی نو پټه به وی، ډیره به نهٔ راښکاره کیږی (دا هم د الله تعالیٰ لوی احسان دے) ځکه چه کله ګناه پټه وی نو د هغے اثر ډیر نهٔ وی۔ او پدے سره د مسلمانانو په معاشره کی به د زنا خبرے د خلکو د دماغو نه ووځی، ځکه چه پدے خبرو سره د مسلمانانو اخلاق خرابیږی، هره ورځ به ورته د زنا خبر ملاویږی نو پدے سره به ئے په دماغو کی د زنا تصورات راتازه کیږی او دا لوی فساد دے۔

مِنْكُمْ : یعنی مسلمانان ګواهان به وی او په احادیثو کی راغلی دی چه دا څلور کسان به ښکاره تعیین کوی چه مونږ كَالْمِيْلِ فِى الْمُكْحَلَةِ طریقے سره ولیدل چه زنا ئے کوله۔

فَاَمْسِكُوْهُنَّ : پدے کی دے ته اشاره ده چه د زنا او د فساد ختمولو یوه لاره دا ده چه زنانه په کور کی بنده وساتلے شی او ډیر بهر پرے نهٔ ښودے شی چه بی ضرورته بازارونو کی

چکړے وهي، پدے سره ډير فساد پيدا کيږي.
أَوْ يَجْعَلَ اللهُ : يعني الله به ورله يوه لاره مقرر کړي لکه لږه زمانه روستو حکم نازل شو.

| وَالَّذَانِ يَأْتِيَانِهَا مِنكُمْ فَآذُوهُمَا |
| --- |
| او هغه دوه کسان چه راتګ وکړي بے حيايي ته ستاسو نه نو ضرر ورکړئ دوي ته |
| فَإِن تَابَا وَأَصْلَحَا فَأَعْرِضُوا عَنْهُمَا |
| نو که توبه ئے ويستله او عمل ئے نيك کړو نو مخ واړوئ د دوي نه (د زورنے او د پيغور) |
| إِنَّ اللهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴿١٦﴾ |
| يقيناً الله تعالىٰ توبه قبلونکے، رحم کونکے دے. |

**تفسير** : ددے او د مخکنی آيت حکمونه دواړه په يو ځای جمع کيدلے هم شي منافات ئے نشته، هغه د ښځو په باره کی وو او دا حکم د سړو په باره کی دے چه سړی زنا وکړه نو هغه سره به څه کوو؟ نو الله تعالىٰ پدے آيت کی د سړو سزا بيانوی سره د ښځو نه، نو په ښځه دوه سزا ګانے، يو په مخکی آيت کی چه په کور کی بنده ساتل او بله دلته چه هغه ضرر ورکول دی. او د سړی يوه سزا چه ضرر ورکول او د هغه شرمول دی. او د سړو په کور کی بند ساتل نشته، ځکه چه په هغے کی فائده نشته. او دا هم په ابتداء د اسلام کی حکم وو چه که زنا کونکے (سړے او ښځه) غير واده شوی وو نو هغوی ته به بد رد وئيلے شو او شرم به ورکولے شو او څه زجر او وهل به ورکولے شو، دے دپاره چه په خپلو کړو پښيمانه شي او کله چه به ئے توبه اُوويستله او خپله اصلاح به ئے اُوکړله نو بيا به د هغه نه خلق غلی پاتے شو او زورنه به ترے بنده شوه ځکه چه د ګناه نه توبه ويستونکے د هغه سړی په شان وی چه هغه ګناه نۀ وی کړی، کله چه د سورة نور آيت (۲) : ﴿الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ﴾ نازل شو (چه زنا کار سړے او زناکاره ښځه سل سل درے اُووهئ) نو دا حکم هم د تير شوی حکم په شان منسوخ شو او د جمهورو په نيز د دوی په حق کی هم صرف د دُرو وهلو حکم باقی پاتے شو. (قاسمیؒ وتيسير الرحمن)

(۲) ځينی علماؤ وئيلی دی چه دواړه آيتونه د زنا په باره کی دی ليکن د تکرار نه د بچ کيدو دپاره داسے وئيلے شي چه اول آيت د واده شوو سړو او ښځو په باره کی دے او دويم آيت د غير واده شوو سړو او ښځو په باره کی دے، او تثنيه د مذکر ئے په طريقه د تغليب سره راوړيده. او دا تفسير د سُدیؒ نه نقل دے، ددے وجه نه په اول کی سختی زياته ذکر ده

په نسبت د دویم. او فرق د آیت داسے هم کیدے شی چه وویل شی چه بندول خاص دی د ښځو پورے او ایذاء (ضرر ورکول) خاص دی د سړو پورے، یا بندول د زنانو پورے خاص دی او ایذاء سړو او ښځو دواړو ته عامه ده. (المنار، واحسن الکلام)

(۳) ځینی وائی چه اول آیت د زنانو په باره کی دے چه شادی شده وی یا نهٔ وی او دویم د سړو په باره کی خاص دے او (وَالَّذَانِ) ئے تثنیه راوړه دپاره د بیان د دوه قسمونو د سړو چه واده شوی او غیر واده شوی دی. نو د ښځو سزا بندول دی او د سړو سزا اذی (ضرر ورکول) دی. او دا قول نحاسؒ غوره کړیدے او د ابن عباسؓ نه ئے نقل کړیدے. او قرطبیؒ د مجاهدؒ وغیره نه او دائے ښه گڼلے دے. (فتح القدیر للشو کانی ۲/ ۱۰۲)

(٤) تفسیر : امام مجاهدؒ وئیلی دی چه دویم آیت د داسے دوه سړو په باره کی نازل شوے وو چه خپل مینځ کی لواطت اُوکړی. اصحاب السنن د ابن عباس رضی الله عنهما نه مرفوعاً روایت کړیدے چه د قوم لوط د عمل کونکی فاعل (کونکے) او مفعول (کړے شوے) دواړه به قتلولے شی. دا د دوی دپاره اذی (ضرر رسول) دی. (وسنده صحیح)

لیکن دے سره روستو (فَإِنْ تَابَا وَأَصْلَحَا) نهٔ لگیږی، آؤ که گواهان پرے نهٔ وی او مشهور شی په لواطت نو بیا ایذاء ورله شته لیکن قتل ئے نشته.

(۵) تفسیر : اَلَّذَانِ صیغه د مذکر ده لیکن مراد ترے دوه مؤنثی دی چه یو بل سره سحاق وکړی یعنی په برېنډه باندے یو بل سره ملاؤ شی دوی دپاره ئے د مذکر صیغه استعمال کړه ځکه چه کارئے د مذکرو کړیدے. نو پدے صورت کی به دوی ته ایذاء (ضرر) ورکولے شی او دا په درجه د تعزیر کی ده چه وبه وهلے شی یا به ورته بد رد وویل شی او د دوی دپاره شریعت حد نهٔ دے مقرر کړے چه سل درے یا رجم وغیره. نو دوی په توبه او اصلاح د عمل باندے معاف کیږی.

**فَآذُوهُمَا** : ایذاء (ضرر ورکول) یو دا دی چه ستغے او سپکے سپورے خبرے ورته وکړی او پیغور ورکړی. (سُدیؒ) او ابن عباس رضی الله عنهما وائی : په څپلو باندے ویشتل هم پکی داخل دی. او ځینی علماء (او صحابه کرامؓ) نه نقل دی چه د وخت د بادشاه رائے ته سپارل شویدی چه هغه کومه سزا تجویز کوی هغه به پرے نافذ کیږی، د غر نه رارغړول، همداسے ویشتل شو.

پدے کی ځینی علماؤ وئیلی دی چه ایذاء او حبس دواړه نهٔ دی منسوخ، اول به ایذاء په خبرو وغیره سره ورکړے شی او زنانه به کور کی وساتل شی او بیا به پرے حد جاری کړے

شي، د هغوی د حالت مطابق۔ (فتح القدير).

فَإِنْ تَابَا: يعنى د فاحشې نه ئې توبه وويستله۔

وَأَصْلَحَا: او روستو ئې خپل عمل برابر کړو۔ بيا ئې دا قبيح عمل نۀ کولو۔

فَأَعْرِضُوا عَنْهُمَا: يعنى مخ ترې واړئ، توبيخ او زورنه مۀ ورکوئ، ردې بدې ورته مۀ وايئ، او پرده پرې واچوئ ځکه چه توبه او اصلاح ګناه پټوی او ختموی ئې۔

او دا اعراض به هله وی چه کله په دۀ باندې ګواهان نۀ وی ځکه چه د ګواهانو په صورت کې که بنده توبه وباسي او اصلاح وکړی هم په دۀ به حد قائميږی۔

تَوَّابًا رَّحِيمًا: الله تعالىٰ دواړه صفتونه راجمع کړل په ډير ښه مناسب ځای کې، تواب د (فَأَعْرِضُوا عَنْهُمَا) سره لګې چه الله تعالىٰ ئې توبه قبلوی نو اې بندګانو! تاسو ئې هم قبوله کړئ ځکه چه انسان کمزورې دې۔ دويم د تواب حواله ئې ځکه ورکړه چه ترغيب ورکوی چه اې بنده! الله تواب دې توبه ډېر قبلوی، جلتي وکړه توبه وباسه، او معاشره پاکه کړه۔

او رحيم ئې راوړو چه توبه د الله د رحمت د وجه نه ده، ورنه د الله تعالىٰ د بنده توبې ته هيڅ حاجت نشته۔

| إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللّٰهِ لِلَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السُّوْٓءَ |
| --- |
| يقيناً (قبليدل) د توبې په الله باندې د هغه کسانو دپاره دی چه عمل کوی بد |
| بِجَهَالَةٍ ثُمَّ يَتُوْبُوْنَ مِنْ قَرِيْبٍ فَأُولٰٓئِكَ |
| په ناپوهئ سره بيا توبه وباسي د نزدې نه (مخکې د مرګ) نو دغه کسان |
| فَأُولٰٓئِكَ يَتُوْبُ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱۷﴾ |
| مهربانی کوی الله تعالىٰ په دوی باندې او دې الله پوهه حکمتونو والا۔ |

**تفسير**: هرکله چه توبه مهم شے وو نو اُوس د توبې بيان کوی چه توبه د چا قبليږی او د چا نۀ؟ او توبې ته ترغيب ورکوی او د هغې د قبليدو دپاره شرطونه بيانوی۔

التَّوْبَةُ نه مراد (قَبُوْلُ التَّوْبَةِ) دې يعنى د توبې قبلول۔

السُّوْٓءَ: دا دلته هرې ګناه ته وائی د شرك نه واخله تر ورې ګناه پورې۔

بِجَهَالَةٍ: دا قيد احترازی نۀ دې چه څوك په پوهه سره ګناه وکړی نو د هغه توبه به نۀ قبليږی او که په ناپوهئ سره وکړی نو توبه ئې قبليږی، ددې وجه نه امام ابن جرير الطبرىؒ

او قرطبیؒ او بیهقیؒ په «شعب الایمان» کې د مجاهدؒ (تابعي) رحمه الله نه او بغویؒ د قتادةؒ (تابعي) نه نقل کړیدي :

[أَجْمَعَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ عَلٰى أَنَّ كُلَّ مَنْ عَصَى اللّٰهَ فَهُوَ جَاهِلٌ]

د رسول الله ﷺ صحابه کرامؓ پدے اتفاق دے چه هر هغه څوک چه د الله نافرمانی کوی نو هغه جاهل دے۔ اګرکه عالم هم وی۔ ګناه ته ئے جهالت ځکه وئیلے دے چه عاصي د الله شان نه پیژنی، لوی الله ئے مخامخ دے او دے ګناه کوی، دویم دا چه د ګناه د بد عاقبت او حقیقت نه خبر نه دے ورنه ګناه به ئے نه کولے۔ (قاله ابن فُوْرَك ونقله القرطبيؒ ٥/٩٢)

اوکه د ګناه د حقیقت او عاقبت نه خبر وی او بیا هم ګناه کوی نو دا هم جاهل دے ځکه چه دا قاعده ده چه څوك د خپل علم مطابق عمل نه کوی هغه داسے ګڼرل کیږی لکه چه بیخی جاهل وی۔

څینی علماؤ وئیلی دی چه جهالة په دوه قسمه دے، یو په مقابل د علم کی استعمالیږی او بل په مقابل د عقل (هوښیارتیا) کی نو دلته د جهالة نه مراد بی عقلی او کم عقلتوب دے یعنی څوك چه ګناه کوی هغه بی عقله او کم عقل دے۔ (عزیز التفاسیر)

ثُمَّ يَتُوْبُوْنَ مِنْ قَرِيْبٍ : ددے نزدے والی مصداق یو دا دے چه مخکی د مرګ نه توبه وباسی دلیل پرے قرآن او حدیث دے، روستنی آیت کی دی چه د مرګ په وخت کی توبه نه قبلیږی نو دا د (مِنْ قَرِيْبٍ) بیان شو۔ او حدیث کی دی :

[إِنَّ اللّٰهَ يَقْبَلُ تَوْبَةَ الْعَبْدِ مَا لَمْ يُغَرْغِرْ] [مسند احمد ٦١٦٠ ناشر: موسسة قرطبة القاهرة وسنن ابن ماجه وصحيح الجامع الصغير ١٩٠٣، باسناد حسن، ارناووط – الباني]

الله تعالیٰ د بنده توبه قبلوی ترڅو چه روح ئے مرئ ته رسیدلے نه وی۔

بیا الله تعالیٰ د (مِنْ قَرِيْبٍ) په ځای (قَبْلَ الْمَوْتِ) لفظ ونه وئیلو پدے کی ترغیب دے چه توبه کی جلتی وکړه، زر توبه وباسه ځکه چه ستا پته نه لګی چه په خوب کی به درنه روح وتلے وی نو بغیر د توبی نه به الله تعالیٰ ته ورشے۔ لکه اهل علم وائی چه بنده ګناه وکړی او بیا په توبه کی تاخیر وکړی نو دا ډبله ګناه شوه، یوه نافرمانی، بل تاخیر په توبه کی۔ د توبی تشریح په سورة البقره (٣٧) آیت کی ذکر شویده، هغې ته رجوع کول پکار دی، دوباره لیکلو ته ئے ضرورت نه وینو۔

يَتُوْبُ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ : الله تعالیٰ به ئے په خپل طاعت کی استعمال کړی او رحم به پرے وکړی۔

وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ حَتّٰى إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ

او نهٔ ده توبه د هغه کسانو چه کوی بدیانی تردے چه کله حاضر شی یو تن د دوی ته

الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الْآنَ وَلَا الَّذِيْنَ يَمُوْتُوْنَ وَهُمْ

مرگ وائی یقیناً ما توبه وستله اُوس او نهٔ د هغه کسانو چه مری په داسے حال کی چه دوی

كُفَّارٌ أُولٰٓئِكَ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيْمًا ﴿۱۸﴾

کافران دی، دغه کسان تیار کړیدے مونږ دوی لره دردناك عذاب۔

**تفسیر** : دلته دویم کس بیانیږی چه توبه ئے قبوله نهٔ وی دا هغه شخص دے چه په داسے وخت کی توبه وباسی چه د مرگ علامات وینی، دا توبه ځکه نهٔ قبلیږی چه دا د مشاهدے توبه ده، او الله تعالیٰ په ایمان بالغیب سره توبه قبلوی، ځکه دا د یرے د مرگ نه د یرے توبه ده، او هغه توبه بندگی ده چه د الله د یرے د وجه نه وستلے شی، پدے وجه هغه هم څه توبه نهٔ ده چه انسان باندے مصیبت راشی بیا وائی چه اے الله ! په توبو مے دے توبه وی، دا د عوامو خلکو تکیه کلام دے، اصل توبه هغه ده چه بنده د الله مخے ته خپل ځان ذلیله او ملامته کړی او د الله د عظمت او د هغه د شان د وجه نه او د هغه د رضا دپاره وی۔

وَلَا الَّذِيْنَ يَمُوْتُوْنَ وَهُمْ كُفَّارٌ : بل هغه کافر انسان دے چه پس د مرگ نه توبه وباسی ددهٔ توبه نهٔ قبلیږی نو دلته ډیر صورتونه جوړیږی۔

(۱) د گناهگار توبه په وخت د مرگ کی نهٔ قبلیږی۔ (۲) د گناهگار توبه پس د مرگ نه نهٔ قبلیږی۔ (۳) د کافر توبه په وخت د مرگ کی نهٔ قبلیږی۔ (٤) د کافر توبه پس د مرگ نه نهٔ قبلیږی۔ دلته ئے یو یو طرف ذکر کړیدے۔ ځکه چه مسلمان کله چه علامات د مرگ وینی نو زر توبه وباسی نو پدے وخت کی نهٔ قبلیږی او کافر په ژوند کی هیڅکله توبه نهٔ وباسی بلکه پس د مرگ نه ئے وباسی نو ځکه وائی چه پدے وخت کی نهٔ قبلیږی۔

يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَرِثُوا النِّسَآءَ كَرْهًا

اے ایمان والو ! نهٔ دی حلال تاسو له چه په میراث کی واخلئ تاسو زنانو لره په زوره

وَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ لِتَذْهَبُوْا بِبَعْضِ مَا

او تاسو مهٔ تنگوئ دوی لره دے دپاره چه تاسو بوځئ (واخلئ) بعض هغه مال (مهر)

| آتَيْتُمُوهُنَّ إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ |
|---|
| چه تاسو ورکړيدي هغوی ته مګر که راتګ وکړي دوی په بدکارۍ ښکاره سره |
| وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ فَإِنْ كَرِهْتُمُوهُنَّ |
| او ژوند تیروئ د دوی سره په نیکه طریقه، نو کچرته تاسو بد ګنړئ دوی (په یو خوښی کی) |
| فَعَسَىٰ أَنْ تَكْرَهُوا شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللَّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا ﴿١٩﴾ |
| نو کیدے شي چه بد ګنړئ تاسو یو شے او وبه ګرځوی الله تعالیٰ په هغے کی خیر ډیر۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کی درے خبری دی (۱) یو نهی ده د اِيْرَاثُ النساء نه چه زنانه به په میراث کی نهٔ وړئ۔ (۲) دویم: اَلنَّهْيُ عَنْ عَضْلِ النِّسَاءِ وَالتَّشْدِيْدِ عَلَيْهِنَّ لِلْخُلْعِ۔ د زنانو تنګولو نه او په هغوی باندے د خلع دپاره تشدد کولو نه منع ده۔ (۳) دریم: اَلْاَمْرُ بِالْمُعَاشَرَةِ بِالْمَعْرُوْفِ۔ د عرف او شریعت مطابق د زنانو سره د ژوند تیرولو حکم دے۔

شان نزول

۱– د جاهلیت په وخت کی به داسے کیدل چه یو سړی به خپله ښځه طلاقه کړه خو په هغے به ئے دا شرط ولګولو چه زما د اجازے نه په غیر به بل څوك په نکاح نهٔ اخلی او په دے شرط باندے به ئے شاهدان ونیول نو که طلاق ورکونکی ته به څه ورکړیشو نو د نکاح اجازه به ئے ورته ورکوله او که نهٔ نو ښځے به همداسے بانده ژوند تیرولو۔ (المنار٤/٤٥٤)

۲– دارنګه د مدینے منورے په خلکو کی د جاهلیت د زمانے نه تر د اسلام د ابتداء پورے دا رواج وو چه کله به څوك مړ شو نو که د هغه ښځے (کونډے) به جلتی وکړه او خپلو خپلوانو ته به ئے ځان ورسولو نو د خپل اختیار خاونده به شوه او که د مړی کوم وارث به وریاندے څادر واچولو (یعنی قبضه به ئے کړه) نو د هغے غریبی نه به خپل واك دلاسه ووتلو او د مړی وارثانو به ورسره په لاندے طریقه چال چلند کولو :

– یا به د مړی کوم وارث په نکاح واخسته خو د مهر نه به محرومه وه۔

– یا به د مړی وارثانو بل چا ته په نکاح ورکړه خو مهر به ئے وارثانو اخستو او کونډے ته به ئے نهٔ ورکولو۔

– یا به ئے د بیواخی والی په حالت کی ساتله او غیر انسانی سلوك به ئے ورسره کولو دے

دپاره چه یا خو مجبوره شي او هغه مهر چه خاوند ورته ورکړے وو هغه ترے بیرته واخلی او یا مړه شي او دوی ئے میراث واخلی. (البغوی ۱/٤۰۸) والقاسمی (۲/۲٤۸)

- او څینې خلکو به کونډه د مړی یو ماشوم وارث ته کینوله نو هغه چه به غټیدو نو کونډه به یا بوډۍ شوے وه او یا به مړه شوے وه او دوی به ئے په میراث باندے خیټے اچولے (تفسیر ابن کثیر ۱/٤٦٥)

نو پس د عدت نه به د ښځے خپل واك نهٔ وو او دا عادت زمونږ په اکثرو پښتنوکی هم دے چه سړے مړ شی نو کونډه خپله کونډه حسابوی او وړوکی ماشوم ته ئے کینوی خو بهر ئے نهٔ وباسی او ډیر کرته هغه ماشوم چه راغټیږی ددے عمر آخر ته رسیدلے وی بیا ئے کور هم جوړ نهٔ راځی نو الله پدے آیت کی دا حکم کوی چه دا کار جائز نهٔ دے، بلکه څلور میاشتے او لس ورځے چه د ښځے تیرے شوے نو بس ښځه آزاده شوه، ددے خپله خوښه ده که پدے کور کی بل چا سره نکاح کوی یا بهر چا سره، یا نکاح نهٔ کوی یا خپل پلار کره کینی نو دا پردۍ زنانه شوه پدے باندے د هیچا واك نشته.

علامه سیوطیؒ وائی : دے نه معلومه شوه چه (حُر) آزاد انسان باندے ملکیت نهٔ شی راتلے او نهٔ د چا د لاس د لاندے راتلے شی او نهٔ هغه په کومه طریقه مال گرځی. (قاسمیؒ)

یَا أَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا : دے کی وارثانو ته خطاب دے. نو ښځه به د ترکے (میراث) جزء نهٔ گنړۍ او نهٔ دا چه تاسو ښځه د خپلی خوښے میړه کولو نه منع کړۍ.

کَرْهًا : یعنی چه د ښځے خوښه نهٔ وی او تاسو ترے میراث جوړ کړۍ او که د ښځے خوښه راغله نو که د هر چا سره نکاح کوی.

وَلَاتَعْضُلُوْهُنَّ : پدے جمله کی د ښځے خاوند ته خطاب دے او (تَعْضُلُوْهُنَّ) د عَضْل نه دے ژوند تنگولو ته وائی، مقصد دا دے چه د خپلے ښځے ژوند مهٔ تنگوۍ چه تاسو ورسره بد اخلاقی کوۍ دے دپاره چه هغه خلعی ته مجبوره کړۍ او کوم مال چه تا ورته په مهر کی ورکړیدے هغے ته دے سترگی دی چه هغه ترے بیرته اخلے او بیا ئے پریدے څکه چه کله نقصان او بد اخلاقی د خاوند د طرفنه وی نو پدے وخت کی د ښځے نه مهر اخستل او هغے سره خلع کول ناروا دی، دا مال سړی له حرامیږی بلکه طلاق به ورکړی او همداسے به ئے پریدی. آو، که ستاسو ښځے په ښکاره فاحشه باندے راتلل وکړی مثلاً نشوز (بد اخلاقی) کوی یا زنا کوی، بی حیاء گرزی او د خاوند اطاعت نهٔ کوی او د شریعت د حدودو نه تجاوز کوی چه هر چا ته معلومیده چه تجاوز د ښځے د طرفنه دے نو پدے وخت کی عضل (د

ښځې ژوند تنګول) جائز دي چه هغه خلعې ته مجبوره کړي او مطالبه د مال ترې وکړي مثلاً داسې ورته ووائي چه اې ښځې! ته بې حياء ګرزې او زما سره بد اخلاقي کوې نو دومره مال راوړه چه طلاق درکړم نو دا کار به سړي دپاره جائز وي.

بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ : فاحشه هغه شي ته ويل کيږي چه ډير لوي قباحت لري، برابره خبره ده چه وينا وي لکه بدې او ناکاره خبرې او يا فعل وي لکه زنا وغيره (مفردات راغب ٣٨٧)

مبينه : (ښکاره) قيد ځکه لګوي چه سړے به په خپله ښځه باندې په معمولي خبرو تهمت نه لګوي چه هسې دروازه کي ښکاره شي او سړے ووائي چه تا خو زنا وکړه راشه ما سره خلع وکړه.

**سوال** : کله چه ښځه زنا وکړي نو په هغې باندې حد (رجم) قائمول پکار دي نه دا چه خلع ورسره وکړي؟ **جواب** : کله داسې کيږي چه په ښځه باندې ګواهان نه وي او سړي ته معلومات وي چه زما ښځه ورانه ګرزي نو پدې وخت کي حدود پرې نه قائميږي مګر خاوند دپاره خلع جائز کوي مثلاً خاوند ورته ووائي چه تا باندې ما دومره دومره مال ولګولو او ته ما سره صحيح ژوند نه تيروې نو ما ته دومره مال راکړه زه به طلاق درکړم. پدې وخت کي د هغې ژوند تنګول جائز دي ځکه چه دا کار هغې په خپل ځان باندې خپله پيدا کړيدے.

وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ : اُوس الله تعالىٰ دريم حکم بيانوي، خاوندانو ته وائي چه د خپلو ښځو سره ښائسته ژوند تيروئ او پکار ده چه تاسو خپلو ښځو سره په وړو وړو شيانو باندې بد اخلاقي ونکړئ ترڅو چه د فاحشې اندازې ته نه وي رسيدلي چه سړے د هغې د برداشت نه مجبوره شي لکه هم دا مضمون نبي کريم ﷺ په ډيرو احاديثو کي بيان کړيدے فرمائي :

[لَا يَفْرَكْ مُؤْمِنٌ مُؤْمِنَةً إِنْ كَرِهَ مِنْهَا خُلُقًا رَضِيَ مِنْهَا آخَرَ] (صحيح مسلم کتاب الرضاع ١/٤٧٥) . مؤمن سړے دې د مؤمنې ښځې سره بغض نه کوي (ځکه چه) که د هغې يو خوئي (خصلت) ئې خوښ نه شي بل به ئې خوښ شي. نو پکار ده چه د هغې په نيکيو باندې نظر واچولې شي او د هغوي د بديو نه سترګې پټې کړې شي، ځکه چه ډير کرته بد سلوک په تعلقاتو کي سختي، د غيرو سره تعلقات، د نافرماني او بد اخلاقي سبب کيږي.

حافظ سيوطيؒ په ((الاکليل)) کي ليکلي دي چه دا آيت کريمه دلالت کوي چه د ښځې سره ښائسته سلوک کول واجب دي. په خاوند باندې لازم دي چه د هغې پوره مهر ادا کړي،

په اخراجاتو او د نمبر په تقسیم کی انصاف اُوکړی، د هغې سره نرمې خبرې اترې اُوکړی او بغیر د سبب نه هغه ونهٔ وهی، او نهٔ د سختئ سلوك اُوکړی۔ (قاسمی۲/۲۴۹) والمنار)

فَإِنْ كَرِهْتُمُوهُنَّ : دې نه روستو الله اُوفرمایل چه که بالفرض ستا د ښځې نه نفرت پیدا شوې وی نو د صبر او برداشت نه کار اخستل پکار دی، ځکه چه بنده ډیر کرته یو شے نهٔ خوښوی حال دا چه په هغې کی د هغه دپاره خیر پټ وی۔ مثلاً الله به د هغې د خیټې نه دهٔ ته نیك اولاد ورکړی، او د صبر کولو او په هغې باندې د خرچ کولو په بدله کی به په آخرت کی ښائسته بدله ورکړی۔ دارنګه کیدې شی چه دغه ښځه ددهٔ د نیکو اخلاقو د تاثیر لاندې راشی او نیك اخلاقه ترې جوړه شی ځکه چه تاسو په خپل خیر باندې نهٔ پوهیږئ ممکن ده چه تاسو ته به یو شے شر ښکاری خو هغه به درله خیر وی، لنډه دا چه د خپلو ښځو پرینښودو ته په جلتئ سره مهٔ وردانګئ۔ د هغې اولادو او د هغوی تربیت او د ښځې پښځه وخته مونځ کوزارئ او تهجد کوزارئ ته او د هغې ایمان او توحید ته وګورئ۔ او ډیر کرته د نفس سره د مجاهدې کولو په وجه دغه کراهت په محبت بدل شی۔ (السعدی)

وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ : عبد الله بن عباسؓ معنی کوی:

(أَيْ طَيِّبُوا أَقْوَالَكُمْ لَهُنَّ وَحَسِّنُوا أَفْعَالَكُمْ وَهَيْئَاتِكُمْ بِحَسَبِ قُدْرَتِكُمْ كَمَا تُحِبُّ ذٰلِكَ مِنْهَا فَافْعَلْ أَنْتَ بِهَا مِثْلَهُ)۔ (قاسمی وابن کثیر)

یعنی هغوی ته مزیدارې (او نرمې) خبرې کوئ او خپل افعال او هیئات هغوی ته ښائسته کړئ خو مره چه ستاسو وسه وی لکه څنګه چه تهٔ د هغې نه دا کارونه خوښوې نو ته هم د هغوی سره دغه شان کوه۔ دارنګه تندې ورته مهٔ ترش کوه، او پدې کی دا هم داخلیږی چه که خاوند وس لری نو د ښځې دپاره خادمه ونیسی کله چه زنانه ته د خدمت تکلیف وی۔ (المنار تفصیلا)

د (فَإِنْ كَرِهْتُمُوهُنَّ) : جزاء پټه ده یعنی (فَاصْبِرُوا) د هغې په بد اخلاقو صبر وکړئ۔

## د ښځو سره د نیك ژوند تیرولو ترغیبات

په اسلام کی د ښځې سره د ښائسته سلوك کولو ډیر تاکید راغلې دې، یو خو دا آیت دې چه تیر ئې تشریح کوو۔ دارنګه نبی کریم ﷺ فرمایلی دی (خَيْرُكُمْ خَيْرُكُمْ لِأَهْلِهِ وَأَنَا خَيْرُكُمْ لِأَهْلِي) چه تاسو کی د ټولو نه غوره هغه دې چه د خپلې ښځې دپاره غوره وی او زهٔ د خپلو بیبیانو دپاره ستاسو نه ښه یم۔ دا حدیث د الفاظو په معمولی فرق سره د عائشې،

ابن عباس او معاویه رضی الله عنهم نه ترمذیؒ، ابن ماجهؒ، طبرانیؒ او حاکمؒ وغیرهم روایت کړیدے۔ وصححه الالبانی واحمد شاکر)

حافظ ابن کثیرؒ او قاسمیؒ وائی: د رسول الله ﷺ سلوك د خپلو بیبیانو سره انتهائی درجه ښائسته وو، همیشه به ئے د هغوی سره په خندین مخ باندے خبرے کولے، د هغوی سره به ئے توقے کولے، او ام المؤمنین عائشےؓ سره به ئے منډه وهله، هره شپه به ئے د هغوی ټولو سره په شریکه خوراك كولو، او د اُوده کیدو نه مخکی به ئے د خپلے بی بی سره ډیر وخت پورے خبرے کولے، او د نبی کریم ﷺ مبارك ذات د هغه د امت د افرادو دپاره نمونه ده، پدے وجه مسلمانانو لره هم د خپلو ښځو سره داسے سلوك كول پكار دی۔ الله تعالیٰ فرمائی: ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ﴾ چه د رسول الله ﷺ ذات ستاسو دپاره ښائسته نمونه ده۔ (قاسمی ۲/۲۵۰)

(۲) **تفسیر**: (وَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ) کی د مخکی په شان د مړ خاوند اولیاؤ ته خطاب دے نو مطلب به دا وی چه تاسو ددے کونډو ښځو ژوند مهٔ تنگوئ دے دپاره چه تاسو ترے هغه مال اخلئ چه کوم تاسو (یعنی ستاسو مړی) ورکړے وی بلکه خپل واك ته ئے پریدئ چه هر چرته واده کوی، البته که ښکاره بی حیائی کوی نو بیا پرے پابندی لګولے شئ او ژوند ورله تنګولے شئ چه کور کی ئے بنده وساتئ، او د بی حیائی نه ئے منع کړئ او پدے صورت کی به هم د مړی اولیاؤ لره د ښځے نه مهر اخستل حرام وی۔ صرف په کور کی بند ساتل به ورله جائز وی لکه په سورة البقره آیت (۲۳۴) کی هم داسے مضمون تیر شوے وو ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا فَعَلْنَ فِيْ اَنْفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ﴾۔ او وَعَاشِرُوْهُنَّ به خطاب خاوندانو ته وی۔ وياسی بلکه پس د مرګ نه ئے وياسی نو ځکه وائی چه پدے وخت کی نهٔ قبلیږی۔

| |
|---|
| وَإِنْ أَرَدْتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ زَوْجٍ وَّآتَيْتُمْ |
| او که تاسو اراده وکړه د بدلولو د یوے ښځے په ځای د بلے ښځے او ورکړی وی تاسو |
| إِحْدَاهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَأْخُذُوْا مِنْهُ شَيْئًا أَتَأْخُذُوْنَهٗ |
| یو ددوی ته ډیر مال نو مهٔ اخلئ د هغے نه هیڅ شے آیا تاسو اخلئ هغے لره |
| بُهْتَانًا وَّإِثْمًا مُّبِيْنًا ﴿۲۰﴾ |
| پداسے حال کی چه بهتان تړئ او په ګناه ښکاره سره۔ |

**تفسیر** : دا بل حکم دے چه که تاسو کلکه اراده کړی وی چه د خپلے ښځے په بدله کی بله نوے نکاح کول غواړئ اګرکه دغه ښځه کی به بد اخلاقی هم نهٔ وی موجوده او طلاق ورکوئ نو حکم دا دے چه دغه مخکنئ ښځے ته مو چه کوم مهر ورکړے وی اګرکه ډیر وی نو هغه ټول ورته پریدئ او هیڅ شے ترے بیرته مهٔ اخلئ، که تاسو ترے بیرته دغه مهر اخلئ نو بیو خو به په خپله ښځه باندے څه بهتان تړئ دے دپاره چه د مهر د اخستو دپاره بهانه جوړه کړئ چه څکه مے ورسره خلعه وکړه چه دا ښځه ښکاره بد اخلاقه زناکاره ده او بل به تاسو ښکاره ګناه پورته کړئ چه پاکدامنی ښځے پورے مو تهمت وتړلو۔ (التحریر)

فَلَا تَأْخُذُوْا : یعنی داسے مهٔ وایه چه دا ښځه بو دئ شویده او دا پریدم او ددے نه به مهر واخلم او بله به پرے وکړم، دا ته ظلم کوے څکه چه ښځه دے کونډه هم کړه، د باکره توب نه دے ویستله یا ستا سره بو ډئ شوه نو اُوس به ئے بل څوك نهٔ کوی او دپاسه دے ترے مال هم واخستو نو دوه نقصانه دے ورکړل۔

قنطار : ډیر مال (خزانے) ته وائی، څینو ددے اندازه دولس سوه (۱۲۰۰) اوقیه خودلے ده ابن عطیةؒ وائی دا په ټولو اقوالو کی اصح قول دے۔ څینی وائی : دولس زره اوقیه ئے اندازه ده۔(قرطبیؒ) او تفصیل ئے په سورة آل عمران آیت (۱٤) کی وګوره۔

دے نه معلومیږی چه په مهر کی ډیر مال ورکول هم جائز دی لیکن د رسول الله ﷺ طریقه دا وه چه هغه به په مهر کی څلور سوه درهمه ورکول چه پدے وخت کی ترے تقریباً (۱٤۸۰۰) زره روپئ جوړیږی۔ اګرکه دا په طریقه د تحدید او تعیین سره نهٔ وو لکه چه شاه ولی الله الدهلوی رحمه الله په (حُجَّةُ اللهِ الْبَالِغَة) کی وئیلی دی۔

مسروقؒ فرمائی : عمر فاروق رضی الله عنه یوه ورځ په تقریر کی وویل : تاسو د زنانو د مهرونو په باره کی څنګه ډیر والے کړیدے او حال دا چه رسول الله ﷺ او د هغه ملګرو به څلور سوه یا ددے نه کم مهرونه مقررول او که دا ډیر والے د الله په نیز تقوی او کرامة وے تاسو به د هغوی نه دے ته مخکوالے نهٔ وے کړے، بیا د منبر نه راکوز شو نو د قریشو یوے زنانه پرے اعتراض وکړو چه تهٔ څنګه منع کوے او حال دا چه قرآن کی راغلی دی (وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنْطَارًا) تاسو یوے زنانه ته خزانه (ډیر مال) ورکړے وی۔ نو عمر فاروق د الله د کتاب سره ودریدونکے وو پدے وجه هیڅ جواب ئے ورنکړو۔ او دا ئے وویل : اَللّٰهُمَّ غَفْرًا، كُلُّ النَّاسِ أَفْقَهُ مِنْ عُمَرَ) اے الله ! بخنه وکړه ! ټول خلك د عمر نه ډیر پوهه دی۔

(صحابه کرامو کی دا ادب وو چه د الله د کتاب نه به ئے جوابونه نهٔ کول)

اگر که د عمر فاروق مقصد جدا وو چه ډير مهر ورکول حرام نهٔ دي مگر که د فخر او تکبر په طريقه وي يا په ډير مهر ورکولو کي ډير اجر ګڼل وي دا به صحيح نهٔ وي، د رسول الله ﷺ اتباع پکار ده. البته مالدار دے زيات ورکړي ليکن د فخر دپاره به نهٔ وي. لکه دغه واقعه کي راغي چه عمر فاروق بيرته منبر ته راواپس شو او وے فرمايل: ما تاسو د زيات مهرونو نه منع کړئ اُوس د چا چه څومره خوښه وي مهر دے ورکوي.

(مسند ابى يعلى والسنن الكبرى للبيهقي واسناده جيد قاله ابن كثير).

**بُهْتَانًا** : دا مصدر دے په ځاى د حال کي دے اَىْ مُبَاهِتِيْنَ. تاسو دا اخلئ په داسے حال کي چه بهتان تړونکي يئ. (التحرير والتنوير)

عبد الله بن عباسؓ د بهتان معنىٰ په ظلم سره کړيده. دا ئے حاصل معنىٰ ده.

او زجاجؒ وائي : بهتان باطل ته وائي. او لفظ د بهتان ئے ځکه استعمال کړو چه سرے مهر ځکه اخلي چه په ښځه بهتان تړي چه دے ښځے زما په کور کي بد اخلاقي کړيده او په ما ئے ظلم کړيدے، بې حيائي پسے ګرزي او حال دا چه هغے دا ګناه نهٔ ده کړے. نو نقصان په تا کي دے چه طلاق ورکوے او پره په هغے اچوے.

| وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهُ وَقَدْ أَفْضَى بَعْضُكُمْ |
|---|
| او څنګه اخلئ تاسو دا (مال) او حال دا چه په تحقيق سره رسيدل کړيدي بعضے ستاسو |
| إِلَى بَعْضٍ وَأَخَذْنَ مِنكُم مِّيثَاقًا غَلِيظًا ﴿٢١﴾ |
| بعضو ته او اخستے ده زنانو ستاسو نه وعده مضبوطه. |

**تفسير** : دا بل عقلي دليل بيانوي چه اے مؤمنانو ! چه پدے صورت کي چه په ښځه کي څه بد اخلاقي موجوده نهٔ ده آيا د مهر بيرته اخستل ستاسو د نارينتوب سره سمون خوري؟ آيا هغه شے چه ستاسو ښځو د هغے مسئولي وي تاسو ته نهٔ دے سپارلے؟ نو هر کله چه تاسو د يو بل نه پوره فائده اخستے ده نو د دغه فائدے په بدله کي ستا دغه مال لاړو، ځکه چه پدے ښځه کي به د طلاقو نه روستو څوك ډير رغبت نهٔ لري، نو تا په هغے کي يو قسم عيب راپيدا کړو، تا ترے فائدے هم واخستے او بيرته خپل مال هم اخلے دا څومره د غيرت او نارينتوب خلاف خبره ده. بله دا چه دے ښځو تاسو نه د نکاح په وخت کي کلکه وعده هم اخستے وه چه ګواهان هم موجود وو چه تاسو به دا ښځه ځان سره

ساتی؛ او د هغې د حقوقو د ورکړې پابندي به کوئ او تا وویل چه دا فلانۍ زنانه ما په مقابله د دومره مهر کې قبوله کړه نو آیا بیرته مال اخستل به بې لوظي نهٔ وي. تا چه د کومې خبرې په مقابله کې قبوله کړې وه هغه وعده دې ماته کړه۔

اَفْضٰی : افضاء رسیدلو ته وائي او دلته ترې مراد نزدیکت دے۔ (ابن عباسؓ، مجاهدؒ) او افضاء په اصل لغت کې مُخَالَطَة (ګډون) ته هم وائي۔ (قرطبیؒ)

بیا پدے کې اختلاف دے چه په خلوتِ صحیحه سره مهر په سړي لازمیږي او که نهٔ؟ صحیح خلوت دے ته وائي چه ښځه او خاوند په یو داسے ځای کې د یو بل سره ملاقات وکړي چه هلته څه شرعي مانع نهٔ وي موجود لکه حیض، نفاس، فرضي روژه وغیره او نهٔ حسي مانع وي لکه سخته بیماري وغیره او نهٔ طبعي مانع موجود وي لکه د لارے سر او بیابان چه پرده او حجاب نهٔ وي۔ نو احناف وائي چه خلوتِ صحیحه سره مهر واجبیږي (احکام القرآن للجصاص ۱۱۱/۲) مګر عامو علماؤ د افضیٰ د معنیٰ نه استدلال کړیدے چه په خلوتِ صحیحه سره مهر نهٔ لازمیږي ترڅو چه جماع نهٔ وي شوي۔ دلیل دا دے چه لعان کونکي شخص ته رسول الله ﷺ وفرمایل : که تا پدے ښځه باندے رښتیا وئیلي وي [فَهُوَ بِمَا اسْتَحْلَلْتَ مِنْ فَرْجِهَا] نو مهر د هغې د عورت په مقابله کې لاړو۔ (صحیح البخاري، ۵۳۵۰ حسب ترقیم فتح الباري)

| وَلَا تَنْكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُمْ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا |
|---|
| او نکاح مهٔ کوئ د هغه چا سره چه نکاح کړي وي پلارانو ستاسو د زنانو نه مګر |
| مَا قَدْ سَلَفَ إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَمَقْتًا وَسَاءَ سَبِيلًا ﴿۲۲﴾ |
| هغه چه مخکې تیر شویدي، یقیناً دا بې حیائي ده او سبب د غصے (د الله) دے او بده لاره ده۔ |

**تفسیر** : ددے آیت نه تر (۲٤) آیت پورے د مُحرماتو بیان دے۔ یعنې هغه زنانه چه د هغوی سره نکاح حرامه وي۔ دا زنانه په شریعت کې هم حرام دي چه الله تعالیٰ منع کړیدي او عقلًا هم حرامي دي ځکه چه مور او نور نزدے خپلوان ددے لائق نهٔ دي چه د هغوی نه خدمت واخلي بلکه د هغوی خدمت به کولے شي۔ او فطرةً هم حرامي دي چه هر سلیم الفطرة انسان دا کار عیب ګڼي، که خپله مور یا خور بربنډه هم ویني هغه ته حیاء ورځي۔ مجوسو به د خپلو محارمو سره نکاح کوله، د هغوی فطرت خراب شوے وو او په عربو

کی هم دا کار لږ لږ راغلے وو۔

په زنانه کی حرمت د درے وجو نه راځی (۱) نسب، (۲) رضاعت۔ (۳) مصاهرة (خیښی)۔ **نسب** لکه خور، مور، نیا، وریره، خورزه وغیره۔ **رضاعت** دا چه یو ماشوم د یوے زنانه نه تئ وروی نو ددے ماشوم دغه زنانه مور شوه، اجزاء د مور بچی ته نقل شو، او ددے اولاد ئے ورونه او خویندے شو۔ **مصاهرة** دا چه یو تن د یو قوم نه ښځه وکړی نو د هغے مور، د هغے بله لور، د هغے خور سره نکاح نشی کولے۔ البته که دا ښځه مړه شوه یا طلاقه شوه نو ددے خور په نکاح اخستے شی۔

محرمات بیا په دوه قسمه دی (۱) مُؤَقَّتَه (چه څه وخته پورے حرام وی) لکه ښینه د ښځے د طلاق او وفات نه روستو په نکاح اخستل، یا پردئ زنانه چه د بل په نکاح کی وی چه هغه ئے طلاقه کړی یا ترے مړ شی نو نکاح ورسره کیږی۔ البته یو صورت کی د ژوندی خاوند د ښځے سره هم نکاح کیږی هغه دا چه خاوند ئے کافر دے او مسلمانان په جهاد کی د هغه ښځه ونیسی نو دا ورله حلاله ده۔

(۲) مُؤَبَّدَه: چه همیشه دپاره حرام وی۔

**ربط** : مخکښی ئے وویل چه تاسو له بله ښځه کول جائز دی نو اوس دا بیانوی چه دا به د کومو زنانو نه وی؟ نو یاد ساتئ چه دا راتلونکی زنانه به نهٔ په نکاح کوئ۔

## شان نزول

ابو قیس ﷺ وفات شو نو ددهٔ زوی (قیس) وغوښتل چه د پلار د ښځے سره نکاح وکړی (چه ددهٔ ناسکه مور وه) نو هغے ورته وویل چه ما خو ته د زوی په شان ګڼلی او ته په قوم کی صالح سړے ئے خو زه به د نبی کریم ﷺ سره مشوره وکړم چه هغه راته څه امر کوی نو نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل: [اِرْجِعِیْ اِلٰی بَیْتِكِ] ته خپل کور ته لاړه شه۔ یعنی تردے چه الله تعالیٰ ستا په باره کی فیصله وکړی نو دا آیت نازل شو۔ اسباب النزول للواحدی ص۹۸) وسنن سعید بن منصور ۳/۱۲۰۸) دار العصیمی الریاض، وسنن البیهقی باسناد صحیح)

مَا نَكَحَ آبَآؤُكُمْ: که یوه ښځه د پلار په نوم شوه (نکاح ئے وشوه) نو د زوی دپاره د هغے سره نکاح کول همیشه دپاره حرام دی، که هغه ورسره نزدیکت کړے وی او که مخکښی د واده نه ترے وفات شوے وی، یا طلاقه شوی وی یا نهٔ وی، په هر حال کی حرامه ده او پدے باندے اجماع د مسلمانانو ده۔ او دا آیت پرے دلیل دے۔

إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ : الا په معنیٰ د بَعْدَ سره یعنی بَعْدَ مَا سَلَفَ۔ یعنی پس د هغې نه چه تاسو به دا کارونه پخوا کول نو اُوس پام کوئ چه آینده کې ئې ونکړئ۔

یا الا (استثناء منقطع ده) یعنی (لٰكِنْ مَا سَلَفَ فَلَا تُؤَاخَذُوْنَ بِهٖ) لیکن هغه چه تاسو مخکې کړیدي نو په هغې به تاسو نۀ رانیولے کیږئ۔

إِنَّهٗ كَانَ فَاحِشَةً : یعنی دا کار عقلاً بی حیائی ده ځکه چه هر هوښیار بنده پو هیږی چه پدے کار کی د پلار سپکوالے او د هغه په عزت لوبې کول دي۔

وَمَقْتاً : او سبب د غصے د الله دے په اعتبار د شرع سره۔ او ساء سبیلاً: بد دے په اعتبار د فطرت او عادة سره۔ نو دا کار عقلاً او شرعاً او فطرةً قبیح کار دے۔ هر کله چه دومره ډیر قباحتونه پکې راجمع دی نو دا کار ډیر لوی قبیح شو۔

حافظ ابن کثیرؒ فرمائی : پس چا چه ددے نه روستو د پلار د ښځې سره نکاح وکړه نو دا به د دین نه مرتد وی، او دے به وژلے شی او مال به ئې بیت المال ته د فئ په شکل ورکولے شی لکه رسول الله ﷺ د براء بن عازبؓ تره د یو سړی پسے لیږلے وو چه هغه د خپل پلار ښځه د هغه نه روستو اخستے وه چه هغه قتل کړی او مال ترے واخلی۔ (مسند احمد ٤/٢٩٢، قاسمی و ابن کثیر)

| |
|---|
| حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ |
| حرام کړے شویدي په تاسو باندے میندے ستاسو او لونړهٔ ستاسو او خویندے ستاسو |
| وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالَاتُكُمْ وَبَنَاتُ الْأَخِ وَبَنَاتُ الْأُخْتِ |
| او تریندے ستاسو او ماسی ګانے ستاسو او لونړه د وورو (وریرے) او لونړهٔ د خور (خورزے) |
| وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ مِنَ الرَّضَاعَةِ |
| او میندے ستاسو هغه چه تاسو له ئې تے درکړیدے او خویندے ستاسو د تی ورکولو د وجه نه |
| وَأُمَّهَاتُ نِسَائِكُمْ وَرَبَائِبُكُمُ اللَّاتِي فِي حُجُورِكُمْ |
| او میندے د ښځو ستاسو (یعنی خواخے) او پرکتئ ستاسو هغه چه په تربیت ستاسو کی دی |
| مِنْ نِسَائِكُمُ اللَّاتِي دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَإِنْ لَمْ تَكُونُوا دَخَلْتُمْ |
| د ښځو ستاسو نه هغه چه نزدیکت کړے وی تاسو د هغوی سره نو که تاسو نزدیکت نۀ وی کړے |

بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ

د هغوی سره نو نشته گناه په تاسو باندے او (حرامی دی په تاسو) ښځے د زامنو ستاسو

الَّذِينَ مِنْ أَصْلَابِكُمْ وَأَنْ تَجْمَعُوا

(اینگوریانی) هغه زامن چه د شاگانو ستاسو نه (پیدا) دی او دا چه جمع والے وکړئ تاسو

بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿۲۳﴾

په مینځ د دوه خویندو کې مگر هغه چه مخکې تیر شویدی، یقیناً الله بخونکے، رحم کونکے دے

**تفسیر**: اُوس تفصیل د محرماتو بیانوی۔ نسبی حرامی ښځې اوه قسمه دی :

(۱) میندے حرامی دی چه پدے کې تولے نیاگانے هم داخلیږی د پلار د طرفنه وی او که د مور د طرفنه، ځکه چه د امهاتو اطلاق په شریعت او لغت کې په نیاگانو باندے هم کیږی۔

(۲) لونړه حرامی دی چه دا تولو نمسیانو ته هم شاملیږی که د لور د طرفنه وی او که د زوی۔

(۳) تولے خویندے حرامی دی سکه وی او که ناسکه۔ (د پلار نه وی یا د مور نه وی یا د دواړو نه)۔

(٤) د پلار هر قسمه خویندے سکه وی او که ناسکه حرامی دی۔ دارنگه د نیکه خویندی، د غور نیکه خویندے او بره وریسے ورځه۔

(٥) د مور هر قسمه خویندے سکه وی که ناسکه حرامی دی، دغه شان د نیاء غوری نیا او بره وریسے ورځه۔

(٦) د تولو قسمه ورونو (سکه وی که ناسکه یا رضاعی) لونړه حرامی دی، دغه شان د ورونو نمسیۍ او کړوسیۍ او خکته وریسے ورځه۔ رسول الله ﷺ د حمزه ﷺ لور په نکاح نهٔ اخستله ځکه چه دا ئے رضاعی ورور وو۔

(۷) د هر قسمه خویندو (سکه وی که ناسکه) لونړه حرامی دی، د دوی نمسیۍ او کړوسیۍ او خکته وریسے ورځه دا تولی حرامی دی۔

رضاعی حرامی ښځے

ذکر شوی اوه قسمه زنانه لکه څنگه چه د نسب په وجه په سړی باندے حرامی دی دغه

شان دغه تولے د رضاعت (تی رودلو) په وجه هم حرامی دی۔
او دلته په آیت کی اگرکه رضاعی میندے او رضاعی خویندے ذکر شویدی لیکن دا په طریقه د حصر سره نهٔ دی بلکه د مثال په طور ذکر شویدی او په صحیح حدیث کی دی: (يُحَرَّمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يُحَرَّمُ مِنَ النَّسَبِ) د رضاعت په وجه هغه زنانه حرامیږی کومے چه د نسب په وجه حرامیږی۔ (صحیح البخاری ۱/ ۳٦٠)۔
مِنَ الرَّضَاعَةِ : په آیت کی رضاعة مطلق ذکر دے لږ وی که ډیر، او په یو حدیث کی دی: (لَا تُحَرِّمُ الرَّضْعَةُ أَوِ الرَّضْعَتَانِ أَوِ الْمَصَّةُ أَوِ الْمَصَّتَانِ) (مسلم:۳٦٦٦) یو یا دوه خل تی ورکول او رودل تحریم نهٔ راولی۔ نو مفهوم ئے دا دے چه د دوو نه زیات وی نو بیا حرمت راولی۔ او په مسلم (۳٦٧٠) کی د عائشه رضی الله عنها روایت دے: [خَمْسُ رَضَعَاتٍ يُحَرِّمْنَ] پنځه خل تی رودل حرمت راولی۔ نو ددے تطبیق داسے دے چه ددے ترمینځ هیڅ منافات نشته، دا به په بیلا بیل موقعو باندے حمل وی، که زنانه ته معلومه نهٔ وه (موده ډیره تیره شوے وه) چه ما ماشوم ته څو خل تی ورکړیدے نو بیا به په مطلق رضاعت سره حرمت راځی۔ كَيْفَ وَقَدْ قِيلَ روایت پرے دلیل دے کوم چه بخاری راوړیدے رقم الحديث (۸۸)۔
او که د دغه ماشومے جینئ نکاح نهٔ وی شوی نو بیا احتیاط پدے کی دے چه په درے خل تی رودلو باندے عمل وکړے شی او که نکاح شوے وه نو بیا به معلومات وکړے شی چه یو خل یا دوه درے تر پنځو پورے ورکړے نو حرمت به نهٔ راولی او که پنځه وو یا زیات وو بیا به رضاعت حرمت راولی۔ او تفصیل په فتاوی الدین الخالص (۱۲) کی وګوره۔
ځینی خلکو ته پدے آیت او احادیثو کی تعارض ښکاره شی نو احادیث ګوزار کړی حال دا چه دا د اسلام د حقانیت دلیل دے چه په انسانانو مختلف احوال راځی نو د هر حال دپاره ئے خپل خپل حکم جاری کیږی۔
**فائده** : که یو ماشوم د یوے زنانه تے ورودو نو دا ماشوم د دغه زنانه ځوی شو او ددے زنانه لونړه او خامن ددے ماشوم خویندے او وروڼه شو، که دا ماشوم جینئ وی نو ددے هلکانو ورسره نکاح نهٔ کیږی او که هلك وی نو ددے جینکو سره ئے نکاح نهٔ کیږی البته ددے ماشومے جینئ د خویندو سره ددے جینئ رضاعی وروڼه نکاح کولے شی دغه شان ددے ماشوم هلك ورور ددهٔ د رضاعی خویندو سره نکاح کولے شی۔
وَأُمَّهَاتُ نِسَآئِكُمْ :
د مصاهرت (خپلوئ) په وجه حرامی ښځے

۱- خپله خوابښے، دا ابدي حرامه ده برابره ده چه خپله ښځه ئے واده کړی وی او که نهٔ. دارنګه دا حکم د ښځے د نیا او غوری نیا او نورو نیاګانو هم دے.

(۲) په هر سړی باندے پرکتئ یعنی د خپلے ښځے لور چه د بل خاوند نه ورسره راغلی وی هم ابدي حرامه ده خو پدے شرط چه د خپلے ښځے سره ئے نکاح کړی وی او هغه ئے واده کړی وی او دخول (جنسي تعلقات) ئے ورسره کړی وی. او که هسے ئے په نکاح کړی وی او لا واده کړی ئے نهٔ وی او بیرته هغه پریدی یا هغه وفات شی او د هغے دغه لور کوی نو کولے ئے شی.

او دا حکم د خپلو ښځو نمسیو او کروسیو ته هم شاملیږی.

وَرَبَائِبُكُمُ : ربائب : جمع د رَبِيبَةٌ ده پرکتئ ته وائی.

اللاَّتِي فِي حُجُورِكُم : دا قید احترازی نهٔ دے بلکه واقعی او اتفاقی دے یعنی که پرکتئ د سړی په تربیت کی وی او که نهٔ وی خو د هغے سره نکاح په دغه صورت کی حرامه ده په نیز د عام اهل علمو او بعض علماؤ شذوذ کړیدے نو هغوی هغه پرکتئ جائز ګرځولے ده چه د خاوند په تربیت کی نهٔ وی. (القرطبي)

(۳) وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ : حلائل جمع د حَلِيلَةٌ ده ښځے ته وائی. یعنی انګوریانی په سړی باندے ابدي حرامی دی نو د زوی په وفات یا طلاق سره ورته نهٔ حلالیږی، برابره خبره ده چه که زوی ئے نسبي وی او که رضاعي. د جمهورو په رأی کی او شیخ الاسلام ابن تیمیة او حافظ ابن القیمؒ وائی : د رضاعي ځوی ښځه حلاله ده، د هغے په حرمت باندے هیڅ دلیل نشته بلکه دلته ﴿مِنْ أَصْلَابِكُمْ﴾ قید ښکاره دلیل دے چه هغه جائز ده. او تفصیل دپاره الدين الخالص باب الرضاع (۱۲) ته رجوع وکړه.

مِنْ أَصْلَابِكُمْ : پدے سره متبنیٰ (د ځُلے ونیلے شوے زوی) بهر شو چه د هغه ښځه په نکاح اخستل جائز دی. او پدے سره رضاعي ځوی نهٔ ووځی لکه مخکی تیر شو بناء په مرجوح قول سره او راجح دا ده چه هغه جائز ده.

وَأَنْ تَجْمَعُوا : د دوه خویندو په یوه نکاح کی جمع کول یو پدے وجه حرام دی چه پدے کی بی حیائی ده. دویم : یوه ښځه د بلے ښځے ضَرّه (بنه) وی نو هغه به ورسره دشمنی کوی نو پدے سره به ئے صله رحمی ختمه شی.

إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ : یعنی که پخوا ستاسو نه دا کار شوے وی نو تاسو معاف یئ.

**حکمة** : د پلار د ښځے او د خویندو د جمع کولو په باره کی ئے (إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ) وویلو پدے

کې حکمة دا دے چه د آیت د نزول په وخت کې دغه دواړه نکاح ګانې په عربو کې رواج وو اګرکه هوښیارو خلکو دے ته هم په ښه نظر نهٔ کتل، لکه دا خبره عبد الله بن عباس رضی الله عنهما کړیده۔ (قاسمیؒ)

| |
|---|
| وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ |
| او (حرامې دی) خاوندانو والا د زنانو نه، مګر هغه چه مالکان دی بنې لاسونه ستاسو، |
| كِتٰبَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَاُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ |
| حکم د الله دے په تاسو باندے او حلال کړے شویدی تاسو لره هغه چه ما سوئ دی ددے نه، |
| اَنْ تَبْتَغُوْا بِاَمْوَالِكُمْ مُّحْصِنِيْنَ غَيْرَ |
| پدے شرط چه تاسو ئے طلب کوئ په مالونو خپلو سره چه نکاح کونکی یئ نهٔ یئ |
| مُسٰفِحِيْنَ فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ فَاٰتُوْهُنَّ |
| زنا کونکی، پس هغه مال چه تاسو فائده واخسته په هغې سره د ښځونه نو ورکړئ دوی ته |
| اُجُوْرَهُنَّ فَرِيْضَةً وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا |
| مهرونه د دوی فرض کړے شوی، او نشته ګناه په تاسو په هغه مهرکی |
| تَرٰضَيْتُمْ بِهٖ مِنْ بَعْدِ الْفَرِيْضَةِ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿٢٤﴾ |
| چه راضی شئ تاسو په هغې سره پس د مقرر والی نه، بیشکه الله پو هه دے حکمتونو والا دے |

**تفسیر**: اُوس موقتی حرامی بیانوی پدے وجه ئے دا په جدا آیت کی ذکر کړو۔

وَالْمُحْصَنَاتُ : دا د (حُرِمَتْ) د لاندے دی یعنی حُرِمَتِ الْمُحْصَنَاتُ ۔ حرامی کړے شویدی په تاسو واده والا زنانه۔

المحصنات : د احصان نه اخستے شویدے، او احصان د حِصْن نه دے په لغت کی منع کولو اوبچ کولو ته وئیلے شی لکه سورة انبیاء آیت (۸۰) کی دی: ﴿ لِتُحْصِنَكُمْ مِنْ بَأْسِكُمْ﴾ ۔ (یعنی دے دپاره چه تاسو وساتی ستاسو د جنګونو نه) دارنګه حِصْن هغه مضبوط قلعه ته وئیلے شی چه دشمن پرے د ورپورته کیدو طاقت نهٔ لری۔

احصان لفظ په قرآن کریم کی (۱۸) کرته راغلے دے او په څلورو معانو استعمالیږی (۱)

تزوج یعني واده کول، لکه پدے آیت کی مُحْصِنِیْنَ او روستو آیت کی مُحْصَنَاتٍ لفظ راغلے دے۔ نو کومه ښځه چه واده شوه نو دا مُحْصَنَه شوه۔ (۲) عِفت (پاکدامني)۔ په آیت کی دی ﴿وَالَّتِيْ أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا﴾ انبیاء: ۹۱) یعنی هغه زنانه چه حفاظت ئے وکړو د خپل عورت، او روستو راځی ﴿وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الْمُؤْمِنَاتِ﴾ ـ نو د مُحْصَنَاتو په مقابله کی مُسَافِحَات راځی یعنی زناکارے۔ (۳) کله محصنات (اَلْحَرَائِر) آزادو ښځو ته وائی۔ لکه روستو راځی ﴿فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ﴾۔ ددے په مقابل کی إِمَاء (وینځے) استعمالیږی۔

(٤) احصان کله په معنیٰ د اسلام سره راځی. قرطبیؒ ونیلی دی چه پدے معنیٰ په قرآن کریم کی نهٔ دے راغلے البته په سنت کی راغلے دے۔ او ابن عادل الدمشقیؒ صاحب اللباب لیکی چه په روستو آیت (فَإِذَا أُحْصِنَّ) کی د بعض مفسرینو په نیز د اسلام راوړلو معنیٰ ده۔ او دلته د (الْمُحْصَنَات) نه اوله معنیٰ مراد ده۔

**فائده** : کوم سړے چه واده والا ښځه وتښتوی دے ته خاطف او مخطوفه وائی دوی واجب القتل دی، وژلے به شی، ډیر لوی مفسدان دی دا هله چه ښځه ورسره رضا وی او که چرته ښځه ئے مجبوره کړی وی مثلاً جادو ئے پرے کړے وی یا ئے نشه ورکړی وی نو بیا به ښځه نشی وژلے۔

## شان نزول

د سیدنا ابوسعید خدری ﷺ نه روایت دے چه مونږ د أَوْطَاس په غزا کی څه زنانه ونیولے چه زمونږ وینځے وګرزیدلے نو څه کسانو اراده وکړه چه ددے سره نزدیکت وکړی، بیا ئے دا بده وګڼله چه د هغے سره نزدیکت وکړی ځکه چه د دوی خاوندان ژوندی وو او د ژوندو سړو ښځے اخستل به حرام وی نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو چه وینځے ستاسو دپاره جائز دی اګرکه خاوندان ئے ژوندی وی او نبی ﷺ ددے په باره کی وفرمایل : چه د دوی سره نزدیکت جائز دے (إِذَا انْقَضَتْ عِدَّتُهُنَّ) کله چه د دوی عدت تیر شی۔ (صحیح مسلم۱/ ٤٧٠) او د دوی عدت صرف یو حیض دے۔ او دا زنانه بل کوم یو مسلمان په نکاح باندے هم اخستے شی۔

مِنَ النِّسَآءِ : دا لفظ ورسره ځکه زیاتوی چه مَړونو والا کافرو ښځو ته هم شامل شی یعنی اګرکه خاوندان ئے کافر کتابی وی نو د هغوی سره نکاح حرامه ده مګر که د وینځو په شکل راشی نو بیا درله حلالی دی اګرکه خاوندان ئے ژوندی وی۔

كِتَابَ اللهِ عَلَيْكُمْ : يعنى [ كَتَبَ كِتَبَ اللّٰهِ]، ((الله تعالیٰ ددے حکم لیکل کړیدی لیکل په تاسو باندے)) نو ددے تابعداری په کلکه وکړئ. یا منصوب دے په اغراء سره په اصل کی (عَلَيْكُمْ كِتَابَ الله) دے یعنی تاسو باندے لازم دے د الله حکم). یا (اِلْزَمُوا كِتَابَ الله) پټ دے، یعنی لازم ونیسئ حکم د الله.

وَاُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ : یعنی ددے تیر شوی زنانو نه سوئ ستاسو دپاره جائز دی خو پدے شرط چه هغوی ته مهرونه ورکړئ. ځینی مفسرینو ته پدے جمله کی اشکال ښکاره شویدے چه په احادیثو کی خو نورو زنانو ته هم حرامی وئیلے شویدی لکه:

ښځه او د هغے ترور، یا د هغے خاله په یوه نکاح کی راجمع کول، عدت تیرونکے زنانه، د آزادے ښځے په موجودګئ کی د وینځے سره نکاح کول، آزادے ښځے سره د قدرت باوجود د وینځے سره وادهٔ کول، د ځلورو ښځو سره پنځمه ښځه، دارنګه لعان کونکے ښځه همیشه دپاره په لعان کونکی سړی باندے حرامیږی. دارنګه د متعے نکاح، دارنګه د شغار (بدل) نکاح.

نو ددے وجه نه عام مفسرین لکه قاسمیؒ او ابن الجوزیؒ په ((زاد المسیر)) کی وائی : دا عام مخصوص البعض دے. یعنی دا حکم عام دے خو بعض افراد ترے په احادیثو سره خاص شویدی. او ځینی مفسرین وائی چه (مَاوَرَاءَ ذٰلِكُمْ) کی اشاره وحی ته ده او هغه قرآن او حدیث دواړو ته شامله ده. یعنی د وحی نه په غیر نورے حلالی دی یعنی د ځان نه ئے مهٔ حراموئ او الله او رسول چه کومے حرامی کړیدی هغه به حرامے ګنړئ. یا په احادیثو کی چه کومے دغه زنانه حرامے خودلے شویدی نو دا په دغه محرماتو کی په طریقه د التزام سره داخلیږی.

اَنْ تَبْتَغُوْا بِاَمْوَالِكُمْ : د کومو ښځو سره چه وادهٔ کول الله تعالیٰ حرام ګرزولی دی د هغے نه سوئ د هرے ښځے سره یو مسلمان په شرعی نکاح چه د شرطونو لحاظ پکی وی په یو وخت کی د یو نه تر ځلورو پورے ودونه کولے شی. او وینځے چه څومره غواړی ساتلے شی. لیکن شرط دا دے چه د هغه ښځے مهر به مقرر وی او د ایجاب او قبول په ذریعه به وادهٔ سر ته رسیدلے وی او په ښکاره یا پټه سره به زنا کول مقصود نهٔ وی. د آیت دا حصه دلیل دے چه په وادهٔ کی مهر ورکول الله تعالیٰ واجب ګرځولی دی، په غیر د مهر نه وادهٔ په شریعت کی جائز نهٔ دے.

**مسئله** : دا آیت د هغه علماؤ دلیل دے چه وائی مهر کی به مال ورکولے شی نهٔ بل شے

لکه دا مذهب د عامو علماؤ دے او امام شافعيؒ او بعض محققينو علماؤ وئيلي دي چه مهر هر هغه شے گرزيدے شي چه د مبيعي د ثمن (قيمت) يا د اجرت صلاحيت لري لږ وي که ډير نو پدے اعتبار سره تعليم د قرآن کريم هم د نکاح دپاره مهر کيدے شي ځکه چه د قرآن کريم په تعليم باندے اجرت اخستل جائز دي، او دوي دليل نيسي په هغه مشهور حديث چه امام بخاري وغيره نقل کړيدے چه نبي عليه السلام يو سړي ته يوه ښځه د قرآن د تعليم په بدله کي ورکړه (زَوَّجْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ) ـ (صحيح بخاري: ۵۰۲۹ ومسلم: ۳۵۵۴) او دا قول په اعتبار د دليل سره راجح دے بلکه په احاديثو کي عتق (آزادول د وينځے) او اسلام هم مهر جوړ شويدے.

**مسئله** : د مهر کمه او زياته اندازه مقرر نۀ ده، امام مالك رحمه الله وائي چه د مهر کمه اندازه درے درهمه يا د دينار څلورمه برخه ده او امام ابو حنيفه رحمه الله وائي چه د لسو درهمو نه کم مهر نشته، د هغه دپاره دليل نيولے شويدے په هغه حديث چه دارقطنيؒ نقل کړيدے (لَا مَهْرَ لِأَقَلَّ مِنْ عَشَرَةٍ) ليکن هغه روايت ضعيف جدًا دے د هغے په سند کي مبشر بن عُبيد راوي متروك دے. او د رسول الله ﷺ به عام عادتِ مبارکه دا وو چه د څلورو سوو درهمو پـه اندازه مهر بـه ئے مقررولو. او کمه اندازه (وَزْنُ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ) د کجوري د هډوکي په اندازه سرۀ زر هم صحابه کرامو مقرر کړيدي يا يوه لپه وړه يا ستوان لکه دارقطنيؒ وغيره دغه روايتونه نقل کړيدي. او دلته په آيت کي (تَرَاضَيْتُمْ بِهِ) نه معلوميږي چه جانبين په څه راضي شو بس دغه به مهر وي لږ وي که ډير. او دا قول د سفيان ثوريؒ، شافعيؒ، احمدؒ او اسحاقؒ دے (سنن الترمذی) او همدا حق دے.

**مُحْصِنِيْنَ** : يعني ستاسو به د پاکدامنئ اراده وي. دا حال دے يعني په داسے حال کي چه تاسو محصنين يئ يا د (كُوْنُوْا) دپاره خبر دے. يعني شئ پاکدامن. يعني واده به پدے نيت کوئ چه تاسو ته عفت او پاکدامني حاصله شي او د زنا اراده به نۀ وي، ددے نه معلومه شوه چه د زنا کار سړي يا زناکاره ښځے سره نکاح جائز نۀ ده لکه روستو به راشي ان شاء الله تعالى.

**مُسَافِحِيْنَ** : د سَفح نه اخستے شويدے تو يه کولو ته وائي او زناکار هم خپله ماده بې ځايه تو يه کوي او د يو مقصد (اولاد او نسل) پيدا کولو دپاره نۀ وي.

**فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ** : (۱) (مَا) لفظ د مهر نه عبارت دے يا د زنانو نه. نو معنیٰ به دا وي : پس هغه مهر چه تاسو فائده واخلئ د هغے په سبب د زنانو نه نو هغوي ته دغه مهرونه ورکړئ. يعني تاسو چه ورله کوم مهر مقرر کړے وي او د هغے په سبب تاسو ته

دغه ښځې حلالیږي نو هغه به ورته ضرور ورکوئ. (۲) یا د (مَا) نه مراد زنانه دي معنیٰ به دا وي د دغه ذکر شوي ښځو نه چه تاسو د کومې ښځې نه فائده واخلئ نو هغوي ته مهرونه ورکړئ.

مخکې جمله کې په نکاح کې د مهر شرط کیدل ذکر شو نو اُوس په دې جمله کې ئې سبب ذکر کوي چه هغه استمتاع (فائده) اخستل دي. (احسن الکلام)

فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ : که یو سړي د یوې زنانه سره واده اُوکړو او هغې سره ئې نزدیکت هم اُوکړو نو هغې ته پوره مهر ورکول به ضروري وي. او که نزدیکت ئې نۀ وي کړې نو نیمائي مهر ورکول به وي، او که د مخکې نه ئې مهر مقرر کړې نۀ وي او نزدیکت ئې هم نۀ وي کړې او طلاقه شوه نو هغې ته به لږ څه مال ورکړې شي لکه ددې تفصیل په سورة البقره کې تیر شویدې.

**مسئله** : د اکثرو اهل علمو په نیز ددې مهر مالك به د وینځې مالك وي او دلته وینځو ته څکه نسبت شویدې چه د مهر سبب دغه وینځه ده. او د امام مالك رحمه الله په نیز د مهر ملکیت د وینځې دپاره دې. او همدا ظاهر د قرآن دې مګر ان شاء الله چه د مالك دپاره دا جائز دي چه د وینځې نه مهر واخلي څکه وینځه د مالك ملکیت دې نو د هغې مال به هم د مالك دپاره روا وي.

فَرِيْضَةً : دا حال دې په معنیٰ د مَفْرُوْضَةً سره یعنی پداسې حال کې چه دا مقرر کړې شویدي د طرفه د الله نه. یا فعل پټ دې او دا مفعول مطلق دې یعنی فَرَضَ اللّٰهُ فَرِيْضَةً. الله مقرر کړیدې په مقررولو سره.

**فائده** : حافظ ابن کثیرؒ لیکلي دي چه بعض خلقو د آیت د عموم نه د متعې نکاح په جواز باندې دلیل نیولې دې. د مُتعې نکاح دا ده چه یو سړې د یوې ښځې سره د یوې معینې مودې پورې نکاح اُوکړي. د مثال په توګه یوه شپه یا دوه شپې یا یوې هفتې دپاره واده اُوکړي، او د خپل ضرورت پوره کولو نه روستو هغه پریدی. ابن عباسؓ او د صحابه کرامؓ یو جماعت د ضرورت په وخت کې دیته مباح وئیلې وه، لیکن د ابن عباس رضی الله عنهما نه روستو رجوع ثابت ده. (قاسميؒ) امام احمدؒ نه هم دا منقول دي. ابن عباسؓ، ابی بن کعبؓ، سعید بن جبیرؒ او سُدیؒ دا آیت داسې لوستلې دې : ﴿فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ فَاٰتُوْهُنَّ اِلٰى اَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ چه ((د کومو ښځو نه چه تاسو د یوې معینې مودې پورې فائده واخلئ نو هغوي ته مقرر شوې مهر ورکړئ)). د مجاهدؒ وینا ده چه دا آیت د مُتعې نکاح په باره

کې نازل شوي وو. آه.

لیکن د جمهورو رائے ددې خلاف ده، هغوی وائی چه پدې کې شك نشته چه متعه په ابتداء د اسلام کې جائز وه لیکن د هغې نه روستو تر قیامته پورې حرامه کړې شوه. د هغوی دلیل د بخاري او مسلم د علی بن ابی طالب ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ د خیبر په ورځ نکاح متعه او د کورنو خرو د غوښې نه منع کړې وه)). او مسلم د سَبْرَه بن مَعْبَد الجُهَنِی ﷺ نه روایت کړیدے چه د مکې د فتح په وخت هغه د رسول الله ﷺ سره وو، نبی ﷺ اُوفرمایل : ((خلقو ! ما تاسو ته د ښځو سره د متعې کولو اجازت درکړے وو (اُوس واورئ چه) الله دا تر قیامته پورې حرامه کړیده، چا سره چه داسې ښځه وی نو هغه دې پریدی، او تاسو چه هغوی ته کوم رقم ورکړیدے د هغې نه هیڅ هم واپس مهٔ اخلئ)).

دارنګه که دلته نکاح د متعې مراد شی نو قاسم بن محمدؒ وئیلی دی چه دا په بل آیت سره هم منسوخ شویدے ﴿وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حَافِظُوْنَ اِلَّا عَلٰی اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ فَمَنِ ابْتَغٰی وَرَاءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعَادُوْنَ﴾ (سورة مومنون :٤) ځکه چه متعه نهٔ نکاح ده او نهٔ ملك دے، نو په (وَرَاءَ ذٰلِكَ) کې داخل شوه او پدې قول سره به دغه آیت په مکی سورت کې مدنی وی.

او امام ترمذیؒ د ابن عباسؓ نه نقل کړیدی چه متعه نکاح په ابتداء د اسلام کې رواج وو لیکن کله چه دا آیت ﴿اِلَّا عَلٰی اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ﴾ (المؤمنون: ٦) نازل شو نو د دغه دواړو ښځو نه په غیر نوری ټولې ښځې حرمې شوې. (وسنده ضعيف – البانی)

او د عائشه رضی الله عنها نه ددې سند صحیح ثابت دے. (الحاكم ٢/٣٩٣) وصححه علی شرط الشيخين ووافقه الذهبی).

او ابن عباسؓ به د متعې جواز د مضطر دپاره وئیلو لکه قرطبیؒ وغیره ذکر کړیدی.

او د ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دے چه متعه د طلاق، عدت او میراث په حکم سره منسوخ ده ځکه چه په متعه کې په ښځه باندې دا درے واړه نهٔ وی بلکه د مقرر شوې نیتې نه روستو هغه آزده وی. (القرطبی ١٣١/٥ واحسن الكلام)

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ : اُوس دا خبره بیانوی چه کله خاوند د مهر پوره پیسې ښځې ته ادا کړی، دے نه روستو ښځه که کومې پیسې خاوند ته واپس کړی یا روستو ئے کړی یا ئے هغه ته هدیه کړی یا بعض ورته معاف کړی نو پدې کې هیڅ ګناه نشته او د سری دپاره ئے اخستل جائز دی ځکه د مهر پیسې چه د هغې ملکیت ته راغلې نو د هغې خپله خوښه ده

چه هر چا ته ئې ورکوي ورکولے ئې شي۔ دا داسے آیت دے لکه مخکې (٤) آیت کې تیر شو ﴿فَإِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَيْءٍ مِنْهُ نَفْسًا﴾ او په سورتِ بقره آیت (٢٣٧) کې تیر شوی وو ﴿إِلَّا أَنْ يَعْفُونَ أَوْ يَعْفُوَ الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ﴾۔

دارنګه که سرے د مهر نه زیات ورکوي نو هم جائز ده۔

فِيمَا تَرَاضَيْتُمْ بِهِ مِنْ بَعْدِ الْفَرِيضَةِ : یعني ګناه نشته په تاسو باندے په هغه مال کې چه تاسو یو بل سره راضي شئ په هغې باندے روستو د مقررولو نه چه په هغې باندے څه نور هم زیات کړئ او یا ترے څه کم کړئ۔

عَلِيمًا حَكِيمًا : الله تعالیٰ پوهه دے څکه داسے ښکلے احکام نازلوي او حکیم دے چه که حدود ئې نه وی تاکلی نو ستاسو ژوند به تریخ شوے وے۔

| وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا أَنْ يَنْكِحَ الْمُحْصَنَاتِ |
|---|
| او هغه څوك چه طاقت نۀ لري ستاسو نه د مالدارئ چه نکاح اُوکړي د آزادو ښځو سره |
| الْمُؤْمِنَاتِ فَمِنْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ |
| چه مؤمنے وي نو نکاح دِے اُوکړي د هغه زنانو سره چه مالکان وي ښي لاسونه ستاسو |
| مِنْ فَتَيَاتِكُمُ الْمُؤْمِنَاتِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِإِيمَانِكُمْ بَعْضُكُمْ |
| د هغه وینځو ستاسو نه چه مؤمنے وي، او الله ښۀ پوهه دے په ایمانونو ستاسو، بعض ستاسو |
| مِنْ بَعْضٍ فَانْكِحُوهُنَّ بِإِذْنِ أَهْلِهِنَّ وَآتُوهُنَّ |
| د بعضو نه دي، نو نکاح اُوکړئ د دوي سره په اجازه د مالکانو د دوي او ورکوئ دوي ته |
| أُجُورَهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ مُحْصَنَاتٍ غَيْرَ مُسَافِحَاتٍ |
| مهرونه د دوي په ښه طریقه پداسے حال کې چه وي دا زنانه پاکدامنے، نۀ وي زنا کونکي |
| وَلَا مُتَّخِذَاتِ أَخْدَانٍ فَإِذَا أُحْصِنَّ فَإِنْ أَتَيْنَ |
| او نۀ وي نیونکي پټو یارانو لره، نو کله چه دوي په نکاح کې راوستے شي نو که راتلل اُوکړل دوي |
| بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ |
| په زنا نو وي به په دوي باندے نیمائي هغه سزا چه ده په آزادو ښځو د سزا (دنیوي) نه، |

| ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ وَأَنْ |
| --- |
| دا (د وینځو سره نکاح) دپاره د هغه چا ده چه ویریږی د مشقت (د زنا) نه ستاسو نه او که |
| تَصْبِرُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٢٥﴾ |
| تاسو صبر کوئ (د وینځو د نکاح نه) ډیره غوره ده ستاسو دپاره او الله بخنه کونکے مهربان دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی (بَيَانُ نِكَاحِ الْإِمَاءِ) دے یعنی د وینځو د نکاح بیان۔ وینځے په دوه قسمه دی (۱) خپله وینځه چه په غنیمت کی ورته ملاؤ شی۔ دا په غیر د نکاح نه جائز ده او نکاح ته ئے ضرورت نشته ددے نه چه کوم بچی پیدا کیږی هغه به آزاد حسابیږی او دا به وینځه وی۔ (۲) پردئ وینځه، لکه مثلاً تا سره وینځه ده یو تن تا ته وائی چه دا وینځه دے ما ته په نکاح راکړه نو تهٔ هغه ته دا په نکاح ورکولے شے او مهر به تا ته درکړی نهٔ وینځے ته او تهٔ د هغه وینځے نه خدمت اخستے شے، ستا خدمت به کوی لیکن هغے سره نزدیکت نشے کولے ځکه چه د بل چا په نکاح کی واقع شوه۔ نو پدے نکاح کی نقصان دا دے چه ددے وینځے کوم بچی پیدا کیږی دا به ټول غلامان وی د سید (مالك) دپاره۔ نو ځکه الله تعالیٰ پدے آیت کی منع کړیده چه حتی الوسع د وینځو سره نکاح مهٔ کوئ ځکه چه پدے طریقه غلامان زیاتیږی، او ستا بچے به وی او غلامی به د بل چا کوی۔او بل د وینځو په نکاح کی پوره عفت هم نهٔ راځی ځکه چه وینځے اکثرے ورانکارے وی مګر د انسان کله نا کله دوی ته هم ضرورت راځی نو الله تعالیٰ جائز کړلے۔

**مسئله** : وینځه چه د بل په نکاح کی وی نو نفقه ئے په خاوند باندے نشته بلکه په مالك باندے ده ځکه چه دا وینځه د مالك دپاره بچی راوړی نهٔ د خاوند دپاره۔ دغه شان د بچو نفقه ئے هم په مالك باندے ده نهٔ په خاوند باندے (الفقه علی المذاهب الاربعة ٤/٤٨٤)

**د آیت مطلب** : اے ایمان والو ! که ستاسو د اصیلو مسلمانو ښځو د نکاح کولو وسه نهٔ کیږی چه مالی طاقت مو لږ وی او د هغوی د مهر او د نفقے برداشت نشئ کولے او بل طرفته یریږئ چه چرته زنا کی واقع نشئ، نو د مؤمنو وینځو نه دغه ضرورت پوره کړئ ځکه چه د وینځو مهر په نسبت د اصیلو ښځو کم وی۔ او دارنګه نفقه ئے هم په خاوند نهٔ وی۔ مګر تاسو پدے مکلف نهٔ یئ چه تاسو د هغوی په زړونو باندے خان پوهه کړئ چه زړه کی ئے ایمان شته او که نهٔ بلکه ظاهری اقرار د هغوی د مؤمن کیدو دپاره کافی دے،

ستاسو تـول ایمـانـونـه الله تـه ښـه معلوم دي، تاسو ټول یو شان انسانان یئ نو د وینځو د نـکاح نـه نـفرت مهٔ کوئ. ځکه ایمان یو داسې شے دے چه نور تمام امتیازات ختموي خو شرط دا دے چه وینځے د خپلو مالکانو په اجازه واخلئ ځکه چه د وینځے ولي د هغې مالك وي او په شرعي معروفه طریقه باندې ورته مهرونه ورکړئ یا ئې مالکانو ته ورکړئ. او په ښکاره یا په پټه سره به د هغې سره زنا کول مقصود نهٔ وي.

کـه د وادهٔ نـه روستو وینځے زنا اُوکړي نو هغوي به د آزاد غیر وادهٔ شوے ښځے په نیمائی سزا خوري یعني پنځوس دُرے به وهلے شي. او چونکه رجم نهٔ نیمیږي پدے وجه د وینځو نـه رجـم سـاقطیږي. د وینځے سره د وادهٔ کولو جواز د هغه چا دپاره دے چه هغه یریږي چه ددهٔ نـه چـرتـه زنا اُونشي، لیکن بهر حال صبر کول او د وینځے سره نکاح نهٔ کول ډیر غوره دي دے دپاره چه غلامان زیات نشي.

طَوْلًا : مـفسـرینـو پدے ډیر مصـداقونه بیان کړیدي مګر اکثرو د مال په فراخوالي سره تفسیر کړیدے. (قرطبي ۱۳٦/۵)

وَلَا مُتَّخِذَاتِ أَخْدَانٍ : أَخْدَان جمع د خِدْنٌ او خَدِیْنٌ ده، پټ یار تـه وائـي چه د هغې په یاري بنده شرمیږي.

## د زنا قسمونه

پـه جـاهلیت والا عربو کې به ښځو دوه قسمه زنا کوله یوه ښکاره چه په کور باندے به ئې سرے جنډے لګولے وے او خلك به هغې ته ورتلل او دا کار به خلکو ته شرم ښکاره کیدو.

(۲) او دویم خصوصي زنا وه چه یوے زنانه به ځان دپاره په پټه یو یار ونیولو او د هغې سره بـه ئې بې حیائي کوله او دا به ورتـه بده نهٔ ښکاره کیده او خوك پرے نهٔ شرمیده نو دلته په (مُسَافِحَات) کې اول قسم زناکاري ښځے مراد دي او په (مُتَّخِذَاتِ أَخْدَانٍ) کې دویم قسم.

یا مسافحات هغه وے چه هر چا سره به ئې زنا کوله او اخدان والا هغه وے چه یو تن سره به ئې زنا کوله. (قرطبي)

نـو الله فـرمـائـي : دا دواړه قسمه وینځے په نکاح اخستل حرام دي اګرکه مسلمانه وي. دا آیـت او دغـه شان د سورة النور (۳) آیت ﴿اَلزَّانِيُ لَايَنْكِحُ اِلَّا زَانِيَةً﴾ دلیـل دے چه نکاح د زناکارے ښځے سره حرامه ده اګرکه مسلمانه وي خو پاکدامنه نهٔ ده او ددے په حکم کې کتـابیـه زنانـه هم ده چه که زناکاره وه نکاح ورسره جائز نهٔ ده ترڅو چه توبه ئې ویستلے نهٔ

وی۔
فَإِذَا أُحْصِنَّ : یعنی کله چه دغه وینځې د چا په نکاح کې راشي او بیا ترې زنا وشي نو نیمائي سزا به ورکولې شي۔ احصان دلته په نکاح کې راتللو ته وائي۔
او ځینې علماء وائي چه احصان دلته اسلام ته وائي معنیٰ دا ده چه کله (دغه نکاح والا وینځې) مسلمانې شوې (په هغه صورت کې چه دوی د نکاح په وخت کې کتابیې وی) نو بیا به ئې هم په وخت د زنا کې نیمه سزا وی۔ (اللباب وعزیز التفاسیر)
الْعَنَتَ : عنت څه ته وائي؟
د عنت اصل معنیٰ ده: هډوکے ماتول روستو د روغیدو نه او کله په معنیٰ د مشقت سره وی، او دلته ترې شَبَق یعنی سخت شوق مراد دے چه د هغې په سبب په زنا کې واقع کیږي۔ (البحر المحیط ۴۹۹/۳)۔
حافظ ابن کثیرؒ وئیلي دي چه مراد دا دے چه نکاح د وینځو سره په مخکنو شرطونو سره هغه چا له جائز ده چه د زنا کولو نه په ځان باندې یریږي او د جماع نه صبر کول ورته گران وی۔
وَأَنْ تَصْبِرُوا : اَیْ عَنْ نِکَاحِ الْإِمَاءِ۔ یعنی که تاسو د دغه مشقت برداشت وکړئ او د وینځو د نکاح نه صبر وکړئ نو دا ستاسو دپاره ډیره غوره ده، پدې کې ډیرې فائدې دي، یو خو به ستا بچې چه پیدا کیږي هغه به دې خپل وی او د وینځې سره په نکاح باندې بچي پردي کیږي لکه سیدنا عمر فاروق ﷺ فرمائي: کوم یو آزاد شخص چه وینځه په نکاح کړه نو یقیناً چه هغه خپله نیمه برخه مملوکه کړه۔ (قاسميؒ)
بله وجه دا ده چه وینځه کې عفت کم وی نو د خاوند پاکي پرې کمه راځي لکه په یو ضعیف روایت کې راغلي دي: (مَنْ أَرَادَ أَنْ یَلْقَی اللّٰهَ طَاهِرًا مُطَهَّرًا فَلْیَتَزَوَّجِ الْحَرَائِرَ)

(سنن ابن ماجه ١٨٦٢) وفیه سلام بن سوار متروك الحدیث، البانی)

ښوك چه غواړي چه د الله سره پاك صفا ملاؤ شي نو آزادې ښځې دې په نکاح کړي۔

| يُرِيدُ اللّٰهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِيْنَ |
|---|
| اراده لري الله چه بیان کړي تاسو ته (احکام خپل) او وښائي تاسو ته لارې د هغه کسانو |
| مِنْ قَبْلِكُمْ وَيَتُوْبَ عَلَيْكُمْ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿٢٦﴾ وَاللّٰهُ |
| چه مخکې دي ستاسو نه او مهرباني کوي په تاسو او الله پوهه حکمتونو والا دے۔ او الله |

| يُرِيْدُ أَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْكُمْ وَيُرِيْدُ الَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ |
|---|
| اراده لري چه مهرباني اوکړي په تاسو او اراده لري هغه کسان چه تابعداري کوي |
| الشَّهَوَاتِ أَنْ تَمِيْلُوْا مَيْلًا عَظِيْمًا ﴿۲۷﴾ يُرِيْدُ اللهُ |
| د خواهشاتو چه واوړئ تاسو (د حق نه) په اوړيدو لوی سره۔ اراده لري الله |
| أَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ وَخُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيْفًا ﴿۲۷﴾ |
| چه آساني راولي په تاسو او پيدا کړے شويدے انسان کمزورے۔ |

**تفسیر : مضمون** : په ذکر شوی درے آیتونو کی الله تعالیٰ ترغیبات بیانوی چه پدے احکامو عمل وکړئ او احسان ذکر کوی چه آسان احکام مے درلیږلی دی نو عمل پرے وکړئ۔ بیا الله بل قانون بیان کړیدے چه پردی مالونه په حرام او باطلو طریقو سره مهٔ خورئ او د قتل نه ئے منع کړیده، چه دواړو کی د مال او د نفس حفاظت دے، بیا په (۳۰) آیت کی ئے د ایمان حفاظت ذکر کړیدے چه هغه د کبیره گناهونو نه ځان ساتل دی۔ بیا په (وَلَا تَتَمَنَّوْا) کی د حسد او آرزوګانو نه منع شویده بیا په (وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا) کی مسئله د عقدِ موالات او د اصحاب الموالاة د میراث ده، بیا بل قانون دے چه د کور حاکم او مشر به سړے وی نهٔ ښځه۔ بیا د زنانو تقسیم دے دوه قسمونو ته نیکانی او بد اخلاقه۔ د بد اخلاقو ښځو پنځه علاجونه ئے بیان کړیدی چه پدے سره کور جوړیږی۔ بیا روستو الله تعالیٰ خپل حقوق او د عامو بندګانو حقوق بیان کړیدی چه تفصیل به ئے هلته راشی بیا ئے په نیمه رکوع کی رد په منافقانو کړیدے ځکه چه دوی دا احکام نهٔ منل او دا حقوق ئے نهٔ ادا کول د هغوی د دنیا او د آخرت سزا بیانوی۔

يُرِيْدُ اللهُ : اُوس ددے ځای نه الله تعالیٰ د څه شبهاتو جوابونه کوی چه د کافرانو زړونو ته راځی، شبهات دا دی :

(۱) : پدے کی څه فائده ده چه الله تعالیٰ په مونږ باندے خینی زنانه حرامے کړے ؟

(۲) آیا دا احکام صرف په مونږ لازم شویدی او که په پخوانو هم وو ؟ (۳) آیا دا کار په مونږ باندے حرج نهٔ دے؟ (٤) آیا دا کار د نعمتونو نه محرومول نهٔ دی؟۔ (٥) الله مونږ دغسے آزاد ولے نهٔ پریښودو چه د کفارو په شان په آزادئ سره خپل شهوات پوره کړو؟ نو دلته ددے ټولو سوالاتو جواب دے۔

یرید الله : اَیْ بِذِکْرِ هٰذِهِ الْاَحْکَامِ. یعنی الله تعالیٰ په ذکر کولو ددے احکامو سره اراده لری۔

لِیُبَیِّنَ لَکُمْ : ددے مفعول پټ دے [اَیْ لِیُبَیِّنَ لَکُمْ شَرَائِعَ دِیْنِکُمْ]۔

دے دپاره چه تاسو ته ستاسو د دین احکام بیان کړی۔ دا تفسیر هم جائز دے مګر ددے نه غوره تفسیر د عطاءؒ دے چه هغه وائی : [لِیُبَیِّنَ لَکُمْ مَا یُقَرِّبُکُمْ مِنْهُ]۔ هغه څه درته بیانوی چه تاسو الله تعالیٰ ته نزدے کوی۔ یعنی دا د الله تعالیٰ د قرب سبب دے ځکه چه څوك پدے ګندګیانو کې واقع شي نو د الله نه به لرې شي او دا د بنده لوی تاوان دے۔

وَیَهْدِیَکُمْ سُنَنَ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِکُمْ : یعنی الله تاسو پدے احکامو سره په طریقو د هغه انبیاؤ (ابراهیم علیه السلام وغیره) باندے روانوی چه هغوی باندے الله تعالیٰ رحمتونه کړی وو نو تاسو ته دغه احکام رالیږی دے دپاره چه تاسو دا احکام د هغوی په شان عملی کړئ او د هغوی په شان رحم درباندے وشي او د جاهلیت د رواجونو نه محفوظ شئ۔ نو دا ډیر کامل ترغیب شو چه یو خو الله تعالیٰ تاسو ته د خپل قرب او نزدیکت احکام رالیږی او بل مو د انبیاؤ علیهم السلام په لاره روانوی۔

یَهْدِیَکُمْ : هدایت یوه معنیٰ ده روانول او بله معنیٰ خودل دی۔

سُنَنَ : جمع د سنت ده، دلته ترے طریقه مراد ده۔ او بیا ددے (۱) یو مطلب دا دے چه دغه احکام بعینه په مخکنو شریعتونو کی هم وو (اللباب)

او علامه قاسمیؒ وائی چه داسے احکام په پخوانو هم وو او ما د تورات سفر الاحبار اللاویین اتلسم فصل کی لوستلی دی چه ددے تائید کوی۔ (محاسن التاویل ۲/۲۷۴)

(۲) یا دا چه په پخوانو باندے ددے په شان احکام وو په مصلحتونو کی۔ نو دلته به جنس یا مثل لفظ پټ وی (آلوسیؒ) اول قول اصح دے۔

وَیَتُوْبَ عَلَیْکُمْ : کومو علماؤ چه د توبی په صحیح معنیٰ کی فکر نهٔ دے کړے نو هغوی ددے داسے تاویلات کوی : (۱) یتوب علیکم : اَیْ یَتَجَاوَزُ عَنْکُمْ مَا اَصَبْتُمْ قَبْلَ هٰذَا۔ یعنی تاسو نه که مخکی کوم ګناهونه ددے احکامو په باره کی شوی وی هغه درته معاف کوی، او د ګناه نه مو راواپس کوی۔ (قاسمیؒ)

(۲) څینی وائی : یُوَفِّقُکُمْ لِلتَّوْبَةِ ۔ (معالم التنزیل للبغویؒ) تاسو ته د توبی توفیق درکوی۔ لیکن دا دواړه معانی دلته پوره طریقے سره نهٔ لګی۔

(۳) غوره معنیٰ دا ده چه توبه دیته وائی چه بنده د الله تعالیٰ په طاعت کی استعمال

شي. نو پدې کې معنیٰ د رجوع شته ځکه چه غلطه لاره ترې پاتې شوه او صحيح لارې ته راواپس شو. يعنې الله اراده لري چه تاسو په خپل طاعت کې استعمال کړي او د هغه د طاعت نه بهر نشئ.

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ : په ذکر شوي احکامو کې الله ستاسو د غرائزو پوره لحاظ ساتلې دے نو که تاسو اوس په خپل مراعات باندې نۀ پوهيږئ نو دومره خان پوهه کړئ چه الله عليم دے ستاسو ټول ضروريات ورته معلوم دي او هم حکمتونو والا دے چه هيڅ حکم ئے بغير د حکمت نه نۀ دے نو هرکله چه تاسو پدې دوه عقيدو باندې کلك ودريږئ نو د دشمنانو د اعتراضاتو او شبهاتو نه به خلاص شئ.

وَاللّٰهُ يُرِيْدُ أَنْ يَّتُوْبَ : دا ئے دوباره د تاکيد دپاره راوړو چه مؤمن پدې خوشحاليږي چه د الله په بندګئ کې استعمال شي. O او دا ئے دوباره پدې وجه هم راوړو چه روستو د (وَيُرِيْدُ الَّذِيْنَ) سره ئے مقابله بيانوي. او د هغې دپاره مقدمه ده يعنې د الله اراده دا ده چه تاسو په خپل طاعت کې استعمال کړي او د شهواتو والا اراده دا ده چه تاسو د الله د طاعت نه بيخي واوړئ. نو اوس ستاسو خوښه ده چه کومه لاره اختياروئ. (تفسير السعدي)

O يا دا چه دلته د توبې نه مراد مهرباني ده. يعنې الله پدې احکامو سره په تاسو مهرباني کوي هغه دا چه يو طرفته د شهواتو د پوره کولو موقعې درکوي او بل طرفته په هغې باندې اجرونه او ثوابونه هم درکوي نو ((هم ثواب او هم خرما)).

وَيُرِيْدُ الَّذِيْنَ : الله تعالیٰ په تاسو رحم کول غواړي او ستاسو دشمنان کوم چه شهوت پرست دي هغوي غواړي چه تاسو د رحمت نه ډير لرې شئ او د سلفو صالحينو لاره پريدئ او د جاهليت په رواجونو او ګندونو اخته شئ، هغوي خپله خاروي او چارپيان دي نو غواړي چه تاسو هم د هغوي په شان شئ. يعنې يا به د الله منئ که نۀ وي نو د خواهشاتو او شهوت پرستو خلکو په جال کې به راګير شئ.

.يَتَّبِعُوْنَ الشَّهَوَاتِ : ددې نه څوك مراد دي؟ ځينې وائي چه ددې نه مجوس مراد دي چه د محارمو سره نکاح جائز ګنړي.

(٢) او ځينې وائي چه ددې نه مراد يهود او نصاریٰ دي چه په ټول عالَم کې د دوی دلاسه بې حيائي خوره ده. (السُدیؒ) (٣) ځينې وائي زناکار خلك مرادي. (مجاهدؒ)

(٤) ليکن ظاهر دا ده چه آيت ټولو ته شامل دے (ابن زيدؒ) او دا ټول خلك څوك په زنا سره خلك د الله نه اړوي، څوك په عملِ قوم لوط سره لکه ددې دپاره قوانين پاس کوي چه

د هلکانو سره واده کول جائز دي لکه د یورپ ممالکو کې دا قصې موجودې دي. او ځینې کفار په تصاویرو او د موسیقۍ په آلاتو او په انټرنیټ او کیبلو سره خلك د الله نه اړوي، ماشومانو ته داسې دوائي ورکول چه زر زر بالغ شي او شهوات ئې په لاس کې نیولي وي او تباهۍ طرفته روان وي، او هیڅ پابندي پرې نۀ وي، دا (مَيْلًا عَظِيْمًا) دې. نو په دین باندې عمل کولو کې د بنده اخلاق، عزت، عفت او صحت ټول باقي پاتې کیږي او په خواهشاتو سره ختمیږي. دارنګه یهودیان غواړي چه د پلار او د مور د خویندو (ترورېانو) سره دې نکاح جائز شي، او مشرکان اراده لري چه د میړې مور سره دې نکاح جائز وي او مجوسیان وائي چه هرکله چه د وریرې او خورزې سره نکاح حرامه ده نو پکار ده چه د ترۀ او د ماما لور سره هم حرامه شي.

مَيْلًا عَظِيْمًا : میل (میلان) دې ته وائي چه انسان د نیغې لارې نه واوړي او د مغضوب علیهم لارې ته واپس شي. (سعدیؒ) او پدې کې اشاره ده چه مؤمن نه هم کله کله ګناه کیږي ځکه نا ځه میلان پکې پیدا کیږي لیکن د باطل پرستو سره پوره موافقت کول او ګناهونه خانسته او حلال ګنړل دا پوره میلان دې. O دارنګه (مَيْلًا عَظِيْمًا) دا هم دې چه انسان د د الله او د هغه د شریعت او د عقل او فطرت ټولو نه واوړي)

يُرِيْدُ اللهُ أَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ : یعني الله تعالیٰ پدې احکامو سره په تاسو باندې آساني راوستل غواړي ځکه چه الله تعالیٰ ته ستاسو کمزورتیا معلومه ده پدې وجه ئې خاص یو څو محدود ګروپونه حرام وګرځول او باقي ټولې زنانه ئې درته حلالې کړې تر څلورو پورې او ددې نه علاوه د وینځو نکاح ئې هم درته جائز کړه او ستاسو د عفت او پاکدامنۍ ساتلو لحاظ ئې وکړو.

**فائده** : الله تعالیٰ (يَتُوْبَ عَلَيْكُمْ) جمله دوه کرته ذکر کړه دې دپاره چه مؤمنانو ته اطمینان ورکړي چه که دوي پدې مخکنو احکامو او حدودو کې خطا شي نو الله توبه قبلونکې دې نو امید دې چه ددې احکامو په عملي کولو کې به کامیاب شي. او دارنګه دا اطمینان ئې پدې جمله (أَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ) سره نور هم مضبوط کړو چه الله په تاسو باندې داسې تکلیف نۀ ږدي چه د هغې بوج تاسو نۀ شئ برداشت کولې او یا پکې ډیر زحمت وي بلکه دغه آسان احکام دي.

**فائده ۲:** د تخفیفونو څو مثالونه

زمونږ امت مسلمه د پخوانو امتونو په شان د درنو احکامو نه خالي دې لیکن کفارئې د

خلکو په دماغو کې درانهٔ ښکاره کوي او ساده ګان مسلمانان تیرباسي چه د اسلام احکام ډیر درانـه دي دے دپاره چه د آزادئ په نوم سره ئے د اسلام نه بیزاره کړي. نو مونږ د نکاح متعلق قوانینو کې د اسلام د آسانئ څو مثالونه ذکر کوو:

(۱) اسـلام د یوے ښځے نه تر څلورو پورے اجازه ورکړیده. د مسلمان د خواهشاتو لحاظ ئے ساتلے دے. که داسے ئے وئیلي وے چه نکاح به نهٔ کوئ نو څومره به ګرانه وه.

(۲) د څوارلس قسمه زنانو نه علاوه تولې ئے حلالے کړے.

(۳) د وینځو د نکاح اجازه ئے ورکړیده.

(٤) د یتیمو جینکو سره ئے د نکاح اجازه ورکړه.

(۵) که دا ئے وئیلي وے چه مهر بالکل نهٔ معاف کیږي نو هم ګرانه به وه.

(٦) د احادیثو نه ثابته ده چه د نکاح په نیت پردئ ښځے ته کتل جائز دي.

(۷) د احـکـامـو حـکـمـتونه ئے وخودل دے دپاره چه مسلمانانو ته ددے احکامو آسان والے معلوم شي.

(۸) د تـقـصـیـراتـو نه د توبې قبلول هم ډیره لویه آسانی ده، مګر د اسلام دشمنان همیشه پدے تخفیفاتو باندے سترګے پټوي. (راجع عزیز التفاسیر بتصرف)

وَخُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيفًا: انسان ځکه ضعیف دے چه اسباب د شهوت او د لذت ئے زیات دي نـو د هغے د دفع کولو نه عاجز دے ځکه چه عزم او همت ئے کمزورے دے او نفس ئے هم ضعیف دے. (قاسمی)

ددهٔ خـواهـش دهٔ لـره مـائـلـه کـوي او غـضـب ئے سپکوي او دا ډیره کمزورتیا ده پدے وجه تخفیف ته محتاج دے.

(۲) طاووسؒ وائي: ضَعِيفًا اَیْ فِیْ اَمْرِ النِّسَاءِ لَا يَصْبِرُ عَنْهُنَّ: (ابن ابی حاتم– قاسمی)

د ښـځـو په باره کې عاجز دے د هغوی نه صبر نشي کولے. او طاووسؒ دا هم وائي: انسان په هیڅ شي کې دومره ضعیف نهٔ دے څومره چه د ښځو په باره کې دے. (قرطبی)

او ددے نـه مـعـلـومـه شوه چه دین اسلام د ټولو دینونو نه غوره دے ځکه چه د انسانانو د حالت سره پوره مناسب دے. (احسن)

## د انسان د ضعف

انسان اګرکه په زمکه باندے خلیفه دے او د زمکے په څیزونو باندے حکومت کوي

لیکن د شهوت په مقابله کې ډیر کمزوري دي، پدې وجه یهودیان او نصارئ (کفار) وائي چه یوه ښځه د اسلام د تخریب او د عیسویت د ترویج دپاره دومره کار کولې شي چه سل تنه نارینه هغومره کار نشي کولې۔

سعید بن المسیب رحمه الله وائي چه زما عمر اتیا کالو ته رسیدلې دې او یوه سترګه مې ړنده ده خو په همدغه حالت کې هم زهٔ په خپل ځان باندې د بل شي نه نهٔ یریږم چه په ګناه کې به مې اخته کړي لکه څومره چه د ښځو نه یریږم۔ (تفسیر الکشاف ۵۰۱/۱ والقرطبي)

د عباده بن صامت ﷺ نه قرطبيؒ وغیره نقل کړیدي: ما خو تاسو ګوريٌ چه انتهائي درجه بوډا یم او ملګرې (تناسلي آله) مې ړنده کنه ده خو په دغه حالت کې هم یریږم چه د غیر محرمې زنانه سره یواځې شم نو شیطان به راشي او مړ ملګرې به مې راژوندې کړي او په ګناه به مې ککړ کړي۔ (القرطبي ۱۴۹/۵)

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ |
| اې ایمان والو! مهٔ خورئ مالونه خپل په مینځ خپل کې په ناروا ؤ لیکن چه وي دغه طریقه |
| تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ وَلَا تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُمْ |
| د تجارت په رضا سره ستاسو نه او مهٔ وژنئ ځانونه خپل بیشکه الله دې په تاسو |
| رَحِيمًا ﴿۲۹﴾ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ عُدْوَانًا وَظُلْمًا فَسَوْفَ |
| مهربان۔ او چا چه اُوکړو دا کار په تجاوز سره او په ظلم سره نو زر دې |
| نُصْلِيهِ نَارًا وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا ﴿۳۰﴾ |
| چه مونږ به داخل کړو هغه لره اُور ته او دې دا کار په الله باندې آسان۔ |

**تفسیر : ربط** : مخکې د عزت د حفاظت احکام وو او د یتیمانانو او د زنانو حقوق ذکر وو اُوس د خلکو د مالونو د حفاظت احکام راوړي۔

بِالْبَاطِلِ : باطل د حق په مقابله کې استعمالیږي نو هر شے چه ثبات او قرارې ونهٔ لري هغه د باطل په نوم یادیږي (مفرداتِ راغب ص۴۸) نو پدې مقام کې د باطل نه ټولې هغه ناحقه طریقې مراد دي چه په هغې سره مالونه حاصلیږي لکه غلا، بیع الغرر (د دوهوکې سودا) غصب، جواري، خیانت، رواجي خوارکونه چه د بنده خپل مال وي لیکن په غلطه

طریقه ئے استعمال کړي، غلط بدعي خیرات پرے وکړي نو باطل شو، خاص وخت ورله مقرر کړي او هغه عبادت وګڼي۔ دارنګه ټول پردي مالونه خوړل په خیانتونو او انکار وغیره سره۔ دارنګه د جاهلیت بیوع لکه بیع الحَصَاة، بیع مُلَامَسَه، بیع مُنَابَذَه او بیع حَبَلِ الْحَبَلَه وغیره دا ټول بیوع باطل دي۔

اِلَّا اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً : (تکون) کي ضمیر مخکي معاملے ته یا مالونو ته راجع دے۔

**سوال** : د حلال مال د حاصلولو خو ډیرے طریقي دي لکه میراث، هبه، تجارت، مهر وغیره نو څه وجه ده چه دلته صرف تجارت ذکر شو؟۔

**جواب** : پدے کي اشاره ده چه د مالونو د حاصلولو دپاره ډیره ښه لاره تجارت دے۔

الا ان تکون : دا استثناء منقطع ده په معنیٰ د لٰکِنْ سره۔

عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ : دا متعلق دے په (صَادِرَةً) مقدر پورے یعني چه دا تجارت صادر وي د رضا مندي ستاسو نه۔ او تراضي قید ئے پدے وجه ولګولو چه په جاهلیت والو باندے رد وشي هغوی به بیع الْحَصَاة او مُلَامَسَه او مُنَابَذَه کوله چه په هغے کي به رضا نهٔ وه، مالك به یو شے ګاهك ته راواخستو نو هغه به لازم شو، یا به اخستونکي په یو شي باندے کاڼړے وېشتو یا به ئے ګوتے وروړے نو د هغے اخستل به پرے لازم شو اګرکه هغه به خراب شے وو، نو اسلام کي دا قانون راغلو چه دواړه اخستونکي خرڅونکي به په رضا سره معامله کوي او خیار مجلس به هم باقي وي که په دے مجلس کي هر یو پښیمانه شو نو بیع به سرته نهٔ رسیږي۔

د ځان وژل حرام دي

وَلَا تَقْتُلُوْا اَنْفُسَكُمْ : د ځان وژل ولے حرام دي؟ ځکه چه پدے کي د الله تعالیٰ د فراخه رحمت نه نا امیدي ده چه پدے سره ئے الله تعالیٰ جهنم ته داخلوي۔

(اَنْفُسَكُمْ) نه مراد همجنس دي یعني نور مسلمانان مهٔ وژنئ او داسے ئے وګڼړئ لکه خپل ځانونه۔

یا د اَنفس نه مراد خپل ځانونه وژل دي نو ددے بیا ډیر صورتونه دي :

(۱) بِالسَّيْفِ وَالسِّنَانِ : یو دا چه د دنیا د څه مشکلاتو د وجه نه خپل ځان په توره، نیزه وغیره قتل کړي، لکه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چه په پخوانو امتونو کي یو سړے وو چه په لاس ئے څه زخم وو کله چه زخم ډیر وار خطا کړو نو خپل لاس ئے پریکړو او وینه ئے

ونهٔ دریده تردے چه مړ شو نو الله وفرمایل: (بَادَرَنِي عَبْدِيْ بِنَفْسِهٖ حَرَّمْتُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ)۔ (صحیح البخاری ۱/ ٤٩٢) یعنی ما ته خپل بنده خپل ځان په جلتئ سره راوستو خو ما پرے جنت حرام کریدے۔

(۲) بالإلقاء إلى التهلكة۔ د هلاکت ځای ته ځان غورزول لکه په حدیث کی دا معنیٰ راغلے ده، سیدنا عمرو بن العاص ﷺ په غزا د ذات السلاسل کی امیر وو نو احتلام ئے وشو، اُویه ډیرے یخے وے نو هغه اودس او تیمم وکړو او ملګرو ته ئے مونځ وکړو، ملګرو ورته ووېل په جنابت کی دے مونځ وکړو، هغه ووېل: همدغسے مے وکړو، ملګری بیا رسول الله ﷺ ته راغلل شکایت ئے وکړو نو هغه عمرو بن العاص ﷺ راوغوښتو، هغه ورته ووېل: اے د الله رسوله! اُویه ډیرے یخے وے او ما د الله نه آوریدلی وو چه (وَلَا تَقْتُلُوْا اَنْفُسَكُمْ) تاسو خپل ځانونه مهٔ وژنئ۔ نو ما تیمم ووهلو او مونځ مے وکړو: (فَضَحِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ وَلَمْ يَقُلْ شَيْئًا) نو رسول الله ﷺ وخندل او هیڅ ئے ونهٔ وېل۔ (سنن ابی داود ۱/ ٤٨)

(۳) لَا تَقْتُلُوْا اَنْفُسَكُمْ بِتَرْكِ التِّجَارَةِ۔ ځانونه مهٔ وژنئ پدے طریقه چه تجارت پریدئ بلکه همت وکړئ او تجارت وکړئ خپل ځان او بچو له نفقه پیدا کړئ۔

(٤) لَا تَقْتُلُوْا اَنْفُسَكُمْ بِاَكْلِ اَمْوَالِ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ۔ پردے مال چه دے وخوړو داسے شو لکه چه ځان دے مړ کړو۔ نو د مال په حاصلولو کی روا او ناروا ته وګورئ او خپل ځانونه پرے مهٔ ګناهګاروئ ګنے د دوزخ مستحق به شئ۔

(٥) د مالونو په حاصلولو کی دومره مشقتونه مهٔ برداشت کوئ چه د خپلے وسی نه مو اُوچت وی او ځانونه وربانده مړهٔ کړئ او داسے کارونه وکړئ چه مرګ ته پرے ورسیږئ۔ دا ټول مطلبونه په آیت کی مراد کیدے شی مګر ظاهر اول او دویم مطلب دے۔

ذلك: پدے کی اشاره دغه قتل ته، یا ټولو ذکر شوو کارونو ته اشاره ده (یعنی د یتیمانانو مالونه خوړل، نکاح د یتیمانانو جینکو سره، پردی مالونه په باطله خوړل او قتل ته)

عُدْوَانًا وَّظُلْمًا: عدوان د حد نه تیروتلو ته وائی او ظلم زیاتی ته وائی نو عدوان متعدی ګناه ده او ظلم لازمه ګناه ده۔ نو معنیٰ دا چه هر څوك چه ذکر شوی احکامو کی په بل چا باندے تجاوز وکړی چه یا ئے مالونه هلاك یا ئے قتل کړی او یا په خپل ځان باندے زیاتے وکړی چه خپل مالونه په جنایتونو کی ولګوی یا پرے خپل ځان قتل کړی یا ئے په معنوی طریقه هلاك کړی چه د الله د غضب مستحق ئے جوړ کړی نو د داسے خلکو اُور ته داخلیدل یقینی دی، دا بیا بیله خبره ده چه حلال ګنړونکے به پکی همیشه وی او ګنهګار

به ترې یو وخت کې راویستلې شي.

بل فرق دا دې چه عدواناً دې ته وائي چه یو شې ابتداءً جائز وي لیکن زیات په کې حرام وي لکه مثلاً په وړوکې نهر کې لامبل جائز دي یو سړے ځان د سمندر مینځ ته بوځي او مړ شي نو عدوان ئې وکړو. او ظلم دا دې چه په چاړه باندې ځان ووهي یا په توپک چه په هغې کې ابتداءً حرمت دې.

او دا دوه قیدونه ئې پدې وجه ولګول چه کله یو تن دا کارونه په سهوه او خطائي سره وکړي نو هغه ماخوذ نه دې لکه ځان په خطاء سره قتل کړي.

وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيرًا : دا ئې ولې ویل چه دا کار په الله آسان دې؟.

پدې کې مسلمانانو ته یره ورکوي چه هسې نه دوي دا ګمان وکړي چه مسلمانان خو الله ته ګران دي نو دوي به اُور ته نه داخلوي ځکه چه دا کار به الله ته ګران وي نو الله فرمائي : چه دا کار په الله آسان دې ځکه چه تاسو په چا ظلم او تجاوز کړے وي نو د هغوي انتقام به درنه ضرور اخلي.

| إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَآئِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ |
|---|
| که ځان وساتئ تاسو د لوئې ګناهونو هغونه چه منع شوي يئ تاسو د هغې نه نو مونږ به ورژوو |
| عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَنُدْخِلْكُمْ مُدْخَلًا كَرِيمًا ﴿٣١﴾ |
| ستاسو نه واړه ګناهونه ستاسو او داخل به کړو تاسو لره ځای د داخلیدو عزتمند ته. |

**تفسیر** : پدے آیت کې الله تعالیٰ د کبائرو ګناهونو نه منع کړیده او زیرے ئې ورکړیدے په معاف کولو د وړو ګناهونو. په هغه اتو آیتونو کې یو آیت دا هم دے چه د امت دپاره پکې زیرے پروت دے. الله پدے کې وعده کړیده چه د کبیره ګناه نه ځان وساته نو صغیره به درته همداسے معاف کوم بغیر د توبې نه او جنت ته دے هم داخلوي.

ربط : مخکې د نفس حفاظت وو نو اُوس دلته د ایمان حفاظت ذکر کوي.

## د ګناهونو اقسام

ددے آیت نه معلومه شوه چه ګناهونه دوه قسمه دي : یو قسم صغائر دي او بل کبائر. چه د دوي ترمینځ په قرآن او احادیثو کې څه حد فاصل نه دے ذکر شوے چه فلانې ګناهونه صغائر او فلانې کبائر دي اګرکه په احادیثو کې ځینو ګناهونو ته کبائر وئیل

شویدی په بعضو کی درے او په بعضو کی اوه او په بعضو کی اویا خودلے شویدی او ځینو تر اوه سوو پورے ذکر کړیدی چه هغه په مشکاة المصابیح، تفسیر الدر المنثور (۲/ ۵۰۰) او تفسیر ابن کثیر (۱/ ۴۸۱) او الکبائر د الذهبیؒ او الزواجر عن اقتراف الکبائر د هیثمیؒ کی کتلے شی. البته علماء کرامو ددے د فرق دپاره مختلف قسم تعریفونه کړیدی چه تقریباً پنځلسو ته رسیږی. (۱) ځینی علماء وائی چه دلته توقف بهتر دے دے دپاره چه څوك یوے گناه ته هم په سرسری نظر ونهٔ گوری چه دا صغیره ده پدے وجه الله تعالیٰ پټ کړیدی. او همدا اظهر قول دے.

(۲) ځینی وائی چه په کوم د اُور یا د حد یا د غضب یا د لعنت وعید بیان شوے وی نو هغه به کبائر وی باقی صغائر دی.

(۳) عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی :

(لَا كَبِيْرَةَ مَعَ الْإِسْتِغْفَارِ وَلَا صَغِيْرَةَ مَعَ إِصْرَارٍ) لویه گناه د استغفار سره لویه نهٔ پاتی کیږی او وړه گناه چه همیشوالے پرے کیږی وړه نهٔ پاتی کیږی (بلکه غټیږی). یعنی لویه گناه په استغفار سره کمیږی او چه وړه شی نو بیا ختمیږی او وړه گناه چه همیشه کیږی نو غټیږی تردے چه لویه گناه ترے جوړه شی.

(۴) ځینی وائی چه یوه گناه به د خپل ذات په اعتبار سره وړه وی لیکن په نظر سره بلے ته به لویه وی، دغه شان بل طرفته واخله. دارنگه د گناهونو وړوکوالے او غټ والے د اوقاتو او اشخاصو په اعتبار سره بدلیږی رابدلیږی لکه چه وئیلے شی : حَسَنَاتُ الْأَبْرَارِ سَيِّئَاتُ الْمُقَرَّبِيْنَ. د نیکانو حسنات د مقربو خلکو دپاره گناه گڼل کیږی.

(۵) دمالك بن مِغْوَل نه نقل دی چه د اهل سنتو گناهونه صغائر دی او د اهل بدعت گناهونه کبیره دی.

(۶) ځینی وائی چه په جرأت سره وشی کبیره ده او چه په یره یره وشی نو صغیره ده.

لیکن حقه خبره دا ده چه د کبیره او صغیره تعیین او تعریف قرآن او حدیث نهٔ دے کړے دے دپاره چه بندگان ویریږی لکه د ترغیب دپاره الله تعالیٰ د لیلة القدر شپه پټه ساتلے ده، د جُمعے په ورځ د اجابت وخت پټ دے، اسم اعظم پټ دے. لیکن رسول الله ﷺ چه کومو گناهونو ته کبائر وئیلی دی نو هغه او هغے ته ورته (مشابه) گناهونه کبائر دی او باقی صغائر دی.

او باقی تفصیل دپاره زمونږ کتاب «الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح ۱/ باب الکبائر

وعلامات النفاق)) ته رجوع بهتره ده.

**فائده:** معتزله ددې آیت نه دلیل نیسي چه آیت کې راغلل چه که تاسو د لویو گناهونو نه ځان ساتئ نو واړه به درته معاف کوم نو مفهوم ئې دا دې چه که د لویو گناهونو نه ځان نۀ ساتئ نو واړه به درته نۀ معاف کوم. نو ددې نه معلومیږي چه دا شخص په کبیره گناه کافر دې ځکه ئې واړه گناهونه نۀ معاف کیږي. لیکن د عام اهل سنت والجماعة عقیده دا ده چه په کبیره گناه باندې (سِویٰ د شرك او کفر نه) بنده نۀ کافر کیږي او هرچه دا آیت دې نو پدې کې الله تعالیٰ یو طرف ذکر کړیدې چه د لویو گناهونو نه ځان ساتلو سره واړه گناهونه معاف کیږي او بل طرف نه الله تعالیٰ سکوت کړیدې او هغه دا چه چا لوی گناهونه وکړل نو آیا صغیره به ئې معاف کیږي او که نۀ؟ نو د نورو شرعي دلائلو نه معلومیږي چه که بنده کبائر کوي هم صغائر ئې معاف کیږي لکه فرضي مونځونه او نور عبادتونه د گناهونو د مغفرت اسباب جوړیږي.

خودلته ئې دا قید پدې وجه لګولې دې چه بندګان د لوی گناهونو نه ځان وساتي پدې طمع چه صغائر به مو معاف شي. یعني د کبائرو نه د ځان ساتنې دپاره دا امتیاز وخودل شو چه صغائر ورسره معاف کیږي خو دا نۀ دي ویل شوي چه د صغائرو او د کبائرو د بخښلو بله لاره نشته، بلکه کله چه د الله اراده وشي نو ټول گناهونه بې قید او شرطه هم بښي لکه الله فرمائي: ﴿إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ﴾ (الزمر: ۵۳) یقیناً الله تعالیٰ ټول گناهونه بښي ځکه چه هغه بخښنه کونکې رحم کونکې دې.

**مسئله:** که یو تن د کبیره گناهونو نه ځان ونۀ ساتي نو آیا کبیره گناهونه به ئې د توبې نه بغیر معاف شي او که نۀ؟ نو اکثرو علماؤ ویلي دي چه د توبې نه بغیر کبیره گناهونه نۀ معاف کیږي. او د شیخ الاسلام ابن تیمیة او محققینو علماؤ رایه دا ده چه کبائر هم ډیر کرته بغیر د توبې نه معاف کیږي لکه دا په یولسو اسبابو سره معاف کیږي په مصیبتونو، د قبر په عذاب، په جنازه او فرض مونځونو او روژو او نورنیك اعمالو او په شفاعت سره او د الله په رحمت سره چه تفصیل ئې په ((الحق الصریح)) کې وګورئ.

**فائده:** دلته هغه گناهونه مراد دي چه د الله تعالیٰ د حقوقو سره متعلق وي چه که د الله خوښه شي معاف به ئې کړي او که نۀ وي نو سزا به ورکړي او هرچه پردي حقوق دي یا شرك دې نو هغه نۀ معاف کیږي ترڅو چه بندګانو نۀ وي معاف کړې، یا ئې د شرك نه توبه نۀ وي وېستلې.

مُدْخَلًا : ځای د داخلیدو ته۔
كَرِيْمًا : څوك چه د ګناهونو نه ځان ساتي هغه کريم (عزتمند) دے نو لائق دی چه عزتمند ځای ته داخل شي چه هغه جنت دے۔

| وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَكُمْ |
|---|
| او ارمان مهٔ کوئ د هغه شي چه غوره کړیدی الله تعالیٰ په هغے سره بعض ستاسو نه |
| عَلٰى بَعْضٍ لِلرِّجَالِ نَصِيْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوْا وَلِلنِّسَآءِ نَصِيْبٌ |
| په بعضو باندے، د سړو دپاره برخه ده د هغه څه نه چه دوی کړی وی او د زنانو دپاره برخه ده |
| مِّمَّا اكْتَسَبْنَ وَاسْئَلُوا اللّٰهَ مِنْ فَضْلِهٖ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ |
| د هغه څه نه چه دوی کړی وی او غواړئ د الله نه د مهربانئ د هغه نه یقیناً الله دے |
| بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴿۳۲﴾ |
| په هر شي باندے پوهه۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی د حسد او د تمنی (آرزو) کولو نه منع شویده۔ یعنی الله تعالیٰ مسلمانان ددے خبرے نه منع کړیدی چه دوی تمنا اُوکړی چه الله نورو ته څه ورکړیدی هغه دوی ته ورکړے شي ځکه چه داسے قسم خواهش د الله په تقدیر باندے د نهٔ راضی کیدو دلیل دے، او که ددے خواهش سره دا تمنا هم ملګری شی چه د نورو نه دا نعمت الله واخلی نو دا به حسد وی چه د هغے نه الله په سختئ سره منع فرمائیلے ده۔

ربط

(۱) مخکی د ناجائز عمل نه منع وشوه چه پردی مالونه خوړل یا قتل وقتال دے نو دلته د ناجائز نیت نه منع شویده۔

(۲) مخکی ئے ووېل چه د حرام خورئ او د مسلمان وژلو نه ځان وساتئ چه دا ډیر لوی ګناهونه دی نو پدے آیت کی وائی چه د ذکر شوو ګناهونو د اسبابو نه هم ځانونه وساتئ چه هغه حسد کول دی د چا په مال یا منصب باندے، یا د هغے آرزو کول دی چه سبب د قتل دے۔

شان نزول

ددے آیت په شان نزول کی ډیر واقعات روایت شویدی :

(۱) ام سلمه رضی الله عنها نبی کریم ﷺ ته عرض وکړو اے د الله رسوله ! : نارینه غزا کوی او مونږ غزا نهٔ کوو (د غزا د اجر نه محروم یو) او مونږ لره په میراث کی هم د نارینه ؤ نیمائی برخه مقرر شویده نو که مونږ نارینه وے مونږ به هم غزا کولے او د هغوی په شان په میراث کی به مو پوره برخه اخستے ؟ (الترمذی۲/۱۳۱) واحمد) نو دا آیت نازل شو۔

(۲) کله چه د میراث آیتونه نازل شو نو نارینه ؤ وویل چه پکار ده چه مونږ په زنانو باندے په آخرت کی هم دوه چنده اجر واخلو لکه په میراث کی چه دوچنده برخه اخلو او ښځو وویل چه ارمان دے چه مونږ د نارینه ؤ په نسبت د ګناهونو په پیټی کی هم په مونږ نیمائی بار کړے شی لکه څنګه چه راته په میراث کی نیمائی برخه راکول کیږی۔ (اسباب النزول للواحدی ص ۹۹)

(۳) د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه یوے ښځے نبی کریم ﷺ ته وویل : اے د الله رسوله ! آیا زنانه د نیک اعمالو په اجرونو کی هم د نارینه ؤ په نسبت نیمائی دی لکه څنګه چه په میراث او شهادت (ګواهی) کی نیم په نیمه دی ؟ نو دا آیت نازل شو۔ (تفسیر ابن کثیر۱/۴۸۹)

امام طبریؒ او ابن المنذرؒ وغیره د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه هغوی اُوئیل چه بنده دے داسے تمنا نهٔ کوی چه ارمان ! چه ما ته د فلانی مال او د هغه اهل وعیال راکړے شوی وے !، څکه الله ددے نه منع فرمائیلے ده، بلکه بنده له پکار دی چه د الله فضل اُوغواړی، الله تعالیٰ په سړو او ښځو دواړو کی جدا جدا صلاحیت ایخودے دے، او هریو ته د هغوی د صلاحیت او محنت مطابق د دنیاوی نعمتونو نه حصه ملاویږی، پدے وجه د الله په تقدیر باندے راضی اُوسیدل پکار دی، او ددے ایمان سره ژوندے اُوسیدل پکار دی چه الله په حکمتونو ښه عالم دے او هر یو لره د الله نه د هغه فضل او کرم غوښتل پکار دی، دارنګه په دعا کی ښه مبالغه کول پکار دی دے دپاره چه الله دعا قبوله کړی او خپل فضل او کرم ورکړی۔ نو تا باندے چه الله کومے ذمه واریانی ایښودی دی که په هغے عمل وکړے نو الله دے جنت ته داخلوی نو تمنا او آرزو ته څه ضرورت دے۔

نو ښځے به د سړو فضائل او خصوصیات نهٔ غواړی په کوم باندے چه هغوی ته الله غوره والے ورکړیدے او نهٔ به فقیر او نقصان والا انسان د مالدار او کمال والا د حالت ارمان کوی څکه چه دا بیا حسد جوړیږی، او د الله په تقدیر باندے د ناراضګی او سستوالی ته د میلان سبب جوړیږی۔ بلکه بنده له دوه کاره پکار دی چه یو دا چه بنده د خپل قدرت موافق په

دینی او دنیوی فائدو حاصلولو کی کوشش وکړی او سستی ونکړی. چه د بل چا ارمانونه کوی، او بل ډیے د الله نه د هغه د مهربانئ سوال وکړی نو په ځان او د خپل رب نه علاوه په بل چا باندے ډیے اعتماد او بهروسه نکوی او دا د بنده کمال دیے.

(تفسیر السعدی ۱۷٦/۱) وتیسیر الرحمن)

بیا ددیے آیت حکم هر چا ته عام دیے، یو سړی ته الله تعالیٰ صحت ورکړیے، مال ئے ورکړیے، په جهاد کی وخت ډیر تیروی، عالِم دیے، ښه واعظ دیے، ښه آواز والا دیے، ښه کور او جائیداد والا دیے، نو بل به دا آرزو نهٔ کوی چه الله ددهٔ نه دا نعمت واخلی او ما ته ئے راکړی دا تمنا په درجه د حسد کی ده.

او بندګانو ته شیطانان داسے وسوسے اچوی چه د فلانی څومره ډیر مال دیے او ته څومره غریب یی، څومره به ښه وی چه د هغه نه اخستل شوے وے او تا ته درکړے شوے وے،

O یا هغه هم ستا په شان غریب وے چه دواړه برابر وے. O کاشکی چه زهٔ هم نارینه وے چه جهاد مے کړے وے یا به شهید شوے وے او یا به ډیر غنیمتونه لاس ته راغلی وے.

O مونږ زنانه ډیر کمزوری مخلوق یو خو افسوس چه په میراث کی مونږ ته د سړو په شان برخه راکړے شوے وے، یا زمونږ برخه زیاته وے.

O او پدیے کی دا هم داخلیږی چه بنده د حرامو څیزونو د حلال والی ارمان وکړی چه مثلًا شراب حلال وے نو ښه به وه، دا ټولے ناروا ارزوګانی دی.

البته که یو تن داسے ارمان وکړی چه د فلانی په شان نعمت ما ته هم راکړے شی نو بیا دا کار بهتر نهٔ دے مګر په دوه څیزونو کی، یو دا چه یو تن ته الله مال ورکړے وی او په دین کی ئے لګوی، یا ئے علم ورکړے وی او هغه خلکو ته خوروی او دے ته غبطه (رشك/ پسخیدل) وائی. کما فی الحدیث.

لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ : یعنی سړی چه کوم کسب کوی د هغے برخه به ورته ملاویږی نو د سړو کسب زیات وی، نفقه ورپه غاړه وی نو ځکه ورته میراث زیات ملاویږی او د زنانو ذمه واری په نفقه کی کمه ده نو ځکه ئے میراث هم کم دیے.

یا دا چه هر بنده خپل همت کوی ځکه ورته د هغے مطابق برخه ملاویږی.

دویم: دا د آخرت سره لګی یعنی د دنیا ارمان څه له کوے بلکه نیك عمل وکړه، په آخرت کی د سړی او د ښځے فرق نشته، ټولو ته به د خپلو عملونو اجرونه ملاویږی، که ښځه په عمل کی زیاته وه اجر به ئے زیات وی او دغه شان سړے. نو دا به د (أَنِّي لَا أُضِيعُ عَمَلَ

عَامِلٍ مِنكُمْ مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَىٰ) په شان وي.

وَاسْأَلُوا اللَّهَ : یعني تمنی ته ضرورت نشته بلکه د خزانو مالك الله دی، د هغه نه ئې وغواړه چه درئې کړي.

مِنْ فَضْلِهِ : مِنْ تبعیضیه دی یعني بعض مهرباني د الله نه وغواړئ ځکه چه ټول فضلونه بنده ته په دنیا کې نشي ورکړې کیدې. یا مِنْ أجلیه دی یعني د الله نه خپل حاجتونه وغواړي پدې وجه چه الله مهرباني کوي. لکه حدیث کې دي :

مَنْ لَّمْ يَسْأَلِ اللَّهَ يَغْضَبْ عَلَيْهِ. (احمد، والترمذی ۳۳۷۳ واسناده حسن، البانی)

څوك چه د الله نه سوال نکوي الله ترې ناراضه کیږي.

یو شاعر هم دا معنیٰ ادا کړیده :

| | |
|---|---|
| اَللّٰـهُ يَـغْـضَبُ اِنْ تَـرَكْـتَ سُؤَالَـهُ | وَابْـنُ آدَمَ حِيْـنَ يُسْـأَلُ يَـغْـضَبُ |

د الله نه که ډیر سوال پرېښودو ناراضه کیږي او بنیادم نه چه کله سوال کیږي نو هغه غصه کیږي. نو ولې د داسې ذات نه سوال نشي کیدې چه هغه په سوال خوشحالیږي، مهربانیانې ورسره بې شماره دي. یا (مِنْ) زیاتي دې یعني د الله نه د هغه مهرباني غواړئ.

| |
|---|
| وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ |
| او د هر یو کس دپاره کړځولي دي مونږ وارثان د هغه مال نه چه پرېښې وي مور او پلار |
| وَالْأَقْرَبُوْنَ وَالَّذِيْنَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوْهُمْ |
| او خپلوانو او هغه کسان چه تړلي دي قسمونه ستاسو (د هغوی سره) نو ورکړئ دوی ته |
| نَصِيْبَهُمْ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدًا ﴿۳۳﴾ |
| برخه د دوی یقیناً الله دی په هر شی باندې ګواه. |

**تفسیر** : پدې آیت کې دوه حصې دي، اوله حصه کې الله تعالیٰ دا خبر ورکړیدې چه مونږ د هر چا دپاره سرې وي او که ښځه وارثان مقرر کړیدي او د هرې ترکې (پاتې شوی مال) دپاره مو مستحقین متعین کړیدي، نو هغوی ته خپل خپل میراث وسپارئ او پدې کې د خپلو آرزوګانو په وجه تبدیلي مه راولئ. لکه چه په صحیحینو کې د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل شویدي چه رسول الله ﷺ اوفرمایل : ((د میراث حصې د هغوی

حقدارانو ته ورکړئ، دے نه روستو چه څه پاتے شي نو هغه عصبه یعني د تولو نه نزدے سړي خپلوان ته ورکړئ))۔

بیا پدے کي (۱) یوه توجیه دا ده چه (لِکُلٍّ) کي تنوین عوضي دے اَیْ لِکُلِّ اَحَدٍ، مَوَالِي جمع د مولیٰ ده خپلوان ته وائي، دلته ترے میراث خور مراد دے۔ په اصل کي مَنْ لَهٗ وِلَایَة عَلَی التَّرِکَة) ته وائي یعني هغه څوك چه د هغه تصرف او واك وي په ترکه باندے۔ (المنار)

او (مِمَّا) کي د (مَا) موصوله نه مراد مال دے او (تَرَكَ) کي ضمیر راجع دے دغه اَحَد ته او (الوالدان والاقربون) بدل یا بیان دے د مَوَالِي دپاره په اعتبار د مبتداء محذوفے سره۔ (اَیْ هٰؤُلَاءِ الْمَوَالِيْ هُمُ الْوَالِدَانِ وَالْاَقْرَبُوْنَ) (المنار) نو معنیٰ دا جوړیږي: د هر یو تن دپاره مونږ وارثان جوړ کړیدي د هغه مال نه چه دغه شخص پریخي وي چه هغه وارثان به یا مور پلار د دغه مړي وي یا به ئے نور نزدے خپلوان وي۔ (البیضاوي والمنار)

(۲) مضاف الیه د لِکُلٍّ دپاره (شَيْءٍ مِنَ الْاَمْوَالِ) لفظ دے او (الوالدان والاقربون) به فاعل د (تَرَكَ) وي نو معنیٰ دا جوړیږي: د هر یو مال دپاره مونږ وارثان جوړ کړیدي د هغه مال نه چه مور او پلار ئے پریدي یا ئے خپلوان پریدي نو د هغے میراث خواره شته چه هغوي ته به ورکولے شي۔ نو معلومه شوه چه که مال لږ وي یا ډیر وي نو هغه به د میراث په طریقه تقسیمولے شي او د هلك او د جینئ فرق به یکي د ځان نه نشي کولے۔ او دغه شان هرکله چه الله د هر مال دپاره خپل خپل وارثان مقرر کړل نو د پردي مال تمنا به نشي کولے څکه چه الله تعالیٰ د هر چا په حال ښه خبردار دے۔

(۳) صاحب المنار د خپل استاذ نه ددے دواړو جملو داسے تفسیر نقل کړیدے:

(اَیْ لِکُلٍّ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ مَوَالِيْ لَهُمْ حَقُّ الْوِلَایَةِ عَلٰی مَا یَتْرُکُوْنَ مِنْ کَسْبِهِمْ وَهٰؤُلَاءِ الْمَوَالِيْ هُمُ الْوَالِدَانِ وَالْاَقْرَبُوْنَ - وَالَّذِیْنَ عَقَدَتْ اَیْمَانُکُمْ اَیِ الْاَزْوَاجِ فَاِنَّ کُلَّ وَاحِدٍ مِنَ الزَّوْجَیْنِ یَصِیْرُ زَوْجًا لَهٗ حَقُّ الْاِرْثِ بِالْعَقْدِ)۔ یعني د هر یو د سړو او د ښځو دپاره - کومو دپاره چه د هغوي د کسب نه خپله خپله حصه وه - مونږ مقرر کړیدي وارثان چه هغوي د سړو او د زنانو نه په پاتي شوي مال کي د تصرف حق لري چه دغه وارثان مور او پلار دي او بل هغه کسان دي چه هغوي سره ستاسو قسمونه او لوظونه مضبوط شوي وي یعني ښځه او خاوند څکه چه هر یو د ښځے او د خاوند نه د میراث حقدار دي په سبب د لوظ سره۔ فَاٰتُوْهُمْ نَصِیْبَهُمْ: نو دوي ته د دوي مقرر کړے شوے برخے ورکړئ او هیڅ شے ترے مه کموئ او هرکله چه میراث کي بعض وارثانو طمع لرله خاصکر هغه کسان چه د

هغوی په لاس کې مال وي پدې وجه چه دغه مړي د دوی سره وسپدو نو الله وفرمایل : چه تپولو میراث خورو ته خپلې برخې ورکړئ، او الله تعالیٰ ستاسو حال وینی چه تاسو په ترکه کې غلط تصرف ونکړئ او د بعض وارثانو سره حسد ونکړئ.

(ددې لنډ مطلب دا شو چه سړی او ښځې چه کوم مال پریدی نو الله ددې دپاره مور او پلار او نور نږدې خپلوان او ښځه او خاوند وارثان جوړ کړیدی نو دوی ته دوی دغه مقرر برخې ورکړئ)

صاحب المنار وائي چه زما د استاذ دا تفسیر د سیاق د آیتونو سره ډیر مناسب دے او هیڅ نسخ هم په آیت کې نشته، او باقي تفسیرونه تکلفات دي.

او د عقد نکاح دپاره عقد یمین استعمالیدل څه بعید نهٔ دي. ځکه چه په هغې کې هم وضع الیمین فی الیمین شته. (المنار ۵/۵۳/۵۵)

## د عقد موالات میراث

د آیت د دویمې حصې ﴿وَالَّذِيْنَ عَقَدَتْ اَيْمَانُكُمْ﴾ مطلب دا دے چه تاسو چه کوم قَسم یا معاهده د چا سره کړیده، نو د هغې حصه هغه ته ورکړئ.

ددې آیت په تفسیر کې د علماؤ ډیر اقوال دي. چه تقریباً نهو ته رسیږي. (البحر المحیط ۳/۶۲۱) تفسیر کبیر (۸۵/۱)

د هغه تمامو اقوالو د جمع کولو او په هغې باندې د سوچ کولو نه روستو غوره دا ښکاری چه دا آیت چه کله نازل شو نو د یو مخکني حکم دپاره ناسخ وو، او څه ورځې پس د یو بل آیت په ذریعه پدې کې موجود حکم هم منسوخ شو. ددې اجمال تفصیل دا دے:

د اسلام نه مخکې او د اسلام په ابتداء کې درې قسمه عقدونه وو:

(۱) د اسلام نه مخکې به یو سړي بل ته د دوستئ لاس ورکړو او معاهده او قسم به ئې وکړو چه زما او ستا به او بده به شریکه وي او یو بل نه به میراث وړو نو کله چه به یو مړ شو نو بل به ئې وارث ګڼل کیدو، دے ته عقدِ موالات او عقدِ حلف وائي.

کله چه اسلام راغلو نو دغه شان خلق موجود وو، او هغوی هم اسلام راوړے وو، نو رسول الله ﷺ هغه معاهدې باقي اُوساتلې او وې فرمایل چه اسلام د جاهلیت په هر حِلف او معاهده کې تاکید او شدت پیدا کړیدے، البته د آینده د یو نوی حلف نفي ئې اُوکړه او وې فرمایل: [ لَا حِلْفَ فِي الْإِسْلَامِ] یعنې په اسلام کې هیڅ حِلف نشته. پدې طریقه به

مسلمانانو ته د هغوی د حلیف مسلمانانو د مرګ نه روستو د میراث شپږمه حصه ملاویده. نو دلته به معنیٰ دا وی:

وَالَّذِيْنَ عَقَدَتْ اَيْمَانُكُمْ فَاٰتُوْهُمْ نَصِيْبَهُمْ مِنَ الْمِيْرَاثِ وَهُوَ السُّدُسُ)

هغه کسان چه ستاسو قسمونه ورسره مضبوط شویدی نو هغوی ته هم د میراث نه شپږمه برخه ورکړئ. دا تفسیر د سعید بن جبیرؒ، حسن بصریؒ او قتادۀ دے. (قاسمی)

(۲) عَقْدُ التَّبَنِّی: یو سړی به یو بل تن په تبنی (زوی ولیٰ) سره ونیولو نو هغه به د سړی د مرګ نه روستو په میراث کی حقدار ګڼړل کیدو. او د خپل زوی احکام به پرے جاری کیدل.

نو کله چه د سورة انفال آیت ﴿ وَ اُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ ﴾ نازل شو نو دا دواړه عقدونه منسوخ شو یعنی د حلفاؤ وغیره د وارث جوړیدو حکم منسوخ شو. او صرف د مړی نزدے خپلوان د مړی د مال وارثان جوړ شو.

(۳) عقدِ مُوَاخَات: د اسلام په ابتداء کی مهاجرین چه کله مدینے منورے ته راغلل، نو رسول الله ﷺ د هر مهاجر د یو انصاری سره اُخوّت (ورور ولی) قائم کړو، نو هغه مهاجر به د خپل انصاری ورور وارث کیدو، د هغه خپلوان به د هغه وارثان نهٔ کیدل، نو پدے آیت (فَاٰتُوْهُمْ نَصِيْبَهُمْ) کی دا حکم وشو چه دوی ته میراث کی برخه ورکړئ.

امام بخاری رحمه الله ددے آیت په تفسیر کی د ابن عباس رضی الله عنهما نه دا روایت نقل کړیدے. بیا دا آیت هم د سورة الانفال په دغه مذکوره آیت (واولوا الارحام) سره منسوخ شو چه صرف خپلوان د مړی به د هغه وارثان وی. نو دا درے واړه عقدونه د سورت انفال په آیت سره منسوخ شو.

لیکن پدے باندے صاحب المنار دا اعتراض کړیدے چه ددے واقعے د آیت سره هیڅ تعلق نشته ځکه چه سورة النساء د سورة الانفال نه روستو نازله شویده ځکه چه سورة الانفال د غزوه بدر په کال نازل شویدے او میراثونه د هغے نه روستو مشروع شویدی او دا آیت چه مونږه ئے تفسیر کوو دا د آیة المواریث نه روستو نازل شویدے. ځکه چه دے کی حواله ده په میراثونو او برخو باندے. (فَاٰتُوْهُمْ نَصِيْبَهُمْ) نو بیا څنګه ونیلے کیږی چه پدے آیت د سورة النساء سره د عقدِ حلف او تحالف په طریقه میراث ثابت شویدے. او بیا روستو د سورة الانفال په ذریعه دا حکم هم منسوخ شویدے. ځکه چه قرآن کریم خو خلکو دپاره په تحالف سره میراث مشروع کړے نهٔ دے بلکه قرآن خو باطل کړیدے او منسوخ کړیدے

هغه شي چه خلك په هغې باندې روان وو مخکې د نازليدو د آيتونو د ميراث نه لکه دا خبره ظاهر ده. (المنار)

(۲) **تفسير** : البته ابن عباس رضی الله عنهما او مجاهد وغيره مفسرينو ددې آيت غير منسوخ معنیٰ هم کړيده چه پدې آيت کې مقصد دا دې چه د ميراث نه علاوه نورو خيزونو باندې چا کوم عقدونه او حلفونه کړې وی نو هغوی ته برخه ورکړئ اَیْ مِنَ الْعَقْلِ وَالنَّصْرِ وَالرِّفَادَةِ وَالنَّصِيْحَةِ. يعنی که په هغوی ديت اوړيدلے وی هغه ورله ورکړه، مدد او تعاون ورسره وکړئ او يو بل ته تحفے ورکړئ او خير خواهي ئے وکړئ. يا بِالْاِحْسَانِ وَالْبِرِّ وَالنَّصْرِ وَالرِّفَادَةِ. يا ورسره احسان وکړه، نيکی ورسره وکړه او مدد ورسره وکړه او هسے تحفه ورکړه. يعنی ستا مخکې نه يار دوست دې، ميراث ئے اُوس ختم دے مګر احسان ورسره وکړه نو دا حکم اُوس هم باقی پاتے دے.

نو پدې صورت کې به (وَالَّذِيْنَ عَقَدَتْ اَيْمَانُكُمْ) تر آخره پورې مستقل کلام وی. او (وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ) سره به عقدِ مواخات منسوخ وی. کما قال ابن عباس ونقله البخاری) (المنار)

نو په مهاجرين او انصارو کې چه کوم کسان خپلوان نهٔ دی نو د هغوی ترمينځ د تعاون او مدد او خپل مينځ کې د يو بل سره د خير خواهئ تعلق پاتے شو او په دريمه حصه مال کې د وصيت ګنجائش پاتے شو او د ميراث حکم منسوخ شو.

(ابن جرير، قاسمی، ابن عاشور، ابن عادل الدمشقی)

د ابن عباس رضی الله عنهما وينا ده چه ددې آيت نه روستو د حلفاؤ دپاره صرف د وصيت دروازه کولاه پاتے شوه، چه هغه مړے د مرګ نه مخکې د هر غير وارث دپاره کولے شي.

وَالَّذِيْنَ عَقَدَتْ : دا مبتدا ده متضمن ده معنیٰ د شرط لره پدې وجه ئے په خبر کې فاء راغلے ده.

(۳) ځينې مفسرينو وئيلی دی چه مخکنی درے واړه عقدونه د اسلام په ابتداء کې د ميراث د اسبابونه ګڼړل کيدل خو ثبوت ئے په تقريری يا قولی احاديثو سره شوے وو نو د سورت انفال په آيت سره روستنی دواړه منسوخ شو او يوازی اولنے عقد (عقد موالات) ئے پدې آيت کې سره د يو ترميم نه تائيد کړو چه دوی په هغه وخت کې وارثان ګڼړل کيږی چه نور وارثان (ذوی الفروض، عصبه، ذوی الارحام) نهٔ وی موجود نو معنیٰ به دا جوړيږی : (مونږ د هر چا دپاره وارثان مقرر کړيدی چه هيڅ تغيير پکې نشي راتلے مګر که دوی موجود نهٔ وی نو بيا د عقد موالات خاوندانو ته هم خپلې برخې ورکړئ ځکه چه دوی هم د

وارثانو په شان دی۔ (احکام القرآن للجصاص ۲/۱۸۳ والمدارك ۱/۳۰۹ وعزیز التفاسیر ۳/۱٤۰)

(٤) ځینو وئیلی دی چه عقد موالات والا ته په میراث کی حصه نشته البته په طریقه د استحباب باندے هغوی ته ورکړه پکار ده نو دا به داسے وی لکه چه (وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبٰى) (قاله الاصمّ، اللباب)

قول د ابن عباسؓ غوره دے۔

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدًا ﴿۳۳﴾ : شهید: عالم، لیدونکے، خبر لرونکے۔

ددے نوم حواله ئے ځکه ورکړه چه اکثر نفسونه په مالونو کی حرص کوی نو هسے نه چه پردے مال واخلی نو الله وائی چه زهٔ درباندے حاضر یم تا ته گورم، زما د شهادت استحضار وکړه۔ لکه د صاحب المنار په قول کی ئے بعض تفصیل وشو۔

| اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ |
| --- |
| نارینه حاکمان (مشران) دی په ښځو باندے په سبب د هغے چه غوره والے ورکړے الله |
| بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ وَّبِمَا أَنْفَقُوْا مِنْ أَمْوَالِهِمْ |
| بعضے د دوی ته په بعضو نورو، او په سبب د هغے چه خرچ کوی دوی د مالونو خپلو نه، |
| فَالصّٰلِحٰتُ قٰنِتٰتٌ حٰفِظٰتٌ لِّلْغَيْبِ |
| پس نیکے ښځے تابعدارے وی، حفاظت کونکی وی (د مال او د ځان) په غائب والی د خاوند کی |
| بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ وَالّٰتِيْ تَخَافُوْنَ |
| په سبب د هغے چه ساتنه کړے ده الله تعالیٰ (د دوی) او هغه زنانه چه یریږئ تاسو |
| نُشُوْزَهُنَّ فَعِظُوْهُنَّ وَاهْجُرُوْهُنَّ فِي |
| د بد اخلاقئ د هغوی نه پس نصیحت اُوکړئ دوی ته او پریدئ دوی لره په |
| الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوْهُنَّ فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوْا |
| ځای د څملاستو کی او اُووهئ دوی لره نو که خبره ئے اُومنلئ ستاسو نو مهٔ لټوئ |
| عَلَيْهِنَّ سَبِيْلًا إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيْرًا ﴿۳٤﴾ |
| په دوی باندے لاره (د ملامتیا او د طلاقو) بیشکه الله دے ډیر اُوچت، ډیر لوی۔ |

**تفسیر :**

**ربط :**

(۱) مخکښې ئې ووېل چه د يو بل په فضائلو باندې قناعت وکړئ نو دلته وائي چه که قناعت ونکړئ نو د خاوند او د ښځې کوزاره به خرابه شي او خبره به جګړې ته لاړه شي.

(۲) دارنګه مخکښې په ښځو باندې د نارينه د ميراث زياتوالې بيان شو نو اُوس د هغې وجه بيانوي چه سړي په ښځو باندې قواميت لري.

(۳) مخکښې عقدِ موالات ذکر وو اُوس عقدِ نکاحي ذکر کوی چه دا هم سبب د نصرت او مدد دې چه ښځه او خاوند به د يو بل سره مدد کوی.

(٤) مخکښې مسئلة د نکاح وه اُوس په ښځه باندې د سړي د قوامية، او دغه شان د ښځو اقسام بيانيږي.

او پدې آيت کښې د مسلمانانو د کورنئ د انتظام او پروګرام طريقې بيانوی دې دپاره چه د کورنئ فساد پيدا نشي هغه دا چه د کور مشر به سړې وی او ښځې او بچي به ئې خبره مني نو پروګرام به صحيح روان وی او که ښځې ته مشري حواله شوه نو فساد به پيدا شي. سړې به خرچه هم کوی او خبره به ئې هم څوك نۀ مني نو طلاق ته به نوبت رسيږي.

شان نزول

ددې آيت شان نزول دا بيانيږي چه يو انصاری صحابي (سعد بن الربيع ﷺ) يوه ښځه (چه حبيبه رضي الله عنها ئې نوم وو) د څه نافرمانئ د وجه نه په څپيړه ووهله نو هغې د ځان سره خپل پلار ملګرې کړو او رسول الله ﷺ ته راغله او عرض ئې وکړو چه يارسول الله ! زۀ خپل خاوند په څپيړه ووهلم نو نبي کريم ﷺ امر وکړو چه د هغه نه د هغې مطابق قصاص واخستې شي نو پلار او لور روان شو چه انتقام واخلي خو نبي کريم ﷺ بيرته راواپس کړل او ورته ئې ووېل چه دا دې جبريل عليه السلام راغې چه څه فيصله به ئې راوړې وی، نو دا آيتونه نازل شو نو نبي کريم ﷺ وفرمايل : [أَرَدْنَا أَمْرًا وَأَرَادَ اللَّهُ أَمْرًا وَالَّذِي أَرَادَ اللَّهُ خَيْرٌ] مونږ د يو څه اراده کړې وه او الله د بل څه او هغه چه الله ئې اراده کړې وه هغه بهتره ده. يعنی انتقام مۀ اخلئ.

دا ابن جرير روايت کړيدې. او ابن ابي حاتم په ډيرو سندونو سره مرسل روايت کړيدې. او سيوطيؒ ليکلي دي چه ددې روايت ډير شواهد دي چه دا قوی جوړوی.

د آیت **خلاصه** دا ده چه الله تعالیٰ سړی لره د ښځې حاکم او نګران او امیر جوړ کړیدے، ځکه چه سړے د ښځې نه په عقل او فهم کې زیات وی، د هغه نظر ډیر لرے لګی، د ملك او قوم قیادت، جهاد، اذان، خطبه، ګواهی، نکاح کی ولی جوړیدل، طلاق، رجعت، ډیرے ښځې کول، په میراث کې دوچنده حصه اخستل او عصبه کیدل دا او ددے په شان نور صفات هم دی چه د سړو پورے خاص دی، ددے نه سوئ هغوی د نکاح په وخت مهر ادا کوی، او د واده نه روستو د ازدواجی ژوند ټول اخراجات برداشت کوی، د هغوی حفاظت کوی، او ښځه د هغه د سوری د لاندے د سکون او اطمینان ژوند تیروی. نو دلته اګرکه سړی ته لږ شان فضیلت ورکړے شویدے لیکن ډیر بوج هم پرے اچولے شویدے.

په سړی کی ددے تمامو صلاحیتونو او خوبیانو موجودیدل ددے خبرے تقاضا کوی چه په ازدواجی ژوند کی به قیادت د خاوند په لاس کی وی، د خپلے ښځې د تربیت او اصلاح کوشش به کوی او کله چه ضرورت راشی نو د اصلاح په نیت به معمولی شان وهل هم کوی، لیکن که ښځه به وی نیکه او صالحه وی، نو اسلام د خاوند نه تقاضا کوی چه د هغے خیال اُوساتی، د هغے سره ښائسته سلوك اُوکړی، دے ته اشاره کولو سره الله د نیکانو ښځو دلته صفت کړیدے او وئیلی نے دی چه نیکانے ښځې د الله او د خپلو خاوندانو فرمانبردارے وی، او د خاوند په نهٔ موجودګئ کی د الله په مدد سره د خاوند د عزت او د مال حفاظت کوی (پدے وجه د داسے ښځو سره ښه سلوك کول پکار دی).

دے نه روستو الله دا اُوفرمایل چه که یوه ښځه نافرمانی کوی او د خاوند سره بد سلوکی کوی نو خاوند به هغے ته خپل حقوق رایاد کړی، د الله د ناراضګئ او د هغه د عذاب نه به یره ورکړی او هغے ته به اُووائی چه د الله رسول ﷺ فرمایلی دی چه (( که ما چا ته د یو انسان د سجدے حکم کولے نو ښځے ته به مے وئیلی وے چه خپل خاوند ته سجده اُوکړی)). او وهلو او طلاقو ته به هم اشاره اُوکړی، که ښه وی نو همدا نصیحت به کافی وی، او که نهٔ وی نو په یوه بستره به د اُودهٔ کیدو باوجود د هغے سره خبرے کول او نزدیکت بند کړی، اوصبر دے اُوکړی، تردے پورے چه هغه د نافرمانئ نه منع شی. او دا تعلق ختمول به د یو میاشت نه زیات نهٔ وی، لکه څنګه چه رسول الله ﷺ د حفصے رضی الله عنها سره کړے وو. کله چه هغے د نبی ﷺ یو پټ راز عائشے رضی الله عنها ته خودلے وو، دا سلوك به د ((ایلاء)) په شان څلور میاشتو دپاره نهٔ وی. البته د رسول الله ﷺ نه درے میاشتو پورے پریخوستل هم نقل دی لکه زینب رضی الله عنها سره زیاتی سورلئ وه او د

صفيه رضی الله عنها سره سورلئ بيماره شوه نو رسول الله ﷺ زينب ته وفرمايل : چه تهٔ دے ته سورلئ ورکړه هغے ورېل : (اَنَا اُعْطِیْ تِلْكَ الْیَهُوْدِیَّةَ فَهَجَرَهَا ذَا الْحِجَّةِ وَ الْمُحَرَّمِ وَبَعْضَ صَفَرَ) آيا زهٔ دے يهودئ ته ورکړم. نو رسول الله ﷺ هغه ترد رے مياشتو پورے پريخوسته. (ابو داود، مسند احمد والصحيحة : ۳۲۰۵)

که دا تدبير هم کار ورنکړی نو هغه دے اُووهی ليکن دا وهل به داسے نهٔ وی چه د هغے د جسم څه حصه ماته شی يائے کوم اندام بد شکل شی.

په صحيح مُسلم کی دی چه نبی کريم ﷺ په حجة الوداع کی د ښځو په باره کی وئيلی دی چه «د دوی په باره کی د الله نه يره اُوکړئ، ځکه چه دا ستاسو سره د قيديانو په شان دی، او په دوی بانديے ستاسو دا حق دے چه ستاسو عزت به بل ته نهٔ ورکوی، او د هغه په بستره به بل څوك نهٔ پريدی، او که داسے ئے اُوکړل نو دوی اُووهئ ليکن وهل به داسے نهٔ وی چه په هغے سره زخمی شی».

ددے طريقو نه هره يوه طريقه په تدريج سره خپلولو نه روستو که ښځه په نيغه لاره سمه شوه نو خاوند به هغے ته د ضرر ورکولو دپاره بهانے نهٔ لټوی او د خپل طاقت په ګمان دے خامخا د هغے وهل نهٔ کوی، يا دے د هغے سره تعلق نهٔ پريکوی، او د هغه په ذهن کی دے دا خبره پرته وی چه الله ددهٔ نه لوئی دے او زيات طاقت والا دے.

**فائده** : دے نه معلومه شوه چه د زنانه تربيت کله نا کله په وهلو سره کيږی ځکه چه زنانه ته الله تعالیٰ داسے مزاج ورکړيدے چه هغوی په معمولی خبره خفه کيږی او مزاج کی تنګی پيدا کوی چه د هغے په وجه د خاوند د حقوقو په مخالفت کی واقع کيږی نو په وهلو او تعلق ختمولو سره د هغے اصلاح کيږی.

قَوّٰمُوْنَ : جمع د قَوَّام ده او دا مبالغه ده په قائم کی، د قيام نه اخستے شويدے، ودريدو ته وئيلے شی، په يو څيز بانديے مضبوطيدل او د هغے د اهتمام دپاره استعماليږی، دلته د قوام معنیٰ دا ده چه سړی به په ښځو بانديے مشری کوی په تربيت او ادب د زنانو کی، او د هغوی په مصلحتونو او تدبير او ساتنه بانديے به اهتمام کوی (صاحب اللباب).

آلوسیؒ وئيلی دی چه سړی به په زنانو بانديے داسے قيام کوی لکه حاکمان چه په خپل رعيت بانديے قيام کوی په امر او نهی سره.

قاسمیؒ وائی : اَیْ مُسَلَّطُوْنَ عَلٰی اَدَبِ النِّسَاءِ يَقُوْمُوْنَ عَلَيْهِنَّ، آمِرِيْنَ نَاهِيْنَ قِيَامَ الْوُلَاةِ عَلَى الرَّعِيَّةِ وَذٰلِكَ لِأَمْرَيْنِ وَهْبِيٍّ وَ كَسْبِيٍّ) يعنی سړی به د زنانو په ادب ورکولو مسلط (مقرر)

وی او پـه هغوی باندے به اهتمام کوی، امر او نهی به ورته کوی لکه څنګه چه حاکمان په خپل رعیت باندے ولاړ وی او ددے دوه سببه دی یو ئے په (بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ) سره ذکر کړیدے چه دا وهبی سبب دے او بل په (بِمَا اَنْفَقُوْا) سره ذکر کړیدے چه دا کسبی سبب دے۔

دارنګه د سړی په زنانه باندے مشر کیدل دا دی چه د هغے د کارونو تدبیر به کوی، ادب به ورکوی، پـه کـور کـی بـه ئے ساتی، او د (بی ضرورته) بهر وتلو نه به ئے منع کوی او په زنانو بـانـدے بـه د هـغـوی اطـاعـت او هـر حـکـم مـنـل (چـه د شـرع خلاف نـهٔ وی) لازم وی (قرطبی ۵/۱٦٩)

بِـمَـا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ : دلتـه د (بَـعْـضَـهُـمْ) نه مراد سړی دی چه دوی په زنانو باندے په عقل او تدبیر سره غوره دی پدے وجه الله تعالیٰ دوی د زنانو مشران جوړ کړل او د سړی ددے فـضـیـلـت فـائـده هم ښځو ته راجع کیږی۔ بعض وائی : د سړی په نفس او طبع کـی الله تـعـالـیٰ داسـے زیات قوت ایښودے دے چه هغه په زنانو کی نشته څکه چه د سړی طبیـعـت کـی حـرارت او یبوسـت دے او داسـے مـزاج کـی قـوت او شدت وی او د زنـانو پـه طبیـعـت بـاندے رطوبت او برودت غالب وی نو په هغے کی لِیْن (نرموالے) او ضُعف وی نو پدے وجه الله تعالیٰ سړی مشران کړل۔ (قرطبیؒ)

عـلامـه قـاسـمیؒ وائـی چـه د سـړو د غـوره والی وجه، عقل، هوښیارتیا (چالاکی)، عزم، قوت، فُروسیَة (شاهسـواری) او رمی (غشی ویشتلو قوت) دے، او په سړو کی انبیاء علیهم السـلام دی، او امـامتِ صغریٰ او کبریٰ، جهاد، اذان، د جُمعے او د اخـترونو خطبه، په حدودو کـی شـهـادت، پـه نـکـاح کـی ولـی جـوړیدل، د طلاق او د رجوع حق د سړی دے، ډیر ودونه سـنبالول، دو چنده میراث اخستـل، عصبه جوړیدل او دارنګه دوی د ګیرو او پټکو خاوندان دی نـو کـامـل لره په ناقص باندے د ولایت او مشریٰ حق ثابت دے۔ (محاسن التاویل ۲/۲۸۵)

لـکـه مـونـږ بـه د رسـول الله ﷺ تـابع کیږو څکه چه زمونږ عقل ناقص دے او د رسول الله ﷺ عقل کامل دے۔

عـلامـه قاسمیؒ لیکی چه دا آیت دلیـل دے چه ښځے لره نهٔ دی جائز چه قاضیه (جج) دے جوړ شي په سړو باندے څکه چه الله تعالیٰ نارینه قوام ګرځولے دے په ښځو باندے۔

وَبِـمَا اَنْفَقُوْا : دا کسبی فـضـیـلـت دے چه سړے پـه ښځو خرچه کوی څکه چه سړی په مشقـتـونو سره مالونه پیدا کوی او په ښځو باندے ئے لګوی نو پکار دا ده چه د سړی خبره ومنلے شی څکه چه دا د شکر تقاضا ده۔

فَالصَّالِحَاتُ : ددے نه روستو د ښځو دوه قسمونه بیانوي او پدے کې د نیکانو ښځو صفت ذکر کوي او بعض مفسرینؒ وائي چه پدے کې بیان د اکرام د ښځو دے ځکه چه دوی مخکې ښکنته ذکر شوے نو اُوس پکې د نیکانو اکرام بیانوي چه د دوی اکرام وکړئ.
فَالصَّالِحَاتُ دا جمله خبریه ده په معنیٰ د انشاء سره یعني نیکانو زنانو له دا راتلونکې کارونه کول پکار دي.
قَانِتَاتٌ : یعني نیکانې ښځې تابعداري وي د الله او د رسول او د خاوندانو.
حَافِظَاتٌ : اَیْ لِنُفُوْسِهِنَّ وَلِمَالِ الزَّوْجِ وَعِرْضِهٖ . حفاظت کونکې وي د خپلو ځانونو او د خاوندانو د مالونو او د هغه د عزت. نو کور نهٔ ضائع کوي او خپل ځان هم بې ځایه نهٔ استعمالوي، او د خاوند د اجازے نه بغیر بهر نهٔ وځي. او دروازو کې به نهٔ ښکاره کیږي.
ځینې ښځے په بازار کې ځانله ډیرے ډیرے قیمتي جوړے اخلي او د خاوندانو مالونه ضائع کوي، دا ظلم دے.
لِلْغَيْبِ : وَقْتَ غَيْبُوْبَةِ اَزْوَاجِهِنَّ. په وخت د غائبوالي د خاوندانو کې.
(۲) ځینو علماؤ د غیب معنیٰ په راز سره هم کړیده یعني د خاوندانو رازونه ساتي. (بغویؒ) اوله معنیٰ زیاته ظاهره ده.
بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ : پدے کې ترغیب پروت دے چه تاسو به د خاوندانو د مال او د عزت حفاظت پدے وجه کوئ چه الله تعالیٰ ستاسو حفاظت د خاوندانو په وجه کړیدے. چه د عذابونو او پریشانئ نه ئے بچ کړے یې، یعني الله ستا حفاظت کړیدے نو ته د خاوند حفاظت وکړه.
وَاللَّاتِيْ : اُوس د بد اخلاقو ښځو بیان دے، دا مقابل د صالحات دے خو داسے ئے ونهٔ ویل (وَالنَّاشِزَاتُ) ځکه چه د مؤمنو ښځو اکثر حال صلاحیت او نیک عملي وي او نشوز (بد اخلاقي) پکې کله کله پیدا کیږي.
تَخَافُوْنَ : خوف ئے ذکر کړو ځکه چه عام خاوندان د ښځو نه زیات یریږي، همیشه ورسره خطره وي چه ښځه څه فساد ونکړي، مال ضائع نهٔ کړي، جنگ جگړے پیدا نکړي او سړے همیشه د ښځے لحاظ ساتي چه داسے خبره مینځ ته رانشي چه زما او د ښځے کور وران شي نو سړے د ښځے د شر د دفعه کولو دپاره همیشه په یره کې وي.
نُشُوْزَهُنَّ : نشوز په لغت کې پورته کیدو ته وائي چه د پریوتلو نه روستو واقع شي، پدے وجه د قبرونو نه د مړو راپورته کیدو نه په ((نشر)) او ((انشاز)) سره تعبیر کیږي، نو ناشزه به هغه ښځے ته وائي چه د خاوند اطاعت نهٔ کوي او خپل ځان پرے اُوچت ګڼري او ښځه

کی چه کله تکبر راغلو نو بیا کور وران دے، بیا د خاوند هیڅ خبره نهٔ منی، د هغه خبره پرے بده لګی، هره بد اخلاقی د تکبر نه پیدا کیږی نو ښځو له عاجزی پکار ده۔

فَعِظُوْهُنَّ : ددے ځای نه روستو د ناشزاتو ښځو د بد اخلاقیٔ پنځه علاجونه بیانوی یو وعظ او نصیحت کول، دویم هجران، دریم وهل او څلورم روستو آیت کی ذکر کیږی چه هغه فیصله کونکی مقررول، او پنځم طلاق ورکول لکه روستو آیت (۱۳۰) کی راځی ﴿وَاِنْ يَّتَفَرَّقَا يُغْنِ اللّٰهُ كُلًّا مِّنْ سَعَتِهٖ﴾ ۔ او مخکی هم تیر شویدی چه خلع ورسره کولے شیٔ او بیائے پریدیٔ لکه ﴿لِتَذْهَبُوْا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوْهُنَّ اِلَّا اَنْ يَّاْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ﴾

فِي الْمَضَاجِعِ : یعنی بستره به ترے جدا کړے شی نهٔ کوټه خکه چه د کوټی په جدائی سره د ښځے کینه او عداوت لا زیاتیږی او نور خلك پرے خبریږی چه مینځ ته فساد راپیدا کوی۔ پدے وجه الله تعالیٰ (عَنِ الْمَضَاجِعِ) لفظ استعمال نکړو کوم چه د کوټی په جدا والی باندے دلالت کوی۔ لیکن کوټه جدا کول ترے جائز دی خاصکر کله ئے چه ترے ایلاء کړی وی۔ لکه امام بخاریؒ او مسلمؒ روایت راوړیدے چه رسول الله ﷺ د خپلو بیبیانو نه د یو بے میاشتے پورے په خپله بالخانه کی جدا شو او د هغهٔ سره په دغه بالخانه کی صرف ماریه قبطیه (رضی الله عنها) وه۔

او د ښځے د تربیت دپاره د ښځو سره د درے ورځو نه زیاتے خبرے بندول هم جائز کړے شویدی، دا د هغوی د نشوز سزا تاکلے شویده۔

وَاضْرِبُوْهُنَّ : حدیث کی دی : ضَرْبًا غَيْرَ مُبَرِّحٍ۔

داسے وهل به وی چه هډوکے ورله مات او بدرنګ نکړی۔ (صحیح مسلم کتاب الحج)

ددے نه معلومه شوه چه د ادب وهل به هغه وی چه زخم جوړ نکړی نو کوم قاریان استاذان چه خپل شاګردان بیحده تر زخم انداز پورے وهی، دا ظلم دے۔

فَاِنْ اَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوْا عَلَيْهِنَّ سَبِيْلًا : یعنی که زنانو نشوز پریخودو او ستاسو طاعت ئے شروع کړو، ستاسو حقوق ئے صحیح صحیح ادا کول، نو بیا په هغوی باندے بله لاره مهٔ لتویٔ یعنی ملامتیا مهٔ وایئ چه تا به مخکی دا دا کول۔ (۲) دویم سبیل دے ته هم وائی چه تهٔ ورسره د بد اخلاقیٔ لاره مهٔ لتوه بلکه ته هم ورسره ښه شه۔

(۳) دریم : سبیل طلاقو ته هم وائی۔ یعنی طلاق الله تعالیٰ ته مبغوض شے دے اګر که جائز دے پدے وجه پدے کی ډیرے جلتی نهٔ کوی۔

(٤) څلورم : د لارے نه مراد د زړه محبت دے چه دا د الله په اختیار کی دے (سفیانؒ) یعنی

که ستا ظاهری تابعداری شروع کړی نو دا کافی ده اگر که د زړه محبت ئے نهٔ وی۔
عَلِيًّا كَبِيرًا : دا ئے په آخر کی راوړو اشاره کوی چه اکثر فسادونه د تکبر او علو نه پیدا کیږی پدے وجه کله چه د بنده په دماغو کی دا خبره کینی چه الله ډیر لوی او غټ دے او زهٔ خو یو کمزورے محتاج بنده یم نو دده نه بد اخلاقی وځی او حقوق ادا کوی۔

## سوال او جواب

که څوك ووائی چه په هجران او وهلو سره خو د ښځے بد اخلاقی او زړه بد والے نور هم زیاتیږی نو دا به څنګه د تادیب سبب جوړ شی؟
جواب : د زنانو نشوز کله نا کله په ناز او نخرو او تکبر باندے بناء وی او هیڅ بنیاد نهٔ لری نو پدے صورت کی په هجران او تادیبی وهلو سره اصلاح کیږی او که اصلاح ئے ونشوه نو معلومه خو به شی چه د ښځے نشوز پوخ بنیاد لری نو ضرورت دے چه د دواړو ترمینځ فیصله وکړے شی۔

| وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوا حَكَمًا |
|---|
| او که یریږئ تاسو د مخالفت نه په مینځ ددے دواړو کی نو مقرر کړئ یو فیصله کونکے |
| مِنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِنْ أَهْلِهَا إِنْ يُرِيدَا |
| د طرفه د خپلوانو د سړی نه او یو فیصله کونکے د خپلوانو د ښځے نه که چرے اراده لری دا دواړه |
| إِصْلَاحًا يُوَفِّقِ اللَّهُ بَيْنَهُمَا إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا خَبِيرًا ﴿٣٥﴾ |
| د جوړجاړی نو یو ځای والے به راولی الله تعالیٰ په مینځ ددے دواړو کی یقیناً الله ډیر پوهه خبردار دے۔ |

**تفسیر** : پدے کی اُوس بل حکم بیانوی چه کله د ښځے او د خاوند جګړه په پټه حل نشوه او د کور نه بهر خلك هم پرے خبر شو او یره وه چه د دوی دا معمولی اختلاف به په لوی اختلافاتو بدل شی نو د ښځے او خاوند اولیاؤ او نورو حاکمانو او امراؤ ته دا حکم کوی چه تاسو ددے دواړو د اصلاح کوشش وکړئ۔ چه د ښځے د طرفنه او د خاوند د طرفنه یو یو فیصله کونکے مقرر کړئ، دواړه به د خاوند او ښځے سره ملاؤ شی او واقعه به واوری، د اختلاف د اسبابو معلوملو کوشش دے اُوکړی، او د هغوی ترمینځ د مصالحت کوشش دے اُوکړی۔ که (الله دے اُونکړی) ددے لارے تمام کوششونه ناکام شی نو خاوند او ښځے نه د

منظوري اخستو نه روستو دواړو کې دې جدائي پیدا کړي۔

حافظ ابن کثیرؒ وائي : د اکثرو علماؤ دا رایه ده چه دواړه فیصله کونکو ته د خاوند او د ښځې یو ځای کولو او جدا کولو حق شته، آه، ځکه چه دواړو ته الله تعالیٰ حَکَمین (قاضیان) ویلي دي او قاضي ته حق د جدا والي شته، دا دواړه وکیلان نهٔ دي۔ او دا قول د امام مالك، شافعي، اوزاعي او اسحاق رحمهم الله دے۔ او دا قول د عثمان، علي، ابن عباس رضي الله عنهم او د شعبيؒ او نخعيؒ نه نقل دے۔

(قرطبی ۱۷٤/٥) وابن کثیر (۲۹٦/۲) وهو الحق واختاره ابن القیمؒ فی الزاد)

او امام ابو حنیفةؒ وائي چه دوی صرف د اصلاح اختیار لري، دوی ګواهان یا وکیلان دي دوی، د دواړو د جدا کولو اختیار نهٔ لري بغیر د رضا د خاوند نه۔

اول قول د دلیل په اعتبار سره ډیر غوره دے۔ او قرطبيؒ ویلے دے۔ تفصیل دپاره قرطبي، روح المعاني وغیره ته رجوع پکار ده۔

دلته الله تعالیٰ یو طرف ذکر کړو چه که د فیصله کونکو اراده د اصلاح وي نو الله به د ښځې او خاوند ترمینځ جوړخ راولي او بل طرف ئے ذکر نکړو پدے کې اشاره ده چه غالباً موافقت راځي لیکن که موافقه رانغله نو بیا به څه کوي ؟ نو حَکَمَینو ته اختیار شته چه د دواړو ترمینځ جداوالے راولي، یا به خبره د سړي او ښځې اختیار ته پریدی نو سړے به په خپله خوښه طلاق ورکړي۔

وَإِنْ خِفْتُمْ : دا خطاب د ښځې او خاوند اولیاؤ ته دے، دا قول د سُدّيؒ دے۔ یا نورو حاکمانو او امراؤ ته دے۔ دا قول د ابن عباسؓ، سعید بن جبیرؒ، ضحاكؒ، او مجاهدؒ دے۔

فَابْعَثُوا : بعث نه مراد لیږل او مقررول دي۔

حَكَمًا : فیصله کونکے چه په هغه کې د فیصلې کولو صلاحیت وي یعني عادل او هوښیار وي۔

إِنْ يُرِيدَا إِصْلَاحًا يُوَفِّقِ اللَّهُ بَيْنَهُمَا : (۱) دے کې د (يُرِيدَا) تثنیه ضمیر حکمینو ته راجع دے او (بینهما) ضمیر ښځې او خاوند ته یعني که د حکمینو اراده د اصلاح وي نو د ښځې او د خاوند ترمینځ به الله موافقت راولي۔

(۲) یا په دواړو ځایونو کې ضمیرونه ښځې او خاوند ته راجع دي یعني که د ښځې او خاوند د اصلاح اراده وي نو الله تعالیٰ به د دواړو جوړخ راوليددے حکمینو په ذریعه۔

(۳) یا په دواړو ځایونو کې ضمیرونه حکمینو ته راجع دي : که فیصله کونکي د اصلاح

اراده لري نو د دواړو موافقه به الله راولي او د دواړو خبره به یوه شي او فیصله به سرته ورسیږي. دا تفسیر د ابن عباس رضی الله عنهما، مجاهدؒ او ضحاكؒ وغیره دے. اول تفسیر غوره دے.

## فوائد او معارف

۱- (اِنْ يُّرِيْدَا) كې اشاره ده چه كه د صلح كونكو د خير اراده وي نو الله تعالىٰ د ښځے او خاوند جوړخ راولي او د هغوی نیك نیت اثر كوي.

۲- په آیت كې د اصلاح كونكو شمار دوه وخودل شو نو دا په طريقه د حصر سره نۀ دے بلكه دا غالباً ادنىٰ درجه ده، كه په كومو خايونو كې څلورو يا زياتو ته ضرورت راپيښ شو نو بيا به زيات مقرر شي. او كه ښځه او خاوند په يو تن راضي شو هم صحيح ده.

۳- په آیت كې دا هم نۀ دي ذكر چه دا فيصله كونكي به نارينه وي يا زنانه، معلوميږي چه زنانه هم ددے صلح افراد جوړيدے شي. كه د يو طرفنه سړے او بل طرفنه ښځه وي يا دواړو طرفونو نه ښځے صلح كونكې شي هم صحيح ده، حالاتو ته به كتلے شي.

٤- په آیت كې د دواړو طرفونو نه فيصله كونكي وخودل شو ځكه چه دوی ته د خپلو خپلو رشته دارانو د حالاتو او خويونو ښه معلومات وي نو د هغے مطابق به فيصله ښه اثر وكړي نو ددے نه دا نۀ لازميږي چه غير رشته دار مؤمنان به حاكمان نشي مقررولے، نۀ بلكه كه په خپلوانو كې څوك نۀ وي يا وي خو د فيصلے اهليت پكې نۀ وي نو عام مؤمنان به مقرر شي.

٥- په آیت كې دعوت دے چه مؤمنانو لره پكار دي چه د ښځے او د خاوند د اختلافاتو تماش بين جوړ نشي بلكه پكار ده چه د دوی ترمينځ اصلاح كونكي جوړ شي.

٦- دلته اګر كه د حكمينو ذكر د ښځے او د خاوند د اختلافاتو ترمينځ وخودل شو ليكن ددے نه مسلمانانو ته دا سبق هم ملاويږي چه كه د مؤمنانو خپل مابين كې جګړه او اختلاف راشي نو پكار دا ده چه دوی تماش بين نشي بلكه اصلاح كونكي جوړ شي لكه نور آياتونه پرے دليل دي.

| وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا وَّبِالْوَالِدَيْنِ |
| --- |
| او بندګي كوئ د الله تعالىٰ او شريكان مۀ جوړوئ د هغه سره هيڅ شے او د مور او پلار سره |

| إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ |
|---|
| احسان کوئ او د خپلوانو، يتيمانانو، مسکينانو او د گاونډی سره چه خپلوان وی |
| وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنبِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ |
| او هغه گاونډی سره چه وړاندے دے او ملگری د اړخ سره او د مسافر سره او هغه چه مالکان دی |
| أَيْمَانُكُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا ﴿۳۶﴾ |
| ښی لاسونه ستاسو يقيناً الله تعالیٰ نهٔ خوښوی هغه څوك چه وی تکبر کونکے فخر کونکے. |

**تفسیر : مضمون** : ددے ځای نه روستو د الله تعالیٰ او د عامو انسانانو حقوق بيانيږی، بيا پـه منافقانو باندے ردونه ذکر کوی ځکه چه دوی به دا حقوق نهٔ ادا کول او ددے دپاره به رکاوټ واقـع کيـدل او ددے دپاره به ئے مالونه بی ځايه لګول او پدے سره مؤمنان يروی، که داسے ردونه ونشی نو بيا د مؤمنانو په غلطو خلکو بنه گمان جوړيږی او دا فساد دے.

بيـا الله تعالیٰ بل قانون بيان کړيدے چه په حالت د بندګئ کی به نشه نهٔ استعمالوئ او دا د (وَاعْبُدُوا اللهَ) سره لـګی. بيـا مسئلـه د تيمم، اودس او غسـل ده. دے پسے الله تعالیٰ د يهـوديانو قبائح راجمع کړيدی تر (۵۷) آيت پورے ځکه چه روستو نور قوانين بيانيږی نو دوی رکـاوټ واقـع کيـږی او دا هم د قرآن د موضوعاتو نه يوه موضوع ده چه د اهل کتابو په کلکه مقابله کوی. بيا به بيرته قوانين بيانوی چه هغه د بادشاه او د رعيت سره متعلق دی او دا چـه څوك نهٔ منی په هغه باندے به بيا رد وکړی او غټ مشر محمد رسول الله ﷺ دے نـو د هغـه تابعداریٔ ته به دعوت ورکړے شی تر (۷۰) آيت پورے بيا به د جهاد متعلق مسـائـل بيانوی او په جهادونو کی اکثر منافقان رابنکاره کيږی پدے وجه د منافقانو بد بد خصلتونه به ورسره په مينځ مينځ کی بيانوی تقريباً (۸۷) آيت پورے،

بيا د هغے نه روستو يوه رکوع کی انواع المنافقين بيانيږی بيا نور قوانين د قتل خطاء او قتـل عـمـد او د تبيين او د هـجـرت او د صلاة خوف او صلاة السفر، بيا دعوت ورکوی چه قـرآن او حـديث باندے فيصله وکړئ که پدے څوك فـيـصله نکوی نو هغه منافق دے نو بيا پـه منـافـقـانو ردونه بيا د مشرکانو په شرك باندے تفصيلاً رد. پدے طريقه دا سورت روان دے چه قانون او په مينځ مينځ کی په مخالفينو ردونه.

**ربط** : مخکی د ښځے او د خاوند ترمينځ حقوق وو اُوس عام حقوق بيانيږی چه بنده به دا

هم عملي کوي هله به کاميابۍ ته رسيږي۔
وَاعْبُدُوا اللّٰهَ : يعنـي د الله يو اځې خالصه بندګي وکړئ او د هغه سره هيڅ قسمه شرك مهٔ کوئ، نـهٔ شرك حقيقي او نهٔ شرك اصغر (رياء، سمعت وغيره) او دا د الله تعالیٰ په بندګانو باندې حق دے۔ نبي کريم ﷺ د معاذ بن جبل ﷛ نـه تپـوس اُوکړو چه ته پو هيږے چه په بنـدګـانو باندې د الله حق څه دے ؟ نو هغه اُووئيل چه الله او د هغه رسول ښه پو هيږي۔ نو نبي ﷺ اُوفـرمايل چه صرف د هغه عبادت اُوکړي او هيڅوك د هغه سره شريك جوړ نهٔ کړي۔ بيا نبي ﷺ اُوفـرمايل : آيا ته پو هيږے چه که بنده داسے اُوکړي نو د دوي به په الله باندې څه حق وي ؟ (هغه به دا وي) چه الله به دوي ته عذاب نهٔ ورکوي۔ (بخاري ومسلم)
د عبادت تشريح په سورة الفاتحه کې ذکر شويده۔
وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا : اَیْ اَحْسِنُوْا بِالْوَالِدَیْنِ اِحْسَانًا ۔ د مور او پلار سره ښيګړه وکړئ ځکه چه دوي د الله نه روستو ستاسو په تربيت کې بدني او روحي تکليفونه پورته کړيدي۔
او دنيـا تـه د هـر چا راتلل د والدينو په ذريعه کيږي، د والدينو د اطاعت د اهميت د وجه نه الله تـعالیٰ د قرآن په ډيرو آيتونو کې خپل عبادت او د والدينو سره ښائسته سلوك يو ځاى ذکـر کـړيدے۔ الله فرمائي : ﴿ اَنِ اشْكُرْ لِیْ وَلِوَالِدَيْكَ ﴾(لقمان: ۱٤) چـه زمـا شکر کوه او د والدينو۔ او فرمائي : ﴿ وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْا اِلَّا اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ﴾ (اسراء:۲۳)
يـعـنـي الله دا فيـصلـه کړے ده چه تاسو د هغه نه سوئ د هيڅا عبادت مهٔ کوئ او د مور او پلار سره احسان کوئ۔
وَبِذِي الْقُرْبٰى: دا په (بالوالدين) باندې عطف دے يعني د خپلوانو سره هم احسان وکړئ۔
نبي کـريـم ﷺ فـرمـائي : چه مسکين تـه صدقه ورکول صدقه ده او خپلوان تـه صدقه ورکول صدقه او صله رحمي ده۔ (مسند احمد، ترمذي، ابن ماجه، نسائي بسند صحيح)۔
وَالْيَتٰمٰى: او د يتيمانانو سره د ښائسته سلوك حکم ئې کړيدے ځکه چه د دوي پلار چه د دوي د کارونو پروګرام او پرورش به ئې کولو په دنيا کې موجود نهٔ دے۔
وَالْمَسٰكِيْنِ : او مسکينانو سره چه د خپل ضرورتونو پوره کولو مالي استعداد نهٔ لري،
وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبٰى : يـعـنـي هغـه ګاونډي چه رشته دار دے يا وراندے دے د دوي سره به احسان کولے شي۔
وَالْجَارِ الْجُنُبِ : جنب وراندے ته وائي، يعني هغه ګاونډي چه ستا نه ئې کور وراندے دے يا دا چه خپلـوان نـهٔ وي۔ يا دا چه کـافر وي نو د هغه سره هم اسلام د احسان حکم کوي

خکه چه مسلمان به د تولو دينونو والو نه په اخلاقو کې اُوچت وي.

امام بخاريؒ وغيره د عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت کړيدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل: ((مَا زَالَ جِبْرِيْلُ يُوْصِيْنِيْ بِالْجَارِ حَتّٰى ظَنَنْتُ أَنَّهُ سَيُوَرِّثُهُ)) (البخاري ٦٠١٥) ومسلم ٣٧/٨ باب الوصية بالجار ٤٢) والترمذي ١٦/٢) جبرئيل د ګاونډي په باره کې ما ته هميشه نصيحت کولو تردے چه ما ګمان اُوکړو چه دا به وارث جوړ کړي).

**فائده**: ګاونډيان په درے قسمه دي يو هغه دے چه کافر وي او د خپلوانو نه نهٔ وي دا صرف يو حق لري چه هغه د ګاونډتوب دے، دويم مسلمان ګاونډی چه د خپلوانو نهٔ نه وي، دا دوه حقه لري، يو د ګاونډ حق او بل د اسلام حق لري. دريم مسلمان خپلوان ګاونډی دے، دا درے حقه لري يو د اسلام حق، د خپلولئ حق او هم د ګاونډ حق لري. او دا په يو مرفوع روايت کې د جابر رضي الله عنه نه ابونعيم په حلية الاولياء کې نقل کړيدی.

**وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ**: او د اړخ سره جوخت ملګری سره لکه ښځه، د سفر ملګرے، په يوه کمره کې شريك وسيدونکي ملګري، يا هغه څوك چه د لږ وخت دپاره ستاسو په خوا کې ناستـه ولاړه کوي لکه په ګاړي کې درسره کيني يا په کوم هسپتال کې درسره ملاؤ شي، يا په درس کې درسره خوا کې کيني يا په کاروبار يا په مسجد کې ملګرے شي. دوی سره به احسان کولے شي، ايثار به کولے شي، خپل ښه ځاي به هغوی ته ورکوی، د دوی نه به مصيبت اړوي، د حق دعوت به ورکوي، په کارونو کې به ورسره مدد کوي.

**وَابْنِ السَّبِيْلِ**: او د مسافر سره او دارنګه د ميلمه سره. او اکثر اهل علم وائي چه ددے نه مراد ميلمه دے. (زاد المسير)

**وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ**: او د غلامانو او وينځو سره، خکه چه دغلامئ نه زياته د انسان بله کمزوري نشي کيدے. پدے وجه د الله رسول ﷺ په مرض الموت کې اُوفرمايل چه ((اے مسلمانانو! د مانځه خيال اُوساتئ، او د خپلو غلامانو او وينځو)).

او پدے کې ضمناً خادمان او مزدوران هم داخليږي. بلکه رسول الله ﷺ ډير زيات تعميم کړيدے فرمايلي دي: (اِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ الْاِحْسَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ) الله تعالیٰ په بندګانو لازم کړيدی چه احسان به د هر شي سره کوئ. تردے چه حيواناتو سره به هم احسان کولے شي چه کله ئے ذبح کوئ نو چاړه به ورته ډيره تيرهٔ کوئ. (صحيح مسلم: ١٥٦٧ وغيره)

**مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُوْرًا**: يعني الله هغه متکبر نهٔ خوښوی چه خپل ځان د نورو نه غوره کنړي، حال دا چه دا د الله په نيز سپك او د خلقو په سترګو کې مبغوض او قابل د نفرت

وی-

مختال: اَلَّذِیْ لَایُقِرُّ بِحُقُوْقِ النَّاسِ ۔ دا هغه متکبر ته وائی چه د خلکو د حقوقو اقرار نهٔ کوی۔ او دا د خُیَلَاء نه جوړ دے، ځان ورته په خیال کی لوی ښکاره شویدے او په حقیقت کی لوی نهٔ دے پدے وجه په الله باندے د مختال اطلاق نهٔ کیږی۔

یا مختال: مُعْجِبٌ بِنَفْسِهٖ مُتَکَبِّرًا عَلَی الْخَلْقِ ۔ دا هغه شخص دے چه خود پسنده وی (یعنی ځان ورته ښه ښکاری) او په مخلوق باندے تکبر کوی۔ (السعدیؒ)

فخور: اَلَّذِیْ یَعُدُّ مَنَاقِبَهٗ کِبْرًا ۔ هغه دے چه خپل صفتونه او کمالات د تکبر په وجه شماری۔ رسول الله ﷺ به چه کله امت ته خپل کمال خودلو نو ورسره به ئے ویل چه زهٔ پدے باندے فخر نکوم چه خلک پرے سپك وګنړل لکه وے فرمایل:

(اَنَا سَیِّدُ وُلْدِ آدَمَ وَلَا فَخْرَ)۔ (ترمذی، احمد)

یا مختال: هُوَ الْمُتَکَبِّرُ الَّذِیْ یَظْهَرُ عَلٰی بَدَنِهٖ اَثَرٌ مِنْ کِبْرِهٖ فِی الْحَرَکَاتِ وَالْاَعْمَالِ) دا هغه متکبر دے چه دهٔ په بدن باندے د تکبر اثرات په حرکاتو او اعمالو کی ښکاره کیږی نو دهٔ نفس به د نورو د نفسونو په اعتبار سره اُوچت لیدلے شی او دے به په خلکو باندے خپل تکبر وربار کوی دومره اندازه چه نور خلك به ئے په دهٔ نشی بار کولے نو مختال هغه شخص شو چه د هغه په نفس کی تکبر ملکه وی او د هغے اثر دهٔ په عمل او اخلاقو کی ښکاره شوے وی نو دا د هغه متکبر نه زیات بد تر دے چه مختال نهٔ وی۔ او فخور: هُوَ الْمُتَکَبِّرُ الَّذِیْ یَظْهَرُ اَثَرُ الْکِبْرِ فِیْ قَوْلِهٖ) دا هغه متکبر دے چه دهٔ د کبر اثر دهٔ په خبرو کی ښکاره کیږی نو دے داسے خبری کوی چه دے په هغے کی خپل ځان په نورو خلکو اُوچت ګنړی او د خلکو سپکاوے کوی۔ نو مختال فخور انسان د الله په نیز ځکه مبغوض دے چه دهٔ ټول هغه حقوق سپك وګنړل کوم چه الله تعالیٰ مقرر کړیدی او د الله تعالیٰ د نعمتونو نه روند شویدے کوم چه الله تعالیٰ په نورو خلکو کړیدی نو دهٔ په زړه کی د الله تعالیٰ د عظمت او کبریاء هیڅ معنیٰ نشته، پدے وجه دے د الله تعالیٰ بندګی هم نشی کولے ځکه چه د الله بندګی دیته وائی چه په هغے کی د معبود عظمت وی او په زړه کی ئے خشوع او عاجزی وی۔ (تفسیر المناره ۵/۷۸)۔ نو دا دواړه صفتونه په انسان کی د حقوق الله او حقوق العباد د ادا کولو نه نفرت پیدا کوی پدے وجه ئے دا خاص ذکر کړل۔ (قرطبیؒ)

د (مُخْتَالًا فَخُوْرًا) نه روستو الله تعالیٰ د منافقانو بد صفتونه شروع کوی چه دوی د الله دغه حقوق نهٔ ادا کوی او د دغه احکامو مخالفت کوی او هم دوی مختال او فخور دی۔

| الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ وَيَأْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَيَكْتُمُوْنَ مَا آتَاهُمُ |
|---|
| هغه کسان چه بخل کوی او امر کوی خلقو ته په بخل سره او پټوی هغه څه چه ورکړی دی دوی ته |
| اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا ﴿۳۷﴾ |
| الله تعالیٰ د مهربانئ خپلے نه او تیار کړیدے مونږ د کافرانو دپاره عذاب سپکونکے۔ |

**تفسیر** : پدے کی د منافقانو څلور بد صفتونه بیانیږی او دا د مختال فخور تشریح ده اول دا چه دوی خپله بخل کوی، د الله دپاره مسکینانو او دینی تقاضو کی مال نهٔ لګوی۔

## د بخل اقسام

بخل دیته وائی چه دیو چا نه هغه څیز منع کړی چه هغهٔ ے مستحق وی نو لاندینی کسان تول په بخیلانو کی شمارل کیږی :

(۱) څوك چه فقیرانو او نورو مستحقینو ته زکاة نهٔ ورکوی۔

(۲) څوك چه علم پټ کړی لکه یهودیانو به د نبی کریم ﷺ صفات پټول او دا د یهودو نه علاوه نورو ته هم شامل دے۔

(۳) څوك چه په چا باندے سلام نهٔ اچوی۔

(٤) څوك چه په رسول الله ﷺ درود نهٔ وائی کله چه د هغه نوم ذکر شی۔

(٥) سائل ته څه نهٔ ورکوی۔

(٦) معذورو خپلوانو ته نفقه نهٔ ورکول۔

او باقی تشریح د بخل په سورة البقره ﴿ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُوْنَ﴾ کی ذکر شویده۔

وَيَأْمُرُوْنَ النَّاسَ : بل ته په بخل باندے امر کولو ته شُح وائی چه بل ته د خیر اراده نهٔ کول، یعنی یو چا ته څوك خیر رسوی او تهٔ پرے خفه کیږے نو تا کی شح راغلے دے چه ډیره لویه هلاکونکے بیماری ده او دا په امتِ مسلمه کی څومره زیاته ده او دا د نفس لوی شر دے۔ فیا اسفیٰ ! ، والله المستعان فلا حول ولا قوة الا بالله۔

**فائده** : شیخ محترم حفظه الله فرمائی : زمونږ څینی استاذانو به ویل : یو بخیل وی چه بل ته څه نهٔ ورکوی۔ بل کنجوس وی چه بل څوك ورکړه کوی دے پرے خفه وی۔ او دریم کړوس وی چه خپل طعام خوړلو باندے هم خفه وی چه دا زهٔ ولے خورم، مال به مے کم شی۔

مَا آتَاهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ : فضل مال، علم او دین ته شامل دے او دا د بخل ته زیات دے۔

خپلو خلکو ته الله تعالیٰ ډیر څه ورکړی وی هغه ئے پټ ساتی او شکایتونه کوی چه هیڅ نشته او سړ کال هیڅ ونشو۔ ددے نه منع راغلے ده بلکه د الله نعمتونه به بیانوے چه الله ډیر څه راکړیدی اګرکه تعیین ته ضرورت نشته۔

په عربو کی به ځینی بخیلانو اوښان په کور کی دننه لوشل دے دپاره چه کوم فقیر ترے څه ونهٔ غواړی نو پدے وجه رسول الله ﷺ وفرمایل چه تاسو به په چینه کی اوښان لوشئ: دے دپاره چه مسکینانو ته هم پئ ورکړئ۔

جابرؓ د ابوبکر صدیق ؓ نه د بیت المال نه درے کرته څه وغوښتل نو هغه ورنکړل بیا ئے وفرمایل: یا ئے راکړه یا را نه بخل وکړه۔ نو ابوبکر صدیق ؓ ورته وفرمایل: دا تا څنګه خبره وکړه (وَأَيُّ دَاءٍ أَدْوَأُ مِنَ الْبُخْلِ) د بخل نه بله کومه بیماری سخته ده؟!۔ یعنی تا خو ډیر بد نسبت ما ته وکړو۔ (صحیح البخاری۴۳۸۳)

لِلْكَافِرِينَ : دا دلیل دے چه منافقان کافران دی او چونکه دوی خلک سپك ګنړی نو الله تعالیٰ دوی ته د دوی د عمل سزا کی سپکونکے، رسوا کونکے عذاب ورکوی۔

| وَالَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا |
|---|
| او هغه کسان چه خرچ کوی مالونه خپل دپاره د خودنے د خلقو او ایمان نهٔ لری په الله او نهٔ |
| بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَن يَكُنِ الشَّيْطَانُ لَهُ قَرِينًا فَسَاءَ قَرِينًا ﴿٣٨﴾ |
| په ورځ روستنئ او هغه څوك چه شیطان د هغه ملګرے شی نو ډیر بد دے دا ملګرے۔ |

**تفسیر** : د منافقانو بل بد صفت دا دے چه په صحیح ځای کی او د الله د رضا دپاره مال نهٔ لګوی مګر چه کله د ریاء او د شهرت او د نوم ځای راشی یا د اسراف مقام وی نو هلته بیا ډیر مال لګوی۔

رِئَاءَ النَّاسِ: دپاره د خودنے د خلکو۔ او بنده ریا کاری پدے وجه کوی چه په زړه کی ئے تکبر وی چه خلك زما صفت وکړی او زهٔ لوی سړے ښکاره شم۔

رئاء الناس : دا یا مفعول دے د (يُنفِقُونَ) یا حال دے په معنیٰ د مُرَائِينَ سره۔

وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ : دا دلیل دے چه ریاء اکثر د هغهٔ چا نه واقع کیږی چه بی ایمانه وی، کله چه په بنده کی صحیح ایمان په الله او په آخرت راشی د هغه نه ریاء نهٔ واقع کیږی ځکه چه هغه ته د الله تعالیٰ نه سوئ بل مخلوق لوی نهٔ ښکاره کیږی۔

وَمَنْ يَّكُنِ الشَّيْطَانُ : دلته وقف دے امام قرطبیؒ او قاسمیؒ وائی : دلته دا عبارت پټ دے (فَقَرِيْنُهُمُ الشَّيْطَانُ) یعنی چا کی چه دغه بد صفتونه راغلل نو شیطان د هغوی ملګرے شو او د چا ملګرے چه انسی یا جنی شیطان شو او د هغه تابعداری کوی نو دا ډیر بد ملګرے دے، هیڅکله به ترے ښه ورځ ونۀ ګوری ځکه چه شیطان انسان ته حکم کوی په بخل باندے او د فقر نه ئے یروی۔

قَرِيْن : هغه انبنتی ملګری ته وائی چه ترے نۀ جدا کیږی نو پدے کی اشاره ده چه دوی پسے شیطان انبنتے دے او هرچه مؤمن دے نو هغه نه تښتی راتښتی۔

| وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ آمَنُوْا بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ |
|---|
| او څه ضرر به وو په دوی باندے که ایمان ئے راوړے وے په الله او په ورځ روستنئ او خرچ کړی ئے وے |
| وَأَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللهُ وَكَانَ اللهُ بِهِمْ عَلِيْمًا ﴿۳۹﴾ |
| د هغه مالونو نه چه ورکړی دی دوی ته الله تعالیٰ او دے الله په دوی باندے ډیر پو هه۔ |

**تفسیر** : پدے کی منافقانو له یو قسم زورنه ورکړے شویده چه که دے خلقو په الله او په رسول ایمان راوړے وے او د الله د رضا دپاره ئے خپل مال خرچ کولے نو د دوی به څه نقصان شوے وے؟ او کومه ملامتیا به دوی ته متوجه شوے وے؟ سره ددے نه چه په ایمان او انفاق کی خو په دنیا او آخرت کی چندونه چندونه اجرونه شته۔

په بل عبارت : په صحیح ایمان او د اخلاص په انفاق کی که بالفرض اجر نۀ وی نو ضرر هم پکی نشته او بی ایمانی او د ریاکارئ انفاق خو سراسر ضرر او تاوان دے نو پکار ده چه صحیح ایمان راوړے او په هر انفاق کی اخلاص وکړے شی۔ تا چه ایمان راوړو او په اخلاص سره دِے انفاق وکړو نو آیا ستا نوم به ونۀ شی؟ آیا ستا اجر به ضائع شی؟ آیا تۀ به د الله محبوب بنده جوړ نشے؟۔ (عقلمندو ته ډیر ښه دعوت دے)

دا یو قسم ربانی دعوت دے چه دے منافقانو له پکار دی چه د خپل ایمان تصحیح اُوکړی او د نفاق نه توبه اُویاسی او په اسلام کی په خالص زړهٔ سره داخل شی او صحیح انفاق وکړی۔

په بل عبارت : د صحیح ایمان او انفاق باعث موجود دے چه هغه د الله حکم او اجرونه او عوضونه دی او بل طرفته مانع موجود نۀ دے او هرکله چه مانع نۀ وی او باعث موجود

وی نو دغه حکم قبلول واجب وی۔

وَمَاذَا عَلَيْهِمْ : اَیْ اَیُّ ضَرَرٍ وَّتَبِعَةٍ۔ کوم ضرر او نقصان او ملامتیا به وې په دوی باندې په صحیح ایمان او انفاق کې۔

علامه ابوالسعودؒ فرمائي : نو پدې کې منافقانو ته توبیخ او رټنه ورکړې شوه چه دوی د منفعت اود فائدې ځای نه خبر نهٔ دی او په یو شي داسې عقیده لري چه د حقیقت خلاف وی، ○ او پدې کې تیزي ورکول دی دوی ته په فکر کولو په طلب د جواب کې، شاید چه دوی هغه څیزونه وپیژني چه په هغې کې به دوی ته لوی او ښائسته فائدې حاصلیږي. ○ او پدې کې تنبیه ده چه کله یو تن یو داسې کار ته دعوت کړې شي چه په هغې کې ضرر نهٔ وی نو مناسب ده چه هغه احتیاطاً خبره قبوله کړي، پاتې لا دا چه په هغې کې بیشماره فائدې وی، د هغې قبلول خو به خامخا لازم وی، ○ او دلته ئې ایمان مخکې ذکر کړو پدې کې اشاره ده چه د ایمان نه بغیر انفاق له هیڅ اعتبار نشته. اه۔

محاسن التاویل للقاسمي (۱/ ۲۹۷)

وَكَانَ اللّٰهُ بِهِمْ عَلِيْمًا : پدې کې جواب د سوال هم دې او تهدید (دهمکي) هم۔

سوال دا دې چه منافقان وائي چه مونږ د الله دپاره انفاق وکړو نو څوك به زمونږ صفت وکړي؟ نو الله فرمائي : چه الله په تاسو پوهه دې، ستا انفاق ئې ولیدو نو هغه به دې مدحه وکړي او د خلکو په زړونو کې به تا سره محبت واچوي نو د الله علم کافي دې، مخلوق ته څه ضرورت دې ؟!۔

دویم پدې کې تهدید (یو قسم دهمکي) ده چه که دوی خپل حالت بدل نکړو نو د الله د رانیولو انتظار دې کوي۔

| إِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ وَإِنْ تَكُ حَسَنَةً يُضَاعِفْهَا |
|---|
| یقیناً الله ظلم نهٔ کوي په اندازه د ذرې او که وی دا (ذره) نیکي نو دوچنده به کړي هغه |
| وَيُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ أَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۴۰﴾ |
| او وربه کړي د خپل طرف نه اجر لوی۔ |

**تفسیر** : پدې آیت کې بل لوی زیرې دې او ترغیب دې انفاق ته په صحیح طریقه۔ دا هغه دریم آیت دې چه سیدنا ابن عباسؓ ونیلي وو چه ددې امت دپاره د دنیا او ما فیها نه

غوره دي.

مناسبت : د منافقانو مالونه ضائع شو ځکه چه دوی ئې په غلطه طریقه لګوی نو راشئ په صحیح طریقه مالونه ولګوئ، الله به ستاسو معمولي عمل هم اګرکه د ذرې په اندازه وی نۀ ضائع کوی.

مِثْقَالَ : اصل کې یو دینار ته وائی چه شل دیناره شل مثقاله وی او دا د سرو زرو نصاب دې، او یو مثقال څلویښت قیراطونه دي. بیا مثقال د ثقل نه دې بوج ته وائی او د بوج په معنیٰ سره استعمالیږی بیا چه کله ورسره ذرّه وغیره لفظ ذکر شی نو په معنیٰ د مطلق مقدار او وزن سره استعمالیږی.

ذَرَّةٍ : ذرّه کې د ابن عباس رضی الله عنهما یو روایت دا دې چه دا سور میږی ته وائی او دا روایت د ابن مسعودؓ نه هم نقل دې (آلوسیؒ). O او دویم روایت دا دې چه دا د سور میږی سر ته وائی، او دریم روایت دا دې چه دا د خاورې ډیر میده ګرد او دوړې ته وائی.

O او ځینې وائی چه د نمر د پلوشو مخې ته چه کوم ذرات ښکاری او په لاس نۀ رانیول کیږی هغې ته ذرات وائی. O او ځینې وائی چه ذره د اُوری (غوښت، رائی) دانې ته وائی.

او دا بیا کنایه وی د ډیر معمولي شی نه او هرکله چه الله تعالیٰ دغه شانِ معمولي ظلم نکوی نو زیات خو به په طریق اولیٰ نکوی لکه بل آیت کې دی: ﴿ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ النَّاسَ شَيْئًا﴾ (یونس:٦١) الله تعالیٰ په انسانانو باندې هیڅ قسمه ظلم نکوی.

نو الله تعالیٰ داسې نکوی چه څوك د لږ عذاب مستحق وی هغه ته زیات عذاب ورکړی، یا د ډیر ثواب مستحق وی هغه ورله کمه کړی. البته په اجرونو کې د خپل رحمت په وجه فراخی او زیاتوالې راولی. الله تعالیٰ ولې ظلم نکوی ځکه چه کامل قدرت والا دې ظلم ته ئې ضرورت نشته.

وَإِنْ تَكُ : ضمیر (ذرة) ته راجع دې.

يُضَاعِفْهَا : یعنې الله تعالیٰ ئې زیاتې کوی په ډیرو چندونو سره لکه روستو وائی ﴿ وَيُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ أَجْرًا عَظِيمًا﴾ الله تعالیٰ د خپل فضل او مهربانئ د وجه نه لوی اجرونه ورکوی.

کله د یوې ذرې نه غرونه هم جوړ شی، دا ولې؟ دا د الله تعالیٰ د شکوریت او د فراخه رحمت تقاضا ده.

قتاده رحمه الله وائی : که زما یوه ذره نیکی زیاته شی ما ته دا د ټولې دنیا نه محبوبه ده.
(تفسير الطبری ٤/ ٨٨)

ابو هريره ﷺ فرمائي: [إِذَا قَالَ اللَّهُ أَجْرًا عَظِيمًا فَمَنْ يُقَدِّرُ قَدْرَهُ] کله چه الله تعالیٰ وائي چه لوی اجر دے نو ددے اندازه به څوك وكړي. چه عظیم ذات یو اجر ته لوی ووائي نو دا به څومره لوی وي!!.

په صحیحینو کی ابو سعید خدري ﷺ د رسول الله ﷺ نه د شفاعت په حدیث کی روایت کړیدے چه الله به اُووائي، لاړ شه د چا په زړهٔ کی چه د اُوري د دانے برابر هم ایمان وي هغه د اُور نه راوباسه. په یو بل روایت کی دی چه د چا په زړهٔ کی د ایمان ادنیٰ ذره هم وي نو هغه د جهنم نه راوباسه. نو ډیر خلق به د جهنم نه راویستلے شي.

ابو سعید اُووئیل چه که غواړئ نو د قرآن دا آیت: ﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ﴾ اُولولئ. لیکن کافرانو ته د نیکیانو بدله په دنیا کی ملاویږي. په آخرت کی به د دوی هیڅ نیکی د دوی په کار نهٔ راځي. (مسلم، ابوداود طیالسی)

امام احمدؒ او ابوداود الطیالسیؒ د انس ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل: [إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ لَا يَظْلِمُ الْمُؤْمِنَ حَسَنَةً، يُثَابُ عَلَيْهَا الرِّزْقَ فِي الدُّنْيَا وَيُجْزَى بِهَا فِي الْآخِرَةِ، وَأَمَّا الْكَافِرُ فَيُطْعَمُ بِهَا فِي الدُّنْيَا فَإِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ لَمْ يَكُنْ لَهُ حَسَنَةٌ] (مسند احمد: ١٢٢٨٦ وابوداود الطیالسی رقم: ٢٠١١ ومسند ابی یعلیٰ: ٢٨٤٤) واسناده صحیح، ارناووط/ حسین سلیم اسد) الله تعالیٰ په مؤمن باندے د هغه په نیکیو کی هیڅ ظلم نکوي، هغه ته د هغے په وجه په دنیا کی رزق ورکوي، او په آخرت کی به ئے بدله ورکوي او هرچه کافر دے نو هغه ته د نیکئ په وجه په دنیا کی (زیاتی) خوراك ورکوي نو کله چه د قیامت ورځ شي د هغه به هیڅ نیکی پاتی نشي.

| فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ |
|---|
| پس څرنګ به وي حال د دوی په هغه وخت چه رابه ولو مونږ د هر امت نه ګواه لره |
| وَجِئْنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ شَهِيدًا ﴿٤١﴾ يَوْمَئِذٍ يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا |
| اورابه ولو تا لره پدے کسانو ګواه. په دغه ورځ به خوښوی هغه کسان چه کفرئے کړیدے |
| وَعَصَوُا الرَّسُولَ لَوْ تُسَوَّىٰ بِهِمُ الْأَرْضُ |
| او نافرمانی ئے کړے د رسول ارمان چه هواره کړے شوے وے په دوی باندے زمکه |

وَلَا يَكْتُمُونَ اللهَ حَدِيثًا ﴿٤٢﴾

او نهٔ به شي پټولے د الله نه هيڅ خبره.

**تفسير**: پدے کی د منافقانو او کافرانو دپاره د آخرت سخت تخویف دے. او د قیامت هیبتونه او د هغه ورځے پریشانئ ذکر شویدی چه د کافرانو او شر او فساد والو به په هغه ورځ څه حال وی چه کله به مونږ د هر امت نه د گواه په شکل د هغوی رسول راویلو چه هغه به گواهی ورکوی چه دوی څنگه نیك اعمال کړی او څنگه ئے کفر او سرکشی کړے ده، دے دپاره چه ددے گواهئ مطابق د هغوی سره حساب اُوشی، او رسول الله ﷺ به د هغوی د امت د گواه په حیثیت سره رابللے کیږی دے دپاره چه د مؤمن او کافر او د موحد او مشرك پته اُولگی، او دے دپاره چه رسول الله ﷺ گواهی اُوکړی چه هغوی د الله پیغام رسولے وو او کوم امانت چه هغوی ته سپارلے شوے وو هغه ئے بغیر د کمی او زیاتی نه ادا کړے وو.

بخاری او مسلم د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت کریدے چه ما ته رسول الله ﷺ اُووئیل چه ما ته قرآن اُووایه؟ نو ما ورته اُووئیل چه اے د الله رسوله! زهٔ به ئے تا ته څنگه واورم او حال دا چه په تا باندے نازل شوے دے؟ نبی ﷺ اُوفرمایل چه آو، زهٔ د بل نه قرآن آوریدل خوښوم، نو ما د سورة نساء لوستل شروع کړل تردے چه دے آیت ته راورسیدم: ﴿فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا﴾ نو نبی ﷺ اُوفرمایل: اُوس بس کړه. فَالْتَفَتُّ إِلَيْهِ فَإِذَا عَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ) نو ما اُوکتل چه د هغه د سترگو نه اُوښکے روانے وے)). (بخاری ۲/۷۵۵) د امام مسلم په روایت کی دا الفاظ زیات دی:

چه ((زهٔ گواه وم ترڅو پورے چه زهٔ د هغوی په مابین کی وم)). (څکه پس د مرگ نه رسول الله ﷺ د امت په عملونو نهٔ پوهیدو)

او مطلب د آیت دا دے چه اے مجرمانو! تاسو ته په دنیا کی بیان وشو اُوس به عملونه برابروئ، که نهٔ وی د قیامت په ورځ به په تاسو باندے گواهی کیږی بیا به د الله نه خان نشئ خلاصولے، او ارمانونه به کوئ چه ارمان چه زمکه په مونږ همواره شوے وے او قیامت ته نهٔ وے راپورته شوی او په شرمونو او عذابونو باندے نهٔ وے اخته شوی.

وَعَصَوُا الرَّسُولَ: کافرو خو هسے هم د رسول الله ﷺ خلاف کریدے نو دا ورسره د څه حکمت دپاره ووئیل شو؟ نو ددے وجه دا ده (والله اعلم) چه پدے سورت کی د رسول الله

ﷺ شان ذکر کیږي ځکه چه هغه به د معاشرې اصلاح کوله او منافقانو به ورانے کولو نو الله فرمائي چه که ددې رسول خلاف مو وکړو نو بیا به ارمانونه کوئ.
لَوْ تُسَوّٰى بِهِمُ الْاَرْضُ : د کافر دا ارمان الله تعالیٰ په بل آیت کي داسے بیان کړیدے :
﴿ وَيَقُوْلُ الْكٰفِرُ يٰلَيْتَنِىْ كُنْتُ تُرٰبًا ﴾ (النبأ : ٤٠)
او کافر به وائي چه اے کاش ! چه زهٔ خاورے وے (یا خاورے شوے وی لکه نور حیوانات چه خاوری شو چه نهٔ ورله جنت شته او نهٔ جهنم)
او ددې دوه مطلبه دی (١) یو دا چه دوی به وائي چه ارمان مونږ د اول نه د خاورو په شان وے چه د سر نه انسانان پیدا نهٔ وے. (٢) دویم ابو هریره ﷺ فرمائي : کله چه د قیامت په ورځ حیوانات راپورته کړے شي او بیرته خاورے کړے شي ځکه چه د هغوی دپاره جنت او جهنم نشته نو کافران به په دغه وخت کي د هغوی د حالت ارمان وکړی.
لَوْ : کلمه تمنایه دے.

## سوال او د هغے جواب

که څوك سوال وکړی چه په سورت انعام (:٢٣) آیت کي راغلي دی چه مشرکان به وائي ﴿ وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ ﴾ قسم په الله چه مونږ (په دنیا کي) مشرکان نهٔ وو. او دلته وائي چه د الله نه به هیڅ خبره نشي پټولے؟
**جواب** : دلته مطلب دا دے : (لَايَقْدِرُوْنَ عَلَى الْكِتْمَانِ) دوی به په خبره پټولو قادر نهٔ وی ځکه چه الله خو د دوی په هر حال باندے عالم دے اگرکه دوی به کوشش کوی چه خبره پټه کړه. لیکن الله تعالیٰ به په دوی باندے د دوی اندامونه گواه کړی. (الکشاف)
**٢- جواب** : د ابن عباس ﷺ نه چا تپوس وکړو چه د قرآن په څلورو آیتونو کي زهٔ په اصلي مطلب باندے نهٔ پو هیږم (ما ته پکي تعارض ښکاري) یو د هغے نه دا آیت دے
(تفسیر البغوی١/ ٤٣٠)
نو هغه ورته جواب ورکړو چه د قیامت په ورځ مختلف مواقع او مواقف دی چه په بعض موقعو کي به اقرار کوی او په ځینو کي به انکار کوی چه کیدے شي په کومه خبره به خلاص شي، لکه دا د هر مجرم کار دے چه اول انکار وکړی بیا چه ورسره مخالف نرم شي نو وائي چه کیدے شي په اقرار خلاص شم. نو کله چه مجرمان انکار وکړی نو الله به په دوی باندے د دوی اندامونه گواه کړی نو په دغه وخت کي به دوی دغه ارمان وکړی او د

الله نه به هیڅ خبره نشی پټولې۔
او دویم اشکال راته په (وَكَانَ اللهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا) او (وَكَانَ اللهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا) کې دے چه ددے ظاهري معنیٰ دا ده چه الله پخوا زمانه کې غفور رحیم او عزیز حکیم وو۔ (آیا اُوس نهٔ دے)
دریم اشکال دا دے چه یو ځای کې الله فرمائي : ﴿ فَلَآ أَنْسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَّلَا يَتَسَاءَلُوْنَ ﴾ (المؤمنون:۱۰۱) (د قیامت په ورځ به د یو بل نه تپوس نه څوك نشي کولے۔ او بل ځای فرمائي: ﴿ وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَاءَلُوْنَ ﴾ (الطور:۲۵) یو بل ته به رامخامخ شي چه د یو بل نه به تپوس نه کوي۔ او څلورم اشکال دا دے چه په سورة النازعات کې ئے د آسمان پیدائش د زمکے د پیدائش نه مخکې ذکر کړیدے ﴿ وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحَاهَا ﴾ او په سورتِ فصلت :۹-۱۱) آیت کې ئے د زمکے پیدائش د آسمان د پیدائش نه مخکې ذکر کړیدے نو کوم یو مخکې پیدا دے ؟۔
نو هغه جواب ورکړو چه (غفورا رحیما) دا د الله تعالیٰ ازلي صفتونه دي، یعنی د پخوانه الله تعالیٰ خپل ځان دپاره دا نومونه ایخودي دي او اُوس هم بخنه کونکے دے۔
او د دریم نه جواب دا دے چه کوم آیت کې چه دا دي چه د قیامت په ورځ به یو بل نه تپوسونه نشي کولے نو دا په اوله نفخه کې مراد ده نو دغه وخت به نهٔ په نسبونو فخروي او نهٔ به تپوسونه وي۔ او بیا چه آخرت ته راپورته شي نو یو بل نه به تپوسونه کوي۔ او څلورم اشکال نه جواب دا دے چه اول ئے زمکه په دوه ورځو کې پیدا کړه او بیا ئے آسمان پیدا کړو بیا ئے آسمان ته قصد وکړو نو هغه ئے په دوه ورځو کې برابر کړو د هغے نه روستو ئے بیا زمکه راخوره کړه پدے طریقه چه په هغے کې ئے اُوبه او ګیاهګانے راوویستلے او غرونه او ګټهان ئے پکې پیدا کړل په دوه ورځو کې۔ نو آسمانونه په دوه ورځو کې پیدا شو او زمکه سره د خورولو نه په څلورو ورځو کې۔ (البخاري في التفسير في حم السجدة، تعليقاً وموصولا - تفسير البغوي ۲/۲۱۸)

| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارٰى حَتّٰى تَعْلَمُوْا مَا |
| --- |
| اے ایمان والو! مهٔ نزدے کیږئ مانځه ته چه تاسو نشه یئ تردے چه پوهه شئ په هغه خبره |
| تَقُوْلُوْنَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِيْ سَبِيْلٍ حَتّٰى تَغْتَسِلُوْا وَإِنْ |
| چه وایئ تاسو او نهٔ چه پلیت یئ مګر تیریدونکي د لارے تردے چه غسل اُوکړئ او که |

| كُنْتُمْ مَرْضَىٰ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِّنْكُم مِّنَ الْغَآئِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ |
|---|
| يئ تاسو بيماران او يا په سفر باندے يا راشي يو تن ستاسو د كندے نه يا مسه كړې وى تاسو |
| النِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوْا |
| زنانو لره نو نۀ موندۀ كوئ اوبه نو قصد اوكړئ د پاكے خاورے پس مسه اوكړئ |
| بِوُجُوْهِكُمْ وَأَيْدِيْكُمْ إِنَّ اللهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُوْرًا ﴿٤٣﴾ |
| په مخونه خپلو او لاسونو خپلو بيشكه الله معافى كونكے مهربانه دے۔ |

**تفسیر :** **ربط :**

(۱) د مخكى نه احكام انتظاميه شروع دى او په مينځ كى ئے په منافقانو رد وكړو نو اوس نور احكام انتظاميه بيانوى او ددے تعلق د ﴿وَاعْبُدُوا اللهَ﴾ سره دے يعنى وَاعْبُدُوا اللهَ فِيْ حَالَةِ الصَّحْوِ لَا فِيْ حَالَةِ السُّكْرِ۔ د الله بندگى په داسے حالت كى وكړه چه ستا دماغ برابر وى او د نشے حالت نۀ وى. دارنګه د الله بندگى (مونځ) په حالت د طهارت كى وكړه نۀ په حالت د جنابت كى۔ (۲) مخكى طهارت د اموالو وو د رياء نه چه هغه طهارت باطنى دے نو اوس طهارتِ ظاهرى بيانيږى۔ (۳) مخكى ښائسته اخلاقو ته ترغيب وو چه هغه حقوق د بندگانو وو اوس د الله په حقوقو كى اخلاص ذكر كوى۔ (آلوسیؒ)

شان نزول

دا آيت په هغه وخت كى نازل شوے وو چه شراب لا حرام نۀ وو نو بعض صحابه كرام (عبد الرحمن بن عوف ﷺ) خپلو ملګرو ته مخكى شو چه په حالت د نشه كى ئے مونځ كولو نو ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ﴾ كى ئے د (لَا أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُوْنَ) په خاى (أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُوْنَ) ئے ولوستل چه ترجمه ئے بيخى برعكس شوه نو دا آيت نازل شو۔ چه د مونځونو په وختونو كى به شراب نۀ څكئ نو دا د شرابو د حراميدو دويمے مرحلے سره تعلق لرى۔ لكه تفصيل د سورة البقره آيت (۱۲۹) لاندے ذكر شويدے۔ نو پدے طريقه به ډير خلك شراب نۀ څكى څكه چه پنځه وختونو كى به ډير كم شراب څكل كيږى، پدے وجه علماء فرمائى څوك چه د پنځو مونځونو پابند شو نو ډير جائز خواهشات به ترے پاتى كيږى پاتے لا حرام۔

وَأَنْتُمْ سُكَارٰى : سكارى جمع د سَكْرَانٌ ده، سُكر په معنیٰ د نشے سره دے۔ او ددے نشے اندازه دا ده چه ددے سره عقل دومره نقصاني شي چه د هغے په وجه په قرائت کی گډوډ کیږی او په خپلو خبرو نهٔ پو هیږی۔
علماء فرمائی : که یو تن د نشے په حالت کی مونځ کوی نو دا مونځ شرعًا مونځ نهٔ دے بلکه دوباره به ئے کوی۔ او پدے کی دا هم داخلیږی چه څوك په جهالت سره مونځ کوی او د مانځه د ترجمے نه هم خبر نهٔ دے چه زهٔ څه وایم پدے کی هم د(حَتّٰى تَعْلَمُوْا مَا تَقُوْلُوْنَ) علت موجود نهٔ دے۔ ددے وجه نه عبد الله بن عباس رضي الله عنهما فرمائی : [لَيْسَ لَكَ مِنْ صَلَاتِكَ إِلَّا مَا عَقَلْتَ مِنْهَا] (مدارج السالكين: ١١٢/١ واتحاف السادة المتقين١١٢/٣ و ١٢٣/٤)
ستا هغه مونځ قبلیږی چه ته په کی په توجه سره ئے او د هغے په ترجمه پو هیږے۔
ددے وجه نه مسلمانانو له د مانځه ترجمه زده کول ضروری دی۔ او د حدیث د وجه نه پدے کی خوب هم داخلیږی چه یو تن د شپے مانځه (تهجدو) ته راپاڅیږی او هغه د پیرشانئ حالت کی دے، دماغ ئے پوره کار نهٔ ورکوی او مونځ کوی نو رسول الله ﷺ فرمائی: دا دے اُوده شی تردے چه ددهٔ نه خوب لاړ شی، ځکه چه دے نهٔ پو هیږی چه شاید دے به بخنه غواړی نو ځان ته به ښیرے وکړی۔ (بخاری :٢١٢)
د (اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِیْ) (اے الله ما ته بخنه وکړه) په ځای به ئے (اَللّٰهُمَّ اعْفِرْ لِیْ)
اے الله !ما په خاورو ککړ کړه) به ووائی۔
د عبد الله بن مسعود ﷺ نه یو بل تفسیر داسے نقل دے چه دلته د (الصلاة) نه مراد (مَوَاضِعُ الصَّلَاة) دے یعنی د مانځه ځایونو ته مهٔ نزدے کیږئ چه هغه مساجد دی په حالت د نشه کی، او نهٔ په حالت د جنابت کی۔
وَلَا جُنُبًا : ددے دوه تفسیرونه دی (١) د ابن مسعودؓ د تفسیر مطابق ددے مطلب دا دے چه دمانځه ځای ته چه مساجد دی په حالت د جنابت کی مهٔ نزدے کیږئ نو جنب به مسجد ته نهٔ ننوزی مگر که په لاره کی مسجد وی نو په هغے کی تیریدل جائز دی نو د (إِلَّا عَابِرِیْ سَبِيْلٍ) معنیٰ به دا وی (إِلَّا مُجْتَازِيْنَ فِي الْمَسْجِدِ) مگر که مسجد کی تیریدونکی وی دپاره د داخلیدو یا دپاره د وتلو نو جائز ده۔ یا (عَابِرِیْ سَبِيْلٍ) مسافر ته وائی نو د هغه دپاره په حالت د جنابت کی هم مسجد ته راتلل جائز دی، تیمم به ووهی او مسجد ته به راننوزی، خاصکر کله چه غسلخانه هم په مسجد کی وی اگر که بلا ضرورته د جنب دپاره مسجد کی کیناستل نهٔ دی پکار نو ددے نه معلومه شوه چه جنب مطلقاً نجس نهٔ دے چه بیخی

به مسجد ته نۀ راځي.
ابن جریرؒ وغیره روایت کړیدے چه د بعض صحابه کرامو د کورونو دروازے مسجد نبوی ته کولاوے وے او هغوی به په مسجد کې تیریدل نو د دوی په باره کې د آیت دا حصه نازله شوه چه په حالت د جنابت کې په مسجد کې تیریدل د هغه چا دپاره جائز دی چه د هغوی د کورونو دروازے مسجد ته کولاوے وی.
(۴) تفسیر: ولا جنباً دویم حال دے د (الصلاة) نه أیْ لَاتَقْرَبُوا الصَّلَاةَ جُنُبًا.
تاسو مۀ نزدے کیږئ مانځه ته پداسے حال کې چه تاسو جنب یئ، مګر که مسافر وی نو د هغه په حالت د جنابت کې هم مونځ کیږی خو پدے شرط چه تیمم ووهی لکه روستو هغه بیانوی ځکه چه مسافرین اکثر په صحراوونو کې روان وی اُوبه ورته نۀ ملاویږی.
او که په تیمم قادر نۀ وی نو همداسے به مونځ کوی دے شخص ته فَاقِدُ الطُّهُوْرَیْن وائی (یعنی د پاکئ دواړه اسباب ئے ورك کړیدی) او تفصیل دپاره الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح جلد (۲) ته رجوع وکړه. او دا تفسیر د علی بن ابی طالب، ابن عباس رضی الله عنهم او سعید بن جبیر او مجاهد رحمهما الله دے.
وَإِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰى: اُوس نور احکام ذکر کوی چه مثلاً یو تن په غسل باندے قادر نۀ دے د مرض د وجه نه لکه د ابن عباسؓ نه نقل دی چه زخمی شویدے یا وربان‌دے د جُدری مرض (شِیری/شَری) راغلے دے او دے جنب شویدے نو دے به څه کوی؟
نو ددے سره د اُودس حکم هم بیانوی، نو ډیر صورتونه ئے یو ځای کړیدی، او دا د روستو (فَلَمْ تَجِدُوْا مَاءً) سره لګی او مریض ته چونکه اُوبه ملاویږی لیکن عدم قدرت د هغه په منزله د عدم د اُوبو دے.
اَوْ عَلٰى سَفَرٍ : یا مسافر دے چه اُوبه ورته نۀ ملاویږی.
مِنَ الْغَآئِطِ : غائط ژورے کندے ته وائی او دا د الله تعالیٰ ادبی کلمات دی چه د قضاء حاجت دپاره ئے استعمال کړیدی، ژوره کنده کې خلك خپل حاجت پوره کوی.
اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ : دلته د جنابت بل علت بیانوی چه کله سړے په احتلام سره جنب کیږی او کله د خپلی بی بی سره د ملاویدو په وجه.

## د ملامسه څه معنیٰ؟

أَوْلَامَسْتُمْ: کلمه د مُلَامَسَه نه اخستلے شویده او ملامسه دوه معنے لری (۱) لاس وروړل.

(۲) جنسی تعلقات قائمول۔ د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه دلته د ملامسه نه مراد جماع کول دی او همدا غوره تفسیر دے۔ (ابن کثیر ۱/ ۵۰۰)
پدے کی امام شافعیؒ اوله معنیٰ هم مراد کړیده چه د هغه قول پدے باب کی د دلائلو په اعتبار سره ضعیف دے، ځکه چه رسول الله ﷺ به خپلے بعض بیبیانو ته لاس وروړو او بیا به ئے مونځ کولو او اودس به ئے نهٔ کولو۔ (النسائی ۲/ ۳۹ رقم: ۱۰۵)
او دا قول دوه صحابه کرامؓ (ابن مسعود او ابن عمر رضی الله عنهما) ته هم منسوب دے (الطبرانی وابن جریر) لیکن کیدے شی چه هغوی ته مرفوع روایات نهٔ وی رسیدلی۔ (قاسمی ۲/ ۳۰۹)
نو دلته الله تعالیٰ د اوداسه سبب د کندے راتلل ذکر کړل او د جنابت سبب ئے په لمس النساء سره ذکر کړو او د جنابت زائل کونکے ئے غسل بیان کړو او د بی اودسیٔ زائل کونکے اودس دے چه هغه ئے په سورة المائده کی ذکر کړیدے دلته ئے د هغے بدل (تیمم) ذکر کړیدے۔ نو دا د قرآن کریم بلاغت دے چه حکم ئے سره د خپل سبب نه بیان کړو۔
**فَتَيَمَّمُوا** : تیمم په لغت کی قصد ته وائی۔
**صَعِيدًا** : صعید، وجه الارض (د زمکے مخ) ته وائی چه اصل یکی خاوره ده او نور هر شے چه په زمکه وی، شړه وی یا کاڼړی وی په هغے هم جائز ده۔ لکه په اوږد حدیث کی دی: [وَجُعِلَتْ لِيَ الْأَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدًا وَطَهُورًا] زما دپاره ټوله زمکه جومات او پاکونکے ګرځولے شویده۔ یعنی په هر ځای کی مونځ جائز دے او په هر ځای کی تیمم جائز دے۔ (بخاری: ۳۳۵ ومسلم: ۱۱۹۵)

## د تیمم سببونه

د تیمم دوه قسمه اسباب دی:
(۱) وړاندے سببونه دا دی، مرض، سفر، د دشمن نه یره، د کوهی نه د اوبو راپورته کولو د سامان نشتوالے وغیره۔
(۲) نزدے سببونه دا چه د سړی اودس مات شی یا اودس مات کړی یا پرے جنابت واوړی او ځان جنب کړی۔
نو الله تعالیٰ پدے مقام کی د دواړو قسمونو دپاره دوه دوه مثالونه ذکر کړل یو یو د اختیاری (نزدے او وړاندے) اسبابو لکه سفر او جنب کیدل او یو یو د غیر اختیار (وړاندے او نزدے) اسبابو لکه مرض او انسانی ضرورت پوره کول، که دا تفصیل ئے نهٔ وے کړے نو

امکان وو چه د چا ذهن ته دا خبره راغلې وي چه کله څوك په قصد سره داسې ځای ته سفر وکړي چه هلته اوبه نه وي او یا په قصد سره ځان جنب کړي نو دغسې سړي دپاره به تیمم جائز نه وي نو د الله په مهربانی سره دغه اشتباه د مخکښې نه ختمه شوه او وې فرمایل چه الله عفوه کونکې دې او هم بخونکې دې پدې وجه ئې تاسو ته په اختیاری اسبابو کې هم د تیمم اجازه درکړه. (عزیز التفاسیر ۳/۱۶۵)

## د تیمم طریقه

**فَامۡسَحُوۡا** : دا د تیمم طریقه ده چه دواړه لاسونه به په زمکه ووهی او بیا به ئې په مخ راکاږی او بیا په لاسونو، پدې کې داسې هم جائز دی چه اول لاسونه خپل مینځ کې یو په بل راکاږی او بیا په مخ باندې. دواړه په حدیثونو کې راغلې دی.

**بِاَیۡدِیۡكُم** : لاسونه خو د ګوتو د سرونو نه تر ترخونو پورې وی لیکن د احادیثو په وجه باندې د لاسونو نه مراد دلته د مروندونو پورې دی د بخاری او مسلم په روایاتو کې، او د سُننو په روایتونو کې تر څنګلو پورې هم راغلی دی هغه هم حسن حدیثونه دی، هغه طریقه هم جائز ده مګر اوله طریقه یکې ډیره غوره ده. باقی تشریح «الحق الصریح» کې وګورئ.

| |
|---|
| اَلَمۡ تَرَ اِلَی الَّذِیۡنَ اُوۡتُوۡا نَصِیۡبًا مِّنَ الۡكِتٰبِ یَشۡتَرُوۡنَ |
| آیا ته نه ګورې هغه کسانو ته چه ورکړې شویده څه حصه د کتاب نه اخلی دوی |
| الضَّلٰلَةَ وَیُرِیۡدُوۡنَ اَنۡ تَضِلُّوا السَّبِیۡلَ ﴿۴۴﴾ وَاللّٰهُ اَعۡلَمُ |
| ګمراهئ لره او اراده لری چه تاسو ورکه کړئ لاره (سمه). او الله تعالیٰ ډیر ښه پوهه دې |
| بِاَعۡدَآئِكُمۡ ؕ وَكَفٰی بِاللّٰهِ وَلِیًّا ۫ وَّكَفٰی بِاللّٰهِ نَصِیۡرًا ﴿۴۵﴾ |
| په دشمنانو ستاسو او کافی دې الله دوست او کافی دې الله تعالیٰ مدد ګار. |

**تفسیر** : ددې ځای نه تر (۵۷) آیت پورې په اهل کتابو ردونه بیانیږی او د هغوی قبیح صفات ښکاره چه دا هغه خلك وو چه د الله تعالیٰ د احکامو په باره کې به ئې مسلمانانو ته اشتباهات اچول او د حقې لارې نه د اړولو کوشش به ئې کولو نو الله تعالیٰ مسلمانانو ته فرمائی چه دوی وپیژنئ خطا مو نکړی او معاشره درله ګنده نکړی.

نو پدې کې څلور بد صفتونه ذکر کوی یو دا چه (اُوۡتُوۡا نَصِیۡبًا مِّنَ الۡكِتٰبِ) : دوی ته معمولی شان علم د تورات ورکړې شویدې نور جاهلان دی. د الله په کتاب ئې په حقیقی

معنو کې ځان نهٔ دے پوهه کړے، صرف د خپل غرض په انداز ئے ځان پوهه کړیدے۔

(۲) خپله ګمراهي اخلي، او د حقے لارے نه اوړیدلي دي۔ (۳) او اراده لري چه تاسو هم ګمراه کړي او د نیغے لارے نه مو واړوي۔ (٤) دوی ستاسو دشمنان دي، د مؤمنانو سره دشمني کوي، کوشش کوي او فکر کوي چه مؤمنان په کومه ذریعه بې لارې کړي۔

**الضَّلٰلَةَ** : د ګمراهۍ نه مراد هر قسم ګمراهیاني او خاصکر په قرآن کریم او په آخري رسول باندے کفر کول دي۔ او د اشتراء نه مراد استحباب دے یعني دوی ته ګمراهي دومره خوښه ده لکه یو شے چه اخلي او ورپسے ګرځي۔

**وَیُرِیْدُوْنَ** : یعني دوی په خپله ګمراه دي او د مؤمنانو د ګمراهۍ کوشش کوي، لکه ابن ابی حاتم د عِکرمہ نه نقل کړیدي چه د یهودو څه کسان به د بعض مؤمنانو خوا ته راتلل او ځانونه به ئے ورته خیرخواه خودل او دا به ئے ورته ویل چه تاسو مالونه مهٔ خرچ کوئ ځکه چه مونږ په تاسو باندے د فقیرۍ نه یریږو او په خرچه کې جلتي مهٔ کوی ځکه چه پته نهٔ لګي چه روستو څه کیږي۔

نو الله فرمائي چه هرکله چه دوی تاسو پسے لګیدلي دي نو تاسو ترے ځانونه بچ کړئ او الله تعالیٰ ستاسو خیر خواه دے ځکه ئے درله خبر درکړو۔ دلته د ارادے نه مراد کوشش کول دي یا اراده ئے ذکر کړه پدے وجه چه د نورو خلکو ګمراه کول د دوی په اختیار کې نهٔ دي او دا دلیل دے چه د ګناه او د بل چا د ګمراه کولو اراده کول هم کبیره ګناه ده۔

**وَکَفٰی بِاللّٰهِ وَلِیًّا** : یعني الله تعالیٰ ستاسو کافي دوست او کافي مددګار دے نو د دوی دوستانه مهٔ خوښوئ او دا طمع مهٔ لرئ چه دوی به په وخت د مصیبت کې ستاسو مدد وکړي بلکه د الله نه مدد غواړئ۔ زجاج داسے معنيٰ کوي: وَاکْتَفُوْا بِاللّٰهِ وَلِیًّا وَاکْتَفُوْا بِهٖ نَصِیْرًا– فَثِقُوْا بِوَلَایَتِهٖ وَنَصْرِهٖ۔ یعني الله کافي دوست وګڼرئ او هغه کافي مددګار وګڼرئ او د هغه په ولایت او مدد باندے اعتماد وکړئ۔ (خازن)

| مِنَ الَّذِیْنَ هَادُوْا یُحَرِّفُوْنَ الْکَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ وَیَقُوْلُوْنَ |
|---|
| بعضے د هغه کسانو نه چه یهودیان دي بدلوی کلمے د ځایونو خپلو نه او وائي دوی |
| سَمِعْنَا وَعَصَیْنَا وَاسْمَعْ غَیْرَ مُسْمَعٍ وَّرَاعِنَا |
| چه واوریدل مونږ او نافرماني کوو مونږ او واوره ته تا ته دِے وانهٔ ورولے شي او (وائي دوی) |

| لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِي الدِّينِ وَلَوْ أَنَّهُمْ |
|---|
| لفظ د راعنا په تاوولو د ژبو خپلو سره او په بد وئیلو سره په دین کې او که چرې دوی |
| قَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا وَاسْمَعْ وَانْظُرْنَا |
| وئیلی وے چه واوریدل مونږ او تابعداری کوو مونږ او واوره ته او اُوګوره مونږ ته |
| لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَأَقْوَمَ وَلَٰكِن |
| نو خامخا وے به دا غوره د دوی دپاره او ډیر برابرونکے (دوی لره د الله په دین) او لیکن |
| لَّعَنَهُمُ اللَّهُ بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٤٦﴾ |
| لعنت کړے دے په دوی باندے الله تعالیٰ په سبب د کفر د دوی نو ایمان نۀ راوړی دوی مګر لږ شان۔ |

**تفسیر**: پدے کې د یهودیانو نور قبیح صفات ذکر دی۔

شان نزول

ابن جریرؒ، ابن ابی حاتمؒ اوبیهقیؒ په «دلائل النبوة» کې د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه رفاعه بن زید بن تابوت لوئی شیطان د یهودیانو نه وو، کله چه به ئے د رسول الله ﷺ سره خبرے کولے نو خپله ژبه به ئے تاووله او خبرے به ئے کولے، دے دپاره چه د الفاظو معانی بدله شی او په خپلو مجلسونو کې به ئے همیشه د اسلام پسے بدے خبرے کولے، نو دا آیت نازل شو چه دا یهودیان د هدایت په بدله کې ګمراهي اخلي، او د دنیاوی مفادو د خاطره د هغوی سره چه د رسول الله ﷺ په باره کې کوم علم دے هغه پټوی، او غواړی چه مسلمانان هم د هغوی په شان کافران شی۔

یهودیانو به د الله کلام (تورات) د خلقو د ګمراه کولو دپاره بدلولو او د نبی کریم ﷺ سره په کفر او عناد کې به ئے وئیل چه مونږ ستا خبره واوریدله او ستا نافرمانی کوو او دا به ئے هم وئیل چه (اِسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ) یعنی زمونږ خبره واوره غوږونه دے کانړه شه چه هیڅ شے وانۀ وریے یا – الله دِے اُوکړی چه ته زمونږ خبره وانۀ وریے، او کله چه به هغوی رسول الله ﷺ ته د خطاب کولو په صورت کې (رَاعِنَا) وئیلو چه ددے ظاهری معنیٰ ده ((زمونږ خیال اُوساته)) نو خپله ژبه به ئے تاووله دے دپاره چه ددے معنیٰ بدله شی او (شپونکے یا کم عقل) شی۔ نو الله تعالیٰ هغوی ته د یهودیانو باطنی خباثت بیان کړو او دا نصیحت ئے

اُوکړو چه که دوی ونیلی وے چه مونږ ستا خبره واوریدله او ستا اطاعت کوو او ونیل ئے چه ته زمونږ خبره واوره او زمونږ خیال اُوساته نو دا د دوی دپاره بهتره وه. لیکن الله د دوی د کفر په وجه په دوی باندے لعنت کړے وو پدے وجه دوی به صرف د نوم دپاره ایمان راوړلو. یا په دوی کی ډیر لږ کسان ایمان راوړی.

مِنَ الَّذِينَ هَادُوا : (۱) ددے عبارت نه روستو (قوم) لفظ پټ دے نو دا مبتداء او خبر شو. یعنی د یهودیانو نه څه خلك داسے دی چه په کلماتو کی تحریف کوی.

(۲) یا دا متعلق دے د (اَلَّذِينَ اُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ) سره یعنی دغه کتاب والا څوك دی؟ دا د هغه خلکو نه دی چه یهودیان دی او تحریفات کوی.

يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ : تحریف د حرف نه اخستلے شویدے چه طرف ته وائی نو د یو شی د تحریف معنیٰ دا ده چه یو شے د خپل اصلی ځای نه بی ځایه کړے شی او یا د خپل اصلی مِحْوَر نه یو څنډے ته ورتاؤ کړے شی.

الکلم : اسم جنس دے او مفرد ئے (كَلِمَةٌ) دے. او د کلماتو نه مراد د تورات کلمات دی یا د قرآن او د رسول الله ﷺ کلمات، نو معنیٰ ئے دا کیږی چه اهل کتاب په مطلق کلمو بدلولو باندے صرفه نهٔ کوی اګرکه د آسمانی کتاب کلمے وی، کله ئے د خپل ځای نه بیخی بی ځایه کوی لکه د تورات نه ئے د رجم آیت ویستلے وو خو پټ ئے نکړے شو او کله پکی غلط تاویل کوی او کله پړے داسے طریقے سره تلفظ کوی او د ژبے په څنډه ئے ادا کوی چه خلك پړے د بلے کلمے ګمان وکړی. (روح المعانی ۴٦/۵)

وَاسْمَعْ : دا عطف دے په (سَمِعْنَا) باندے یعنی دوی رسول الله ﷺ ته دا خبره هم کوی چه زمونږ خبره واوره او تا ته دے آوریدل ونشی.

## د غیر مسمع څه معنی؟

غَيْرَ مُسْمَعٍ : دا په ترکیب کی حال واقع شویدے د (وَاسْمَعْ) د مستتر ضمیر نه نو ددے درے مطلبونه جوړیږی (۱) یو دا چه (اِسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ مَكْرُوهًا وَلَا اَذًى) په داسے حال کی زمونږ خبره واوره چه تا ته دے بدے او د تکلیف خبرے وانهٔ وروله شی یعنی د خوشحالئ په حال کی زمونږ خبره واوره.

(۲) یا (اِسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ خَيْرًا) په داسے حال کی زمونږ خبره واوره چه ښو خبرو لره آوریدونکے نهٔ ئے. یعنی داسے خبرے دِے وانه وری چه ته پرے خوشحالیږے. یا دا چه ته دے

خبرے وانۀ ورے چه پخی قوت سامعه دے ختمه شی او کوڼ شے - (زمخشری)
او څینی وائی چه مطلب ئے دا وو چه تۀ دے مړ شے ځکه چه مړے هم آوریدل نشی کولے.
نو دے لفظ دوه احتماله لرل د خیر او د شر پدے وجه به دوی دا لفظ ښکاره استعمالولو یا دا
چه دوی به دا لفظ (غَيْرَ مُسْمَعٍ) پټ روستو ورپسے وئیلو.
(۳) او د حسنؒ او مجاهدؒ نه نقل دی چه (غَيْرَ مُسْمَعٍ) په معنیٰ د (غَيْرَ مَقْبُوْلٍ مِنْكَ او غیر
مُجَابٍ دے (قرطبیؒ، ابن عطیة فی المحرر الوجیز) یعنی ستا قبول والے او اجابت دے ونکړے
شی. یعنی تۀ زمونږ نه آوره او مونږ ستا خبره نشو منلے.
وَرَاعِنَا : دا هم په (سَمِعْنَا) باندے عطف دے یعنی دوی رسول الله ﷺ ته (رَاعِنَا) لفظ
استعمالوی.
(لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ) دا مفعول له دے د (يَقُوْلُوْنَ) دپاره. یا حال دے په معنیٰ د (لَاوِيْنَ) سرۃً.
یعنی په غَيْرَ مُسْمَعٍ او رَاعِنَا باندے ژبی اړوی ځکه چه دا کلمات دوه احتماله لری، د خیر
او د شر دواړو. نو راعنا یوه معنی ده : مونږ ته وګوره او زمونږ لحاظ وساته چه مونږ
درسره خبرے وکړو. او غلطه معنیٰ ئے دا وه چه دوی به په عبرانئ ژبه کی پدے کلمه
کنځلے کولے، یا د رُعُوْنَةٌ نه وو په معنی د کم عقلیا سره، یا به ئے پکی یاء زیاته کړه
(رَاعِيْنَا) زمونږ شپونکے (یعنی ساده).
نو دوی به په دغه الفاظو ژبے ککړولے چه د دغه الفاظو ښه معنیٰ به ئے ښکاره کوله او
مقصد به ئے غلطه معنیٰ وه، دا د دوی منافقت وو.
او دا د یهودو مرض دے چه دے امت ته هم رانقل شویدے چه روغه خبره ککړه کوی او
مهمه خبره غیر مهمه ښکاره کوی او د غیر مهمے نه ضروری جوړوی، پکار دا ده چه هره
مسئله په خپله مرتبه کی بیانه کړے شی، که چرته دینی مسائل کاره نه بیانیدلے نو ډیرو
خلکو ته به هدایت کیدلے، خو افسوس چه ډیر جاهل ملیان د قرآن آیت او د رسول الله ﷺ
احادیثو کی کوږوالے پیدا کوی. خپل مذهب او پارټئ طرفته ئے راتاووی. صحیح حدیث به
ضعیف کوی او کله به ئے د پخوانئ زمانے سره لګوی او کله به وائی چه دا حدیث صحیح
دے لیکن د امام شافعیؒ د مذهب موافق دے، دا ټول د لَيُّ اللِّسَانِ مصداقات دی.
یا لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ : مفعول مطلق دے د فعل محذوفه دپاره یعنی (يَلْوُوْنَ لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ). یعنی
دوی تاووی ژبے خپلے.
وَطَعْنًا فِي الدِّيْنِ : دا هم د مخکی په شان حال دے په معنیٰ د طَاعِنِيْنَ سره یا مفعول له، یا

مفعول مطلق دے د پټ فعل دپاره اَیْ یَطْعَنُوْنَ طَعْنًا فِی الدِّیْنِ : یعنی دوی په دین اسلام باندے عیبونه لګوی او توقے ورپورے کوی، او مطلب ئے دا دے چه دوی په دغه کلماتو کی څکه تحریف کوی چه په اسلام باندے عیب لګول ئے مقصد دے چه دا حق دین نهٔ دے، که دا حق دین وے نو مونږ به ئے سپکاوے نهٔ وے کړے۔

وَلَوْ اَنَّهُمْ : اُوس الله پدے جمله کی دوی ته ترغیب ورکوی خیر طرفته چه تاسو له دغه کارونه نهٔ وو پکار بلکه که دوی د عَصَیْنَا په ځای اَطَعْنَا وئیلے او د غَیْرَ مُسْمَعٍ لفظ ئے نهٔ وئیلے او د (رَاعِنَا) په ځای ئے (اُنْظُرْنَا) وئیلے نو دا به دوی له غوره وے څکه چه د تابعداریٔ اعلان به ئے کړے وے۔

وَاَقْوَمَ : اَیْ اَقْوَمَ لَهُمْ عَلَی الصِّرَاطِ الْمُسْتَقِیْمِ۔

او دا به دوی لره په نیغه لاره برابرونکے وے څکه چه دا اصول دی چه همیشه نیکے او صحی خبرے انسان لره نیغے لارے او حق ته راکاږی او زړونه او عملونه ورله جوړوی (وَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِیْدًا یُصْلِحْ لَکُمْ اَعْمَالَکُمْ) او په کږو خبرو باندے د انسان زړه او عملونه خرابیږی، نو څوك چه غلطے او کږے خبرے کوی نو اکثر د هغوی عملونه برباد وی۔

علامه قاسمیؒ وائی (لَکَانَ خَیْرًا لَّهُمْ) دا خبرے به دوی لره په دنیا کی هم ښے وے چه وینه او مالونه به ئے محفوظ شوی وے او مرتبه به ئے پورته شوے وے څکه چه دوی به په ټولو آسمانی کتابونو ایمان راجمع کړے وے۔ او په آخرت کی به ورله دوچنده ثوابونه ورکړے شوی وے۔ (نقله عن المُهایمیؒ)

خَیْرًا : اسم تفضیل په معنیٰ د اسم فاعل دے او معنیٰ تفضیلی پکی نشته۔ یا دا چه خیریت په مُفَضَّلٌ عَلَیْهِ کی د دوی په ګمان او عقیده کی مراد دے۔ یعنی که د دوی په دغه خبرو کی خیر وی نو په دغه صحیح کلماتو کی به د دوی دپاره ډیر خیر وی اګرکه په واقع کی د دوی په دغه کلماتو کی هیڅ خیر نهٔ وو۔ (قاسمیؒ وابو السعودؒ)

وَلٰکِنْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِکُفْرِهِمْ : لیکن دے خلکو کی کفر او عناد موجود دے او په هغے باندے همیشوالے کوی پدے وجه الله تعالیٰ د هدایت او د خپل رحمت نه جدا کړیدی او دا توفیق ورته نهٔ ملاویږی چه ددے فسادونو نه ځانونه وساتی۔

فَلَا یُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِیْلًا : (۱) (قَلِیْلًا) دا په اعتبار د موصوفِ محذوفه سره د (لایؤمنون) نه استثناء ده یعنی لَا یُؤْمِنُوْنَ اِلَّا اِیْمَانًا قَلِیْلًا ۔ دوی ایمان نهٔ راوړی مګر لږ ایمان او لږ ایمان دا دے چه صرف په موسیٰ علیه السلام او د هغه په کتاب تورات باندے ایمان لری او په نورو

رسولانو او کتابونو باندے کفر کوی او دا ایمان د الله په نیز معتبر نهٔ دے، او پدے کامیابی نهٔ ملاویږی، دا هسے لغوی ایمان دے۔

او دا تفسیر ابوعلی الفارسیؒ راجح کړیدے ځکه چه قلیلا مفرد دے او که دلته خلك مراد وے نو بیا به جمع شوے وے لکه د (لَشِرْذِمَةٌ قَلِيْلُوْنَ) په شان۔ (قاسمی)

یا قلیل په معنیٰ د عدم سره دے یعنی بیخی ایمان نهٔ راوړی لکه عرب قلت په ځای د عدم کی استعمالوی۔ (قاسمی)

صاحب المنار وائی : (فَلَا يُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا اَیْ اِیْمَانًا لَا يُعْتَدُّ بِهٖ)

یعنی دوی لږ ایمان راوړی یعنی داسے ایمان راوړی چه هغے له اعتبار نشته ځکه چه انسان په ټول ایمان باندے مکلف دے او په هغے باندے نجات ملاویږی۔ (المنار ۵/۱۲۰)

(۲) یا قلیلا استثناء ده د (لایؤمنون) د فاعل ضمیر نه۔ اَیْ لَا يُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ۔

یعنی دوی کی ډیر کم کسان ایمان راوړی او اکثر یکی ضدیان دی چه د حق ښکاره کیدو نه پس هم په خپل ضد کلك ولاړ وی۔

او پدے استثناء باندے سوال وجواب په تفسیر قاسمی کی وکوریٔ۔

مختصر دا چه خفاجیؒ پدے اعتراض کړے چه بیا خو ښکاره وه چه (قلیل) مرفوع وئیلے شوے وے ځکه چه دا کلام غیر موجب دے نو مرفوع دے بنا بر بدلیت۔

او ابوالسعودؒ وائی : چه بیا پدے کی قراؤ ته دا نسبت لازمیږی چه دوی په غیر مختار باندے اتفاق کړیدے۔ جواب دا دے چه دا خبره د دوی مردوده ده ځکه چه نصب پداسے صورت کی راتلل هم جیده عربی ده او داسے قرائت په (مَا فَعَلُوْهُ اِلَّا قَلِيْلٌ مِّنْهُمْ) (نساء : ٦٦) کی او (وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ اَحَدٌ اِلَّا امْرَاَتَكَ) (هود:٨١) کی راغلے دے، کما قاله ابن هشام فی التوضیح) قاسمی)

(۳) یا الا قلیلا منصوب دے استثناء ده د (لعنهم الله) نه اَیْ وَلٰكِنْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ اِلَّا فَرِيْقًا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ اٰمَنُوْا فَلَمْ يُلْعَنُوْا) یعنی لیکن په دوی باندے الله لعنت کړیدے مګر لږه ډله د دوی نه ایمان راوړو نو لعنت پرے ونشو۔ (قاسمی)

| يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتَابَ اٰمِنُوْا بِمَا نَزَّلْنَا |
|---|
| اے هغه کسانو چه ورکړے شویدے دوی ته کتاب ایمان راوړیٔ په هغه کتاب چه نازل کړیدے مونږ |

| مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُم مِّن قَبْلِ أَن نَّطْمِسَ |
|---|
| تصدیق کونکے دے د هغه څه دپاره چه تاسو سره دی مخکی ددے نه چه مونږ به هوار کړو |
| وُجُوهًا فَنَرُدَّهَا عَلَىٰ أَدْبَارِهَا أَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا |
| مخونه پس واپس به کړو دا په خپلو شاګانو یا به لعنت اُوکړو په دوی باندے لکه څنګه |
| لَعَنَّا أَصْحَابَ السَّبْتِ وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ مَفْعُولًا ﴿٤٧﴾ |
| چه لعنت کړے دے مونږ په خالی والو باندے او دے کار د الله پوره کړے شوے۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کی الله تعالیٰ سخت وعید ورکړیدے اهل کتابو ته په دوه خبرو یو دا چه مخونه او شکلونه درله بدلوم که ایمان نهٔ راوړئ، او دویم دا چه لعنتونه درباندے کوم۔

**ربط**:

(۱) مخکی دوی ته د صحیح خبرو کولو دعوت وو اُوس ورته د ایمان دعوت ورکوی۔

(۲) دارنګه مخکی ئے د دوی بد صفات ذکر کړل نو اُوس وائی چه راشئ صحیح ایمان راوړئ چه د دغه بدو صفاتو نه خلاص شئ۔

(۳) مخکی ئے ووئیل چه اهل کتاب ضدیان دی، ایمان نهٔ راوړی نو لعنتیان دی دلته وائی چه د دوی نه به لعنت هله ختمیږی چه صحیح ایمان راوړی که نهٔ وی نو نور عذابونه به ورکړو۔

مطلب د آیت دا دے: اے د مدینے یهودیانو! د عناد او ضد نه لاس واخلئ کوم کتاب چه مونږ پدے زمانه کی نازل کړیدے او ستاسو د کتاب تصدیق کونکے هم دے چه اصلی مقاصد ئے سره یو دی او دا هم وائی چه ستاسو کتاب په حقه د الله کتاب دے او د رسول الله ﷺ په باره کی چه ستاسو په کتابونو کی کومے خبرے او پیشنګویانی موجودی دی د هغے تصدیق هم کوی نو ددے هرڅه باوجود تاسو ته د ایمان راوړلو ښه موقعه موجوده ده، او د انکار هیڅ معقول دلیل ستاسو سره نشته نو راشئ پدے کتاب (قرآن کریم) ایمان راوړئ او د الله د لعنت نه خانونه خلاص کړئ که نهٔ وی، د الله لعنت خو انتهاء ته نهٔ دے رسیدلے او نهٔ د لعنت قسمونه ختم شویدی بلکه الله به یو بل قسم لعنتونه راولیږی هغه دا چه مونږ به ستاسو سترګے، پوزه او خوله لرے کړو او ستاسو مخونه به وران او اخیر کړو، او دا به ستاسو شا ته واړو، لکه څنګه چه تاسو هدایت نهٔ قبلوئ او سرچپه روان یئ، یا به

په دوی باندے لعنت اُوکړو او په پوره توګه مسخ کولو سره به د دوی شکلونه بدل کړو، لکه څنګه چه مونږ د هفتے والو سره کړی وو۔

## قصه

کعب الاحبارؒ وائی په شام کی یوه شپه په لاره روان وم نو ما د یو سړی نه واوریدل چه دا آیت ئے لوستلو نو ما په خپل مخ باندے ګوتے ووهلے چه هسے نهٔ چه مخ مے مسخ شوے نهٔ وی، نو انتظار مے کولو چه صبا به کله راځی کله چه صبا شو، زهٔ د مسلمانانو خوا ته ورغلم او ایمان مے راوړو۔ (قرطبی والدر المنثور)

او په یو روایت کی دی چه ځان سره به ئے وئیل یَارَبِّ أَسْلَمْتُ یَا رَبِّ آمَنْتُ، اے الله! ما اسلام راوړو او ما ایمان راوړو۔ ددے آیت د وعید نه یریدو۔ (بغوی)

او دغه شان عبد الله بن سلام ﷛ چه کله دا آیت واوریده نو مخامخ نبی کریم ﷺ ته ورغے او کور ته ستون نشو او ورته ئے ووئیل چه یارسول الله! زما دا ګمان نهٔ وو چه زه به تا ته راورسیږم حال دا چه مخ به مے شاته آووښتے وی (خو د الله په فضل سره په خپل صحیح شکل کی راورسیدم او په تا مے ایمان راوړو) (تفسیر البغوی ۴۳۹/۱، وابن کثیر ۵۰۸/۱)

## سوال وجواب

دلته دا سوال مفسرینو ذکر کړیدے چه الله تعالیٰ دلته د اهل کتابو سره دا وعده کړیده چه که دوی ایمان رانهٔ وړو نو مخونه ورله اخیږ کوم او مسخ کوم او حال دا چه اهل کتابو خو ایمان رانهٔ وړو نو د هغوی مخونه خو مسخه نشو؟

(۱) جواب: ځینی علماء وائی چه دا په آخرت کی مراد دے، دنیا کی که مخونه مسخ نشو نو آخرت کی به مسخ شی۔ لیکن دا جواب ضعیف دے ځکه چه ﴿نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّا﴾ جمله په (نَطْمِسَ) باندے عطف ده او لعنت خو په دوی باندے په دنیا کی شویدے نو پکار ده چه طَمس هم په دنیا کی وی۔

(۲) جواب: مبردؒ وائی: دا وعید اُوس هم باقی دے مګر دا به د قیامت نه مخکی مخکی کیږی چه یهودیانو باندے به الله تعالیٰ مسخه راولی او مخونه به ئے شاته اوړی۔

(۳) جواب: ځینی وائی دلته د عذاب دپاره دا شرط وو چه که تولو ایمان رانهٔ وړو نو مسخه کومه ئے او کله چه د رسول الله ﷺ په زمانه کی ځینی کسانو ایمان راوړو نو د

دوی نه عذاب پورته شو او د باقی منکرینو عذاب به په آخرت کی وی۔ (قرطبیؒ)

(٤) ځینی وائی : دا وعید دے او د وعید تنفیذ لازم نهٔ وی بلکه د الله خوښه ده که دغه عذاب ورکوی او که نهٔ۔

(٥) د ټولو نه غوره جواب دا دے چه پدے آیت کی هیڅ اشکال نشته ځکه چه الله تعالیٰ دلته دوه عذابونه ذکر کړیدی یو طَمس (مخونه اخیر کول) او بل لعنت کول، او په دوی باندے خو په سورة بقره (١٥٩) او (١٧٤) آیت کی لعنت وئیل شویدے نو دا وعده د دوی سره پوره ده۔ نو دلته (اَوْ) د مانعة الخلو دپاره دے، نهٔ د مانعة الجمع دپاره۔

اُوْتُوا الْكِتَابَ : دا لفظ هغه خلکو ته هم شامل دے چه لږ شان حصه د کتاب ورکړے شوی وی، واړه مُلیان وی او هغو ته هم شامل دے چه پوره کتاب ورکړے شوے وی، نو ددے نه مراد لوی مُلیان دی چه د دوی اصلاح ډیره ضروری ده ځکه چه واړه ملیان او عوام د دوی تقلید کونکی وی۔ (احسن الکلام)

كَمَا لَعَنَّا أَصْحَابَ السَّبْتِ : البته پدے باندے دا اشکال کیږی چه دا تشبیه د خالی والو سره ورکړے شویده او هغوی خو شادوګان شوی وو او اُوس خو ټول یهودیان شادوګان شوی نهٔ دی ؟ نو ددے جواب دا دے چه تشبیه په ټولو ځیزونو کی نهٔ وی بلکه مطلب دا دے چه خالی ورځ والو باندے لعنت وشو چه شادوګان ترے جوړ شو نو په تاسو به هم لعنت وکړی، زړونه به درله سخت کړی، ذلیله به مو کړی، د هدایت نه به مو محرومه کړی نو دا وعده د الله تعالیٰ پوره شویده چه یهودی قیامته پورے ذلیله او ملعون دے۔

## د مفسرینو توجیهات

(١) پدے آیت کی ځینی مفسرینو بعیده معنیٰ هم کړیده چه د (وُجُوْهًا) نه مراد د اغراضو وجوه (مخونه) دی یعنی اے اهل کتابو ! ایمان راوړئ مخکی ددے نه چه د اغراضو مخونه مو شا طرفته واړه وو چه خواری به کوئ او مطلب ته به نهٔ رسیږئ او په زړه کی چه مو څه پټ ساتلی وی هغه به رسوا کړو او مسلمانان به پرے خبر کړو۔ دا د تفسیر په توګه متبادر نهٔ دے اګرکه واقعیت لري۔

(٢) مجاهدؒ وائی : ﴿مِنْ قَبْلِ أَنْ نَطْمِسَ وُجُوْهًا﴾ عَنْ صِرَاطِ الْحَقِّ فَنَرُدَّهَا عَلٰى أَدْبَارِهَا اَىْ فِي الضَّلَالَةِ۔ مخکی ددے نه چه مونږ به وران کړو مخونه د دوی د حق د لارے نه او راواپس به ئے کړو په ګمراهئ کی۔ او ابن ابی حاتمؒ وائی چه د ابن عباسؓ او حسنؒ نه هم داسے

روایت نقل دے۔ (ابن کثیر)

(۳) قرطبیؒ د ابی بن کعبؓ نه نقل کړیدي چه ﴿مِنْ قَبْلِ اَنْ نَّطْمِسَ وُجُوْهًا﴾ مِنْ قَبْلِ اَنْ نُّضِلَّكُمْ اِضْلاَلاً لاَ تَهْتَدُوْنَ بَعْدَهُ)

یعنی مخکې ددے نه ایمان راوړئ چه مونږ تاسو داسے گمراه کړو چه د هغے نه روستو به تاسو ته هیڅ قسم هدایت نهٔ کیږي. نو دا ئے کنائي معنیٰ اخستے ده۔

(٤) ځینې وائي چه د وجوه نه مراد سرداران او مشران او مخوریز خلك دي او د (نَرُدُّهَا عَلٰی اَدْبَارِهَا) معنیٰ دا ده چه د دوی عزت به ختم کړو او په ذلت کې به ئے اخته کړو۔

(٥) ابن زیدؒ وائي: مطلب دا دے چه ایمان راوړئ مخکې ددے نه چه مونږ به تاسو بیرته د شام (اَذْرُعَات) تـه وشړو لکه چه تاسو د هغه ځای نه حجاز ته راغلي یئ۔ (تفسیر الکشاف وابن کثیر)

(٦) غوره تفسیر هغه دے چه د رئیس المفسرین ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے چه دلته د طَمْسُ الْوُجُوْهِ نه ظاهري مسخ کیدل مراد دي لکه چه فرمائي (نَجْعَلُهَا كَخُفِّ الْبَعِيْرِ) مونږ به مخونه داسے وگرځوو لکه د اوښانی د تلي په شان چه په هغے کې به سترگے او پوزه او خوله نهٔ وي. نو (فَنَرُدُّهَا عَلٰی اَدْبَارِهَا) دا تشریح ده د (نَّطْمِسَ وُجُوْهًا) دپاره۔

یا معنیٰ دا ده چه مخونه به داسے وگرځوو لکه د ځټونو په شان چه د ویښتو نه به ډك وي لکه د شادوگانو په شان، ځکه چه د انسانانو د ویښتو ځایونه شا طرفته دي او په مخامخ مخ باندے ویښته نهٔ وي. یا دا چه په ځټونو کې به ورله سترگے جوړے کړم نو شا کړے به روان وي۔ (ابن کثیر، والبغوی)

نو دا د دوی جزاء من جنس العمل ده لکه ځنگه چه دوی حق پریښے وو او باطل ئے غوره کړے وو او حقائق ئے الټه کړي وو، باطل ئے حق او حق ئے باطل جوړ کړے وو نو دغه شان جزاء به هم ورته ورکړے شي چه مخونه به ئے وران کړے شي لکه چه حق ئے وران کړے وو او مخ ئے ورله کوږ کړے وو (تفسیر السعدی ۱/۱۸۱)

وَكَانَ اَمْرُ اللهِ مَفْعُوْلاً: او د الله حکم به خامخا پوره کولے شي، د هغه د حکم نه نهٔ څوك مخالفت کولے شي او نهٔ هغه څوك بندولے شي۔

| اِنَّ اللهَ لاَ يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا |
|---|
| یقیناً الله بخښنه نهٔ کوي ددے چه برخه داران جوړ شي د هغه سره او بخي هغه (گناهونه) |

Scanned by CamScanner

| دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَمَنْ يُّشْرِكْ |
| --- |
| چه ماسوئ دی ددے نه دپاره د هغه چا چه خوښه ئے شی او چا چه برخه داران جوړ کړل |
| بِاللّٰهِ فَقَدِ افْتَرٰى إِثْمًا عَظِيْمًا ﴿٤٨﴾ |
| د الله تعالیٰ سره نو یقیناً دهٔ جوړه کړه گناه لویه۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی الله تعالیٰ د یهودیانو بل بد صفت دا ذکر کوی چه دوی د الله سره شرك کوی او روستو آیت کی وائی چه دوی د خپل ځانونو تزکیه او صفتونه کوی او مینځ کی د الله سره برخه داران جوړوی او بیا وائی چه دوی په الله دروغ جوړوی۔

ربط

(۱) مخکی ئے یهودیانو ته د ایمان دعوت ورکړو چه دا سبب د مغفرت دے نو اُوس د ایمان راوړو علت ذکر کوی چه ایمان به څکه راوړئ چه شرك سره مغفرت نهٔ حاصلیږی۔

(۲) دارنګه مخکی ئے وویل چه دوی ایمان ډیر کم راوړی، نو دلته وائی چه څکه کم ایمان راوړی چه شرك ورسره کوی او کوم ایمان سره چه شرك كډ کړے شی نو هغه فائده نهٔ ورکوی، هغه هیڅ معتبر ایمان نهٔ وی۔

دا هغه څلورم آیت دے چه ابن عباسؓ وئیلی دی چه ددے امت دپاره د دنیا او مافیها نه ډیر فائده مند دے څکه چه پدے کی دا جمله ده ﴿ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ ﴾ الله د شرك نه ماسوئ ګناهونه معاف کوی که خوښه ئے شی۔

آیت نه معلومه شوه چه کفر او شرك اصل الذنوب دی، ستیه او جرړه د ګناهونو ده۔

او پدے آیت کی الله تعالیٰ احسانی فیصله کړیده چه بندګانو ته د شرك نه علاوه ګناهونه بخښی او بله فیصله د الله قانونی ده هغه دا ده چه په هره ګناه الله تعالیٰ رانیول کوی ﴿ مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا يُّجْزَ بِهٖ ﴾ او احسانی فیصله ئے دا ده چه یو بنده به ډیر ګناهونه کړی وی نو هغه به معاف کړی۔ په قیامت کی به یو تن راوستے شی چه د ګناهونو نه به ئے نهه نوی (۹۹) دفترونه ډك کړی وی او ددے په مقابله کی به یو وړوکے کاغذ په چابړی کی واچولے شی نو دا به پرے دروند شی او دغه دفترونه به سپك شی نو الله به ئے جنت ته داخل کړی، مګر دهر چا په باره کی دا قانون نهٔ دے۔ لکه په دنیا کی هم مشرانو ته دا اختیار وی چه یو مجرم، جیلی پریدی احسان ورسره وکړی اګرکه د سزا لائق وی او بعضو

ته سزا ورکوی.

نو د الله مغفرت ډیر فراخه دے لیکن شرك ته فراخه نهٔ دے، که انسان په هر قسمه گناه مړ شي نو د معافیٔ ئے څه صورت ملاویږي مگر که د شرك په حالت کې وفات شو نو تباه دے، د معافیٔ ئے هیڅ صورت نشته مگر په دنیا کې توبه ئے پوره علاج دے.

أَنْ يُشْرَكَ بِهِ : دلته شرك لفظ کفر ته هم شامل دے ځکه چه هر کافر د الله حق راخستے وي او غیر الله ته ئے ورکړے وي، دارنګه هر کافر خپل خواهش نه إله جوړ کړے وي چه د حق په خلاف ئے عبادت کوي.

شرك د فطرت خلاف شے دے، په دنیا کې هم انسانان په بعض څیزونو کې د ځان سره شرکت نهٔ برداشت کوي لکه په ښځه کې شرکت صحیح فطرت والا نهٔ برداشت کوي نو دغه شان الله تعالیٰ په خپله بندګیٔ او حقوقو کې ځان سره شریك نهٔ برداشت کوي. (أَنَا أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ) . الله فرمائي : زهٔ په ټولو شریکانو کې د شرك نه ډیر بې حاجته یم. (صحیح مسلم: ۷۶۶۶)

## سوال وجواب

دلته وائي چه شرك نهٔ معاف کوي او په سورة الزمر (۵۳) آیت کې دي ﴿إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا﴾ الله تعالیٰ ټول گناهونه معاف کوي اګرکه شرك هم وي ؟.

جواب دا دے چه هلته توبه مراد ده لکه روستو ﴿وَأَنِيبُوا إِلَى رَبِّكُمْ وَأَسْلِمُوا لَهُ﴾ پرے دلیل دے نو د شرك دپاره صرف یو علاج دے چه هغه توبه ده، او باقي گناهونه په توبه هم او د الله په رحم باندے هم معاف کیږي. او دلته مطلب دا دے چه الله شرك نهٔ معاف کوي که چا ترے توبه ونهٔ ویستله او باقي گناهونه بغیر د توبې نه هم معاف کوي که خوښه ئے شي.

## سوال وجواب

که څوك سوال وکړي چه دلته ولے کفر ذکر نشو؟ جواب ئے دا دے چه دلته بحث د اهل کتابو په بدو صفاتو کې روان دے او دوي د خپلو ځانونو تزکیه کوله چه موږ موحدین یو او موږ به ضرور بخښلے کیږو نو الله د دوي دا خیال رد کړو چه تاسو موحدین نهٔ یئ، تاسو د الله سره شریکان جوړ کړیدي او مشرك دپاره معافي نشته.

فَقَدِ افْتَرَىٰ : راغبؒ وائي : اِفتراء د فَرْىٌ نه دے په معنیٰ د پریکولو سره دے او دا په قرآن

کریم کی په معنیٰ د دروغو او شرك او ظلم سره استعمالیږی۔ نو افتراء داسے عمل او قول کول دی چه د هغے کول مناسب نهٔ وی، نو د دروغو جوړولو او د ګناه کولو دپاره استعمالیږی۔ (مفرداتِ راغب)

إِثْمًا عَظِيمًا : روستو په (۱۱٦) آیت کی بیا راځی ﴿فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا﴾ فرق دا دے چه هلته د امیانو شرك مراد دے چه په شرك سره د حق نه لرے کیږی او په ګمراهئ کی ننوزی او دلته د ملیانو شرك مراد دے چه دوی د شرك دپاره په الله باندے افتراء کوی او دروغ وائی۔

**فائده** : یهودیان مشرکان دی ځکه چه عزیر علیه السلام د الله خوی ګنړی، او د هغه عبادت کوی او د خپلو احبارو او رهبانو بندګی کوی، او هغوی شارعان ګنړی، اګرکه دا اهل کتابو احکام پرے جاری کیږی۔

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُزَكُّونَ أَنْفُسَهُمْ بَلِ اللَّهُ يُزَكِّي |
| ایا تهٔ نهٔ ګورے هغه کسانو ته چه پاکی بیانوی د خپلو ځانونو بلکه الله تعالیٰ پاکوی |
| مَنْ يَشَاءُ وَلَا يُظْلَمُونَ |
| هغه چا له چه خوښه ئے شی او ظلم به نهٔ شی کولے په دوی باندے |
| فَتِيلًا ﴿٤٩﴾ انْظُرْ كَيْفَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَكَفَى بِهِ إِثْمًا مُبِينًا ﴿٥٠﴾ |
| په اندازه د تار د هډوکی د کجورے۔ اُوګوره څنګه جوړوی په الله باندے دروغ او کافی دے دا ګناه ښکاره |

**تفسیر** : پدے کی د یهودیانو بل قبیح صفت دے چه شرك او کفر کوی او سره ددے نه د ځان تزکیه بیانوی۔

## د تزکیه اقسام او د یهودیانو د تزکیه صورتونه

**سوال** : تزکیه ته خو الله تعالیٰ دعوت ورکړیدے ﴿قَدْ أَفْلَحَ مَنْ زَكَّاهَا﴾ (الشمس :۹) ﴿قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكَّى﴾ (الاعلیٰ:۱٤)

**جواب** : تزکیه دوه قسمه ده (۱) قولی (۲) او عملی۔ قولی دا ده چه بنده د خپل ځان صفائی بیانوی او د خپل ځان صفتونه کوی لکه یهودیانو به ویل چه مونږ د الله ځامن یو او مونږ د هغه محبوبان یو، او مونږ د الله غوره دله یو، او مونږ ته به صرف یو څو ورځے عذاب راکړے کیږی، مونږ جنتیان یو، زمونږ پلار نیکه پیغمبران تیر شویدی، د هغوی

په وجه به خلاصیږو، او کارونه به ئے غلط کول. او د داسے تزکیه کولو نه منع راغلے ده، یو پدے آیت کی او بل په سورة النجم (۳۲) آیت کی ﴿ فَلَا تُزَكُّوٓا۟ أَنفُسَكُمْ ۖ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ ٱتَّقَىٰٓ ﴾ تاسو د خپلو ځانونو تزکیه مه بیانوئ الله تعالیٰ په متقیانو باندے ښه پوهه دے)

یوه ورځ د یهودیانو یوه ډله نبی کریم ﷺ ته راغله او خپل ماشومان ئے ځان سره راوستل او ورته ئے وویل چه اے محمده ! آیا زمونږ په دے اولادو باندے کومه ګناه شته ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: (لَا)، نشته. نو دوی وویل چه زمونږ دے قسم وی چه مونږ دده ماشومانو په شان د ګناهونو نه پاك یو، که د ورځے ګناهونه وکړو نو د شپے راته معاف کیږی او که د شپے ئے وکړو نو د ورځے محوه کیږی. (اسباب النزول للواحدی ص۱۰۳)

(۲) او عملی تزکیه دا ده چه بنده نیك اعمال کوی او د منکراتو نه ځان ساتی، یا په بل عبارت: خپل ځان په نیك عمل سره صفا کوی نو دا قسم تزکیه باندے الله تعالیٰ امر کړیدے.

بَلِ ٱللَّهُ يُزَكِّى مَن يَشَآءُ : الله په دے خلقو رد اوکړو چه خپله تزکیه او پاکی بیانولو سره انسان ښه کیږی نۀ، بلکه الله چه چا له غواړی د مخکی نه هغه ته د ایمان او عمل صالح توفیق ورکوی، بیا د هغے په نتیجه کی د هغه تزکیه (صفائی) کوی، او دوی کی د پاکئ څه اهلیت نشته چه الله ئے پاکی بیان کړی ځکه چه دوی د کفر او د شرك او د ګناهونو په ګندونو اخته دی.

وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا : یعنی الله په دوی باندے دا ظلم نکوی چه دوی پاك وی او الله ورته پاك ونۀ وائی.

## فتیل څه معنیٰ؟

فتیل: هغه تارته وائی چه د کجورے د هډوکی په چودی کی وی. لکه دا قول د ابن عباس رضی الله عنهما او عطاءؒ او مجاهدؒ نه نقل دے. او عرب فَتِيل، د ډیر کموالی دپاره مثال ذکر کوی.

او بل قول د ابن عباسؓ نه دا هم روایت شویدے چه دا هغه خیَرے دے چه د ګوتو په مږلو سره د ورغوو په مینځ کی پیدا کیږی.

## سوال وجواب

(يُزَكُّونَ أَنفُسَهُم) دلته حو د خپل ځان د تزکیه بیانولو نه منع وشوه نو آیا د بل چا مدح او

صفت کول به د هغه مخامخ جائز وي او که نه؟

جواب دا دے چه ددے په باره کې دوه قسمه روايات راغلي دي (۱) يو ځل د رسول الله ﷺ په حضور کې يو سړي د بل سړي زياته مدحه (تزكيه) وکړه نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: (وَيْحَكَ قَطَعْتَ عُنُقَ صَاحِبِكَ).

په تا باندے افسوس دے، تا خو د خپل ملګري څټ پريکړو. بيا ئے وفرمايل: که تاسو د يو چا صفت خامخا کوئ نو داسے وايئ؟ (اَحْسِبُهُ كَذَا) زۀ په دۀ باندے داسے ګمان کوم. په الله باندے د چا تزکيه مۀ بيانوئ.

(صحيح بخاري کتاب الشهادات والادب (٦٠٦١)، مسلم کتاب الزهد: ٧٦٩٣)

او د مقداد بن الاسود ﷜ نه روايت دے چه نبي کريم ﷺ مونږ ته حکم وکړو:

[أَنْ نَحْثُوَ فِي وُجُوْهِ الْمَدَّاحِيْنَ التُّرَابَ] [صحيح مسلم کتاب الزهد: ٧٦٩٦].

چه مونږ د صفت کونکو په مخونو باندے خاورے وروا چوو.

او بل طرفته رسول الله ﷺ د ابوبکر صديق ﷜ صفت وکړو:

[اِنَّكَ لَسْتَ مِنْهُمْ] (صحيح البخاري ٦٠٦٢)

يقيناً ته د هغوي (متکبرينو) نه نۀ يې. کله چه هغه نبي کريم ﷺ ته عرض وکړو چه اے د الله رسوله! زما لنګ د ګيټو نه ښکته خويږي (نو ښنګري مے پکې پټيږي چه په متکبرينو کې حساب نشم).

نو ددے تطبيق د امام نوويؒ او حافظ ابن حجرؒ او ابن بطالؒ نه داسے نقل دے چه (۱) پکار ده چه څوک د چا مدح په تيقن سره ونکړي بلکه داسے ووائي چه زما ګمان دے چه ښه به وي او حقيقت ئے الله ته معلوم دے، او دارنګه په تزکيه کې افراط (زيادت) ونکړي لکه د (اَلْمَدَّاحِيْنَ) لفظ پرے دليل دے. (چه ډير مدحه کونکو ته وائي)

(۲) د هغه چا مدحه منع ده چه سړے پو هيږي چه هغه پرے ګمراه کيږي، او د تکبر د پيدا کيدو خطره وي، يا پکې د بل ضرر احتمال وي، که داسے نۀ وي نو بيا کله کله په مدحه کولو کې مصلحت هم وي.

(۳) د نهي روايت هغه خلکو ته متوجه دي چه مدحه او تزکيه د غير مشروعو اغراضو دپاره کوي لکه چه څيني سوالګر د همدے حيلے نه کار اخلي.

(شرح النووي على صحيح مسلم باب النهي عن المدح، وفتح الباري باب ما يكره من التمادح، ٤٧٧/١٠)

**فائده** : په قرآن کریم کی د کم والی دپاره یو څیزونه ذکر کیږی (۱) فَتِیْل چه دا د خپرو باتی یا د کجورے د زړی تار ته وائی۔ (۲) نَقِیْر : د کجوری د زړی په یو طرف کی داغ ته وائی۔ (۳) قِطْمِیْر : د کجوری د زړی نه تاو کړے شوی پوستکی ته وائی۔ (٤) ذره، (٥) خردل۔ (٦) شیء۔

اُنْظُرْ : دلته الله تعالیٰ د دوی په خبرو کی د بندګانو ته د تعجب کولو دعوت ورکوی چه دوی په حال خو تعجب کول پکار دی چه بی دلیله د ځان پاکی بیانوی او د ځان نه په الله دروغ وائی چه مونږ د الله ځامن یو او مونږ غوره مخلوق یو او حال دا چه د هغه سره شرک کوی۔ نو دوی دروغ وائی او بیا الله تعالیٰ ته ئے نسبت کوی نو دا د دوی افتراء ده۔

وَكَفٰى بِهٖٓ اِثْمًا مُّبِیْنًا : یعنی د ګناه په اعتبار سره دا کافی ګناه ده چه بنده په الله باندے دروغ وتړی او هغه خبره وکړی چه الله تعالیٰ نه وی ویلی۔ دا یوه ګناه ئے هم د هلاکت دپاره کافی ده۔

| اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِیْنَ اُوْتُوْا نَصِیْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ یُؤْمِنُوْنَ |
|---|
| ایا تهٔ نهٔ ګورے هغه کسانو ته چه ورکړے شویده حصه د کتاب نه دوی ایمان لری |
| بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوْتِ وَیَقُوْلُوْنَ لِلَّذِیْنَ كَفَرُوْا هٰٓؤُلَآءِ |
| په کوډو منترو او په شیطان او وائی دوی په باره د هغه کسانو کی چه کفر ئے کړیدے دا کسان |
| اَهْدٰى مِنَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا سَبِیْلًا ﴿۵۱﴾ اُولٰٓئِكَ |
| ښه لار موندونکی دی د هغه کسانو نه چه ایمان ئے راوړیدے په اعتبار د لارے۔ دا |
| الَّذِیْنَ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ وَمَنْ |
| هغه کسان دی چه لعنت کړیدے په دوی باندے الله تعالیٰ او هر هغه څوك |
| یَّلْعَنِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ نَصِیْرًا ﴿۵۲﴾ |
| چه لعنت اُوکړی په هغه باندے الله نو هیچرے به مونده نکړے تهٔ د هغه دپاره مددګار۔ |

**تفسیر** : پدے کی نور بد صفتونه د اهل کتابو بیانوی چه دوی په کوډو منترو او شیطان باندے ایمان لری او مشرکان شویدی او حق ته باطل او باطل ته حق وائی۔

**ربط** : (۱) مخکی ئے اشارةً وویل چه اهل کتاب د توحید په عقیده باندے پاتی نهٔ دی نو دلته د هغے دوه دلیلونه بیانوی چه دوی بتانو ته سجده کړے او بل د مشرکانو عقیدے ته د

مسلمانانو نه ښه وائی۔ (۲) مخکې ئې وویل چه دوی د ځانونو تزکیه کوی دلته وائی چه تزکیه کوی لیکن د الله په نیز دوی ملعونین دی۔

## شان نزول

ابن جریرؒ وغیره د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه کعب بن اشرف یهودی قریشو کافرانو لره د مسلمانانو په خلاف په جنګ باندے د راپورته کولو دپاره مکے ته لاړو نو قریشو هغه ته اُوئیل چه تاسو په مدینے والو کی د تولو نه معزز او د هغوی سرداران یئ، دے سپك او ذلیل سړی ته خو اُوګورئ چه د خپل قوم نه هم جدا شویدے او پدے ګمان کی اخته دے چه هغه زمونږ نه غوره دے حال دا چه د حاجیانو خدمت کول، هغوی ته اُوبه ورکول، او د بیت الله نګرانی کول زمونږ کار دے، نو آیا مونږ ډیر غوره یو او که هغه ؟ نو کعب اُوئیل چه تاسو د هغه نه غوره یئ، نو الله تعالیٰ ﴿إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ الْأَبْتَرُ﴾ او دا آیت نازل کړو او د کعب بن اشرف او د هغه په شان د الله او د رسول د نورو دشمنانو رازئې راښکاره کړو او د هغوی کفرئې په ډاګه کړو۔ دا واقعه امام احمدؒ د محمد بن عدیؒ نه او ابن حبانؒ په خپل کتاب «الصحیح» کی روایت کړیده۔

په بعض روایتونو کی راغلی دی چه کعب بن اشرف او حُیَیٰ بن اخطب سره د اویا کسانو مشرانو نه د اُحد د غزا نه روستو د مکے مشرکانو خواته د مسلمانانو په خلاف په یو لوئی فیصله کن جنګ باندے راپورته کولو دپاره تلی وو۔

(چه دا د غزوه احزاب دپاره اصلی سبب جوړ شو)

نو پدے کی قریشو ورته وویل چه تاسو خو اهل کتاب یئ او مسلمانان هم اهل کتاب دی، مونږ یریږو چه تاسوٌ چرته زمونږ د ختمولو دپاره چل جوړ کړے وی، نو که ستاسو چل مطلب نهٔ وی نو دغه دواړو بتانو ته سجده وکړئ دے دپاره چه مونږ ته رانږدے شئ او مونږ مطمئن شو، نو د یهودیانو دغه تولے ډلے بتانو ته سجده وکړه او مشرکان ترے جوړ شو، پدے کی ابوسفیان (چه لا مسلمان شوے نهٔ وو) د جرګے مشر (کعب بن الاشرف) ته وویل چه تهٔ خو پوهه سړے ئې، رښتیا ووایه چه مونږ په سمه لاره یو او که مسلمانان ؟ حال دا چه مونږ حاجیانو ته پئ ورکوو او اُوښان ورله حلالوو او قیدیان آزادوو او صله رحمی قائموو او میلمنو ته میلمستیا ورکوو، او د خپل رب د کور حفاظت کوو، او د خپل پلار نیکه د معبودانو عبادت کوو، او محمد (ﷺ) مونږ ته حکم کوی چه مونږ دا پریدو، او د

هغه پسے روان شو، ؟ نو کعب ورته ووېل :

أَنْتُمْ وَاللّٰهِ خَيْرٌ وَأَهْدَىٰ سَبِيْلًا مِمَّا عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ وَأَصْحَابُهُ).

قسم په الله تاسو د محمد (ﷺ) او د هغه د ملګرو نه غوره او ډير هدايت والا يئ)

(تفسير البغوى١/٤٤١) والبحر المحيط ٣/٦٧٥) وتفسير عبد الرزاق الصنعانى ١/٤٦٣)

## د جبت او طاغوت معانی

«جبت» نه مراد : (١) بتان، (٢) جادوګر، (٣) جادو (٤) او هر هغه شے دے چه د هغے د الله نه سوئ عبادت کيدے شی.

دغه شان «طاغوت» نه مراد : (١) کاهن، (٢) شيطان، (٣) هر ګمراه کونکے شے، (٤) بت، (٥) د يهودو سرداران، (٦) او هر هغه شے دے چه د هغه د الله نه سوئ عبادت کيږی.

امام بخاريؒ د عمر فاروق ؓ نه نقل کوی چه جبت جادو، او طاغوت شيطان ته وائی. او دا قول د مجاهدؒ او شعبیؒ نه هم نقل دے.

(٢) عکرمهؒ وائی چه دا دواړه د مشرکانو دوه بتان وو.

(٣) محمد بن سيرينؒ او مکحولؒ وائی چه جبت کاهن (چه د غيبو خبرونه ورکوی چه بعض خبری ئے د شيطانانو نه آوريدلی وی) او طاغوت جادوګر ته وائی.

(٤) سعيد بن جبيرؒ او ابو العاليهؒ وائی : جبت د حبشو په ژبه کی جادوګر ته او طاغوت کاهن ته وائی.

(٥) ضحاکؒ وائی : جبت حُيَیْ بن اَخْطَب او طاغوت کعب بن اَشْرف وو. (بغویؒ) او دا قول قرطبیؒ د ابن مسعودؓ نه نقل کړيدے.

(٦) ځينی وائی : جبت بتان دی، او طاغوت د بتانو منجوران دی چه د بتانو دپاره داسے نومونه اړدی چه خلك پرے دهوکه کړی. (چه دا بت او بابا د فلانی مرض ذمه وار دے) (بغوی وروح المعانی)

(٧) ځينی وائی: جبت ابليس دے او طاغوت د هغه ملګری دی. (قرطبیؒ)

(٨) قرطبیؒ وائی چه پدے باره کی غوره قول د امام مالك دے چه هغه فرمائی :

(هُمَا كُلُّ مَعْبُوْدٍ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ أَوْ مُطَاعٍ فِيْ مَعْصِيَةِ اللّٰهِ)

جبت او طاغوت هر هغه شی ته وائی چه د الله نه سوئ د هغه عبادت کيدے شی يا د الله په نافرمانئ کی د هغه خبره منلے شی.

(۹) ابن جریرؒ وائی: (اَلْجِبْتُ وَالطَّاغُوْتُ: کُلُّ مُعَظَّمٍ بِعِبَادَةٍ مِنْ حَجَرٍ اَوْ شَجَرٍ اَوْ اِنْسَانٍ)۔
هر هغه شے چه د هغے په عبادت سره تعظیم وکړے شي، کاڼړے وي که ونه یا انسان وي۔
نو د جبت معنیٰ ده بت، کاهن یا ساحر۔ او طاغوت دروغژن معبودان دي۔
په یو حدیث کې دي: (اِنَّ الْعِیَافَةَ وَالطُّرُقَ وَالطِّیَرَةَ مِنَ الْجِبْتِ) (سنن ابی داود، کتاب الطب)۔
یقیناً مارغان آلوزول، خطونه راښکل او بد فالي نیول د جبت نه دي۔ (یعنی دا ټول شیطاني کارونه دي)۔
لِلَّذِیْنَ کَفَرُوْا: ددے کافرانو نه د مکے مشرکان مراد دي۔ یعنی په باره د کافرانو کې وائي۔
هٰٓؤُلَآءِ: دے کې اشاره ده د مکے مشرکانو ته۔ او په یو تفسیر په (اَهْدٰی) کې معنیٰ تفضیلي نشته بلکه په معنیٰ د نفس هدایت سره دے۔ یعنی لاره موندونکي دي۔ یا هدایت والا دي۔
مِنَ الَّذِیْنَ آمَنُوْا: دا مرض زمونږ په دے امت کې هم په ډیرو کسانو کې موجود دے چه حق پرست ورته ډیر بدي ښکاري، چه دومره ورته یهودي او نصراني نهٔ ښکاري، او څوك چه ښه مؤمنان وي هغه دوی ته غټ ګمراهان ښکاري، افسوس په داسے حال باندے!!۔ ډیر مبتدعین د شیعه ګانو، بریلیانو سره د اهل حق، اهل الحدیث په خلاف ملګرتیا کوي۔
نَصِیْرًا: پدے کې اشاره ده چه دا خلك خو د مکے مشرکان په خپلو خبرو سره رضا کول غواړي دے دپاره چه د دوی سره مدد وکړي لیکن کله چه د الله د طرفنه څوك ملعون شو هغه سره به څوك مدد وکړي؟!۔
**فائده**: دا آیت دلیل دے چه امتونو باندے د الله تعالیٰ د لعنت سبب دا دے چه هغوی په خرافاتو او باطلو خبرو او طاغوت باندے ایمان راوړي، او دوی سره به مدد هله کیږي چه ددے کارونو نه ځان بچ کړي۔ او ددے نه دا خبره لازمي طور سره ثابتیږي چه کوم امتونه چه مغلوب دي هغوی جبت او طاغوت ته زیات نزدے دي، د هغه امتونو نه چه غالب او منصور دي، نو اُوس دے مسلمانان د خپل ځان سره حساب وکړي او سوچ دے وکړي چه د خپل رب د کتاب نه ورته د ایمان د دعوے رښتینوالے معلوم شي۔ (تفسیر المنارة/۱۲۹)

| اَمْ لَهُمْ نَصِیْبٌ مِنَ الْمُلْكِ فَاِذًا لَّا یُؤْتُوْنَ |
| --- |
| آیا د دوی دپاره برخه ده د بادشاهۍ (د الله نه) پس په دغه وخت کې به ورنکړي دوی |

النَّاسَ نَقِيْرًا ﴿٥٣﴾

خلقو ته په اندازه د داغ د هډوکي د کجورے (یو شے)۔

**تفسیر** : پدے کی بل بد صفت بیانوی چه دوی لوی بخیلان دی، او ټوله دنیا خپل ځان ته محتاجه کول غواړي او لوی بی انصافه دی۔

مطلب دا دے چه که دوی ته بادشاهي ملاؤ شي نو انسانانو ته هیڅ ورکول نۀ غواړي بلکه ټول انسانان خپل ځان ته محتاج کول غواړي۔ نو آیا د دوی دپاره د الله د رحمت او د فضل د څه برخے د ویشلو واك شته چه دوی ئے چا له ورکړي او د چا نه ئے واخلي، یا چا ته چه ښه ووائي نو هغه به ښه وي او چا ته چه بد ووائي نو هغه به بد وي، آیا دا واك د دوی سره شته ؟ نشته بلکه دوی خو دومره بی انصافه دی که دوی ته څه برخه او واك او بادشاهي ورکړے شي نو په انسانانو باندے ئے هیڅ هم نۀ پیرزو کیږي، خو دا ټول کارونه د الله په واك کی دی چا ته ئے چه خوښه شي خپل فضل ورکوي۔

**أَمْ** : دا (ام) منقطعه دے او دا کلمه د اضراب (بَلْ) په معنیٰ سره وي او کله د استفهام په معنیٰ سره او دلته استفهام انکاري دے۔ یعني د دوی دپاره بادشاهي نشته بلکه دوی بادشاهي په سبب د خپلو ظلمونو او طغیانونو سره ورکه کړیده۔

او که د (بَلْ) معنیٰ شي نو همزه به پټه وي نو حاصل به ئے دا وي چه یهودیان سره ددے نه چه ډیر سخت مالداره دي مگر ډیر لوی بخیلان دی چه د یهودي نه علاوه د دوی نه هیڅوك فائده نشي اخستے، نو کله چه دوی ته بادشاهي ملاؤ شي نو دوی نه به خلك معمولي شان فائده هم حاصله نکړي نو دا به ورته څنگه گرانه نۀ تماميږي چه د عربو نه دے یو نبي پیدا شي او د هغه ملگري دے بادشاهان شي او په هغے کی دے بني اسرائیل هم ورته عاجزي وکړي، لکه دا صفت په یهودیانو کی اُوس هم ډیر ښکاره دے، ځکه چه دوی اُوس هم پدے کوشش کی دی چه بیت المقدس (ارض مقدسه) او ددے خوا و شا دوی ته راواپس شي، نو که دا ورته مکمله حاصله شي نو دوی مسلمانان او نصارئ د هغے نه وباسي او د هغے نه ورته د کجوری د هډوکي د سُوري په اندازه یا د یوے کجورے د نالولو په اندازه ځاي یا په زمکه یا غر کی د یو وړوکي سوري په اندازه برخه ورکول نۀ غواړي لکه اُوس هم د دوی دا کوشش دے چه د غیر یهودي د رزق اسباب بند کړي دے دپاره چه دلته صرف یهودیان پاتې شي لکه ددے دپاره ئے مؤسسات خیریه او سیاسیه مقرر کړیدي دا خو

لا ورته بادشاهي حاصله نۀ ده، که ورته حاصله شي بیا به د دوی څه حال وي؟! (المنار)

مِنَ الْمُلْكِ : د مُلك نه مراد یا د دنیا بادشاهي ده یا ترې د الله د کارونو ملکیت او اختیار دې لکه په آیت کې دي: ﴿قُلْ لَوْ أَنْتُمْ تَمْلِكُونَ خَزَائِنَ رَحْمَةِ رَبِّي إِذًا لَأَمْسَكْتُمْ خَشْيَةَ الْإِنْفَاقِ﴾ (اسراء: ۱۰۰). اووایه ! که تاسو زما د رب د رحمت د خزانو مالکان شئ نو دغه وخت به خامخا تاسو خرچه بنده کړئ د وجه د یرې د ختمیدو نه.

فَإِذًا : دې کلمه باندې چه کله فاء عاطفه داخله شي نو دا ملغاة عن العمل ګرزي. (یعني بیا عمل د نصب نکوي) (فتح القدیر للشوکاني ومحرر الوجیز)

نَقِيرًا : د نقیر یوه معنیٰ مخکې ذکر شوه او بله معنیٰ: نقیر هغه لرګی یا کاڼړی ته وائي چه وتوګلې شي او په هغې کې نبیذ (شراب) جوړولې شي. یعني خلکو ته د یو وړوکې لوښي په اندازه هم څه نۀ ورکوي.

| أَمْ يَحْسُدُونَ النَّاسَ عَلَىٰ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ |
|---|
| آیا کینه کوي دوی د خلقو سره په هغه څه چه ورکړي دي دوی ته الله تعالیٰ د خپلې مهربانۍ نه |
| فَقَدْ آتَيْنَا آلَ إِبْرَاهِيمَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَآتَيْنَاهُمْ |
| بس یقیناً ورکړې مونږ آل د ابراهیم علیه السلام ته کتاب او پوهه په دین او ورکړې مونږ دوی ته |
| مُلْكًا عَظِيمًا ﴿٥٤﴾ فَمِنْهُمْ مَنْ آمَنَ بِهِ |
| بادشاهي لویه. پس بعضې د دوی نه هغه څوك دي چه ایمان ئې راوړې په هغې باندې |
| وَمِنْهُمْ مَنْ صَدَّ عَنْهُ وَكَفَىٰ بِجَهَنَّمَ سَعِيرًا ﴿٥٥﴾ |
| او بعضې د دوی نه هغه څوك دي چه واوړیدل ددې نه او کافي دې جهنم اُور بل کړې شوې. |

**تفسیر** : پدې کې د یهودیانو بل بد صفت دې چه دوی ډیر لوی حسد ګر او ضدیان دي. او په (أَمْ) لفظ سره د یو بد صفت نه بل ډیر بد صفت ته انتقال دې ځکه چه حسد د بخل نه لوی عیب دې ځکه چه پدې کې د بل چا نه د الله تعالیٰ د نعمت د زائله کولو تمنا وي. او دا أَمْ په معنیٰ د بَلْ سره دې.

### د فضل نه څه مراد دې؟

د الناس نه مراد نبي کریم ﷺ دې او د (مِنْ فَضْلِهِ) نه مراد نبوت دې. Oدارنګه دوی به

حسد كولو چه رسول الله ﷺ ولے ډيرے بيبيانى كوى پدے به سوزيدل او په هغه كې نور ډير كمالات او فضائل وو د هغه تولو سره به يهوديانو حسد كولو۔

○دارنګه په رسول الله ﷺ او د هغه ملګرو (صحابه كرامو) به ئې د رسول الله ﷺ نبوت او د امتِ وسط (غوره امت) جوړيدو فضيلت نۀ پيرزو كيدو۔

○دارنګه عربو سره به ئې حسد كولو چه دوئ كې ولے نبى راغلو او زمونږ د بنو اسرائيلو نه نبوت بنى اسماعيلو ته ولے نقل شو؟!

○ دارنګه فضل نه فتح او نصرت او غلبه د مسلمانانو مراد ده۔

فَقَدْ آتَيْنَا آلَ : دا فاء فصيحيه ده چه شرط دلته پټ دے يعنى كه دوئ حسد كوى نو دا حسد ئې غلط دے۔ ددے جملے مناسبت د مخكې سره دا دے (۱) چه (فَلَيْسَ هٰذَا عَطَاءً بَدِيْعًا مِنَّا) يعنى دا خبره زمونږ نه ناشنا نۀ ده بلكه زۀ همدغه شان وركړه پيغمبرانو ته كوم، ابراهيم عليه السلام ته مے نبوت وركړو او كتاب وركړو او د ټولو موحدينو سردار مے وګرزولو او خصوصا د ابراهيم عليه السلام اولادو ته مے كتاب او حكمة (با عمله علم) وركړو او د لوى ملكيت خاوندان مے وګرزول او د موسىٰ او هارون عليهما السلام مشرى او بادشاهى او د داود او سليمان او يوسف عليهم السلام بادشاهى د هيچا نه پټه نۀ ده۔ نو كله چه الله دغه شان وركړه كوى نو دا خو سبب د حسد نۀ دے بيا خو پكار ده چه دوئ د دغه پيغمبرانو سره هم حسد وكړى!!۔ صاحب المنار وائى : چه كه زمونږ په نبى د ډيرو بيبيانو اعتراض كوى نو د داود ﷺ سل بيبيانى وے او د سليمان ﷺ (۱۳۰۰) ديارلس سوه ښځے وے او (۷۰۰) اوه سوه وينځے وے لكه بعض مفسرينو دا نقل كړيدى نو د دوئ دواړو پيغمبرانو منونكو له خو زمونږ په نبى باندے د هيڅ اعتراض حق نشته۔ (المنار)

(۲) مطلب : (فَقَدْ آتَيْنَاهُمْ مَعَ كَثْرَةِ حُسَّادِهِمْ فَلَمْ يَنْتَفِعِ الْحُسَّادُ وَلَمْ يُضَرَّ الْمَحْسُوْدُ)

يعنى دغه پيغمبرانو ته مونږ دغه كمالات او رحمتونه وركړل سره ددے نه چه حسد ګر ئے زيات وو نو حسد ګرو ته څه فائده ملاؤ نشوه او حسد كړے شوو ته څه ضرر ونۀ رسيدو (روح المعانى)

نو دغه شان به دا يهوديان حسد وكړى ليكن هيڅ فائده به ورنكړى او د دوئ د حسد په وجه به رسول الله ﷺ او د هغه ملګرو ته هيڅ ضرر ونۀ رسى۔ او ددۀ د نبوت مخنيوے به ونكړے شى، صرف د الله په غضب به اخته شى۔

(۳) مطلب : يعنى مونږ بنى اسرائيلو ته چه د ابراهيم ﷺ آل او اولاد دى نبوت هم

ورکړے وو او لویه بادشاهي هم، لیکن بیا هم تولو یهودیانو په هغوی باندے ایمان رانهٔ وړو بلکه څه کسانو ایمان راوړو او څه کسانو اعراض وکړو، مطلب دا چه اے محمد (ﷺ)! که دا یهودیان ستا په نبوت باندے ایمان نهٔ راوړی نو دا څه ناشنا خبره نهٔ ده، بلکه د دوی تاریخ د انبیاؤ (علیهم السلام) د تکذیب نه ډک دے تردے چه د خپل نسل انبیاؤ باندے ئے هم ایمان نهٔ دے راوړے۔ (ابن عادل الدمشقیؒ)

## ملك عظیم څه شے وو؟

مُلْكًا عَظِيمًا : ملك عظیم دا وو چه دوی ته ئے دنیاوی سیادت ورکړے وو او هم د نبوت خاوندان ئے ګرځولی وو لکه داود او سلیمان او یوسف علیهم السلام ئے مثالونه دی۔ (النکت د ماوردیؒ)

فَمِنْهُمْ : پدے کی تقسیم د انسانانو بیانوی دپاره د روستو تخویف او بشارت۔

(مَّنْ آمَنَ بِهِ ) : ځینی مفسرینو د (بِه) ضمیر نبی ﷺ ته راجع کړیدے یعنی ددے یهودیانو نه څ کسانو په نبی کریم ﷺ ایمان راوړو لکه عبد الله بن سلام ﷺ وغیره او ځینو انکار وکړو او د انکار کونکو انجام جهنم دے۔

(۲) یا (بِه) ضمیر هغه شی ته راجع دے چه آل ابراهیم ته ورکړے شوی وو نو پدے کی به آخری نبی ته تسلی ورکول مقصد وی چه د آل ابراهیم د نعمتونو په باره کی خلك دوه ډله شوی وو لیکن د هغوی شان ته څه نقصان نهٔ دے رسیدلے، نو دغه شان اے نبی ! ستا په باره کی دا خلك دوه ډلے شویدی نو تا ته هیڅ نقصان نشی رسولے بلکه د مخالفت کونکو دپاره جهنم تیار شویدے۔

او ځینی وائی چه (بِه) ضمیر قرآن ته راجع دے یعنی انبیاؤ او د هغوی تابعدارو ایمان راوړو په دے قرآن مخکی د نزول او پس د نزول ددے نه او بعض نور کسان دی چه هغوی د قرآن نه اعراض وکړو او نورئے هم ترے منع کړل۔

صَدَّ عَنْهُ : صد لازم او متعدی دواړه راځی۔ یعنی خپله منع شوی وو او نورئے هم منع کړی وو۔

سَعِيرًا : سعیر په اصل کی لمبے کولو، سوزولو او اُور بلولو ته وئیلے شی دلته سعیر په معنیٰ د مفعول سره دے یعنی هغه جهنم چه بل کړے شویدے۔

| إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِنَا سَوْفَ نُصْلِيهِمْ نَارًا |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه کفرئے کړے په آیتونو زمونږ زر دے چه داخل به کړو دوی لره اُور ته |
| كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ بَدَّلْنَاهُمْ جُلُودًا غَيْرَهَا |
| هرکله چه وریتے شی څرمنے د دوی په بدل کی به ورکړو دوی ته څرمنے سوئ د هغے نه |
| لِيَذُوقُوا الْعَذَابَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿٥٦﴾ |
| دے دپاره چه اُوڅکی عذاب یقیناً الله غالبه حکمتونو والا دے۔ |

**تفسیر** : پدے کی کافرانو دپاره سخت تخویف او وعید بیان شویدے چه دے کافرانو جهنمیانو ته به په اُور کی داسے عذاب ورکولے شی چه کله هم د دوی څرمنے پخے شی، اُوسوزی نو الله به د دوی د څرمنو په بدله کی نورے ورکړی۔

فخر الدین رازیؒ لیکلی دی چه کیدے شی چه پدے عذاب کی دوام او عدم انقطاع طرف ته اشاره وی۔ ابن جریرؒ وغیره د صحابه کرامو او تابعینو وغیرهم نه روایت کړیدے چه د جهنمیانو څرمنے به په ورځ یا په گینټه کی ډیر ډیر کرته بدلیږی۔ الله تعالیٰ دے مونږ تولو باندے د جهنم اُور حرام کړی۔ آمین یا ارحم الراحمین۔ (تیسیر الرحمن)

كَفَرُوا بِآيَاتِنَا : د آیات نه مراد هر هغه شے دے چه دلالت کوی د الله په ذات، صفاتو، افعالو او اسماؤ د هغه باندے او دغه شان ملائك او منزل کتابونه او رسولانو ته هم۔ او کفر عام دے که په طریقه د انکار سره وی، یا په شکونو او شبهاتو اچولو سره وی۔ (اللباب)

او آیاتنا دلیل دے چه مخکی آیت کی (بِهٖ) ضمیر قرآن ته راجع کیدل ظاهر دی۔

نَضِجَتْ : نضج پخولو ته وائی۔ یعنی چه په اُور باندے وریتی شی۔

## سوال وجواب

د څرمنو پدے تبدیل باندے دا سوال شویدے چه الله تعالیٰ بله څرمنه راوړی نو هغے خو گناه نۀ ده کړے نو هغے ته څنگه عذاب ورکړے شی؟

نو چا یو بعید جواب دا کړیدے چه دلته د جُلُود نه مراد د قمیصونو تبدیل دے یعنی د اُور نور قمیصونه به ورله راوړے شی۔ لیکن ظاهر دا ده چه دا تبدیل وصفی دے نۀ ذاتی او ددے تبدیلی طریقه دا ده چه جَعْلُ غَيْرِ النَّضِيجِ مَكَانَ النَّضِيجِ ۔ یعنی د وریتی شوے په ځای به بیرته تازه کړے شی او همداسے حالت به د دوی همیشه تر ابد الآباد پورے جاری وی۔

او دے کی بل جواب علامه آلوسیؒ نقل کړیدے او هغے ته ئے غوره ویلے دے چه د کافر اصلي عذاب به روح ته ورکول کیږي خو جسد ئے ذریعه ده او پوستکی ددے دپاره بدلیږي چه عذاب ئے کم نهٔ شي ځکه چه د سوزول شوي پوستکي بیا سوزول لږ څه تخفیف پیدا کوي او د کافرانو عذاب خو د تخفیف لائق نهٔ دی۔ تفصیل دپاره روح المعانی (۵/۵۸) ته رجوع وکړه مګر هغه جواب غوره نهٔ دے۔

نبی کریم ﷺ د اُور ددے حالت داسے تشریح کړیده:

(إِنَّ غِلَظَ جِلْدِ الْكَافِرِ اِثْنَانِ وَأَرْبَعُونَ ذِرَاعًا بِذِرَاعِ الْجَبَّارِ وَإِنَّ ضِرْسَهُ مِثْلُ أُحُدٍ وَإِنَّ مَجْلِسَهُ مِنْ جَهَنَّمَ مَا بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ۔) (الترمذی، الصحیحة: ۱۱۰۵) وصحیح الجامع (۲۱۱۴)۔

یقیناً د کافر د څرمنے پیړوالے به (په جهنم کی) دوه څلویښت ګزه وي په ګزونو د الله تعالیٰ سره او د جامے یو غابښ به ئے د اُحد د غر په شان وي او په دوزخ کی د کیناستو ځای به ئے دومره فراخه وي لکه د مکے او د مدینے ترمینځ فاصله۔

## حکمة

الله تعالیٰ خو قادر دے چه همدے څرمنو ته همیشه عذاب ورکړي نو څرمنو بدلولو کی څه حکمة دے؟ (۱) جواب: پدے کی د الله تعالیٰ بل قسم قدرت ته اشاره ده۔

(۲) جواب: څرمن چه وسوزي او بله د هغے په ځای رابنکاره شي نو هغه نرئ او تنکئ وي، د هغے سوزش زر او ډیر محسوسیږي۔ ځکه ئے وریسے (لِيَذُوقُوا الْعَذَابَ) وویل چه څرمنے ورله ځکه بدلوو چه عذاب وڅکی، ولے که څرمنے بدلے نشي نو بیا به هغه وسوزي او ختمے به شي۔

عَزِيزًا: یعنی الله پدے طریقه عذاب ورکولو باندے قادر او غالب دے۔

حَكِيمًا: یعنی الله رحیم او کریم دے لیکن پدے کی ئے حکمتونه دي چه دے بندګانو ته دا قسم عذاب ورکړي۔

| وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَنُدْخِلُهُمْ |
| --- |
| او هغه کسان چه ایمان ئے راوړے او عملونه ئے کړي نیک زر دے چه داخل به کړو دوی |
| جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا |
| جنتونو ته چه بهیږي به لاندے د هغے نه نهرونه همیشه به وي دوی په هغے کی |

| أَبَدًا لَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَنُدْخِلُهُمْ |
|---|
| همیشه دپاره، د دوی دپاره به په هغې کې بیبیانې وی پاکې او داخل به کړو دوی لره |
| ظِلًّا ظَلِيلًا ﴿٥٧﴾ |
| په سوری اوږده کې (یا د آرام سوری) |

**تفسیر** : پدې آیتِ کریمه کې د نیکبختو انجام او عاقبت ذکر دے چه کوم خلق په محمد ﷺ، په قرآن کریم او په ټولو آسمانی کتابونو او رسولانو باندے ایمان راوړی او نیك عمل کوی نو الله به هغوی داسے جنتونو ته داخل کړی چه د هغے نه لاندے به نهرونه بهیږی او په هغے کې به دوی همیشه دپاره اوسیږی او هلته به پاکیزه بیبیانے ملاویږی او دوی به د ګڼرو باغونو لاندے آرام کوی.

آیا په جنت کې سوری شته؟

ظِلًّا ظَلِيلًا : ظل سوری ته وائی او ظلیل صفت د ظِل دے او دا د عربو عادت دے چه کله نا کله دوی د یو شی دپاره د هغه شی د لفظ نه صفت جوړوی دے دپاره چه په زیات قوت باندے دلالت وکړی لکه ظل ظلیل یعنی ګڼ سوری د آرام، او (لَيْلٌ لَيْلٌ) بنه پخه شپه.

بعض سوری داسے وی چه پوره آرام پکې نهٔ وی نو پدے وجه ئے وفرمایل چه دا به داسے سوری وی چه آرام به ورکوی.

او بخاریؒ او مسلمؒ د ابوسعید خدری ﷺ نه مرفوع روایت کړیدے چه

((په جنت کې یوه داسے ونه ده چه که د هغے نه لاندے یو اس باندے سور انسان سلو کالو پورے مزل اوکړی نو د هغے مسافت به رالاندے نکړی)).

بیا دا سوال نهٔ پیدا کیږی چه سورے خو د نمر د پټیدو نه راپیدا کیږی او په جنت کې نمر نشته ؟ جواب دا دے چه ظل کلمه عامه ده چه د نمر د پټیدو د وجه نه سورے راپیدا شی او که بیخی نمر موجود نهٔ وی او سورے راپیدا شی لکه د صبح صادق نه تر نمر راختلو پورے وخته هم ظل وائی، البته د (فَيْءٌ) لفظ هغه سوری ته وائی چه نمر موجود وی خو د رنا مخه ئے په څه شی باندے بنده شی۔ (عزیز التفاسیر ۱۸۸/۳)

**فائده** : د جهنمیانو دپاره ئے سوف لفظ استعمال کړو او د مؤمنانو دپاره د (سَنُدْخِلُ) څکه چه رحمت د الله تعالیٰ په غضب باندے مقدم دے۔

د تفسیر "حکمة القرآن" دریم جلد د الله په حمد او توفیق سره سر ته ورسیدو

وصلی الله وسلم علی نبینا محمد وآله وصحبه اجمعین

وسبحانك اللهم وبحمدك اشهد ان لا اله الا انت استغفرك واتوب اليك۔

اللهم احشرنا مع الانبياء والصديقين والشهداء والصالحين وحسن اولئك رفيقا - آمين۔

شعبان ۱۵ / ۱٤۳۵هجری الموافق ۲۰۱٤/جون/۱۸ وكتبه ابوزهير سيف الله۔

**يقول الشيخ :**

او الحمد لله زۀ د تصحيح او زيادت نه په يوم الاربعاء (۲/ذی القعده ۱٤۳۵ هـ کی فارغ شوم،

بمدينة الرياض متفوحة، المملكة العربية السعودية،

اللهم تقبل منا انك انت السميع العليم وتب علينا انك انت التواب الرحيم وانفع به المسلمين والمسلمات يا رب العالمين۔

وكتبه ابو محمد امين الله البشاوري۔

څلورم جلد به ان شاء الله تعالیٰ د آیت (۵۸) إِنَّ اللهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا نه شروع کیږی بفضل الله وکرمه واحسانه وتوفیقه وامتنانه والله المستعان۔

---

خبردارے

ټولو ورونو مسلمانانو ته دا درخواست دے، که زمونږ په دے کتاب یا بل کوم کتاب کی کتابتی یا علمی خطائی وینی نو د هغے نشاندهی کولو سره دے مونږ ته خبر راکړی، یا دِ ئے په یو کاغذ کی لیکلو سره مونږ ته حواله کړی، د هغوی به ډیر شکرګزار یو، دے دپاره چه په آینده ایډیشن کی د هغے اصلاح وشی، الله تعالیٰ دِے ورته ډیر اجر ورکړی۔

ستاسو ورور بنده ابوزهیر سیف الله غفر له۔

المرقوم : ۱٤۳۵ هـ ذی الحجه ۲۸/ الموافق : ۲۰۱٤/۱۰/۲۲ ليلة الخميس۔

❀❀❀❀

❀❀❀❀❀❀

# فهرست تفسیر حکمة القرآن جلد (۳)

❁❁❁❁❁❁